# مظاهر حق جدید

د مشکوه المصابیح پښتو شرحه

څلورم جلد

**تالیف**

علامه نواب محمدقطب الدین خان دهلوي رحمة الله علیه

**تزئین اوترتیب**

مولاناعبدالله جاوید غازي پوري (فاضل دارالعلوم دیوبند)

**ځانګړتیاوي**

۱: حدیثونه د اعراب سره.

۲: تحت لفظي ترجمه.

۳: د حدیثونو تخریج.

٤: د لغاتو حل .

**مباحث**

کتاب فضائل القرآن

کتاب الدعوات

کتاب المناسک

صداقت کتب خانه

بسم الله الرحمٰن الرحیم

(د مشكٰوة المصابيح پښتو شرحه)

# مظاهر حق

تاليف: نواب محمدقطب الدين خان دهلوي رحمة الله عليه

ترتيب او تزئين: مولاناعبدالله جاويد غازي پوري (فاضل ديوبند)


خپرندوی: صداقت خپرندويه ټولنه

پښتو ژباړه: محمد رسول سعيد

تصحيح کوونکي: بسم الله رحيمي، مولوي عبدالکريم کريمي، مولوي عبدالجبار

لومړی چاپ: ۱۳۹۲ش - ۲۰۱٤ ع.

پنځم چاپ :۱۳۹۹ل. / ۲۰۲۰م.

د خپرونو لړ: ۱۸۳

چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه

د تر لاسه کولو ځايونه:

---

**صداقت خپرندويه ټولنه**-کندهار

اوله ناحيه، نوی سړک- کريم اعتماد مارکېټ

Sadaqat.books@gmail.com / ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

**کندهار:** صداقت خپرندويه ټولنه- ارګ بازار- قلم او کتاب مارکېټ **۰۷۰۰۳۰۹۲۴۴** .

کابل: صداقت خپرندويه ټولنه،کوټه سنګي مينه يار مارکېټ او **اکسوس کتاب پلورنځی**. **هلمند** :تاج منور خپرندويه ټولنه. **هرات:** صداقت کتاب پلورنځی- کوچه ګدام. **جلال آباد:** مومند خپرندويه ټولنه.ننګرهار مارکېټ. **غزني:** نعماني کتاب پلورنځی. **پکتيکا:** مجاهد کتاب پلورنځی. **خوست:** اسلامي کتاب پلورنځی.

# د مظاهر حق څلورم جلد فهرست

بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيمِ

# كِتَابُ فَضَائِلِ القُرآن

## (د قرآن کریم د فضائلو بیان)

قرآن کریم څه شي دی؟ دا تر ټولو هغه مقدس او عظیم کتاب دی چي د الله تعالی له خوا د انسانیت د ټولو آخر او تر ټولو عظیم لارښود رسول کریم ﷺ باندي نازل سو چي د ظلم او جهل په تیارو کي د نور ځلانده کونکی او د کفر او شرک د تابوت آخري میخ د پوره انسانیت لپاره د الله تعالی له خوا نازل سوی تر ټولو آخري او ټولو جامع قانون دی او حبل متین (ټینګه رسی) ورته ویل سوي دي.

د قرآن کریم د عظمت او برتری، فضیلت او رفعت لپاره همدا بس دي چي دا د الله تعالی د مځکي او آسمانو د مالک او د لوح او قلم د خالق کلام دی د ټولو عیبونو او نقصو څخه پاک دی د فصاحت او بلاغت هغه آخري نقطه عروج دی چي لوی تر لوی فصیح او بلیغ ددې په وړاندي کوچنیان معلومیږي، د علوم او معارف، فکر او دانش هغه کوه همالیه دی چي د دنیا د لوي مفکر، فلسفي، دانشور او د فکر د خاوندانو نظرونه ددې په مخکي کي ټیټ دي.

د قرآن کریم د تلاوت او ویلو ثواب د بیان اړ نه دی ټول علماء پر دې متفق دي چي هیڅ ذکر او تلاوت د قرآن کریم څخه زیات ثواب نه لري په خاصه توګه په لمانځه کي ددې د قرائت ثواب دومره زیات دی چي د تحریر د دائرې څخه وتلی دی، د قرآن کریم د تلاوت پر وخت د هر حرف په عوض کي لس نیکۍ او په لمانځه کي د هر حرف په عوض کي پنځه ویشت نیکۍ لیکل کیږي.

د قرآن کریم ویل بنده ته د الله ﷻ قرب بخښي، زړه د عرفان الهي او ذکر الله په نور سره منور کوي او د قیامت په ورځ به د الله تعالی په دربار کي شفاعت کوي.

د قرآن کریم د تلاوت ستر مقصد دادی چي هغه تفکر او تذکر یعني د دین او آخرت د امور یادوني ته د توجه باعث دي او د زیات تلاوت په وجه الهي احکام یاد او مستحضر وي تر څو عمل په وکړل سي او عبرت تر لاسه کړل سي، د تلاوت مقصد دا نه دی چي محض اواز او حروف بنه کړل سي او د زړه غفلت په تیارو کي پروت وي کوم څوک چي قرآن کریم وایي مګر عمل نه په کوي نو قرآن د داسي سړي دښمن وي ځکه په حدیث شریف کي راځي چي:

ځيني خلک داسي دي چي قرآن كريم وايي او قرآن پر هغوئ لعنت وايي ځكه چي قرآن كريم يوازي د ويلو شی نه دی بلكه اصل پر هغه عمل كول دي او كوم څوک چي قرآن كريم وايي مګر عمل نه پر كوي هغه لكه د قرآن كريم سپكاوی چي كوي نو قرآن كريم ويل او په هغه عمل نه كول به د هغه په حق كي د آخرت د تاوان او نقصان دليل وي.

په دې خبره هم پوهېدل پكار دي چي تفكر او تذكر او د معنى فهم هغه وخت تر لاسه كېدای سي كله چي په كراره ، ترتيل او د زړه په حضور سره قرآن كريم ويل كيږي ځكه د قرآن كريم تجويد لازم دی او د قرآن كريم ويل مشروع سوي دي ، د فقهي په كتابونو كي مذكور دي چي د قرآن كريم د حق ادا كولو لپاره دا بس دي چي په څلوېښت ورځو كي يو وار ختم كړل سي بلكه په يو كال كي قرآن كريم ختمول هم كافي دي او په عباداتو مثلا تراويح وغيره كي هم يو وار قرآن كريم كم از كم په اووه ورځو كي ختمول پكار دي او څومره چي تر دې په كم وخت كي ختم كړل سي نو غوره دی.

كوم څوک چي په عربي ژبه باندي د نه پوهېدو په وجه د قرآن كريم په معنى نه پوهيږي هغه ته پكار دي چي د زړه په حضور سره د قرآن كريم تلاوت پيل كړي او په خپل ذهن كي دا خيال وساتي چي دا د الله تعالى كلام دی او په دې كي هغه احكام دی چي پر انسانانو يې نازل كړي دي او هغه په داسي عاجزي سره كښيني او تلاوت وكړي دا چي هغه قرآن كريم نه وايي بلكه د احكم الحاكمين كلام اوري.

## د تلاوت ادبونه

قرآن كريم د الله تعالى د كلام او الهي دربار څخه د نازل سوو الفاظو ټولګه ده ددغه كلام نسبت چي چا ته سوی دی هغه د حاكمانو حاكم، د پاچاهانو پاچا او د ټولو كائناتو مالک دی، د قرآن كريم د تلاوت په وخت كي د هغه ادبونو خيال ساتل پكار دي كوم چي ددغه كلام او صاحب كلام د عظمت د شان سره سم وي ځكه نو مناسب دي چي دلته د تلاوت د ادبونو ذكر په وضاحت سره وكړل سي.

۱. تر ټولو مخكي د مسواک سره اودس وكړئ.
۲. تر دې وروسته پر يو پاک ځای په تواضع او عاجزي سره مخ پر قبله د خپل ځان په كم او عاجز ګڼلو سره او د زړه او د ماغ په حضور سره كښينئ په داسي توګه لكه چي د الله تعالى په مخكي په كښېنستو سره التجاء كوئ.
۳. بيا په اعوذ بالله او بسم الله ويلو سره تلاوت پيل كړئ او په زړه كي دا تصور پيدا كړئ چي

زه د الله تعالی د کلام څخه پرته بل هیڅ نه اورم.

۴. د قرآن کریم آیاتونه په کراره، تدبر، تفکر او ترتیل سره وایاست.

۵. چیري چي د بندګانو په اړه د وعدې او رحمت آیت راسي نو په خوښي او مسرت سره دعاء غواړئ او د خپل ځان لپاره د الله تعالی څخه بخښنه او رحمت غواړئ.

٦. چیري چي د وعید او عذاب په اړه آیت راسي نو د الله تعالی څخه پناه غواړئ.

۷. کله چي د الله تعالی د تقدیس او پاکۍ آیت راسي نو تسبیح وایاست یعني کوم آیت چي د الله تعالی د پاکۍ، لویۍ او بزرګۍ بیانوي د هغه په ویلو سره بیان ووایاست.

۸. د تلاوت په مینځ کي الحاح او زارۍ اختیار کړئ که چیري ژړا نه راځي نو د ژړا په ډول صورت اختیار کړئ خلاصه دا چي قرآن کریم د الله تعالی په دربار کي د حاضرۍ وخت دی ځکه د الله تعالی د عظمت او رفعت احساس په خپل ځان کي په پوره عاجزۍ، ذلت او خشوع سره پیدا کړئ.

۹. ددې هڅه مه کوئ چي قرآن کریم ژر ختم سي او تېز ویل پیل کړئ ځکه چي په فکر او غور سره کم ویل د تلاوت د ادبونو د لحاظ په وجه تر ډېر ویلو غوره دی بیا دا چي د زیات ویلو په وجه د ختم د شمېر څخه پرته نور څه په لاس نه ورځي بلکه دا یو منعه سوی کار دی، نن سبا چي کوم رواج دی چي خلک پوره قرآن کریم په یوه ورځ کي ختمول یا زیات تېز ویل فخر او د کمال خبره ګڼي دا ډېره بده او د غفلت او ناپوهۍ خبره ده. د ځینو بزرګانو څخه چي زیات ویل ثابت دي نو دا د هغوئ کرامت دی په دې باره کي د هغوئ پیروي مه کوئ، خلاصه دا چي په تدبر، ذوق، د زړه په حضور او د تلاوت د رعایت سره چي څومره تلاوت وکړل سي هغه غنیمت وګڼئ.

خواجه پندارد که طاعت مي کند
بې خبر کز معصیت جان مي کند

۱۰. په کوم مجلس کي چي خلک په یو بل کار بوخت وي یا شور او رش وي هلته تلاوت مه کوئ هو که چیري د تلاوت ضرورت وي او بل ځای د تلاوت لپاره نه وي نو تلاوت کول پروا نه لري مګر په کرار اواز سره البته که چیري خلک د تلاوت د اورېدو شوق لري او پته خوله وي نو په لوړ اواز سره تلاوت غوره دی، په حدیث شریف کي راځي چي تلاوت اورېدونکی او تلاوت کونکی دواړه په اجر او ثواب کي شریک دي همدارنګه مصحف (قرآن کریم) ته په کتلو سره ویل د نه کتلو څخه غوره دي ځکه په کتلو سره سترګي او نور

اعصاب هم په عبادت کي شريک وي او د زړه حضور هم زيات تر لاسه کيږي ،

۱۱. قرآن کريم پر رئيل يا يو بل لوړ شي (مثلا بالښت وغيره) باندي ايږدئ تر څو د قرآن کريم تعظيم او تکريم څرګند وي .

۱۲. د تلاوت په جريان کي د دنيوي خبرو ، خوراک او څښاک او نورو ټولو کارونو څخه ځان وساتئ که چيري ضرورت پېښ سي نو د قرآن کريم په بندولو سره خبري وکړئ او ددې وروسته بيا په اعوذ بالله او بسم الله ويلو سره تلاوت پيل کړئ :

۱۳. د غلط ويلو څخه ځان وساتئ په ترتيل او تجويد سره بېله تکلف تلاوت کړئ او په غلطي طريقې سره د اواز او لهجې جوړولو هڅه مه کوئ ، د تلاوت په وخت کي د يو چا د تعظيم ضرورت نسته مګر د يو باعمل عالم، استاد او مور وپلار لپاره درېدل او د هغوئ تعظيم جائز دي .

۱۴. کله چي قرآن کريم ختمېدو ته نژدې سي نو خپل قريبان، دوستان او ملګري راجمع کړئ او د هغوئ په ګډون کي قرآن کريم ختم کړئ او هغوئ ټول په دعاء کي ګډ کړئ ځکه هغه د دعاء قبلېدو وخت دی .

۱۵. د قرآن کريم ختمولو وروسته د سورة فاتحې او سورة بقره (تر مفلحون پوري) په ويلو سره قرآن کريم بند کړئ ځکه داسي کول غوره دي .

۱۶. په تکيه کولو سره يا په پروته تلاوت کول که څه هم جائز دی مګر غوره دادی چي په ادب سره په کښېنستلو تلاوت وسي .

۱۷. همدارنګه پر لاره په تللو سره تلاوت کول جائز دی .

۱۸. که چيري په ځنګل وغيره ځای کي وي نو په لوړ اواز سره تلاوت کول پکار دي.

۱۹. په نجس او چټل ځای مثلا حمام، مذبح (د حلالېدو ځای) وغيره کي د قرآن کريم تلاوت کول مکروه دی.

۲۰. د قرآن کريم تقطيع ډېر کوچني کول نه دي پکار او نه هغه په ټوټې ټوټې کولو سره متفرق کول پکار دي تر څو د هغه په احترام او عظمت کي کمي رانه سي مګر که چيري ضرورت وي مثلا د کوچنيانو د ويلو لپاره يا ديو مناسب اسانۍ په وجه په يوه يا پنځو پارو باندي وويشل سي نو دا جائز دي .

۲۱. قرآن کريم په داسي لښکر کي وړل چيري چي پر امن باندي باور نه وي مناسب نه دي همدارنګه دارالحرب ته هم قرآن کريم وړل هم نه دي پکار ددې لپاره چي د کافرانو لاس ته

ور نسي او هغوئ يې بې ادبي وكړي.
۲۲.د قرآن کريم دو مره آيا تونه په يادول چې په هغو سره لمونځ ادا سي پر هر مسلمان فرض عين دي او پوره قرآن كريم يادول فرض كفايه دی که يو سړی يې په ياد کړي نو د ټولو ذمه ساقط کيږي، فقهاء ليکي چې د سورة فاتحې او يوه سورت يادول پر هر مسلمان واجب دي او د پاته قرآن کريم يادول او د هغه احکام پېژندل او زده كول تر نفل لمانځه غوره دی.
۲۳.قرآن كريم ته ښپې غزول مکروه نه دي په شرط ددې چې د ښپو سره برابر نه وي، همدا رنگه كه چيري قرآن كريم پر تاخ وغيره اېښی وي نو هغه خوا ته ښپې غزول مكروه نه دي.
۲۴.په سفر کي د ساتني لپاره د قرآن كريم په بسته وغيره کي اېښودل او پر هغه تكيه كولو سره بېده كېدلو كي څه پروا نسته.
۲۵.په کومه خونه کي چې قرآن کريم پروت وي هلته په جماع كولو كي څه پروا نسته.
۲۶.د قرآن کريم د تلاوت څخه مخکي دغه دعاء وايا ست:

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَشْهَدُ اَنَّ هٰذَا كِتَابُكَ الْمُنَزَّلُ مِنْ عِنْدِكَ عَلٰى رَسُوْلِكَ مُحَمَّدِ ابْنِ عَبْدِاللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ آلِهِ وَاَصْحَابِهِ وَاَتْبَاعِهِ اَجْمَعِيْنَ وَكَلَامُكَ النَّاطِقُ عَلٰى لِسَانِ نَبِيِّكَ جَعَلْتَهُ هَادِيًا مِّنْكَ لِخَلْقِكَ وَحَبْلاً مُتَّصِلاً فِيْمَا بَيْنَكَ وَ بَيْنَ عِبَادِكَ اَللّٰهُمَّ فَاجْعَلْ نَظَرِيْ فِيْهِ عِبَادَةً وَقِرَاءَتِيْ فِكْرًا وَّفِكْرِيْ فِيْهِ اِعْتِبَارًا اِنَّكَ اَنْتَ الرَّؤُوْفُ الرَّحِيْمُ رَبِّ اَعُوْذُبِكَ مِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِيْنِ وَاَعُوْذُبِكَ رَبِّ اَنْ يَّحْضُرُوْنَ.

**ژباړه**: اې الله! زه شاهدي ادا کوم چې دا کتاب ستا له خوا ستا پر رسول نازل سوی دی چې د هغه مبارک نوم محمد ابن عبدالله ﷺ دی، د الله ﷻ رحمت دي وي پر هغه د هغه پر اولاد د هغه پر اصحابو او د هغه پر پيروانو او زه شاهدا ادا کوم چې ستا دا کلام ناطق دی ستا د رسول ﷺ پر ژبه دا کلام تا د خپل خوا څخه د خپل مخلوق لپاره لارښوونکی ګرځولی دی او دا دې د خپل ځان او خپلو بندګانو په مينځ کي واسطه ګرځولې ده، اې الله! ته زما نظر په دې کي عبادت کونکی زما قرائت په دې کي فکر کونکی او زما فکر په دې کي عبرت اخيستونکی وګرځوې، بېله شکه ستا ذات ډېر مهربان دی او ته ډېر رحم کونکی يې، اې الله! زه د شيطانانو د وسوسو څخه پناه غوارم او اې الله! زه د دې څخه ستا پناه غوارم چې ما ته شيطانان راسي.

۲۷.د پورتني دعاء وروسته قل اعوذبرب الفلق او قل اعوذ برب الناس وواياست او بيا دغه دعاء وواياست:

اَللّٰهُمَّ بِالْحَقِّ اَنْزَلْتَهُ وَبِالْحَقِّ نَزَلَ اَللّٰهُمَّ عَظِّمْ رَغْبَتِيْ فِيْهِ وَاجْعَلْهُ نُوْرًا لِبَصَرِيْ وَشِفَاءً لِصَدْرِيْ وَ ذِهَابًا لِهَمِّيْ وَ حُزْنِيْ وَ بَيِّضْ بِهِ وَجْهِي وَ ارْزُقْنِيْ تِلَاوَتَهُ وَ فَهْمَ مَعَانِيْهِ بِرَحْمَتِكَ يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ.

**ژباړه**: اې الله! تا قرآن په حق سره نازل کړی دی او دا په حق سره نازل سو ، اې الله ! په قرآن کي زما رغبت زيات کړې او زما د سترګو نور او زما د سينې لپاره شفا او زما د فکر او غم ليري کولو سبب يې وګرځوې ، ددې په ذريعه زما مخ منور کړې او د خپل رحمت په صدقه اې تر ټولو مهربانه ذاته ددې تلاوت زما په برخه کړې او ددې په معنی پوهېدل ما ته را په برخه کړې.

۲۸. هره ورځ د تلاوت وروسته په لاسو پورته کولو سره دغه دعاء وواياست:

اَللّٰهُمَّ اجْعَلِ الْقُرْآنَ لَنَا فِي الدُّنْيَا قَرِيْنًا وَّفِي الاٰخِرَةِ شَافِعًا وَفِي الْقَبْرِ مُوْنِسًا وَ فِي الْقِيَامَةِ صَاحِبًا وَعَلَى الصِّرَاطِ نُوْرًا وَ فِي الْجَنَّةِ رَفِيْقًا وَ مِنَ النَّارِ سِتْرًا .

**ژباړه**: اې الله ! قرآن کريم زما لپاره په دنيا کي هم نشين او په آخرت کي شافع او په قبر کي غمخوار او په قيامت کي دوست او پر پل صراط باندي نور او په جنت کي ملګری او د اور څخه پرده وګرځوې.

بيا تاسو د خپل ديني او دنيوي مقصد لپاره چي کومه دعاء غواړئ هغه وواياست انشاء الله تعالی ستاسو هره غوښتنه به د مجيب الدعوات په دربار کي د قبوليت په شرف ونازول سي.

ابن مردويه د حضرت ابوهريره ﷺ څخه روايت کوي چي نبي کريم ﷺ به کله قرآن کريم ختم کړی نو په ولاړه به يې دعاء کول همدارنګه بيهقي په شعب الايمان کي د ابوهريره ﷺ څخه نقل کړي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل کوم څوک چي قرآن ووايي د الله ﷻ حمد او ثناء دي وکړي پر حضرت محمد ﷺ دي درود ووايي بيا دي د خپل رب څخه د خپل بخښني دعاء وغواړي نو ښېله شکه هغه په غوره طريقه خير او ښېګڼه وغوښتل.

بيهقي په شعب الايمان کي نقل کړي دي چي کله به رسول الله ﷺ قرآن کريم ختم کړی نو په

دریدو سره به یې د الله تعالی ډېر زیات حمد او ثناء بیانول او د حمد او ثناء وروسته به یې دغه کلمات ویل:

الحمدلله رب العالمین الحمدلله الذي خلق السموات والارض وجعل الظلمات والنور ثم الذین كفروا بربهم یعدلون، لا اله الاالله وكذب العادلون باالله وضلوا ضلالا بعیدا، لا اله الاالله وكذاب المشركون باالله من العرب والمجوس والیهود والنصارى والصائبین ومن دعا لله ولدا ولصاحبه او ندا او شبها او مثلا او سمیا او عدلا فانت ربنا اعظم من ان نختذ فیما خلقت والحمدلله الذي لم یتخذ صاحبة ولا ولدا ولم یكن له شریك في الملك ولم یكن له ولي من الذل وكبره تكبیرا الله اكبر كبیرا والحمدلله كثیرا وسبحان الله بكرة واصیلا والحمدلله الذي انزل على عبده الكتاب ولم یجعل له عوجا قیما لتنذر باسا شدیدا من لدنه ویبشر المؤمنین الذین یعملون الصالحات ان لهم اجرا حسنا ماكثین فیه ابدا وینذر الذین اتخذ الله ولدا مالهم به من علم ولا لابائهم كبرت كلمة تخرج من افواههم ان یقولون الا كذبا، الحمدلله الذي له ما في السماوات وما في الارض وله الحمد في الاخرة وهو الحكیم الخبیر، یعلم ما یولج في الارض وما یخرج منها ومایتزل من السماء.وما یعرج فیها وهو الرحیم الغفور، الحمدلله فاطر السماوات والارض جاعل الملائكة رسلا اولى اجنحة مثنى وثلث ورباع یزید في الخلق مایشاء ان الله على كل شئ قدیر، ما یفتح الله للناس من رحمة فلا ممسك لها وما یمسك فلا مرسل له من بعده وهو العزیز الحكیم ، الحمد لله وسلم على عباده الذین اصطفى آلله خیر اما یشركون بل الله خیر وابقى واحكم واكرم واعظم مما یشركون ، فالحمدلله بل اكثرهم لا یعملون ، صدق الله وبلغت رسله الكرام وانا على ذالكم من الشاهدین، اللهم صل على جمیع الملائكة والمرسلین وارحم عبادك المؤمنین من اهل السماوات والارض واختم لنا بخیر وافتح لنا بخیر وبارك لنا في القرآن العظیم وانفسنا بالایات والذكر الحكیم ربنا تقبل منا انك انت السمیع العلیم.

**ژباړه**: ټول تعریفونه الله ﷻ لره چي د ټول عالم رب دی ټول تعریفونه الله ﷻ لره چي آسمان او مځکه يې پيدا کړل او تياره او رڼا يې جوړه کړه بيا هم دا کافران د خپل رب سره نور برابروي ، د الله ﷻ څخه پرته بل معبود نسته او هغه خلک دروغجن دي چي د الله ﷻ سره نور برابروي او ګمراه دي هغه خلک او د صحيح لاري څخه خطا سوي دي د الله ﷻ څخه پرته بل معبود نسته او هغه خلک دروغجن دي چي د اهل عرب څخه دي او اورپرسته دي يهود او نصاراى او کوکب پرسته چي هغوئ نور د الله ﷻ شريک ګرځوي او کوم کسان چي د الله ﷻ لپاره اولاد يا ښځه يا همثله يا مشابه يا د هغه په ذات او صفاتو کي برابر ثابتوي نو هغوئ هم دروغجن دي او ته خو اې الله ! ددې څخه لوړ او برتر يې چي په خپل مخلوق کي يو څوک خپل سيال وګرځوې ټول تعريفونه الله ﷻ لره دي چي دځان لپاره يې نه يو ښځه نه اولاد ګرځولی دی او په پاچاهي کي د هغه هيڅوک شريک نسته ، او نسته مرسته کونکي د ذلت په وخت کي او د هغه لوئي بيانوه په لوی ګڼلو سره الله ﷻ تر ټولو په لوی ګڼلو سره الله ﷻ تر ټولو لوی دی ډېر لوی او بې شمېره تعريفونه الله ﷻ لره دي او ټول شيان د الله ﷻ پاکي بيانوي په سهار کي او په ماښام کي او ټول تعريفونه هغه الله ﷻ لري چي هغه پرخپل بنده (محمد ﷺ) باندي نازل کړ چي په هغه کي کوږوالی نسته بالکل سم نازل سو چي د الله تعالی له خوا د يو سخت آفت بيره ورکړي او ايمان لرونکو ته چي نيکي کولو زيری ورکړي ددې چي د هغوئ لپاره ښه بدله ده چي په هغه کي به همېشه اوسي او هغوئ پوه کړي چي وايي الله ﷻ د ځان لپاره اولاد جوړ کړی دی۔هغوئ ته ددې خبري هيڅ خبر نسته نه د هغوئ پلرونو او نيکه ګانو ته څومره بده خبره ده چي د هغوئ د خولې څخه وځي دا ټول دروغ دي چي دوئ يې وايي ټول تعريفونه هغه اللهﷻ لره دي چي دِ هغه په ملک کي هغه ټول شيان دي کوم چي په آسمانو او مځکه کي دي او ټول تعريفونه هغه لره دي په عالم آخرت کي او هغه د لوی حکمت خاوند او د هري خبري خبر لرونکی دي هغه په ټولو شيانو پوهيږي کوم چي په مځکه کي داخليږي او د هغه څخه وځي او کوم چي د آسمانو څخه راکښته کيږي او آسمانو ته خيږي هغه لوی رحم کونکی او زيات بخښنه کونکی دی ټول تعريفونه هغه الله لره دي چي پيدا کونکی دی د ټولو اسمانو او مځکو او ملائکي خپل پيغام رسونکي ګرځونکی دی چي وزرونو والا دي د چا دوه وزره دي د چا درې وزره دي د چا څلور ، په خپل مخلوق کي هغه زياتوب کوي څرنګه چي غواړي يقينا الله ﷻ پر ټولو شيانو لوی قدرت لرونکی دی څه چي الله تعالی پر خلکو باندي خپل رحمت کوي نو د هغه منعه کوونکی هيڅوک نسته او څه چي منعه کړي نو هيڅوک د هغه څخه پرته د هغه ورکونکی نه سته او هغه

زبردست او د حکمتو خاوند دی ټول تعریفونه الله ﷻ لره دي او د الله ﷻ سلامتي دي وي د الله ﷻ پر هغه بندګانو کوم چي هغه خوښ کړي دي ایا الله ﷻ غوره دی یا هغه چي کافران او مشرکان یې د الله ﷻ برابر ګرځوي بلکه الله ﷻ تر ټولو غوره دی او هغه تل پاته کېدونکی ذات دی هغه ټینګ حکم والا او هغه عزت والا دی د هغه ټولو شیانو څخه کوم چي کافران یې شریک ګرځوي تر ټولو عظمت والا دی ټول تعریفونه الله لره دي مګر اکثر خلک دا خبره نه مني ، الله ﷻ ربښتیا فرمایلي دي او د هغه کریم رسولانو د هغه پیغام صحیح صحیح رسولی دی او زه پر دې باندي د ټولو شیانو شاهدي ورکونکی یم اې الله ! خپل رحمت نازل کړې پر ټولو ملائکو باندي پر ټولو پیغمبرانو باندي او رحم وکړي پر خپل مؤمنانو بندګانو باندي د آسمانو د اوسیدونکو څخه او د ځمکو د اوسیدونکو څخه ، زموږ خاتمه په خیر کړې او د خیر دروازه پر موږ خلاصه کړې او برکت واچوي زموږ لپاره د قرآن کریم په علومو کي موږ ته د قرآني آیاتو او د خپل مستحکم ذکر څخه ګټه راکړې اې زموږ ربه ! زموږ دغه دعاء قبوله کړې یقینًا ته زموږ دعاوي اورېدونکی او زموږ د زړو په خبرو خبر یې .

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ (لومړی فصل)

### د قران زده کونکی او ښوونکی تر ټولو غوره دی

﴿۲۰۰۷﴾: عَنْ عُثْمَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُكُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْآنَ وَعَلَّمَهُ . رواه البخاري

د حضرت عثمان رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په تاسو کي غوره هغه څوک دئ چي قرآن زده کړي او بل ته یې وښیي . بخاري

**تخریج** : صحيح البخاري (فتح الباري) : ۹ \ ۷۴ ، رقم : ۵۰۲۷ .

**تشریح** : مطلب دادی چي کوم څوک قرآن کریم زده کړي لکه څرنګه چي د زده کولو حق دی او بیا یې نورو ته وښیي نو هغه تر ټولو غوره دی لکه څرنګه چي قرآن کریم او د هغه علوم د دنیا تر ټولو کتابونو او علومو افضل او لوړ دی همداسي قرآن کریم د علومو پوهېدونکي هم د دنیا په خلکو کي تر ټولو لوړ او د هر علم پیژندونکي څخه افضل او لوړ دی .

د زده کولو د حق څخه مراد دادی چي په قرآني علومو کي غور او فکر وکړل سي او د هغه احکام او معنی او د هغه حقائق په ذهني او قلبي بیداری سره زده کړي .

## د قران زده کولو فضیلت

﴿۲۰۰۸﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عقبة بن عامر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ تشریف راوړ

وَنَحْنُ فِي الصُّفَّةِ فَقَالَ أَيُّكُمْ يُحِبُّ أَنْ يَغْدُوَ كُلَّ يَوْمٍ إِلَى بُطْحَانَ أَوْ الْعَقِيقِ

او موږ په صفه کي ناست وو نو وه یې فرمایل: په تاسو کي څوک غواړي چي بطحان یا عقیق (بازارو) ته هره ورځ ولاړ سي

فَيَأْتِيَ بِنَاقَتَيْنِ كَوْمَاوَيْنِ فِي غَيْرِ إِثْمٍ وَلَا قَطْعِ رَحِمٍ فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ كلنا

او د هغو څخه لوی قبو والا دوه اوښه پرته د ګناه څخه او پرته د قرابت څخه (یعني په روا طریقه) راولي موږ وویل: دا خبره موږ ټول خوښوو،

نُحِبُّ ذٰلِكَ قَالَ أَفَلَا يَغْدُو أَحَدُكُمْ إِلَى الْمَسْجِدِ فَيَعْلَمُ أَوْ يَقْرَأُ آيَتَيْنِ مِنْ

رسول الله ﷺ و فرمایل: په تاسو کي هر څوک دي مسجد ته ځي د قرآن کریم دوه آیاتونه دي وایي بیا دي یې بل ته و ښیي

كِتَابِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ خَيْرٌ لَهُ مِنْ نَاقَتَيْنِ وَثَلَاثٌ خَيْرٌ لَهُ مِنْ ثَلَاثٍ وَأَرْبَعٌ خَيْرٌ

داسي کول د هغه لپاره د دوو اوښو څخه غوره دي او درې آیاتونه به د درو اوښو څخه غوره وي او څلور آیاتونه به

لَهُ مِنْ أَرْبَعٍ وَمِنْ أَعْدَادِهِنَّ مِنَ الْإِبِلِ. رواه مسلم

د څلورو اوښو څخه غوره وي او د آیاتو شمیر به د اوښو د شمیر څخه غوره وي. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۱\ ۵۵۲، رقم: ۲۵۱- ۸۰۳.

**د لغاتو حل**: بناقتین کوماوین: اي فیحصل ناقتین عظیمتي السنام وهي من خیار مال العرب (غټ قوب لرونکي اوښان).

**تشریح**: صفه: هغه سایه لرونکې ډکانچه وه کوم چي د مسجد نبوي مخته جوړه سوې وه او هغه صحابه کرام چي کور او ځای به یې نه وو او نه به یې ښځه او کوچنیان درلودل او د عبادت

او زهد لوړ مقام ته رسیدلي وه هغویٔ به په دغه صفه کي اوسېدل او هر وخت به یې د نبوت د دربار څخه فیض تر لاسه کوئ لکه هغه چي د اسلام تر ټولو لومړنۍ اقامتي او روزنیز ښوونځی وه چي د هغه معلم په خپله رسول کریم ﷺ وو او د زده کونکو ډله د صحابه کرامو څخه عبارت وه.

بطحان مدینې منورې ته نژدې د یو شېلې نوم دی همدارنګه عقیق هم د یو ځای نوم دی چي د مدینې منورې شاوخوا درې یا څلور مېله فاصله باندي واقع دی په دغه دواړو ځایو کي به په هغه زمانه کي بازار جوړېدی چي په هغو کي به د اوښانو رانیول او پلورل کېدل او دا خو ثرګنده ده چي د اهل عرب په نزد اوښ یو ارزښتناک شی وو په خاصه توګه د لوی بوک لرونکي اوښ، نو رسول الله ﷺ په ډېره فصیحه توګه د مذکوره سوال په کولو سره هغه شي ته رغبت ورکړ کوم چي پاته کېدونکی دی او د هغه شي څخه یې نفرت بیان کړ کوم چي په دنیوي اعتبار د هر څومره قیمت او بیه والا وي مګر په پای کي فاني او ختمېدونکی دی.

مګر دا خبره باید په ذهن کي وي چي رسول الله ﷺ د هغویٔ د پوهولو لپاره یوازي د مثال په توګه وفرمایل کنه نو د دنیا ټول شیان هم د یو آیت په مقابله کي هیڅ حقیقت او قدر نه لري.

﴿۲۰۰۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُحِبُّ

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: آیا خوښوي

أَحَدُكُمْ إِذَا رَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ أَنْ يَجِدَ فِيهِ ثَلَاثَ خَلِفَاتٍ عِظَامٍ سِمَانٍ قُلْنَا نَعَمْ

په تاسو کي څوک دا خبره چي هغه خپل کور ته راسي نو درې غټي بلاربي اوښي خپل په کور کي تر لاسه کړي، موږ عرض وکړ موږ دا خبره خوښوو،

قَالَ فَثَلَاثُ آيَاتٍ يَقْرَأُ بِهِنَّ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ خَيْرٌ لَهُ مِنْ ثَلَاثِ خَلِفَاتٍ عِظَامٍ سِمَانٍ. رواه مسلم

نو رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي په تاسو کي د قرآن کریم درې آیاتونه په لمانځه کي ووایي نو دا آیاتونه تر غټو بلاربو اوښو غوره دي. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱\۵۵۲، رقم: ۲۵۰- ۸۰۲.

**د لغاتو حل**: خلفات: ای حاملات (بلاربي اوښي).

## د قران کریم د ماهر فضیلت

﴿۲۰۱۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَاهِرُ بِالْقُرْآنِ مَعَ السَّفَرَةِ الْكِرَامِ الْبَرَرَةِ وَالَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَيَتَتَعْتَعُ فِيهِ وَهُوَ عَلَيْهِ شَاقٌّ لَهُ أَجْرَانِ. متفق عليه

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د قرآن ماهر د هغه ملائکو سره دئ چي بزرګي او نیکي وي یعني هغه ملائکي چي په لوح محفوظ کي د الله تعالی کتابونه لیکي، او هغه چي قرآن په بندوالي بندوالي وایي او هغه ته ویل مشکل وي نو هغوئ ته دوه برابر ثواب تر لاسه کیږي. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۸\۶۹۱، رقم: ۴۹۳۷. ومسلم: ۱\۵۴۹، رقم: ۲۴۴-۷۹۸.

**تشریح**: د قرآن کریم ماهر هغه سړی دی د چا چي قرآن کریم ښه په یاد وي او په ښه رواني یي وایي او د هغه لپاره قرآن کریم ویل هیڅ مشکل او ستونزمن نه وي، همدارنګه د ملائکو څخه هغه ملائکي مراد دي کوم چي د لوح محفوظ څخه کتابونه راوړي یا هغه ملائکي مراد دي کوم چي د بندګانو د اعمالو پر لیکلو مامور دي.

دد غه ارشاد خلاصه داده چي د قرآن کریم ماهر د هغه عظیمو ملائکو سره دی په دې توګه چي هغه په دنیا کي د هغوئ په ډول عمل کوي او په آخرت کي چي هغه ته کوم منازل او درجې تر لاسه کیږي په هغو کي به ملائکي دده ملګري وي.

د چا چي قرآن کریم ښه یاد نه وي او هغه په دربدو دربدو سره وایي نو هغه ته دوه زیري ورکړل سوي دي یو ثواب د ویلو او دوهم ثواب د هغه مشقت چي هغه ته د قرآن کریم په ویلو کي وي، همدارنګه د قرآن کریم د ویلو ترغیب ورکړل سوی دی مګر ددې مطلب دا نه دی چي کوم څوک په دربدو دربدو سره قرآن کریم وایي هغه د قرآن کریم د ماهر څخه زیات ثواب تر لاسه کوي ځکه د قرآن کریم ماهر ته خو ډېر زیات ثواب ورکول کیږي په دې توګه چي د ملائکو د ملګرتیا په ډول د عظیمي نیکبختۍ زیری ورکړل سوی دی، په هر حال خلاصه دا چي افضل خود قرآن کریم ماهر دی مګر په دربدو دربدو سره د ویونکي لپاره هم د مشقت په اعتبار یو ډول فضیلت او ثواب ثابت دی.

﴿۲۰۱۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا حَسَدَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : حسد نه دئ پكار

إِلَّا عَلَى اثْنَتَيْنِ رَجُلٌ آتَاهُ اللّٰهُ الْقُرْآنَ فَهُوَ يَقُومُ بِهِ آنَاءَ اللَّيْلِ وَآنَاءِ النَّهَارِ

مګر د دوو كسانو سره : يو هغه ته چي الله تعالى قرآن په برخه كړئ وي يعني د هغه قرآن كريم ياد وي او هغه شپه او ورځ قرآن كريم وايي او عبادت كوي

وَرَجُلٌ أَتَاهُ اللّٰهُ مَالًا فَهُوَ يُنْفِقُ مِنْهُ آنَاءَ اللَّيْلِ وَآنَاءَ النَّهَارِ. متفق عليه

او دويم هغه څوک چي الله تعالى مال وركړى وي او هغه شپه او ورځ په نيكو كارو كي خرڅ كوي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۷۳، رقم: ۵۰۲۵، ومسلم ۱\۵۵۸، رقم: ۲۶۶- ۸۱۵.

**تشريح**: د حسد معنى داده چي د بل چا څخه د نعمت زوال او د ځان لپاره د هغه نعمت د غوښتني خواهش كول، حضرت ميرک رحمه الله وايي چي د حسد دوه قسمونه دي ۱: حقيقي، ۲: مجازي، د حقيقي مطلب دادی چي د يو چا څخه د نعمت د زائل كېدو خواهش وي د حسد دا ډول د قرآني احكامو او تعليماتو او حديث په اړه د ټولو علماؤ په نزد په اتفاق سره حرام دی، د مجازي مطلب دادی چي د يو چا سره د يو نعمت په لېدو د ځان لپاره هم د هغه تر لاسه كېدو خواهش وكړي بېله ددې چي د هغه بل چا څخه د زائل كېدو خواهش وكړي، د مجازي حسد دغه ډول ته غبطه ويل كيږي چي هغه ته رشک (قصد كېدل) هم وايي، حسد مجازي يعني غبطه كه چيري په دنيوي شيانو كي وي نو هغه مستحب ده مثلا يو څوک د مسجد پر جوړېدو باندي دا خواهش وكړي چي كاشكي زما سره هم روپۍ واى نو ما به هم داسي مسجد جوړ كړى واى دا قصد حسنه دي او پر دې باندي ثواب هم سته.

په هر حال دلته په حديث كي د حسد څخه مراد غبطه ده مګر په دغه حديث كي د غبطې اجازه يوازي په دوو شيانو كي منحصر كول مقصد نه دي بلكه مطلب دادی چي هيڅ نعمت تر دوو نعمتو زيات نه دی چي د هغه تر لاسه كولو هڅه وكړل سي ځكه مظهر رحمه الله فرمايي چي د هيچا لپاره دا مناسب نه ده چي هغه د بل چا سره د نعمت په لېدو د هغه نعمت د تر لاسه كولو خواهش وكړي هو كه چيري هغه نعمت داسي وي چي د الهي قرب ذريعه ګرځي لكه د قرآن كريم

تلاوت، صدقه خیرات او داسي نوري نیکۍ نو دداسي نعمت د تر لاسه کولو خواهش کول ښه کار دی.

د قرآن کریم د نعمت ورکولو څخه مراد دادی چي هغه ته د قرآن کریم د تلاوت کولو او یادولو توفیق ورکړل سوی وي د هغه قرآن کریم داسي په یاد وي لکه څرنګه چي یادول پکار دي همدارنګه په قرآن کریم کي بوخت پاته کېدلو څخه مراد دادی چي د قرآن کریم تلاوت کوي د هغه مفهوم او معنی یادوي او د هغه په علومو او احکامو کي فکر او غور کوي یا دا چي د هغه په اوامرو او نواهي باندي عمل کول او یا دا چي هغه په لمانځه کي وایي.

## د قران ویونکي او نه ویونکي مثال

﴿۲۰۱۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوْسٰی قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ

د حضرت ابو موسی رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: مثال

الْمُؤْمِنِ الَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ مَثَلِ الْأُتْرُجَّةِ رِيحُهَا طَيِّبٌ وَطَعْمُهَا طَيِّبٌ وَمَثَلُ

د هغه مؤمن چي قرآن وایي د نارنج (غټ لیمبو) په ډول دئ چي د هغه خوشبویي ښه او خوند یې خوږ وي او مثال

الْمُؤْمِنِ الَّذِي لَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ مَثَلِ التَّمْرَةِ لَا رِيحَ لَهَا وَطَعْمُهَا حُلْوٌ وَمَثَلُ

د هغه مؤمن چي قرآن نه وایي د هغه خرما په ډول دئ چي په هغه کي خوشبویي هم نه وي او خوند یې خوږ وي او مثال

الْمُنَافِقِ الَّذِي لَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ كَمَثَلِ الْحَنْظَلَةِ لَيْسَ لَهَا رِيحٌ وَطَعْمُهَا مُرٌّ

د هغه منافق چي قرآن کریم نه وایي د مړغوني په ډول دئ چي په هغه کي خوشبویي هم نسته او خوند یې هم تریخ دئ

وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ الَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ مَثَلُ الرَّيْحَانَةِ رِيحُهَا طَيِّبٌ وَطَعْمُهَا

او د هغه منافق حال چي قرآن وایي د ریحان په ډول دئ چي بوی یې ښه او خوند یې

مُرٌّ. متفق عليه و في رواية المؤمن الذي يقرا القرآن و يعمل به كالاترجة

والمؤمن الذي لا يقرا القرآن و يعمل به کالتمرة .

تریخ دئ . بخاري او مسلم ، او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي د هغه مؤمن حال چي قرآن وايي او په هغه عمل کوي د نارنج په ډول دئ او د هغه مؤمن حال چي قرآن نه وايي او په هغه عمل کوي د خرما په ډول دئ .

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۹\۵۵۵، رقم: ۵۴۲۷، ومسلم ۱\۵۴۹، رقم: ۲۴۳- ۷۹۷.

**د لغاتو حل**: الأترجة: نوع من الثمر (نارنج).

**تشریح**: د قرآن کریم ویونکی مسلمان د نارنج په ډول داسي سو چي هغه خوندور ځکه دی چي په هغه کي د ایمان نور ځای سوی دی او خوشبویي لرونکی ځکه دی چي نه یوازي دا چي خلک د هغه د قرائت او تلاوت په اورېدو سره ثواب تر لاسه کوي بلکه د هغه څخه قرآن کریم هم زده کوي .

## د قران ویونکي او نه ویونکي درجې

﴿۲۰۱۳﴾: وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ يَرْفَعُ بِهٰذَا الْكِتَابِ أَقْوَامًا وَيَضَعُ بِهِ آخَرِينَ . رواه مسلم

د حضرت عمر بن خطاب ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : الله تعالی ددې کتاب (قرآن) په ذریعه یو قوم لوړوي او بل قوم کښېته کوي . مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱\۵۵۹، رقم: ۲۶۹- ۸۱۷.

**تشریح**: مطلب دادی چي څوک قرآن کریم وایي او په هغه عمل کوي نو الله تعالی په دنیا او آخرت کي د هغه درجې لوړوي په دې توګه چي په دنیا کي هغه ته د عزت او وقار ژوند ورکوي او په عقبی کي یې د هغه خلکو سره یو ځای کوي پر کومو چي یې خپل انعام کړی دی ، داسي سړی چي نه قرآن کریم وایي او نه عمل په کوي د هغه درجې کښېته کوي.

## د قران اورېدو لپاره د ملائکو شوق

﴿۲۰۱۴﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ أُسَيْدَ بْنِ حُضَيْرٍ قَالَ بَيْنَمَا هُوَ يَقْرَأُ

د حضرت ابو سعید خدري ﷛ څخه روایت دئ چي اسید بن حضیر وویل : یوه شپه ما

مِنَ اللَّيْلِ سُورَةَ الْبَقَرَةِ وَفَرَسُهُ مَرْبُوطَةٌ عِنْدَهُ إِذْ جَالَتِ الْفَرَسُ فَسَكَتَ

سورة بقرة ويل او زما آس زما سره تړلی وو ناڅاپه ما وليدل چي آس په ترپکو سو زه پته خوله سوم

فَسَكَنَتْ فَقَرَأَ فَجَالَتْ فَسَكَتَ فَسَكَتَتْ ثُمَّ قَرَأَ فَجَالَتْ الْفَرَسُ فَانْصَرَفَ

آس هم آرام سو ما بیا لوستل پیل کړل آس بیا په ټوپو سو ، زه پته خوله سوم آس هم آرام سو ، ما
بیا لوستل پیل کړل آس بیا هم هغسي په ټوپو سو په پای کي مي لوستل بند کړل

وَكَانَ ابْنُهُ يَحْيَى قَرِيبًا مِنْهَا فَأَشْفَقَ أَنْ تُصِيبَهُ وَلَمَّا اَخرهُ رَفَعَ رَأْسَهُ إِلَى

او زما زوی يحيى د آس سره نژدې بيده وو زما سره بيره پيدا سول چي آس ورته ونه رسيږي نو د
خپل زوی پورته کولو لپاره ورغللم ،په دې حال کي زما نظر پر آسمان ولويدئ

السَّمَاءِ فَإِذَا مِثْلُ الظُّلَّةِ فِيهَا أَمْثَالُ الْمَصَابِيحِ فلما اصبح حدث النبي صلى

ما وليدل چي د وريځ په ډول يو شی خپور سوئ دئ چي په هغه کي ډير شيان بليږي ، کله چي
سهار سو نو دا پېښه مي رسول الله ﷺ ته بيان کړه ،

الله عليه وسلم فقال اقرا يا ابن حضير اقرا يا ابن حضير قال فاشفقت

رسول الله ﷺ وفرمايل : اې ابن حضير ! ويل به دي ، اې ابن حضير ! ويل به دي، ما عرض وکړ
اې د الله رسوله ! زما زوی يحيى نژدې وو

يارسول الله ان تطايحى وكان منها قريبا فانصرفت اليه ورفعت راسي الى

او زما سره بيره پيدا سول چي آس يې ونه وهي له دې کبله ما ويل پريښودل ، او آسمان ته چي
مي وکتل

السماء فاذا مثل الظلة فيها امثال المصابيح فَخَرَجَتْ حَتَّى لَا أَرَاهَا قَالَ

نو د وريځي په ډول راته څرګند سو چي په هغه کي ډير شيان بليدل، بيا چي زه د باندي راووتم
نو هيڅ هم نه وه، رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَتَدْرِي مَا ذَاكَ قَالَ لَا قَالَ تِلْكَ الْمَلَائِكَةُ دَنَتْ لِصَوْتِكَ وَلَوْ قَرَأْتَ لَأَصْبَحَتْ

ته پوهيږې چي دا څه وه ؟ ما عرض وکړ : نه، رسول الله ﷺ وفرمايل : دا ملائکي وې چي ستا

قرائت اوريدو لپاره راغلې وې که تا لوستل جاري ساتلې وای نو سهار ته به

يَنْظُرُ النَّاسُ إِلَيْهَا لَا تَتَوَارَى مِنْهُمْ . متفق عليه و اللفظ للبخاري و في مسلم عرجت في الجو بدل فخرجت على صيغة المتكلم .

خلکو ملائکې ليدلې او ملائکې به د خلکو د نظر څخه نه پټېدلای . بخاري او مسلم .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري) : ۹\۶۳، رقم : ۵۰۱۸، ومسلم ۱\۵۴۸، رقم : ۲۴۲-۷۹۶.

**تشريح** : د آس د ټوپ وهلو وجه دا وه چې حضرت اسيد ﷺ قرآن کريم وايه نو د قرائت اورېدو لپاره ملائکې راغلې وې او د هغو په لېدو سره آس په ټوپو سو ، او کله چې اسيد ﷺ تلاوت بند کړی او ملائکې پورته سوې نو آس هم ټوپونه وهل بند کړل .

د رسول الله ﷺ په ارشاد کي : اقراء يا ابن حضير : اې ابن حضير! تا به تلاوت جاري ساتلای ، دلته د اقراء معنی ابن حجر رحمه الله داسي ليکلې ده چې سورة بقره همېشه وايه چې د داسي عجيب او غريب حالت راتلو سبب دی که په راتلونکې کي هم ددغه سورت د ويلو په دوران کي داسي صورت وړاندي سي نو تلاوت جاري ساته يعني تا هغه وخت تلاوت کول ولې پرېښودی بلکه زياتوب دي ولي ونه کړ تا ته پکار وه چې تا په هغه صورت کي زيات تلاوت کړی وای، د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد په جواب کي اسيد ﷺ وويل چې اې دالله رسوله ! زه په دې خبر نه وم...الخ، ددې څخه دا څرګنده سوه چې دلته ترجمه د علامه طيبي رحمه الله د وضاحت سره سم سوې ده .

د وريځي په ډول يو شی دی، وجه تشبيه يې داده چې ملائکې د قرآن کريم د اورېدو لپاره دومره زياتې راغلې وې که څوک يې ووينې نو داسي به محسوس کړي چې د پردې په ډول يو شی دی چې د ليدونکي او آسمان تر مينځ حائل سوي دي ، حضرت اسيد ﷺ هغه شی په وريځ تعبير کړ او په هغه کي څراغونه بلېدل دا په اصل کي : هغه ملائکو مخونه وه چې د څراغانو په ډول ځلانده وه .

## د قران تلاوت د رحمت د نازلېدو سبب دی

﴿۲۰۱۵﴾ : وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ كَانَ رَجُلٌ يَقْرَأُ سُورَةَ الْكَهْفِ وَإِلَى جَانِبِهِ حِصَانٌ

د حضرت براء ﷺ څخه روايت دئ چې يو سړي سورة کهف لوستئ او د هغه سره نژدې آس وو

مَرْبُوطٌ بِشَطَنَيْنِ فَتَغَشَّتْهُ سَحَابَةٌ فَجَعَلَتْ تَدْنُو وَتَدْنُو وَجَعَلَ فَرَسُهُ يَنْفِرُ

چي په دوو رسيو تړلی وو ، پر هغه آس د وريځي په ډول يو شی خپور سو بيا نور هم نژدې سو او آس د هغه په ليدو سره په ټوپو سو ،

فَلَمَّا أَصْبَحَ أَتَى النَّبِيَّ ﷺ فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ تِلْكَ السَّكِينَةُ تَنَزَّلَتْ بِالْقُرْآنِ . متفق عليه

کله چي سهار سو نو هغه د نبي کريم ﷺ په خدمت کي دا پېښه بيان کړه ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل دا سکينه (رحمت) وو چي د قرآن کريم د ويلو له کبله نازل سو . بخاري او مسلم.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري) : ۹\۵۷، رقم: ۵۰۱۱، ومسلم ۱\۵۴۷، رقم: ۲۴۰- ۷۹۵.

**تشريح** : سکينه د زړه تسکين ته وايي او هغه رحمت ته چي د هغه په سبب زړه پاک او نوراني کيږي د نفس تياري ختميږي او حضور او ذوق پيدا کيږي، سکينه که څه هم نه ليدونکی شی دی مګر کله کله د وريځي په صورت کي ليدل کېدای سي .

## د سورة فاتحې فضيلت

﴿۲۰۱۶﴾ : وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ بْنِ الْمُعَلَّى قَالَ كُنْتُ أُصَلِّي فِي الْمَسْجِدِ فَدَعَانِي

د حضرت ابو سعيد بن المعلي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما په مسجد کي لمونځ کوئ چي نبي کريم ﷺ راته آواز وکړ

النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ أُجِبْهُ ثُمَّ اتيته فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي كُنْتُ

ما جواب نه ورکړ : بيا چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم او عرض مي وکړای دالله رسوله ! ما لمونځ کوئ،

أُصَلِّي قَالَ أَلَمْ يَقُلْ اللَّهُ { اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ } ثُمَّ قَالَ أَلَا

رسول الله ﷺ راته وفرمايل : ايا الله تعالی دا حکم نه دئ کړئ (استجيبوا ......) : هر کله چي تاسو رسول را وبلي نو تاسو د الله جل جلاله او رسول ﷺ پر بلنه هغه ته جواب ورکوئ او د هغه فرمانبرداري کوئ، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل :

أُعَلِّمُكَ أَعْظم سُورَة فِي الْقُرْآنِ قَبْلَ أَنْ تَخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ أَخَذَ بِيَدِي

ايا زه تاته د مسجد څخه د وتلو وړاندي يو داسي سورت ونه ښيم چي د قرآن کريم تر ټولو لوی سورت دئ ، رسول الله ﷺ زه تر لاس ونيولم ،

فَلَمَّا أَرَادَأَنْ يَخْرُجَ قُلْتُ يا رسول الله انك قلت لَأُعَلِّمَنَّكَ سُورَةً من القرآن

بيا چي ما د مسجد څخه د وتلو اراده وکړه نو عرض مي وکړ اې د الله رسوله ! تاسو فرمايلي وه چي زه به درته د قرآن کريم عظيم سورت درته وښيم

قَالَ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ هِيَ السَّبْعُ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنُ الْعَظِيمُ الَّذِي أُوتِيتُهُ . رواه البخاري

رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه الحمد لله رب العالمين، دئ په دې کي اووه آياتونه دي چي (په لمانځه) کي څو څو واره ويل کيږي او دا قرآن عظيم دئ چي ما ته راکړل سوی دئ . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۵۶۱۸، رقم: ۴۴۷۴.

**تشريح**: د استجيبوا څخه دا معلومه سوه چي د رسول الله ﷺ د لمانځه په حالت کي په جواب ورکولو سره لمونځ نه فاسد کېدی لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ ته په لمانځه کي په خطاب کولو سره لمونځ فاسد نه سو .

سورة فاتحې ته يې لوی سورت ځکه وويل چي هغه د الله تعالی په نزد لوی قدرت لري او د الفاظو د اختصار سربېره د هغه فائدې او معناوې ډيري زياتي دي ځکه ويل سوي دي چي په سورة فاتحه کي د دين او دنيا ټول مقاصد راځي بلکه ځيني عارفين وايي څه چي په مخکنيو آسماني کتابو کي دي هغه ټول په قرآن کريم کي دي او هغه ټول په سورة فاتحه کي دي او څه چي په سورة فاتحه کي دي هغه ټول په بسم الله کي دي .

هغه اووه آياتونه چي د هغو څخه په اصل کي د قرآن کريم دغه آيت ته اشاره سوې ده : لقد اتيناک سبعا من المثاني والقرآن العظيم، اې محمد ﷺ ! موږ تا ته هغه اووه آياتونه درکړي دي کوم چي په لمانځه کي په وار وار ويل کيږي ، او يا دا چي په هغه اووه آياتو کي ثناء سوې ده په فصاحت او اعجاز سره او ددغه اووه آياتونو څخه مراد سورة فاتحه ده، او موږ تا ته قرآن عظيم درکړی دی دلته د قرآن عظيم څخه هم مراد سورة فاتحه ده ځکه سورة فاتحه د معنی او فائدو په

اعتبار د قرآن کریم اعظم جز دی ځکه نو د مبالغې په توګه یې وفرمایل چي دا قرآن عظیم دی.

## د سورة بقره فضیلت

﴿۲۰۱۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ لَا تَجْعَلُوْا بُيُوْتَكُمْ مَقَابِرَ إِنَّ الشَّيْطَانَ يَنْفِرُ مِنَ الْبَيْتِ الَّذِيْ تُقْرَأُ فِيْهِ سُوْرَةُ الْبَقَرَةِ. رواه مسلم

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: خپل کورونه هدیرې مه جوړوئ ځکه چي شیطان د هغه کور څخه وځي په کوم کي چي سورة بقرة ویل کیږي. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۱\۵۳۹، رقم: ۲۱۲-۷۸۰.

**تشریح**: هدیرې مه جوړوئ: ددې مطلب دادی لکه څرنګه چي هدیرې د الله جل جلاله د ذکر، عبادت او تلاوت څخه خالي دي همداسي خپل کورونه ددغه شیانو څخه مه خالي کوئ چي په هغه کي د مړو په ډول پراته یاست او د الله جل جلاله ذکر وغیره نه کوئ بلکه په خپلو کورونو کي لمونځ هم کوئ د الله جل جلاله په ذکر کي هم بوخت اوسئ او د قرآن کریم تلاوت هم کوئ، رسول الله ﷺ هغه شي ته لارښوونه وفرمایل چي په ذکر او بوختیا کي افضل او د کور او کورنۍ لپاره ډېر ګټور دی چي هغه قرآن کریم دی، وه یې فرمایل شیطان د هغه کور څخه تښتي په کوم کي چي سورة بقره ویل کیږي، ددې مطلب دادی چي د قرآن کریم تلاوت په خاصه توګه د سورة بقره تلاوت نه یوازي دا چي په کور کي د رحمت او برکت دروازې خلاصوي بلکه ددې یوه ګټه داده چي په داسي کور کي د شیطان نحوست او د هغه د مکر او چم څخه خوندي کېدل وي، هسي خو په عامه توګه د قرآن کریم تلاوت د رحمت او برکت باعث دی مګر دلته یې سورة بقره په خاصه توګه ذکر کړل ځکه چي په دغه سورة کي د الله جل جلاله مبارک نومونه ډېر ذکر سوي دي.

## د قیامت په ورځ د قران کریم شفاعت

﴿۲۰۱۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ اُمَامَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

د حضرت ابو امامة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي:

اِقْرَءُوا الْقُرْآنَ فَإِنَّهُ يَأْتِيْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ شَفِيْعًا لِأَصْحَابِهِ اقْرَءُوا الزَّهْرَاوَيْنِ

قرآن وایاست ځکه چي د قیامت په ورځ به دا شفاعت کوي او دا دوه سورتونه چي ډیر ځلانده دي (یعني سورة

الْبَقَرَةَ وَسُورَةَ آلِ عِمْرَانَ فَإِنَّهُمَا تَأْتِيَانِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَأَنَّهُمَا غَمَامَتَانِ أَوْ

بقرة او سورة آل عمران) وايااست ځكه چې دا دوه سورتونه به د قيامت په ورځ د وريځې دوې ټوټې

غَيَابَتَانِ أَوْ فِرْقَانِ مِنْ طَيْرٍ صَوَافَّ تُحَاجَّانِ عَنْ أَصْحَابِهِمَا اقْرَءُوا سُورَةَ

يا دوه سايه كوونكي شيان يا د مرغانو دوه صف بسته سيل وي چې د خپل ويونكي د لوري به جګړه كوي او سورة

الْبَقَرَةِ فَإِنَّ أَخْذَهَا بَرَكَةٌ وَتَرْكَهَا حَسْرَةٌ وَلَا يَسْتَطِيعُهَا الْبَطَلَةُ. رواه مسلم

بقرة وايااست ځكه چې ددې سورت هميشه ويل د بركت باعث دئ او نه ويل يې د حسرت او ندامت باعث دئ ددې د ويلو يوازې هغه خلك توان نه لري چې سست او ناراسته وي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۱/ ۵۵۳، رقم: ۲۵۲- ۸۰۴.

**د لغاتو حل**: غيابتان: وهي بالياءين ما يكون أدون منهما في الكثافة وأقرب إلى رأس صاحبهما كما يفعل بالملوك فيحصل عنده الظل والضوء جميعا (سايه كوونكي)

**تشريح**: قرآن كريم وايااست: ددې مطلب داد يچې د قرآن كريم تلاوت او د هغه په مفهوم او معنى كې د غور او فكر كولو نعمت د خپل ځان لپاره د نيكبختۍ سبب وګڼئ او د هغه پر تلاوت كولو باندې همېشتوب كوئ.

سورة بقره او سورة آل عمران ته يې ځلانده سورتونه ويلي دي، ددې مطلب دادی چې دغه دواړه سورتونه د نور او هدايت او د ثواب د زياتوب په وجه ځلانده دي لكه چې د الله ﷻ په نزد په دغه دواړو سورتو كې او په پاته سورتو كې د سپوږمۍ او ستورو نسبت دی چې دا سورتونه د سپوږمۍ په منزله دی نسبت نورو سورتو ته چې هغه ټول د ستورو په منزله دي.

د قيامت په ورځ د خپل ويونكي په حق كې ددغه سورتونو بركات په متشكل توګه ظاهرېدل په درو صورتو كې بيان سوي دي: اول صورت خو دا بيان سوی دی چې دا سورتونه به د قيامت په ورځ د خپل ويونكو لپاره د وريځې دوې ټوټې وي چې د حشر په ميدان كې په درېدو سره به هغه د لمر د ګرمۍ او تېزۍ څخه د ساتنې لپاره پر هغه سايه كوي، دوهم صورت دا بيان سوی دی چې هغه سايه كونكې به دوه شيان وي يا په بل شكل كې ددې مفهوم دا هم دی چې دوئ به پر خپل ويونكو باندې سايه كونكي وي، فرق يوازې دادی چې په دغه صورت كې د

هغه سايه لرونكو شيانو سايه به د اول صورت په نسبت كمه وي او هغوئ به د خپل ويونكي سر ته نژدې وي لكه څرنګه چي د آميرانو او پاچاهانو پر سرو د سايوان وغيره سايه كيږي همدا رنګه په دغه صورت كي د هغوئ پر سرونو باندي به سايه هم وي او رڼا به هم وي، دريم صورت دا ښودل سوى دى چي د مرغانو په ډول به صف تړلي دوې ټوټې وي چي د هغه سايه به هم وي چي د خپل ويونكو له خوا به ددې خبري وكالت او سفارش كوي چي هغوئ د اخرت په ټولو ابدي سعادتونو سره و نازول سي.

علامه طيبي رحمه الله فرمايي چي په : كان هما غمامتان او غيابتان او فرقان من طير صواف : كي د او حرف د تنويع (اظهار اقسام) لپاره دى ، مطلب يې دادى چي دا درې سره صورتونه به په يو وخت كي وي چي د هغه تعلق به د خپلو ويونكو د حال مناسب وي اول يعني د وريځي د صورت تعلق به د هغه سړي سره وي چي هغه دغه دوه سورتونه ويلي وي مګر په معنى او مفهوم پوه سوى نه وي دوهم يعني د سايه د شي تعلق به د هغه سړي سره وي چي هغه دا سورتونه ويلي هم وي او په معنى يې هم پوه سوى وي او نورو ته يې هم ددغه سورتونو تعليم وركړى وي.

﴿۲۰۱۹﴾: وَعَنِ النَّوَّاسِ بْنِ سَمْعَانَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت نواس بن سمعان رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه اوريدلي دي :

يَقُولُ يُؤْتَى بِالْقُرْآنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَأَهْلِهِ الَّذِينَ كَانُوا يَعْمَلُونَ بِهِ تَقْدُمُهُ

د قيامت په ورځ به قرآن كريم او ددې ويونكى او پر دې عمل كوونكى دا سي راوستل سي چي د قرآن كريم دوه سورتونه يعني .

سُورَةُ الْبَقَرَةِ وَآلُ عِمْرَانَ كَأَنَّهُمَا غَمَامَتَانِ أَوْ ظُلَّتَانِ سَوْدَاوَانِ بَيْنَهُمَا شَرْقٌ

سورة بقرة او سورة آل عمران به د هغوئ وړاندي وي لكه چي دا دوه سورتونه د وريځي دوې ټوټې دي يا د ورځي توري ټوټې دي چي په هغو كي ځلا وي

أَوْ كَأَنَّهُمَا فِرْقَانِ مِنْ طَيْرٍ صَوَافَّ تُحَاجَّانِ عَنْ صَاحِبِهِمَا. رواه مسلم .

يا د صف بسته مرغانو دوه سيلونه دي چي د خپل ويونكي شفاعت به كوي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\ ۵۵۴، رقم: ۲۵۲ – ۸۰۵.

**د لغاتو حل**: شَرق: اي ضوء ونور. (رڼا او نور).

**تشریح**: یؤتی بالقرآن: قرآن کریم به راوستل سي، ددې مطلب دادی چي د قیامت په ورځ به یا خو قرآن کریم ته د شکل او صورت په ورکولو سره د حشر میدان ته راوستل سي او یا به د هغه ثواب راوستل سي.

کانوا یعملون: او په هغه یې عمل کوی ددې څخه دا خبره ثابته سوه چي کوم سړی قرآن کریم خو وایي مګر عمل نه په کوي نو هغه د اهل قرآن څخه نه دی او نه قرآن کریم د داسي کس شفاعت کوي بلکه د داسي سړي په حق کي قرآن کریم د تاوان سبب دی.

تقدمه ...الخ: مطلب دادی چي د سورة بقره او سورة آل عمران ثواب مخکښي وي، ځیني حضرات فرمایي چي د قیامت په ورځ د حشر په میدان کي قرآن کریم ته ظاهري شکل او صورت ورکړل سي ټول خلک به یې وویني لکه څرنګه چي د حشر په میدان کي د تلو لپاره نور ټولو اعمالو ته صورت ورکول کیږي.

ظلتان سوداوان: د وریځي دوې ټوټې دي، ددې مطلب دادی چي د ګڼ توب په وجه به هغه ټوټې توري وي د داسي وریځي سایه آرام رسونکې او د سکون باعث وي.

بینهما شرق: او په هغوئ کي یو ځلا ده، ددې څخه دا خبره څرګندیږي چي که څه هم د وریځي هغه ټوټې به ډیري ګڼي وي مګر ددې سربیره د رڼا څخه به مانع نه وي او ځیني حضرات وایي چي دلته د شرق معنی د درز ده، مطلب یې دادی چي ددغه دواړو سورتو په مینځ کي چي د وریځي د ټوټو په صورت کي به وي د بسمله په ذریعه فرق وي چي په دواړو سورتو کي امتیاز پاته وي.

## اية الکرسي تر ټولو عظیم ایت دی

﴿۲۰۲۰﴾: وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ يَا أَبَا الْمُنْذِرِ أَتَدْرِي أَيُّ آيَةٍ

د حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: اې ابو المنذره! تا ته څرګنده ده چي

مِنْ كِتَابِ اللَّهِ مَعَكَ أَعْظَمُ قُلْتُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ يَا أَبَا الْمُنْذِرِ أَتَدْرِي

د قرآن کریم کوم آیت ستا لپاره لوی دئ ما عرض وکړ الله جل جلاله او د هغه رسول ښه پوهیږي، رسول الله ﷺ وفرمایل: اې ابو المنذر! ایا ته پوهیږې

أَيُّ آيَةٍ مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ مَعَكَ أَعْظَمُ قُلْتُ { اللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ }

چي د قرآن کريم کوم آيت ستا لپاره لوی دئ ما عرض وکړ : الله .... الحي القيوم. (يعني آية

قَالَ فَضَرَبَ فِي صَدْرِي وَقَالَ لِيَهْنِكَ الْعِلْمُ أَبَا الْمُنْذِرِ . رواه مسلم

الكرسي) ، رسول الله ﷺ د دې په اوريدو سره زه پر سينه ووهلم او وه يې فرمايل : اې ابو المنذر ستا علم دي مبارک وي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ١\٥٥٦، رقم: ٢٥٨- ٨١٠.

**تشريح**: په اول وار چي رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه نو ابی بن کعب رضي الله عنه څه جواب ورنه کړ بلکه الله جل جلاله او د هغه رسول ﷺ ته يې وسپارل ، بيا په دوهم وار رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه نو جواب يې ورکړ ، په دې اړه علماء وايي چي ابی رضي الله عنه په اول وار د ادب په وجه جواب ورنه کړ او په دوهم وار چي رسول الله ﷺ بيا پوښتنه وکړه نو د رسول الله ﷺ د سوال سره سم جواب يې ورکړ يعني په داسي کولو سره هغه په ډېر لطيف انداز کي ادب او فرمانبرداري دواړه جمع کړل لکه څرنګه چي د اهل کمال طريقه ده ، مګر ځيني حضرات وايي چي په اول وار کله رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه نو ابی رضي الله عنه ته جواب معلوم نه وو مګر کله چي په دوهم وار رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه نو د الله تعالی له خوا د ادب په سبب د سوال جواب هغه ته منکشف کړل سو نو هغه جواب ورکړ.

آيت الکرسي تر ټولو عظيم سورت ځکه ګرځول سوی دی چي په دې کي توحيد ، تعظيم الهي، اسماء حسنی او د الله تعالی د صفاتو په ډول عظيم او عالي مضامين بيان سوي دي .

﴿۲۰۲۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ وَكَّلَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِحِفْظِ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ زه ټاکلم لپاره د ساتني

زَكَاةِ رَمَضَانَ فَأَتَانِي آتٍ فَجَعَلَ يَحْثُو مِنَ الطَّعَامِ فَأَخَذْتُهُ وَقُلْتُ لَأَرْفَعَنَّكَ

د رمضان د زکوة ، ما ته يو سړی راغلی هغه په دواړو لاسو سره خپل لمن يا لوښی ډکول پيل کړل ، ما هغه ونيوئ او ورته وه مي ويل زه تا بيا يم

إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ قَالَ إِنِّي مُحْتَاجٌ وَعَلَيَّ عِيَالٌ وَلِي حَاجَةٌ شَدِيدَةٌ قَالَ

نبي کريم ﷺ ته ، هغه راته وويل : زه اړيم او زما پر ذمه د اولاد نفقه ده او سخت ضرورتمند يم ،
د ابو هريرة ﷺ بيان دئ چي د هغه ددي خبرو په اورېدو سره

فَخَلَّيْتُ عَنْهُ فَأَصْبَحْتُ فَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ مَا فَعَلَ أَسِيرُكَ

ما هغه پرېښودی، سهار چي زه د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سوم نو رسول الله ﷺ را
ځخه پوښتنه وکړه چي اې ابو هريرة ! ستا هغه غل څه سو

الْبَارِحَةَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ شَكَا حَاجَةً شَدِيدَةً وَعِيَالًا فَرَحِمْتُهُ فَخَلَّيْتُ

د برايي شپې ؟ ما عرض وکړ : اې د الله رسوله ! هغه د سختي اړتيا څرګندونه کړه او د کورنۍ
شکايت يې وکړ ما هغه پرېښودئ،

سَبِيلَهُ قَالَ أَمَا إِنَّهُ قَدْ كَذَبَكَ وَسَيَعُودُ فَعَرَفْتُ أَنَّهُ سَيَعُودُ لِقَوْلِ رَسُولِ اللّٰهِ

رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه تا ته دروا غ وويل هغه بيا راځي ، د رسول الله ﷺ په فرمايلو سره
زما يقين سو چي هغه به بيا راځي

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّهُ سَيَعُودُ فَرَصَدْتُهُ فَجَاءَ يَحْثُو مِنَ الطَّعَامِ فَأَخَذْتُهُ

زه په کمين کي ناست وم نو هغه راغلئ او بيا يې په دواړو لاسو غله ډکول پيل کړل ما هغه ونيوئ

فَقُلْتُ لَأَرْفَعَنَّكَ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ دَعْنِي فَإِنِّي مُحْتَاجٌ

او ورته وه مي ويل چي نن به دي خامخا رسول الله ﷺ ته بيايم، هغه راته وويل : ما پرېږده زه ډير اړيم

وَعَلَيَّ عِيَالٌ لَا أَعُودُ فَرَحِمْتُهُ فَخَلَّيْتُ سَبِيلَهُ فَأَصْبَحْتُ فَقَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ

او د کورنۍ ټول خرڅ زما پر ذمه دئ بيا به زه نه راځم، بيا زما رحم پر راغلئ او ما هغه
پرېښودئ، سهار چي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم نو رسول الله ﷺ راته وويل:

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ مَا فَعَلَ أَسِيرُكَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ شَكَا

اې ابو هريرة ! تا د خپل بندي (غله) سره څه وکړل ؟ ما وويل: اې د الله رسوله ! هغه د سختي
اړتيا څرګندونه وکړه

حَاجَةً شَدِيدَةً وَعِيَالًا فَرَحِمْتُهُ فَخَلَّيْتُ سَبِيلَهُ فقَالَ أَمَا إِنَّهُ قَدْ كَذَبَكَ

او د كورنۍ د خرڅ شكايت يې وكړ زما زړه پر وسوځېدى او هغه مي پرېښودئ، رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه درواغ درته وويل

وَسَيَعُودُ فعرفت انه سيعود القول رسول الله ﷺانه سيعود فَرَصَدْتُهُ

او هغه به بيا راځي، نو زما يقين سو چي هغه به بيا راځي ځكه چي رسول الله ﷺ وفرمايل چي هغه به بيا راځي، نو د هغه لپاره په كمين كي كښېنستم

فَجَاءَ يَحْثُو مِنَ الطَّعَامِ فَأَخَذْتُهُ فَقُلْتُ لَأَرْفَعَنَّكَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ وَهٰذَا آخِرُ

هغه بيا راغلئ او په دواړو لاسو سره يې غله ډكول پيل كړل، ما هغه ونيوئ او ورته وه مي ويل : او دا په درو ځلو كي آخري واردئ

ثَلَاثِ مَرَّاتٍ أَنَّكَ تَزْعُمُ لَا تَعُودُ ثُمَّ تَعُودُ قَالَ دَعْنِي أُعَلِّمْكَ كَلِمَاتٍ يَنْفَعُكَ

تا ويلي وه چي زه به بيا نه راځم او بيا راغلې، هغه وويل : ما پرېږده زه درته يو څو داسي كلمې ښيم چي په هغه سره به الله تعالى درته ګټه ورسوي،

اللَّهُ بِهَا إِذَا أَوَيْتَ إِلَى فِرَاشِكَ فَاقْرَأْ آيَةَ الْكُرْسِيِّ { اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ

هر كله چي ته د خوب لپاره بسترې ته ولاړسې نو آية الكرسي ووايه،

الْقَيُّومُ } حَتَّى تَخْتِمَ الْآيَةَ فَإِنَّكَ لَنْ يَزَالَ عَلَيْكَ مِنَ اللَّهِ حَافِظٌ وَلَا يَقْرَبُكَ

د الله ﷻ د لوري به پر تا هميشه يو ساتونكى و ټاكل سي (يعني ملائكه) او نژدې به نسي تا ته

شَيْطَانٌ حَتَّى تُصْبِحَ فَخَلَّيْتُ سَبِيلَهُ فَأَصْبَحْتُ فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

شيطان تر سهار پوري ، د دې په اورېدو سره ما هغه پرېښودئ، سهار چي كله د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سوم نو رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا فَعَلَ أَسِيرُكَ قُلْتُ زَعَمَ أَنَّهُ يُعَلِّمُنِي كَلِمَاتٍ يَنْفَعُنِي اللَّهُ بِهَا

تا خپل بندي (غل) سره څه چلن وکړ ؟ ما عرض وکړ : هغه ما ته دا وويل چي زه تا ته دا سي يو ځو کلمې ښيم چي تا ته به الله تعالی ګټه درکړي له دې کبله هغه ما پرېښودئ ،

قَالَ أَمَا إِنَّهُ قَدْ صَدَقَكَ وَهُوَ كَذُوبٌ تَعْلَمُ مَنْ تُخَاطِبُ مُنْذُ ثَلَاثِ لَيَالٍ قُلْتُ لَا قَالَ ذَاكَ شَيْطَانٌ . رواه البخاري

رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه دا رېښتيا وويل که څه هم هغه درواغجن دئ ، رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا تا ته څرګند ده چي د درو ورځو راهسي ستا سره خبري کونکی دا څوک دئ ؟ ما عرض وکړ اې دالله رسوله ! ما ته نه ده څرګنده ، نو رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه شيطان وو . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۴۸۷\۱۴، رقم: ۲۳۱۱.

## د سورة فاتحه او سورة بقره د اخيري اياتو فضيلت

﴿۲۰۲۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بَيْنَمَا جِبْرِيلُ قَاعِدٌ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه روايت دئ چي يو وار حضرت جبرائيل عليه السلام د رسول الله ﷺ سره ناست وو چي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعَ نَقِيضًا مِنْ فَوْقِهِ فَرَفَعَ رَأْسَهُ فَقَالَ هٰذَا بَابٌ مِنَ السَّمَاءِ

لوړې د دروازې د خلاصېدو په ډول آواز واورېدئ ، هغه خپل سر پورته کړ او وه يې ويل : دا د آسمان يوه دروازه

فُتِحَ الْيَوْمَ لَمْ يُفْتَحْ قَطُّ إِلَّا الْيَوْمَ فَنَزَلَ مِنْهُ مَلَكٌ فَقَالَ هٰذَا مَلَكٌ نَزَلَ إِلَى

خلاصه سوې ده چي تر دې وړاندي هيڅکله نه ده خلاصه سوې او نن خلاصه سوې ده بيا د دې دروازې څخه يوه ملائکه راکښته سول

الْأَرْضِ لَمْ يَنْزِلْ قَطُّ إِلَّا الْيَوْمَ فَسَلَّمَ فَقَالَ أَبْشِرْ بِنُورَيْنِ أُوتِيتَهُمَا لَمْ

مځکي او جبرائيل عليه السلام وويل چي دا ملائکه نن مځکي ته راکښته سوې ده ، ددې وړاندي نه ده راکښته سوې ، هغې ملائکي (د رسول الله ﷺ په خدمت کي په حاضرېدو سره ) سلام وکړ او وه يې ويل : تاسو ته دې زيری وي چي تاسو ته دوه داسي نورونه درکړل سوي دي

يُؤْتَهُمَا نَبِيٌّ قَبْلَكَ فَاتِحَةُ الْكِتَابِ وَخَوَاتِيمُ سُورَةِ الْبَقَرَةِ لَنْ تَقْرَأَ بِحَرْفٍ مِنْهُمَا إِلَّا أُعْطِيتَهُ. رواه مسلم

چي ستاسو څخه وړاندي هيڅ يو نبي ته نه دي ورکړل سوي يعني فاتحة الكتاب او د سورة بقرې آخري برخه، په دې کې چي کوم حرف تاسو وایاست د هغو ثواب به درکړل سي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\ ۵۵۴، رقم: ۲۵۴-۸۰۶.

**د لغاتو حل**: نقيضا: ای صوت (ړغ).

**تشريح**: فنزل منه: یعني د هغه دروازې څخه یوه ملائکه راکښته سوه دا د راوي الفاظ دي چي هغه د رسول الله ﷺ څخه همداسي اوریدلي دي، سورة فاتحه او سورة بقره يې په نور سره تعبير کړې ده او هغو ته د نور ویلو وجه داده چي دا سورتونه او آیاتونه به د قيامت په ورځ د رڼا په شکل کي وي چي خپل ويونکو تر مخ به ځي.

د سورة بقرې د آخري برخي د کوم ځای څخه تر کوم ځای پوري آیاتونه مراد دي؟ په دې اړه صحيح خبره داده چي د : لله ما في السموات وما في الارض .... څخه د سورة تر پای پوري مراد دي د حضرت کعب رضي الله عنه څخه همداسي منقول دي.

په یوه یوه حرف کي: د حرف څخه مراد کلمه (آیت یا د آیت ټوټه) ده، د سورة فاتحې او سورة بقرة په آخري آیاتونو کي دوه ډوله کلمې دي يو ډول خو هغه دي چي پر دعاء باندي مشتمل دي لکه: اهدنا الصراط المستقيم، یا غفرانک ربنا، او دوهم ډول هغه دي چي یوازي پر حمد او ثناء باندي مشتمل وي، کله چي هغه کلمات وویل سي کوم چي دعائيه دي نو ویونکي ته هغه شي ورکول کيږي کوم چي په هغه کلمو کي ذکر دي همدارنګه کله چي هغه کلمې وويل سي کوم چي پر حمد او ثناء باندي مشتمل دي نو هغه ته د هغه ثواب ورکول کيږي کوم چي د قرآن کريم پر حروفو باندي ورکول کيږي.

﴿۲۰۲۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْآيَتَانِ مِنْ آخِرِ سُوْرَةِ الْبَقَرَةِ مَنْ قَرَأَ بِهِمَا فِيْ لَيْلَةٍ كَفَتَاهُ. متفق عليه

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د سورة بقرې په پای کي دوه آیاتونه دي څوک چي يې د شپې ووايي نو هغه ورته بس دي یعني د هر ډول آفت او شر

ځخه به يې وساتي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\ ۳۱۷، رقم: ۴۰۰۸، ومسلم ۱\ ۵۵۵، رقم: ۲۵۵- ۸۰۷.

**تشريح**: بس دي: مطلب دا دی چي په هغه شپه کي د دغه آياتو د ويلو په وجه د انسان او جناتو د شر ځخه خوندي وي يعني دغه آياتونه د هغه لپاره د شر او بلاء د فع کونکي دي يا دا مطلب دی چي دغه دوه آياتونه د هغه په حق کي د قيام الليل او عبادت لپاره د شب بيداري قائم مقام دي.

## د سورة کهف اخري لس اياتونه په يادول

﴿۲۰۲۴﴾: وَعَنْ اَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَفِظَ عَشْرَ آيَاتٍ مِنْ أَوَّلِ سُورَةِ الْكَهْفِ عُصِمَ مِنَ الدَّجَّالِ . رواه مسلم

د حضرت ابو درداء رضي الله عنه ځخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ځوک چي د سورة کهف د پيل لس آياتونه ياد کړي نو هغه به د دجال د فتنې ځخه وساتل سي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\ ۵۵۵، رقم: ۲۵۷- ۸۰۹.

**تشريح**: د دجال ځخه مراد يا خو هغه دجال دی کوم چي په آخره زمانه کي قيامت ته نژدې راځي او خلک به په مکر او فريب کي اچوي يا هغه دروغجن او چم کونکی مراد دی کوم چي په خپل دروا غو او چم سره خلک پريشانه کوي .

د ترمذي په روايت کي چي وروسته په دوهم فصل کي راځي دا منقول دي چي ځوک د سورة کهف اول درې آياتونه ووايي نو هغه به د دجال د فتنې ځخه محفوظ وي، ځينو حضراتو په دغه دواړو آياتو کي دا مطابقت پيدا کړی دی چي ځوک لس آياتونه ياد کړي هغه به د دجال د شر ځخه محفوظ وي که چيري هغه ورسره مخامخ سي، او کوم ځوک چي درې آياتونه ووايي نو هغه به د دجال د فتنې ځخه خوندي سي که چيري هغه ورسره مخامخ نسي .

خلاصه دا چي د دجال فتنه به د هغه د ملاقات په صورت کي ډېره سخته وي په نسبت د هغه فتنې کوم چي د عدم ملاقات په صورت کي وي کوم ځوک چي دغه لس آياتونه ياد کړي هغه به د ملاقات د فتنې ځخه محفوظ وي او کوم ځوک چي دغه درې آياتونه وايي نو هغه به د هغه فتنې ځخه محفوظ وي په کوم کي چي خلک د دجال سره د مخامخ کېدو پرته اخته کيږي .

## د سورة اخلاص فضيلت

﴿۲۰۲۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيَعْجِزُ أَحَدُكُمْ أَنْ

د حضرت ابو درداء رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا په تاسو کي څوک

يَقْرَأَ فِي لَيْلَةٍ ثُلُثَ الْقُرْآنِ قَالُوا وَكَيْفَ يَقْرَأُ ثُلُثَ الْقُرْآنِ قَالَ قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ تَعْدِلُ ثُلُثَ الْقُرْآنِ. رواه مسلم و رواه البخاري عن ابي سعيد.

د شپې دريمه برخه قرآن نه سي ويلای؟ صحابه کرامو عرض وکړ اې دالله رسوله ! دريمه برخه قرآن څنګه و وايي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : قل. هوالله احد (سورة اخلاص) د دريمي برخي قرآن سره سم دئ ، مسلم او بخاري.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۵۵۶، رقم: ۲۵۹– ۸۱۱. و صحيح البخاري (فتح الباري) ۱۳\۳۴۷، رقم: ۷۳۷۴

**تشريح**: په قرآن کريم کي په بنيادي توګه دري ډوله مضامين مذکور دي : ۱: قصص يعني قصې، ۲: احکام، ۳: توحيد، په سورة قل هو الله احد کي د الله تعالى توحيد ډېر په لوړ او بليغ انداز کي بيان سوی دی يا داسي وايي چي په ټول قرآن کريم کي د توحيد په باره کي چي کوم بيان سوی دی سورة قل هو الله احد د هغه خلاصه او حاصل دی ځکه نو د سورة قل هو الله احد ويل د دريمي برخي د قرآن ويلو برابر دي .

خينو حضرات ويلي دي چي ددغه ارشاد مطلب دادی چي قل هو الله احد د دريمي برخي قرآن د اصل ثواب په اندازه مضاعف کيږي، په دغه دوو قولو کي يو باريک فرق پيدا سو د اول قول مطلب دا سو که چيري يو څوک دغه سورت دري واره ووايي نو دا نه لازميږي چي هغه د پوره قرآن کريم ثواب حاصل سي او د دوهم قول مطابق دغه سورت په دري واره ويلو سره د پوره قرآن کريم اصل ثواب حاصليږي .

﴿۲۰۲۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ رَجُلًا عَلَى سَرِيَّةٍ

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ يو سړی د لښکر سردار و ټاکئ

وَكَانَ يَقْرَأُ لِأَصْحَابِهِ فِي صَلَاتِهِمْ فَيَخْتِمُ بِقُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ فَلَمَّا رَجَعُوا

او هغه به د خپلو ملګرو امامت هم کوئ هغه به په لمانځه کي قرائت په قل هو الله احد ختموئ .

کله چي خلک را ستانه سول

ذَكَرُوا ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سَلُوهُ لِأَيِّ شَيْءٍ يَصْنَعُ ذٰلِكَ

نو رسول الله ﷺ ته يې ددې يادونه وکړه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: دده څخه پوښتنه وکړئ چي داسي يې ولي کول،

فَسَأَلُوهُ فَقَالَ لِأَنَّهَا صِفَةُ الرَّحْمٰنِ وَأَنَا أُحِبُّ أَنْ أَقْرَأَ بِهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبِرُوهُ أَنَّ اللّٰهَ يُحِبُّهُ. متفق عليه

د هغه څخه پوښتنه وسول نو هغه وويل: په قل هو الله احد کي د الله ﷻ صفت دئ نو غواړم چي زه يې ووايم، په دې خبره سره رسول الله ﷺ وفرمايل: دې سړي ته ووايا ست چي الله ﷻ هم دی خوښوي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۳۴۷، رقم: ۷۳۷۵، ومسلم ۱\۵۵۷، رقم: ۲۶۳-۸۱۳.

**تشريح**: پر قل هو الله باندي په ختمولو سره: ددې مطلب دادی چي هغه به د هر لمانځه په آخري رکعت کي د سورة فاتحې سره قل هو الله احد ويل، ليکن علامه ابن حجر ددې وضاحت دا کړی دی چي هغه سړي به د سورة فاتحې يا د دوهم سورت وروسته قل هو الله احد ويل، په دې اړه د اول قول وضاحت ډېر غوره دی ځکه په دغه صورت کي د ټولو علماؤ په نزد لمونځ بېله کراهته ادا کيږي.

﴿۲۰۲۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ إِنَّ رَجُلاً قَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي أُحِبُّ هٰذه السورة قل هو الله احد قَالَ إِنَّ حُبَّك اياها أَدْخَلَكَ الْجَنَّةَ. رواه الترمذي و روي البخاري معناه.

د حضرت انس ؓ څخه روايت دئ چي يو سړي رسول الله ﷺ ته عرض وکړ چي اې د الله رسوله! زما دا سورت (قل هو الله احد) ډېر خوښ دئ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ددې خوښول به تا جنت ته بوزي. ترمذي او بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۲۵۵، رقم: ۷۷۴م. والترمذي ۵\۱۵۶، رقم: ۲۹۰۱.

## د معوذتين فضيلت

﴿۲۰۲۸﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ أَلَمْ تَرَ آيَاتٍ أُنْزِلَتْ اللَّيْلَةَ لَمْ يُرَ مِثْلُهُنَّ قَطُّ قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ وَقُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ . رواه مسلم

د حضرت عقبة بن عامر ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : نن شپه عجيبه آياتونه نازل سوي دي چي تر ننه پوري ددې په ډول نه دي ليدل سوي ، هغه قل اعوذبرب الفلق او قل اعوذبرب الناس دي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۵۵۸، رقم: ۲۶۴- ۸۱۴.

## رسول الله ﷺ قل هو الله احد او معوذتين د شپې پر ځان چوف كول

﴿۲۰۲۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دئ چي كله به رسول الله ﷺ د شپې بسترې ته تلئ

كُلَّ لَيْلَةٍ جَمَعَ كَفَّيْهِ ثُمَّ نَفَثَ فِيهِمَا فَقَرَأَ فِيهِمَا قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ وَ قُلْ أَعُوذُ

نو دواړه لاسونه به يې يو ځاى كړل بيا به يې هغه دم كول بيا به يې پر هغو قل هو الله احد ، قل

بِرَبِّ الْفَلَقِ وَ قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ ثُمَّ يَمْسَحُ بِهِمَا مَا اسْتَطَاعَ مِنْ جَسَدِهِ

اعوذبرب الفلق او قل اعوذبرب الناس چف كول، بيا به يې دواړه لاسونه پر ټول بدن تر كومه ځايه چي به يې لاسونه رسيدل ګرځول

يَبْدَأُ بِهِمَا عَلَى رَأْسِهِ وَوَجْهِهِ وَمَا أَقْبَلَ مِنْ جَسَدِهِ يَفْعَلُ ذٰلِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ

او د سر او مخ څخه به يې لاس ګرځول پيل كول او د بدن د مخكي برخي ګرځولو سره به يې پر ټول بدن ګرځول او درې واره به يې داسي كول .

متفق عليه و سنذكر حديث ابن مسعود لما اسرى برسول الله ﷺ في

باب المعراج ان شاء الله تعالی .

بخاري او مسلم. او ډیر ژر به د ابن مسعود حدیث کوم وخت چي رسول الله ﷺ شب معراج ته تللی وو په باب معراج کي بیان کړل سي انشاء الله .

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۹\۶۲، رقم: ۵۰۱۷، لم نجده عند مسلم.

**تشریح**: د دغه حدیث څخه په څرګنده خو دا معلومیږي چي رسول الله ﷺ پر خپلو لاسو باندي دم مخکي کوی او ویل به یې وروسته پیل کول ، ځیني حضرات وایي چي رسول الله ﷺ دا طریقه ځکه اختیارول چي د ساحرانو (جادوګرانو) مخالفت وسي ځکه هغوئ مخکي وایي او بیا وروسته دم کوي، ځیني حضرات وایي چي ددې مطلب دادی چي مخکي به یې د دم کولو اراده کول بیا به یې ویل او د هغه وروسته به یې دم کوی، او د ابن مسعود ﷛ حدیث به په باب معراج کي ذکر کړل سي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د قیامت په ورځ تر عرش لاندي درې شیان وي

﴿۲۰۳۰﴾: عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت عبدالرحمن بن عوف ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

ثَلَاثَةٌ تَحْتَ الْعَرْشِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ اَلْقُرْآنُ يُحَاجُّ الْعِبَادَ لَهُ ظَهْرٌ وَّبَطْنٌ

د قیامت په ورځ به تر عرش لاندي درې شیان وي: یو خو به قرآن د بندګانو د لوري جګړه کوي ، د قرآن یو ظاهر دئ او یو باطن،

وَّالأَمَانَةُ وَالرَّحِمُ تُنَادِيْ أَلاَ مَنْ وَصَلَنِيْ وَصَلَهُ اللهُ وَمَنْ قَطَعَنِيْ قَطَعَهُ اللهُ.

رواه في شرح السنة

دویم امانت، او دریم قرابت دا دواړه شیان یا یوازي قرابت به په لوړ آواز خلکو ته وایي چا چي زه یو ځای کړم الله به هغه د خپل رحمت سره یو ځای کړي او چا چي زه پرېکړم الله به هغه پریکړي . شرح السنة

**تخریج**: البغوي في شرح السنة ۱۳\۲۲-۲۳، رقم: ۳۴۳۳.

**تشریح**: تر عرش لاندي به درې شیان وي، دلته په اصل کي ددې څخه کنایه ده چي د قیامت په ورځ به درې شیانو ته د الله تعالی په دربار کي قرب او اعتبار تر لاسه وي او الله تعالی به د هغوئ حق او د هغوئ ثواب چي د هغه اختیارونکو ته ورکول کیږي نه ضائع کوي.

د بندګانو سره به جګړه کوي: ددې مطلب دادی چي کومو کسانو په دنیوي ژوند کي د قرآن کریم تعظیم نه وي کړی او په هغه یې عمل نه وي کړی نو د قیامت په ورځ به قرآن کریم د هغوئ سره جګړه کوي یعني هغوئ ته به سزا ورکوي او کومو کسانو چي په دنیوي ژوند کي د قرآن کریم تعظیم هم کړی وي او په هغه یې عمل هم کړیوي نو قرآن کریم به د هغوئ له خوا جګړه کوي یعني د الله تعالی په دربار کي به د هغوئ له خوا وکالت او شفاعت کوي.

د قرآن لپاره ظاهر هم سته: ددې مطلب دادی چي په قرآن کریم کي کوم احکام وغیره بیان سوي دي د هغو معنی بالکل ظاهره او واضح ده چي اکثر خلک په پوهیږي په هغه کي د خاص غور او فکر ضرورت نسته همداسي د باطن مطلب دادی چي د قرآن کریم ځیني معناوي داسي دي چي په هغو د پوهېدو لپاره د غور او فکر او تفسیر ضرورت وي یا داسي به ووایو چي په هغو باندي هر سړی نه سي پوهېدلای بلکه خواص او عالمان په پوهیږي.

په دغه ارشاد کي دې ته اشاره ده چي کوم خلک په قرآن کریم باندي عمل نه کوي د هغوئ څخه به د قیامت په ورځ د قرآن کریم په باره کي د هر سړي د پوهي او د هغه د علم په اندازه مؤاخذه کیږي، د امانت څخه حقوق الله او حقوق العباد مراد دي چي د هغو ادا کول لازم دي.

## قران کریم په ترتیل سره دویلو فضیلت

﴿۲۰۳۱﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبد الله بن عمرو ﷠ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: (په آخرت کي به)

يُقَالُ لِصَاحِبِ الْقُرْآنِ اقْرَأْ وَارْقَ وَرَتِّلْ كَمَا كُنْتَ تُرَتِّلُ فِي الدُّنْيَا فَإِنَّ مَنْزِلَتَكَ عِنْدَ آخِرِ آيَةٍ تَقْرَؤُهَا. رواه احمد والترمذي وابوداؤد والنسائي

قرآن ویونکي بنده ته وویل سي: قرآن وایه او د جنت درجو ته خیژه داسي په کراره کراره یې وایه لکه څنګه چي تا په دنیا کي په کراره کراره وایه، او ستا آخري درجه به (په جنت کي) د قرآن اخري آیت وي. احمد، ترمذي، ابوداؤد او نسائی.

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۲\ ۱۹۲، وابوداؤد ۲\ ۱۵۳، رقم: ۱۴۶۴، والترمذي ۵\ ۱۶۳، رقم: ۲۹۱۴

**تشریح**: د صاحب قرآن څخه هغه څوک مراد دی کوم چي همېشه د قرآن کریم تلاوت هم کوي او عمل هم په کوي هغه سړی مراد نه دی چي تلاوت خو کوي مگر عمل نه په کوي بلکه مخکي ښودل سوي دي چي داسي سړی به د جزاء او انعام مستحق نه بلکه د قرآن کریم په لعنت کي به اخته وي ځکه کوم څوک چي قرآن کریم وایي او عمل نه په کوي نو قرآن کریم پر هغه لعنت وایي دلته دا روایت په فکر کي ساتل پکار دي چي کوم سړی په قرآن کریم عمل وکړي هغه لکه چي همېشه قرآن کریم ووایه که څه هم په حقیقت کي یې نه وي ویلی او کوم څوک چي په قرآن کریم عمل ونه کړي نو هغه لکه چي قرآن کریم ویلی نه دی که څه هم په حقیقت کي یې ویلی وي، خلاصه دا چي د قرآن کریم محض تلاوت کول کافي نه دی بلکه بنیادي شی په قرآن کریم باندي عمل کول دي.

ووایه، یعني قرآن کریم ووایه او د ویل سوو آیاتونو په اندازه د جنت درجو ته خېږه هر څو آیاتونه چي ته ووایې هغو مره درجو ته به ستا رسیدل وي، په یوه روایت کي نقل سوي دي چي د قرآن کریم څو مره آیاتونه دي د جنت هغو مره درجې دي که یو څوک ټول قرآن کریم ووایي نو هغه به د جنت د ټولو لوړو درجو څخه هغه درجې ته ورسیږي د کوم چي هغه اهل وي.

دا مخکي ښودل سوې ده چي د قرآن کریم د تلاوت د ادابو څخه تر ټولو لوړ او اعلی ادب دا هم دی چي قرآن کریم په ترتیل سره یعني په کراره کراره په لهجه او په پوره سکون او وقار سره وویل سي، په دغه حدیث کي دې ته اشاره ده چي کوم حافظ قرآن کریم په ترتیل سره وایي نو په جنت کي به د هغه لویه مرتبه وي.

د قرآن کریم د آیاتونو شمېر د کوفیانو د اوصول په اعتبار چي د هغوئ د قرآئت فن او اصول زموږ په خوا کي رواج دي شپږ زره دوه سوه اوه دیرش ۶۲۳۷ دي، ددې څخه پرته نور اقوال هم سته د نور زیات وضاحت لپاره د تجوید او قرائت کتابو ته مراجعه کولای سئ.

## د قران کریم څخه خالي زړه دوران کور په مثال دی

﴿۲۰۳۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الَّذِي لَيْسَ فِي جَوْفِهِ شَيْءٌ مِنَ الْقُرْآنِ كَالْبَيْتِ الْخَرِبِ. رواه الترمذي و الدارمي وقال الترمذي هذا حديث صحيح.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د چا په زړه کي چي د قرآن هیڅ هم نه وي هغه د وران کور په ډول دئ. ترمذي، دارمي، او ترمذي ویلي دي دا حدیث صحیح دئ.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۱۶۲، رقم: ۲۹۱۳، والدارمي ۲\۵۲۱، رقم: ۳۳۰۶.

**تشریح**: د کور رونق د او سیدونکي سره دی، کور که هر څومره ښکلی او پراخ وي مگر په هغه کي او سیدونکی نه وي نو د هغه حقیقت نسته بلکه د کور وداني د هغه قیمت او ارزښت له منځه ځي همداسي د انسان معامله ده که د انسان زړه د ایمان او د قرآن د نور څخه خالي وي نو د هغه هیڅ ارزښت نسته، د پورتني ارشاد مطلب دادی که چیري یو څوک بالکل قرآن کریم نه پیژني او نه پر هغه ایمان لري نو هغه د وران کور په ډول دی او کوم څوک چي قرآن کریم ویلای سي او هغه وایي. په پوهیږي او پر هغه ایمان هم لري نو د هغه باطن د ایمان په نور سره آباد دی او س دا فرق پاته سو چي کوم څوک په قرآن کریم لږ پوهیږي او د هغه باطن به د ایمان په دولت سره آباد وي او څوک چي یې زیات پیژني د هغه باطن به هم زیات آباد وي.

## د قران کریم د مشغولیت اثر

﴿۲۰۲۳﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَقُولُ

د حضرت ابوسعید رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

الرَّبُّ عَزَّ وَجَلَّ مَنْ شَغَلَهُ الْقُرْآنُ وَذِكْرِي عَنْ مَسْأَلَتِي أَعْطَيْتُهُ أَفْضَلَ مَا

الله تعالی فرمایي: څوک چي د قرآن ویلو بوختیا د دعاء او ذکر څخه غافل کړي زه به هغه ته تر

أُعْطِي السَّائِلِينَ وَفَضْلُ كَلَامِ اللَّهِ عَلَى سَائِرِ الْكَلَامِ كَفَضْلِ اللَّهِ عَلَى خَلْقِهِ.

رواه الترمذي والدارمي و البيهقي في شعب الايمان وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب.

غوښتونکي زیات ورکړم او د کلام الله بزرگي پر نورو کلامو داسي ده لکه زما بزرگي چي پر ټول مخلوقات ده. ترمذي، دارمي، بیهقي

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۱۶۹، رقم: ۲۹۲۶، والدارمي ۲\۵۳۲، رقم: ۳۲۵۶.

**تشريح**: د الله ﷻ د ارشاد مطلب دادی چي کوم څوک قرآن کريم يادوي د هغه په معنی او مفهوم پوهيږي او په قرآن کريم کي پر ذکر سوو احکامو او هداياتو باندي په عمل کولو کي بوخت وي او د هغه دغه بوختيا د هغه افکارو، اورادو او دعاوو څخه کوم چي د کلام الله څخه پرته دي منع کوي يعني هغه په قرآن کريم کي د بوختيا په وجه نه ما يادوي او نه زما څخه څه غواړي نو زه هغه ته د غوښتونکو څخه هم زيات ورکوم ځکه چي د قرآن کريم سره دومره بوختيا په حقيقت کي ددې خبري دليل دی چي هغه سړي خپل هر خواهش او خپل هر مطلب الله تعالی په سپارلو سره د هغه پاک کلام سره يې تعلق قائم کړی دی نو د هغه ددغه عظيمي جذبې سره سم به هغه ته اجر ورکول کيږي.

دلته په دې خبره پوهېدل پکار دي چي د حديث قدسي د پيل الفاظ دادي چي من شغله القرآن عن ذکري، نو ددې تقاضا خو دا وه چي په پای کي ذکر کونکی او غوښتونکی بيان سوی وای چي زه هغه ته تر هغه شي غوره ورکوم کوم چي ذکر کونکو او غوښتونکو ته ورکوم مګر دلته يوازي د غوښتونکو ذکر سوی دی او د ذکر کونکو ذکر نه دی سوی، ددې وجه داده چي ذکر هم په حقيقت کي دعاء غوښتل دي د کريم د حمد او ثناء او د هغه د ذکر مقصد دا وي چي ما ته يو څه راکړي ځکه ددې ارشاد په پای کي هم د غوښتو پر ذکر باندي اکتفاء وکړل سوه.

د حديث آخري جمله : وفضل کلام الله ...الخ: چيري چي دا احتمال لري چي دا جمله او حديث قدسي تتمه يعني د الله تعالی ارشاد دی نو دا احتمال هم لري چي د الله تعالی کلام نه دی بلکه د رسول الله ﷺ ارشاد دی او دا احتمال زيات صحيح دی.

## د قران کريم پر هر حرف باندي لس نيکۍ

﴿۲۰۳۴﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت ابن مسعود ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي

قَرَأَ حَرْفًا مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ فَلَهُ بِهِ حَسَنَةٌ وَالْحَسَنَةُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا لَا أَقُوْلُ الم

د الله د کتاب څخه يو حرف ووايي هغه ته به د يوه حرف په بدله کي يوه نيکي ورکول کيږي او هره نيکي به د لسو نيکيو سره سمه وي، زه (الم) ته يو حرف نه وايم

حَرْفٌ أَلِفٌ حَرْفٌ وَلَامٌ حَرْفٌ وَمِيمٌ حَرْفٌ. رواه الترمذي والدارمي و

قال الترمذي هذا حديث حسن صحيح غريب اسنادا .

بلكي الف يو حرف دئ، لام بل حرف دئ او ميم بل حرف دئ. ترمذي، دارمي، ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح غريب دئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۱۶۱، رقم: ۲۹۱۰، والدارمي ۲\ ۵۲۱، رقم: ۳۳۰۸.

## قران كريم د هدايت چينه ده

﴿۲۰۲۳﴾: وَعَنِ الْحَارِثِ الْأَعْوَرِ قَالَ مَرَرْتُ فِي الْمَسْجِدِ فَإِذَا النَّاسُ يَخُوضُونَ

د حضرت حارث اعور رحمه الله څخه روايت دئ چي زه د كوفې يو مسجد ته ورغلم نو وينم چي خلك په بېكاره خبرو كي بوخت دي ،

فِي الْأَحَادِيثِ فَدَخَلْتُ عَلَى عَلِيٍّ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ أَوَقَدْ فَعَلُوهَا قُلْتُ نَعَمْ قَالَ:

ددې وروسته حضرت علي رضي الله عنه ته ورغلم او هغه ته مي دا پېښه بيان كړل، حضرت علي رضي الله عنه وويل ايا هغوئ داسي وكړل ؟ ما عرض وكړ :هو، حضرت علي رضي الله عنه وويل :

اما إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ أَلَا إِنَّهَا سَتَكُونُ فِتْنَةٌ

خبردار! ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې: خبردار! فتنه واقع كېدونكي ده

فَقُلْتُ مَا الْمَخْرَجُ مِنْهَا يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ كِتَابُ اللَّهِ فِيهِ نَبَأُ مَا قَبْلَكُمْ

ما عرض وكړ اې د الله رسوله ! ددې څخه به خلاصون څنګه تر لاسه كيږي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : د الله جل جلاله په كتاب باندي په عمل كولو سره چي په هغه كي تر تاسو وړاندي پېښي دي

وَخَبَرُ مَا بَعْدَكُمْ وَحُكْمُ مَا بَيْنَكُمْ وَهُوَ الْفَصْلُ لَيْسَ بِالْهَزْلِ مَنْ تَرَكَهُ مِنْ

او ستاسو څخه وروسته خبرونه ، او ستاسو په منځ كي (د حلال، حرام وغيره) حكم دئ او (حق و باطل) كي پريكړه كونكى قول دئ . او هغه شيان پالتو نه دي ، كوم متكبر چي قرآن پرېښودئ

جَبَّارٍ قَصَمَهُ اللَّهُ وَمَنِ ابْتَغَى الْهُدَى فِي غَيْرِهِ أَضَلَّهُ اللَّهُ وَهُوَ حَبْلُ اللَّهِ الْمَتِينُ

نو هغه به الله هلاک كړي او چا چي د قرآن كريم څخه پرته په بل شي كي هدايت ولټوئ الله جل جلاله به

هغه ګمراه کړي، قرآن کريم د الله تعالی ټينګه او سيده رسۍ ده،

وَهُوَ الذِّكْرُ الْحَكِيمُ وَهُوَ الصِّرَاطُ الْمُسْتَقِيمُ هُوَ الَّذِي لَا تَزِيغُ بِهِ الْأَهْوَاءُ

قرآن کريم د حکمت څخه ډک ذکر او بيان دئ او قرآن کريم يوه داسي سيده لار ده چي په هغه کي
کوږوالی نسته او ددې په پيروي سره په خواهشاتو کي کوږوالی نه پېښيږي

وَلَا تَلْتَبِسُ بِهِ الْأَلْسِنَةُ وَلَا يَشْبَعُ مِنْهُ الْعُلَمَاءُ وَلَا يَخْلَقُ عَنْ كَثْرَةِ الرَّدِّ وَلَا

او د قرآن په ژبه کي د يو بلي ژبي اقتباس نسته، ددې فصاحت ته هيڅ کلام نه سي رسيدلای او
علماء ددې په ويلو نه مړيږي او قرآن په (تل ويلو) سره نه زړيږي،

تَنْقَضِي عَجَائِبُهُ هُوَ الَّذِي لَمْ تَنْتَهِ الْجِنُّ إِذْ سَمِعَتْهُ حَتَّى قَالُوا { إِنَّا سَمِعْنَا

او ددې عجائب نه ختميږي، او قرآن کريم يو داسي کلام دئ چي کله پيريانانو واوريدئ نو د
يوې لمحې د درېدو څخه پرته يې وويل موږ عجيب او غريب قرآن واورېدئ

قُرْآنًا عَجَبًا يَهْدِي إِلَى الرُّشْدِ فَآمَنَّا بِهِ} مَنْ قَالَ بِهِ صَدَقَ وَمَنْ عَمِلَ بِهِ

چي د هدايت لاره ښيي له دې کبله موږ ايمان راوړ او چا چي د قرآن سره سم وويل نو رېښتيا يې
وويل او چا چي عمل په وکړ

أُجِرَ وَمَنْ حَكَمَ بِهِ عَدَلَ وَمَنْ دَعَا إِلَيْهِ هَدَى إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ. رواه
الترمذي والدارمي وقال الترمذي هذا حديث اسناده مجهول و في
الحارث مقال.

نو هغه ته به ثواب ورکړل سي او چا چي ددې سره سم پريکړه وکړه هغه انصاف وکړ او چا چي د
قرآن په لور خلک راوبلل هغه ته سيده لار وښودل سوه. ترمذي، او دارمي، ترمذي ويلي دي
ددې حديث اسناد مجهول دي او په حارث اعور کي خبري سته.

**تخريج**: سنن الترمذي ۱۵۶/۵، رقم: ۲۹۰۶، والدارمي ۵۲۶/۲، رقم: ۳۳۳۱.

**تشريح**: د متکبر څخه مراد د قرآن کريم منکر دی يعني هغه سړی چي نه پر قرآن کريم ايمان
راوړي او نه يې پر قرآن کريم عمل وکړ او ځرګنده، چي داسي بدبخته سړي هغه څوک کېدای

سي چي د هغه په زړه کي غرور او تکبر او د تعصب جراثيم وي.

من ترکه من جبار قصمه الله: دلته د قصم څخه مراد ماتول او ہلول دي ځکه ددې جملې لفظي ترجمه دا کېدای سي چي کوم متکبر قرآن کریم پرېښودی الله تعالی د هغه غاړه پرېکوي لیکن په عامه توګه سره ددې دا ترجمه کیدای سي چي الله تعالی به هغه څوک هلاک کړي ځکه د مفهوم او حقیقت په اعتبار په دواړو کي فرق نسته بلکه د دواړو مطلب دادی چي کوم څوک د قرآن کریم څخه انکار کوي یا عمل نه په کوي نو الله تعالی به هغه د خپل رحمت څخه لیري کړي چي د هغه نتیجه هلاکت او تباهي ده پر خلاف د هغه سړی چي پر قرآن کریم ایمان هم راوړي او عمل هم په کوي نو الله تعالی به هغه خپل رحمت ته نژدې کړي او لوړي مرتبې به ورکړي.

علامه طیبي رحمه الله فرمایي کوم څوک چي د قرآن کریم یو داسي آیت یا یوه کلمه باندي هم عمل کول پرېږدي (یعني د انکار او تکبر په وجه عمل کول پرېږدي) چي پر هغه عمل کول واجب وي یا د تکبر په وجه د هغه آیت یا کلمې قرائت ونه کړي نو هغه سړی کافر کیږي هو که یو څوک محض د سستۍ یا ضعف په وجه د قرآن کریم تلاوت پرېږدي مګر د هغه زړه د قرآن کریم د عظمت او حرمت څخه ډک وي نو په دې کي څه پروا نسته البته هغه د ثواب څخه محروم کیږي.

انساني خواهشات د حق څخه باطل ته نه مائل کیږي: ددغه پوره جملې مطلب دادی چي کوم څوک د قرآن کریم پیروي کوي د هغه پر احکامو عمل کوي او د خپل ژوند په هر اړخ کي د قرآن کریم د لارښووني غوښتونکی وي نو هغه د هري ګمراهۍ او ضلالت څخه خوندي وي.

که دلته دا اشکال پیدا سي چي اهل بدعت او روافض او خوارج یا د اوسنۍ زمانې نوري دلي هم د قرآن څخه استدلال کوي او د قرآن کریم لارښوونه مني مګر ددې سربیره هغوئ د ګمراهۍ څخه خوندي نه وي؟ ددې جواب دادی چي اول خو دا خبره محل نظر ده چي د قرآن کریم څخه د هغوئ استدلال او د قرآن کریم د لارښووني دعوا پر خپل حقیقت مبني ده که څنګه، ځکه د قرآن کریم څخه د دوئ استدلال بالکل غلط دی هغوئ مخکي د خپل خیالاتو او نظریاتو یو عمارت جوړوي بیا د هغه د ټینګوالي لپاره د قرآن کریم نوم اخلي همدارنګه هغوئ د قرآني آیاتو د هغه د حقیقي مفهوم او معناوو څخه په ہلولو خپل خیالات او نظریاتو باندي د مبنلولو هڅه کوي دا خبره په زیات وضاحت داسي ویل کیدای سي چي اهل حق خپل خیالات او عقائد چي د قرآن تابع جوړوي قرآن چي واضح هدایت دی د هغه په رڼا کي هغوئ خپل عقیدې سموي، ددې پر خلاف د ګمراه ذهن او فکر خلک قرآن کریم د خپل خیالات او نظریاتو تابع جوړوي او

دنیا ته ددې باور ورکولو هڅه کوي چې هغوئ څه وايي د قرآن کریم څخه په استدلال کولو سره يې وايي حالانکه دا غلط دي .

دوهمه خبره داده چې ددغه خلکو دليلونه په دې توګه هم کامل نه وي چې هغوئ په خپل ذهن کي دا ګمراه کونکي تصور قائمولو سره چې اصل او کامل لارښوونې يوازې د قرآن کریم څخه تر لاسه کېدای سي حديثونه او نور ذرائع چې د قرآن فهمی لپاره ضروري دي هغه بالکل نظر انداز کوي حالانکه د قرآ ن کریم حقيقي مفهوم او اصل مقصد احاديث نبوي ، اقوال صحابه او ارشادات علماء څخه واضح کېدای سي مګر هغوئ دا کوي چې نه خو حديث ته پاملرنه کوي چې د هغه څخه د کلام الله مقصد واضح کيږي او نه د هغه حضراتو د فيض او اقوال څخه استفاده او تقليد کوي کوم چې په کلام الله باندي د پوهېدو او د هغه د اصل مقصد او منشاء ته په رسيدو کي پوره کمال کيږي مثلاً صحابه کرام، تابعين او نور د امت علماء کرام .

نو په دې خبره پوهېدل پکار دي چې هغوئ د قرآن کریم څخه په استدلال کولو کي په خپل خيال د قرآن کريم د لارښووني سربېره ګمراه نه دي بلکه د هغوئ د ګمراهی سبب دادی چې هغوئ د قرآن کريم صحيح لارښوونه نه اختياروي يا داسي ووايو چې هغوئ قرآن کريم لارښود او د هدايت چينه نه ګني بلکه هغوئ خپل نظريات او اعتقادات په تابع جوړولو سره اختياروي نو د قرآن کريم د اختيارولو سربېره د قرآن کريم حقيقي منشاء او مقصد او د هغه اصل مفهوم او معناوو ته د هغوئ رسيدل نه کيږي .

خلاصه دا چې د قرآن کريم هدايت هغه وخت صحيح کيږي کله چې دا ذرائع او وسائل په پوره قلبي اعتقاد سره اختيار کړل سي کوم چې د قرآن کريم پر فهم باندي موقوف دي ددې څخه پرته د قران کريم پوره پوهه نسي تر لاسه کېدای او نه د قرآن کريم اصل مفهوم او منشاء ته رسيدل ممکن دي او هغه نبوي حديثونه ، د صحابه کرامو اقوال او د امت د علماؤ ارشادات دي ځکه حضرت جنيد رحمه الله فرمايلي دي چې :

کوم څوک چې قرآن کريم ياد نه کړي او حديثونه زده نه کړي او نه پوهيږي نو د هغه پيروي دي نه کيږي او کوم څوک چې زموږ په ډله او زموږ په مسلک کي پرته د علم داخل سي او هغه همېشه پر خپل جهل قناعت وکړي نو هغه د شيطان مسخره ده ځکه زموږ علم د کتاب الله او سنت رسول الله ﷺ سره مقيد دي .

علامه طيبي رحمه الله د مذکوره جملې په وضاحت کي فرمايي چې اهل هوس يعني بدعتيان او ګمراه خلک پر دې قادر نه دي چې د قرآن کريم په اصلي معنی او مفهوم کي تغير او تبديل

وکړي يا په هغه کي کوږوالی پيدا کړي په دغه صورت کي به په لايزيغ به الاهواء کي حرف د (به) د تعديې لپاره وي.

ددغه ژبي سره نوري ژبي نه يو ځای کيږي: ددې مطلب دادی چي قرآن کريم په اعتبار د الفاظو هم د فصاحت او بلاغت هغه نقطه عروج دی چي د دنيا تر ټولو لوی فصيح او بليغ د قرآن کريم د آيات مقابله نه سي کولای يا ددې جملې څخه مراد دادی چي د قرآن کريم تلاوت د مؤمنانو پر ژبو مشکل نه وي که څه هم هغوئ عرب نه وي ځکه د قرآن کريم تلاوت او د هغه د آياتو قرائت پر زړونو باندي د خوشحالۍ هغه فضا خپروي کوم چي د عربي ژبي سره د ناخبرتيا سربيره د قرآني الفاظو په ادا کولو کي لږ هم مشکل نه محسوس کيږي لکه څرنګه چي د الله تعالی ارشاد دی: ولقد يسرنا القرآن للذکر، او موږ قرآن کريم د پوهېدو لپاره اسان کړی دی.

علماء په دې نه مړيږي: ددې مطلب دادی چي د قرآن کريم علوم او معارف دومره پراخ او همه ګير دي چي لوی تر لوی عالم هم د هغه د ټولو علومو احاطه نسي کولای او نه د هغه د نکات او حقائق په دې اندازه سره ادراک کېدای سي چي د هغه طلب تحقيق کومي مرحلې ته په رسيدو سره ختميږي او د هغه د ادراک څخه موړ سي لکه چي يو سړی د خوراک څخه موړ سي نو د هغه طلب بند سي او خواهش د نور قبلولو څخه انکار کوي، ددې پر خلاف علماء چي هغوئ د قرآني حقائقو او معارفو څخه په يو مفهوم باندي خبر سي نو د هغوئ اشتياق نور زيات سي او د هغوئ د لټون خواهش ددې تقاضا کوي چي د تر لاسه سوي مفهوم څخه هم زيات څه معلوم سي همدارنګه ددغه طلب خواهش او لټون لره يو حد قانع نه وي.

نه زړيږي: ددې مطلب دادی چي قرآن کريم په وار وار ويلو او ډېر تلاوت سره او په هغه کي د مذکوره احوالو او احکامو د اورېدو لذت او د هغه په کيفيت کي څه کمي نه واقع کيږي بلکه يو څوک چي کله هم قرآن کريم وايي يا د هغه قرائت اوري نو هر وار هغه ته د مخکي په مقابله کي زيات خوږوالی او لذت محسوس کيږي که څه هم د هغه په معنی او مفهوم پوهيږي او که نه پوهيږي.

## د قران کريم د حافظ مور او پلار ته تاج

﴿۲۰۳۶﴾: وَعَنْ مُعَاذٍ الْجُهَنِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت معاذ جهني ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي

قَرَأَ الْقُرْآنَ وَعَمِلَ بِمَا فِيهِ أُلْبِسَ وَالِدَاهُ تَاجًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ ضَوْءُهُ أَحْسَنُ

قرآن وايي او څه چي په دې کي دي په هغه عمل کوي، نو د قيامت په ورځ به د هغه مور او پلار ته تاج ور پر سر سي او د هغه تاج رڼا به يې د

مِنْ ضَوْءِ الشَّمْسِ فِي بُيُوتِ الدُّنْيَا لَوْ كَانَتْ فِيكُمْ فَمَا ظَنُّكُمْ بِالَّذِي عَمِلَ بِهٰذَا. رواه احمد وابوداؤد.

دنيا د لمر د رڼا څخه غوره وي، که هغه رڼا په دنيا کي ستاسو کورو ته راسي بيا تاسو پوهيدای سي چي هر کله د مور او پلار دا مرتبه ده نو د هغه کس به څومره درجې وي چي په قرآن يې عمل کړی وي. احمد او ابوداؤد.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۳\۴۴۰، وابوداؤد: ۲\۱۴۸، رقم: ۱۴۵۳.

**تشريح**: من قرا القرآن: ددې مطلب دادی چي (کوم څوک خپله قرآن کريم په ښه ډول ووايي) مګر عطاء طيبي رحمة الله عليه وايي چي ددې مطلب دادی چي کوم څوک قرآن کريم ياد کړي يعني د هغه په نزد د قرآن کريم حفظ کول مراد دي.

لو کانت فيکم (که ستاسو په کورو کي لمر وي) ددې مطلب دادی چي کله لمر د آسمان د لوړوالي څخه په راکښته کېدو سره ستاسو کورونو ته راسي نو هغه رڼا به د قيامت په ورځ ددغه تاج د رڼا په مقابل کي کمزورې وي يعني د لمر رڼا د مبالغې په توګه بيان سوې ده که لمر د خپل موجوده رڼا سره ستاسو په کورونو کي دننه سي نو څرګنده ده چي د هغه وخت رڼا به زياته معلومېږي په نسبت د موجوده صورت د رڼا کله چي لمر د کور څخه د باندي او ډېر زيات لوړ وي. د حديث د آخري جملې مطلب دادی چي کله د قرآن کريم د ويونکی (يا حافظ) او په قرآن کريم باندي د عمل کونکي مور او پلار په دغه عظيمي مرتبې او نعمت سره و نازول سي نو بيا خپله د هغه سړي مرتبه او سعادت به څومره وي چي هغه په خپله قرآن کريم وايي او عمل په کوي

## د قران کريم يوه معجزه

﴿۲۰۲۷﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَوْ جُعِلَ الْقُرْآنُ فِيْ إِهَابٍ ثُمَّ أُلْقِيَ فِي النَّارِ مَا احْتَرَقَ. رواه الدارمي

د حضرت عقبة بن عامر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي ٖي : كه قرآن كريم په پوست كي بند كړل سي او بيا په اور كي واچول سي نو هغه نه سوځي . (مطلب دا چي څوک يې ووايي او عمل په وكړي پر هغه اور اثر نه كوي د پوست څخه مراد د انسان بدن دئ) دارمي .

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\ ۵۲۲، رقم: ۳۳۱۰.

**تشريح**: ځيني حضرات وايي چي دا په حقيقت كي د رسول الله ﷺ په زمانه كي يوه معجزه وه چي په يو پوست وغيره كي په نغښتلو سره به يې په اور كي واچوى نو اور به اثر نه پر كوى دا هم داسي وه لكه د نورو انبياؤ عليهم السلام معجزې .

مگر ځيني نور حضرات وايي چي دلته د پوست څخه مراد د انسان زړه او د هغه پوست او بدن دى چي د كوم چا په زړه كي د قرآن كريم رڼا راسي او هغه په قران كريم عمل كوي نو هغه به د دوږخ د اور او عذاب څخه خوندي وي .

## د حافظ قران شفاعت

﴿۲۰۳۸﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : چا چي قرآن ووايه

فَاسْتَظْهَرَهُ فَأَحَلَّ حَلَالَهُ وَحَرَّمَ حَرَامَهُ أَدْخَلَهُ اللَّهُ الْجَنَّةَ وَشَفَّعَهُ فِي عَشَرَةٍ

او هغه يې ياد كړ بيا يې د هغه حلال حلال او حرام يې حرام وگڼل نو الله تعالى به يې په جنت كي داخل كړي او د هغه د كورنۍ څخه د لسو كسانو په حق كي د هغه شفاعت قبليږي

مِنْ أَهْلِ بَيْتِهِ كُلُّهُمْ قَدْ وَجَبَتْ لَهُ النَّارُ. رواه احمد والترمذي وابن ماجة والدارمي و قال الترمذي هذا حديث غريب و حفص بن سليمان الراوي ليس هو بالقوي يضعف في الحديث .

كوم چي قطعي دوږخيان وي . احمد ، ترمذي، ابن ماجة، دارمي، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ حضرت حفص بن سليمان كمزوری راوي دئ .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۱\ ۱۴۸، ۱۴۹، والترمذي ۵\ ۱۵۸، رقم: ۲۹۰۵، وابن ماجه ۱\ ۷۸، رقم: ۲۱۶. لم نجده عند الدارمي.

## سورة فاتحه بې مثاله سورت دی

﴿۲۰۳۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأُبَيِّ بْنِ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ابی بن کعب ته وفرمايل :

كَعْبٍ كَيْفَ تَقْرَأُ فِي الصَّلَاةِ فَقَرَأَ أُمَّ الْقُرْآنِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

ته په لمانځه کي څنګه وايې ؟ ابی بن کعب سورة فاتحه وويل ، رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَسَلَّمَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا أُنْزِلَتْ فِي التَّوْرَاةِ وَلَا فِي الْإِنْجِيلِ وَلَا فِي الزَّبُورِ

په هغه ذات دي مي قسم وي د چا په واک کي چي زما ساه ده چي داسي هيڅ سورت نه په تورات کي نازل سوی دئ، نه په انجيل کي ، نه په زبور کي

وَلَا فِي الْفُرْقَانِ مِثْلُهَا وَإِنَّهَا سَبْعٌ مِنَ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنُ الْعَظِيمُ الَّذِي

او نه په قرآن کي ، په دې سورت کي اووه اياتونه دي او دا سورة عظيم دئ چي

أُعْطِيتُهُ. رواه الترمذي و روي الدارمي من قوله ما انزلت و لم يذكر ابي

ابن كعب وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح .

ما ته راکړل سوئ دئ . ترمذي او دارمي د ابی بن کعب څخه نه دئ ذکر کړئ ، ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۱۴۳، رقم: ۲۸۷۵، والدارمي ۲\۵۳۸، رقم: ۳۳۷۳.

**تشريح**: د سبع مثاني او قرآن عظيم په باره کي په اول فصل کي د يو حديث په تشريح کي ښودل سوې دي چيددې څخه سورة فاتحه مراد ده هلته يې په تفصيل سره وضاحت سوی دی.

## د قران كريم زده كولو، ويلو او په هغه د عمل كولو حكم

﴿۲۰۴۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعَلَّمُوا الْقُرْآنَ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : قرآن کريم زده کړئ

فَاقْرَءُوهُ فَإِنَّ مَثَلَ الْقُرْآنِ لِمَنْ تَعَلَّمَهُ فَقَرَأَهُ وَقَامَ بِهِ كَمَثَلِ جِرَابٍ مَحْشُوٍّ

او بيا يې وايا ست ځكه چې څوک قرآن كريم زده كړي بيا يې وايي او د شپې عبادت كوي د هغه مثال د هغه كڅوړې په ډول دئ چې په هغه كې

مِسْكًا تَفُوحُ رِيحُهُ فِي كُلِّ مَكَانٍ وَمَثَلُ مَنْ تَعَلَّمَهُ فَيَرْقُدُ وَهُوَ فِي جَوْفِهِ كَمَثَلِ جِرَابٍ وُكِئَ عَلَى مِسْكٍ. رواه الترمذي و النسائي وابن ماجة .

مشک بند وي چې د هغه خوشبويي هر لوري ته خپريږي او د هغه چا حال چې قرآن يې زده كړ او په زړه كې يې پاته سو يعني نه يې وايي او نه عمل په كوي د مشكو د هغه كڅوړې په ډول دئ چې د هغه خوله بنده كړې وي او مهر ورباندي لګېدلی وي . ترمذي، نسائي او ابن ماجه.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۱۴۴، رقم: ۲۸۷۶، وابن ماجه ۱\ ۷۸، رقم: ۲۱۷.

**تشريح**: تعلموا القرآن: (قرآن زده كړئ) ددې مطلب دادی چې قرآن كريم ويل زده كړئ نه يوازي دا چې د هغه د الفاظو ادا كول زده كوئ بلكه د هغه د مفهوم ، معنی او تفسير علم تر لاسه كړئ.

ابو محمد جوني رحمة الله عليه فرمايي چې قرآن زده كول او نورو ته ښودل فرض كفايه دي او مسئله داده چې په لمانځه كې د فرض قرائت په اندازه سورتونه يا آياتونه زده كول د هر مسلمان لپاره فرض عين دي .

امام نووي رحمة الله عليه فرمايي چې د سورة فاتحې څخه زيات د قرآن كريم د آياتونو يا سورتونو په يادولو كې بوختيا د نفل لمانځه تر بوختيا افضل دي ځكه چې هغه فرض كفايه دی كوم چې تر نفل لمانځه زيات اهم دی .

د ځينو متاخرينو فتوا ده چې د قرآن كريم په حفظ كې بوختيا د هغه علومو تر بوختيا افضل دي كوم چې فرض كفايه دي يعني د كومو علومو تر لاسه كول چې فرض عين دي د قرآن كريم په حفظ كې بوخت كېدل د هغه د بوختيا څخه غوره نه دي .

د مشكو د كڅوړې مثال په دې توګه وركړل سوی دی چې د قرآن كريم د زده كوونكي او ويونكي سينه د يوې كڅوړې په ډول ده چې په هغه كې قرآن كريم د ړې په ډول دی كله چې هغه قرآن وايي نو د هغه له بركته هغه په كور كې خپريږي او د هغه اوريدونكي ته رسيږي د حديث د آخري جملې مطلب دادی چې كوم څوک قرآن كريم زده كړي مګر نه يې وايي او نه عمل په كوي نو د قرآن كريم بركت هغه ته نه رسيږي او نه نورو ته رسيږي ځكه هغه د ړې د هغه كڅوړې په ډول

سو چي د هغه خوله بنده سوې ده او د هغه په وجه نه خو د مشک خوشبويي خپريږي او نه د هغه څخه چا ته کټه رسيږي .

## د اية الکرسي او سورة مومن لومړنيو اياتو ويلو برکت

﴿۲۰۴۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَرَأَ حم الْمُؤْمِنَ

د حضرت ابوهريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : چا چي (حم المؤمن

إِلَى { إِلَيْهِ الْمَصِيرُ } وَآيَةَ الْكُرْسِيِّ حِينَ يُصْبِحُ حُفِظَ بِهِمَا حَتَّى يُمْسِيَ وَمَنْ

تر اليه المصير) پوري او آية الکرسي د سهار په وخت کي وويل نو هغه تر ماښام پوري په ساتنه کي وي او چا چي

قَرَأَهُمَا حِينَ يُمْسِي حُفِظَ بِهِمَا حَتَّى يُصْبِحَ . رواه الترمذي و الدارمي و قال الترمذي هذا حديث غريب .

دا دواړه ماښام وويل نو هغه تر سهاره پوري خوندي وي . ترمذي، دارمي، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ ،

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۱۵۴، رقم: ۲۸۷۹، والدارمي ۲\ ۵۴۱، رقم: ۳۳۸۶.

**تشريح**: د حم څخه تر اليه المصير پوري د سورة مؤمن لومړنی اياتونه داسي دی :

حم ، تَنزِيلُ الْكِتَابِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ غَافِرِ الذَّنبِ وَقَابِلِ التَّوْبِ شَدِيدِ الْعِقَابِ ذِي الطَّوْلِ لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ إِلَيْهِ الْمَصِيرُ،

ژباړه: ددغه کتاب نازلېدل د الله تعالی غالب او دانا له خوا دي چي گناه بخښونکی توبه قبلونکی او سخت عذاب ورکونکی او صاحب د کرم دی د هغه څخه پرته بل معبود نسته او د هغه پر خوا بيرته واپس کېدل دي .

## قران کريم په لوح محفوظ کي کله وليکل سو؟

﴿۲۰۴۲﴾: وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت نعمان بن بشير رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِنَّ اللَّهَ كَتَبَ كِتَابًا قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضَ بِأَلْفَيْ عَامٍ أَنْزَلَ مِنْهُ

الله تعالى د آسمانو او مځکي پيدا کولو څخه دوه زره کاله وړاندي کتاب وليکئ بيا ددغه کتاب څخه الله تعالى

آيَتَيْنِ خَتَمَ بِهِمَا سُورَةَ الْبَقَرَةِ وَلَا يُقْرَأَانِ فِي دَارٍ ثَلَاثَ لَيَالٍ فَيَقْرَبُهَا

دوه آياتونه نازل کړل په دې دوو آياتو سورة بقرة ختميږي په کوم کور کي چي دا آياتونه درې شپې پرله پسې وويل سي

شَيْطَانٌ. رواه الترمذي والدارمي وقال الترمذي هذا حديث غريب.

شيطان هغه کور ته نږدې نه راځي، ترمذي، دارمي ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۱۴۷، رقم: ۲۸۸۲، والدارمي ۲\۲۴۵، رقم: ۸۸۳۳.

## د سورة کهف د لومړنيو درو اياتو ويلو فضيلت

﴿۲۰۴۳﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ قَرَأَ ثَلَاثَ آيَاتٍ مِنْ أَوَّلِ الْكَهْفِ عُصِمَ مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ. رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن صحيح.

د حضرت ابو درداء ؓ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د سورة کهف اول درې آياتونه ووايي هغه به د دجال د فتنې څخه خوندي سي. ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۱۴۹، رقم: ۲۸۸۶.

**تشريح**: په اول فصل کي د ابودرداء ؓ يو حديث تير سوی دی چي په هغه کي دا فرمايل سوي دي چي کوم څوک د سورة کهف لومړني لس آياتونه ياد کړي هغه به د دجال د فتنې څخه خوندي سي او دلته د درو آياتونه ذکر کيږي د هغه حديث په تشريح کي ددغه حديث په ذکر کولو سره په دغه دواړو حديثو کي يو مطابقت خو هلته بيان سوی دی او د مطابقت دوهمه وجه دا هم کېدای سي چي مخکي خو د لسو آياتونو د يادولو پورتنی خاصيت او برکت زيری

ورکړی وو او بیا وروسته د فضل د وسعت له مخي پر درو آیاتونو ویلو باندي هم دا زیری ورکړل سو.

## سورة یاسین د قران کریم زړه دئ

﴿۲۰۴۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِكُلِّ شَيْءٍ قَلْبًا

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د هر شي زړه وي

وَقَلْبُ الْقُرْآنِ يس وَمَنْ قَرَأَ يس كَتَبَ اللّٰهُ لَهُ بِقِرَاءَتِهَا قِرَاءَةَ الْقُرْآنِ

عَشْرَ مَرَّاتٍ. رواه الترمذي والدارمي و قال الترمذي هذا حديث غريب

او د قرآن کریم زړه سورة یس دئ نو څوک چي سورة یاسین وایي د هغه لپاره د لسو قرآنو ویلو ثواب لیکل کیږي. ترمذي ،دارمي، ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۱۴۹\۵، رقم: ۲۸۸۷، والدارمي ۵۴۸\۲، رقم: ۳۴۱۶.

**تشريح**: د قرآن کریم زړه سورة یاسین دی یعني د قرآن کریم د علومو او معارف خلاصه او د هغه حاصل سورة یاسین دی په دې توګه چي په دغه سورت کي د قیامت احوال او د قرآن کریم اعلی مقاصد مذکور دي.

## د سورة طه او سورة یاسین فضیلت

﴿۲۰۴۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی

تَبَارَكَ وَتَعَالَى قَرَأَ (طٰهٰ) وَ (يس) قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضَ بِأَلْفِ

د آسمانو او مځکو د پیدائښت څخه زر کاله وړاندي سورة طه او سورة یاسین ولوستل،

عَامٍ فَلَمَّا سَمِعَتِ الْمَلَائِكَةُ الْقُرْآنَ قَالَتْ طُوبٰى لِأُمَّةٍ يُنْزَلُ هٰذَا عَلَيْهَا وَطُوبٰى

ملائکو چي دا سورتونه واوریدل نو وې یې ویل هغه امت مبارک دئ چي پر هغوئ به دا قرآن نازلیږي او زیری دي وي

لِأَجْوَافٍ تَحْمِلُ هٰذَا وَطُوبٰى لِأَلْسِنَةٍ تَتَكَلَّمُ بِهٰذَا. رواه الدارمي

هغه زړو ته دي چي دا سورتونه یا قرآن کریم پوره ته کوي یعني یادوي یې او هغه ژبو ته دي خوشحالي وي چي دا قرآن یا دا سورتونه وایي.

**تخریج**: سنن الدارمي ۲\۵۴۷، رقم: ۳۴۱۴.

**تشریح**: الله تعالی دغه سورتونه وویل: ددې مطلب دادی چي الله تعالی دا سورتونه د ملائکي په مخکي ظاهر کړل او د هغوئ په مخکي یې ددغه سورتونو د تلاوت ثواب بیان کړ یا دا چي الله تعالی خپلو ملائکو ته دا سورتونه وښودل او د مذکوره سورتونو معاني او مطالب یې هغوئ ته الهام کړل.

د علام ابن حجر رحمة الله علیه مطابق ددې مطلب دادی چي الله تعالی خپلو ځینو ملائکو ته حکم ورکړ چي هغوئ د نورو ټولو ملائکو په مخکي دا سورتونه او د هغو فضیلت وښيي.

فلما سمعت الملائکة القرآن: دلته د قرآن څخه مراد قرائت دی یعني هغه ملائکو ددغه سورتونو قرائت واوریدی چي د قرآن څخه هم مراد طه او سورة یاسین دي لکه څرنګه چي د کلام الله د پوره مجموعې نوم قرآن دی همداسي یو څه برخي ته هم قرآن ویل کیږي نو قرآن د کل او جز دواړو نوم دی.

## د سورة حم الدخان برکت

﴿۲۰۴۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَرَأَ حم الدُّخَانَ

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي سورة حم دخان

فِي لَيْلَةٍ أَصْبَحَ يَسْتَغْفِرُ لَهُ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ. رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب و عمربن ابي خثعم الراوي يضعف وقال محمد يعني البخاري هو منكر الحديث.

د شپې ووایي نو هغه به په داسي حال کي سهار کوي چي د هغه لپاره به اویا زره ملائکي د بخښني دعاء غواړي، ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دئ، عمروبن ابی خثعم ددې حدیث راوي ضعیف دئ، امام بخاري ویلي دي هغه منکر الحدیث دئ.

**تخریج**: سنن الترمذي ۱۵\۱۵۰، رقم: ۲۸۸۸، حدیث موضوع.

﴿۲۰۴۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ قَرَأَ حم الدُّخَانَ فِي لَيْلَةِ الْجُمُعَةِ غُفِرَ لَهُ . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب و هشام ابو المقدام الراوي يضعف .

د حضرت ابو هريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي حم الدخان د جمعې په شپه ووايي نو د هغه بخښنه کيږي ، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ هشام ابو المقدام راوي ضعيف دئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ١٥٠\٥، رقم: ٢٨٨٩.

## د مسبحات فضيلت

﴿۲۰۴۸﴾: وَعَنْ عِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقْرَأُ

د حضرت عرياض بن سارية رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به ويل

الْمُسَبِّحَاتِ قَبْلَ أَنْ يَرْقُدَ وَيَقُولُ إِنَّ فِيهِنَّ آيَةً خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ آيَةٍ . رواه الترمذي و ابوداؤد و رواه الدارمي عن خالد بن معدان مرسلا و قال الترمذي هذا حديث حسن غريب

د بيدېدو څخه وړاندي مسبحات ويل (دغه اووه سورتونه: سبحان الذي اسرى بعبده، سورة حديد، سورة حشر، سورة صف، سورة جمعة، سورة تغابن، سورة اعلى ) او فرمايل يې په دې سورتو کي يو آيت دئ چي تر زرو آياتو غوره دئ. ترمذي ، ابوداؤد او دارمي، دا حديث د خالد بن معدان څخه مرسلا روايت کړئ دئ ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ .

**تخريج**: سنن ابي داود ٣٠٤\٥، رقم: ٥٠٥٧، والترمذي ١٦٦\٥، رقم: ٢٩٢١.

**تشريح**: مسبحات هغه سورتونو ته وايي چي د هغو پيل په لفظ د سبحان، سبح، يسبح يا سبح څخه کيږي او هغه سورتونه اووه دي ۱: سبحان الذي اسرى بعبده .... يعني سورة بني اسرائيل، ۲: سورة حديد ، ۳: سورة حشر ، ۴: سورة صف، ۵: سورة جمعه، ۶: سورة تغابن، ۷: سورة اعلى .

په دغه کي یو آیت دی چي د زرو آیاتو څخه غوره دی په دې باره کي ځیني حضرات وايي چي هغه آیت: لو انزلنا هذا القرآن.... دی او ځیني نور وايي چي هغه آیت دادی:

(هُوَ الْأَوَّلُ وَالْآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ)

مګر د علامه طيبي رحمة الله عليه په نزد په دغه سورتو کي یو آیت په متعین کولو سره ښودل ډېر مشکل دي چي هغه آیت دغه دی هغه وايي لکه څرنګه چي د ليلة القدر يا د جمعې په ورځ د قبوليت د ساعت په باره کي څه متعين کېدای نه سي همداسي دا آیت هم پټ دی، علماء ليکي چي د علامه طيبي رحمة الله عليه دغه خبره زياته صحيح ده.

## د سورة ملک فضيلت او برکت

﴿۲۰۴۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ سُورَةً

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په قرآن کريم کي یو سورت

مِنَ الْقُرْآنِ ثَلَاثُونَ آيَةً شَفَعَتْ لِرَجُلٍ حَتَّى غُفِرَ لَهُ وَهِيَ تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ. رواه احمد و الترمذي و ابوداؤد والنسائي وابن ماجة.

د ديرشو آياتو دئ، دې سورت د یو سړي شفاعت وکړ نو هغه و بخښل سو او هغه سورت تبارک الذي بيده الملک.. دئ. احمد، ترمذي، ابوداؤد، نسائي او ابن ماجه.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\ ۲۹۹، ۳۲۱، وابوداؤد ۲\ ۱۱۹، رقم: ۱۴۰۰، والترمذي ۵\ ۱۵۱، رقم: ۲۸۹۱، والنسائي في السنن الكبرى ۶\ ۴۹۶، رقم: ۱۱۶۱۲، وابن ماجه ۲\ ۱۲۴۴، رقم: ۳۷۸۶.

**تشريح**: شفعت (دغه سورت شفاعت وکړ) ددې په معنی کي دوه احتماله دي یو خو دا چي ددغه لفظ په ذريعه په ماضي زمانه کي خبر ورکړل سوی دی چي یو سړي به سورة تبارک الذي وايه او ددغه سورت به ډېر زيات قدر کوی کوم وخت چي هغه وفات سو نو دغه سورت به د الله تعالی په دربار کي شفاعت وکړ چي د هغه په نتيجه کي به هغه سړی د عذاب څخه وژغورل سو، دوهم احتمال دادی چي شفعت د مستقبل په معنی کي استعمال سوی دی چي مطلب يې دادی کوم څوک دا سورت وايي د هغه په باره کي به دا د قيامت په ورځ شفاعت کوي او الله تعالی به د هغه شفاعت قبلوي.

﴿۲۰۵۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ ضَرَبَ بَعْضُ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د نبي كريم ﷺ په اصحابو كي يو سړي

وَسَلَّمَ خِبَاءَهُ عَلَى قَبْرٍ وَهُوَ لَا يَحْسِبُ أَنَّهُ قَبْرٌ فَإِذَا فِيهِ إِنْسَانٌ يَقْرَأُ سُورَةَ

پر يو قبر خيمه ودروله او د هغه فكر نه وو چي دا قبر دئ، ناڅاپه هغه وليدل چي هغه سړى

تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ حَتَّى خَتَمَهَا فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ

تبارك الذي بيده الملك وايي تر څو چي هغه سورة ختم كړ، هغه صحابي د رسول الله ﷺ په خدمت كي دا پېښه بيان كړل،

النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هِيَ الْمَانِعَةُ هِيَ الْمُنْجِيَةُ تُنْجِيهِ مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ.

رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب.

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: دا سورة (د ګناهو څخه) منع كونكى دئ، خلاصون وركونكى دئ او ويونكي ته د الله د عذاب څخه خلاصون وركوي. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۱۵۱، رقم: ۲۸۹۰.

**تشريح**: چيري چي دا احتمال دى چي خيمه درونكي په هغه قبر كي د مړي څخه د سورة ملك تلاوت د خوب په حالت كي اوريدلى دى نو هلته دا احتمال هم سته چي د بيدارى په حالت كي به يې اوريدلى وي بلكه زيات صحيح هم دادى.

سورة ملک منع كونكى دى: ددې مطلب دادى چي دغه سورت د خپل ويونكي د قبر د عذاب څخه يا د ګناهونو چي د قبر د عذاب باعث وي ساتونكى وي يا دا چي خپل ويونكى ددې څخه ساتي چي د حشر په ورځ هغه ته تكليف ورسيږي.

## د خوب څخه مخكي د رسول الله ﷺ معمول

﴿۲۰۵۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يَنَامُ حَتَّى يَقْرَأَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به تر هغه وخته پوري نه بيديدئ تر څو

الم تَنْزِيلُ وَتَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ. رواه احمد والترمذي والدارمي و قال الترمذي هذا حديث صحيح و كذا في شرح السنة و في المصابيح غريب

سورة الم تنزيل او تبارک الذي بيده الملک به يې نه وويل، احمد، ترمذي، دارمي، او ترمذي ويلي دي دا حديث صحيح دئ

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۳\۳۴۰، والترمذي ۵\۱۵۲، رقم: ۲۸۹۲، والدارمي ۲\۵۴۷، رقم: ۳۴۱۱، والبغوي في شرح السنة ۴\۴۷۲، رقم: ۱۲۰۷، ومصابيح السنة ۲\۱۲۳، رقم: ۱۵۵۴.

**تشريح**: د امام ترمذي رحمه الله په نزد خو دا حديث صحيح دی همداسي امام محي السنة هم دغه حديث ته صحيح ويلي دي مگر په مصابيح کي يې ويلي دي چي دا حديث غريب دی لکه چي په څرگنده د دوئ په قول کي تضاد معلوميږي مگر د حقيقت په اعتبار د دوئ په قول کي څه تضاد نسته ځکه د يوه حديث غريب کېدل د هغه د صحيح کېدو خلاف نه دی وجه يې داده چي داسي هم کيږي چي يو حديث په فني او اصطلاحي توگه غريب وي مگر د حقيقت په اعتبار هغه صحيح وي.

## د سورة زلزال، اخلاص او کافرون فضيلت

﴿۲۰۵۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَّانَس بن مالك قَالاَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه او انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا زُلْزِلَتْ تَعْدِلُ نِصْفَ الْقُرْآنِ وَقُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ تَعْدِلُ ثُلُثَ

سورة اذا زلزلت الارض د نيم قرآن سره سم دئ او قل هو الله احمد د دريمي برخي

الْقُرْآنِ وَقُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ تَعْدِلُ رُبُعَ الْقُرْآنِ. رواه الترمذي

قرآن سره سم دئ. او قل يا ايها الکافرون د څلورمي برخي قرآن سره سم دئ. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۱۵۳، رقم: ۲۸۹۴.

**تشريح**: په قرآن کريم کي مبداء او معاد بيان سوی دی، اذا زلزلت الارض هم په ډېر ښه او مؤثر انداز کي بيان سوی دی ځکه دا سورت د نيم قرآن برابر سو، قل هو الله احد د دريمي برخي د قرآن برابر کېدو وجه د لومړني فصل د حديث په تشريح کي بيان سوي دي.

قل يا ايها الکافرون د څلورمي برخي د قرآن برابر په دې توگه دی چي په قرآن کريم کي توحيد، نبوت، احکام او قصص دا څلور مضامين مذکور دي او په قل يا ايها الکافرون کي د توحيد ډېر اعلی بيان دی ځکه دا سورت د څلورمي برخي قرآن برابر سو.

## د سورة حشر د اخري درو اياتو فضيلت

﴿۲۰۵۳﴾: وَعَنْ مُعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ

د حضرت معقل بن يسار رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : چا چي

قَالَ حِينَ يُصْبِحُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ أَعُوذُ بِاللّٰهِ السَّمِيعِ الْعَلِيمِ مِنَ الشَّيْطَانِ

په سهار كي دري واره (أَعُوذُ بِاللّٰهِ السَّمِيعِ الْعَلِيمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ) وويل

الرَّجِيمِ وَقَرَأَ ثَلَاثَ آيَاتٍ مِنْ آخِرِ سُورَةِ الْحَشْرِ وَكَّلَ اللّٰهُ بِهِ سَبْعِينَ أَلْفَ

او دري آياتونه يې د سورة حشر د پاي څخه ولوستل نو الله تعالى پر هغه اويا زره ملائكي ټاكي

مَلَكٍ يُصَلُّونَ عَلَيْهِ حَتَّى يُمْسِيَ وَإِنْ مَاتَ فِي ذَلِكَ الْيَوْمِ مَاتَ شَهِيدًا وَمَنْ

چي تر مابنام پوري پر هغه رحمت ليږي او د هغه لپاره دعا كوي او كه هغه په دغه ورځ مړ سي نو شهيد به مړ سي او څوک چي

قَالَهَا حِينَ يُمْسِي كَانَ بِتِلْكَ الْمَنْزِلَةِ. رواه الترمذي و الدارمي و قال الترمذي هذا حديث غريب .

دا كلمات او آياتونه د مابنام په وخت كي ووايي نو د هغه هم دغه مرتبه ده . ترمذي، دارمي، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۱۶۷، رقم: ۲۹۲۲. والدارمي ۲\۵۵۰، رقم: ۳۴۲۵.

## هره ورځ سل واره د قل هو الله احد ويلو تاثير

﴿۲۰۵۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَرَأَ كُلَّ يَوْمٍ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي هره ورځ

مِائَتَيْ مَرَّةٍ قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ مُحِيَ عَنْهُ ذُنُوبُ خَمْسِينَ سَنَةً إِلَّا أَنْ يَكُونَ

عَلَيْهِ دَيْنٌ . رواه الترمذي والدارمي و في روايته خمسين مرة ولم يذكر

الا ان يكون عليه دين .

دوه سوه واره قل هو الله احد ... ووايي نو د هغه د پنځوسو کالو ګناهونه ليري کيږي مګر د پور ګناه يې نه بخښل کيږي . ترمذي، دارمي، او په يوه روايت کي ددوو سوو پر ځای د پنځوسو الفاظ دي او په دې روايت کي د پور لفظ نسته .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۱۵۴- ۱۵۵، رقم: ۲۹۸۹، والدارمي ۲\ ۵۵۳، رقم: ۳۴۳۸.

**تشريح**: الا ان يكون عليه دين (مګر دا چي پر هغه پور باندي وي) ددې دوه مطلبه کېدای سي يو خو دا چي د پور ګناه نسي معاف کېدای دوهم دا چي د چا پر ذمه د پور نه ادا کولو ګناه وي نو د هغه نوري ګناوي هم نسي معاف کېدای يعني په دغه صورت کي د دغه سورة ويل به هيڅ تاثير نه کوي ، د دين (پور) څخه مراد د بندګانو حقوق دي .

### د خوب څخه مخکي قل هو الله احد ويل

﴿۲۰۵۵﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَرَادَ أَنْ يَنَامَ عَلَى

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي پر خپله بستره

فِرَاشِهِ فَنَامَ عَلَى يَمِينِهِ ثُمَّ قَرَأَ قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ فَإِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ يَقُولُ

د بېده کېدو اراده وکړي نو پکار ده چي پر راسته اړخ پرېوځي او بيا سل واره قل هو الله احد .... ووايي کله چي د قيامت ورځ راسي نو الله تعالی به ده ته فرمايي

لَهُ الرَّبُّ تَبَارَكَ وَتَعَالَى يَا عَبْدِيَ ادْخُلْ عَلَى يَمِينِكَ الْجَنَّةَ. رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن غريب

اې زما بنده ! ته په جنت کي د راسته اړخ څخه داخل سه . ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۱۵۴- ۱۵۵، رقم: ۲۸۹۸.

**تشريح**: پر راسته اړخ پرېوتل سنت دي، څوک چي د بېده کېدو پر وخت پر راسته اړخ پرېوځي قل هو الله احد ووايي نو يو خو هغه د رسول الله ﷺ اطاعت وکړ دوهم هغه داسي سورت ووايه چي په هغه کي د الله تعالی صفات بيان سوي دي ځکه نو داسي کس ته د پورتني نيکبختی زيری ورکړل سوی دی .

په دغه حديث شريف کي دې ته اشاره ده چي په جنت کي کوم باغونه او ماڼۍ د جنت راسته خوا ته دي هغه به تر هغه باغونو او ماڼيو غوره دي کوم چي د جنت چپه خوا ته دي.

## د سورة اخلاص فضيلت

﴿۲۰۵۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعَ رَجُلًا يَقْرَأُ قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ فَقَالَ وَجَبَتْ قُلْتُ وَمَا وَجَبَتْ قَالَ الْجَنَّةُ . رواه مالك والترمذي والنسائي .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د يو سړي څخه قل هو الله احد ويل واورېدل، نو رسول الله ﷺ وفرمايل: واجب سو، ما پوښتنه وکړه څه شي واجب سو؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: ددې سړي لپاره جنت واجب سو، مالک، ترمذي، نسائي.

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\ ۲۰۸، رقم: ۱۸، والترمذي ۵\ ۱۵۴، رقم: ۲۸۹۷، والنسائي ۲\ ۱۷۱، رقم: ۹۹۳.

**تشريح**: د جنت واجب کېدل محض د الله تعالی فضل او کرم او د هغه د وعدې سبب دی چي هغه د خپل نيک او پيرو کاره بندګانو په باره کي فرمايلې ده.

## د سورة کافرون فضيلت

﴿۲۰۵۷﴾: وَعَنْ فَرْوَةَ بْنِ نَوْفَلٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ قَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ عَلِّمْنِي شَيْئًا

فروة بن نوفل د خپل پلار څخه روايت کوي چي هغه وويل ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړ اې د الله رسوله! ما ته يو داسي شی راوښيه

أَقُولُهُ إِذَا أَوَيْتُ إِلَى فِرَاشِي فَقَالَ اقْرَأْ قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ فَإِنَّهَا بَرَاءَةٌ مِنَ الشِّرْكِ . رواه الترمذي وابوداؤد والدارمي .

چي د شپې بسترې ته د تللو په وخت کي يې ووايم، رسول الله ﷺ وفرمايل: قل يا ايها الکافرون وايه ځکه چي دا سورت د شرک څخه بيزاري څرګندوي.، ترمذي، ابوداؤد او دارمي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۴۴۲، رقم: ۳۴۳۰، وابوداود ۵\ ۳۰۳، رقم: ۵۰۵۵، والدارمي ۲\ ۵۵۱، رقم: ۳۴۲۷.

## د سورة فلق او سورة الناس وظيفه

﴿۲۰۵۸﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ بَيْنَا أَنَا أَسِيرُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
د حضرت عقبة بن عامر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ سره سفر کوئ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ الْجُحْفَةِ وَالْأَبْوَاءِ إِذْ غَشِيَتْنَا رِيحٌ وَظُلْمَةٌ شَدِيدَةٌ فَجَعَلَ
د جحفة او ابواء په منځ کي چي تيزي هواء او تاريکی موږ ايسار کړو ،
رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَعَوَّذُ بِأَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ وَأَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ
رسول الله ﷺ قل اعوذبرب الفلق او قل اعوذبرب الناس ويلو سره دعاء کول پيل کړل
وَيَقُولُ يَا عُقْبَةُ تَعَوَّذْ بِهِمَا فَمَا تَعَوَّذَ مُتَعَوِّذٌ بِمِثْلِهِمَا . رواه ابوداؤد .
او ما ته يې وويل اې عقبة ! ته هم ددې دوو سورتو په ذريعه پناه غواړه ځکه چي په دې اړه دا
دواړه سورتونه تر ټولو غوره دي . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\۱۵۳، رقم: ۱۴۶۳.

﴿۲۰۵۹﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ خُبَيْبٍ قَالَ خَرَجْنَا فِي لَيْلَةٍ مَطِيرَةٍ وَظُلْمَةٍ
د حضرت عبد الله بن خبيب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د باران په يوه شپه کي چي ډيره تاريکي
شَدِيدَةٍ نَطْلُبُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فَأَدْرَكْتُهُ فَقَالَ قُلْ
وه د رسول الله ﷺ په لټه کي ووتلو ، نو موږ رسول الله ﷺ پيدا کړ ، رسول الله ﷺ چي موږ
وليدلو نو وه يې فرمايل : ووايه ،
قلت ما اقول قال قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ وَالْمُعَوِّذَتَيْنِ حِينَ تُمْسِي وَتُصْبِحُ ثَلَاثَ
ما عرض وکړ اې دالله رسوله ! څه ووايم ؟ رسول الله ﷺ راته وفرمايل : قل هو الله احد ، قل
اعوذبرب الفلق او قل اعوذبرب الناس . سهار او ماښام درې درې
مَرَّاتٍ تَكْفِيكَ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ . رواه الترمذي وابوداؤد والنسائي .

واره وايه، ستا لپاره د هر شي بس دي. ترمذي، ابوداؤد، نسائي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۳۲۰، رقم: ۵۰۸۲ والترمذي ۵\ ۵۳۰، رقم: ۳۵۷۵، والنسائي ۸\ ۲۵۰، رقم: ۵۴۴۳.

﴿۲۰۶۰﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اِقْرَأْ سُورَةَ هُودٍ اَوْ

د حضرت عقبة بن عامر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما عرض وکړ اې د الله رسوله! ايا (د پناه تر لاسه کولو لپاره) زه سورة هود يا

سُورَةَ يُوسُفَ قَالَ لَنْ تَقْرَأَ شَيْئًا اَبْلَغَ عِنْدَ اللّٰهِ مِنْ قُلْ اَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ.

رواه احمد والنسائي والدارمي.

سورة يوسف وايم؟ رسول الله ﷺ راته وفرمايل: په دې اړه د الله جل جلاله په نزد د قل اعوذ برب الفلق څخه بل غوره شی نسته. احمد، نسائي او دارمي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۱۴\ ۱۴۹، ۱۵۹، والنسائي ۲\ ۱۵۸، رقم: ۹۵۲، والدارمي ۲\ ۵۵۳، رقم: ۳۴۳۹.

**تشريح**: لن تقرا شيئا ابلغ عند الله: ددې مطلب دادی چي د آفاتو، شر او مصيبت څخه د پناه غوښتلو په اړه دا سورت يعني قل اعوذبرب الفلق څخه کامل او غوره هيڅ بل سورت نسته ځکه دا سورت تر ټولو زيات کامل دی چي په هغه کي د هر مخلوق د شر او فساد څخه پناه غوښتل سوې ده، قل اعوذبرب الفلق من شر ما خلق: ته ووايه چي زه د سحر د شر څخه د ټولو مخلوقاتو د مالک پناه غواړم.

علامه طيبي رحمه الله فرمايي چي ددې مطلب دادی چي د پناه غوښتلو په اړه د دغه دواړو سورتونو يعني قل اعوذ برب الناس او قل اعوذ برب الفلق څخه زيات کامل بل هيڅ سورت نسته.

ابن مالک رحمه الله وايي چي ددغه جملې څخه مقصد ددغه دواړو سورتونو په ذريعه د پناه غوښتلو شوق ورکول دي يعني د علامه طيبي او ابن مالک د دواړو د قول خلاصه داده چي په دغه ارشاد کي يوازي يو سورت يعني قل اعوذ برب الفلق ذکر سوی دی او د قرينې څخه دوهم سورت يعني قل اعوذ برب الناس هم مفهوم کيږي ځکه دلته دواړه سورتونه مراد دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د قران کریم د پیروي کولو حکم

﴿۲۰۶۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْرِبُوا الْقُرْآنَ وَاتَّبِعُوا غَرَائِبَهُ وَغَرَائِبُهُ فَرَائِضُهُ وَحُدُودُهُ.

د ابوهريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د قرآن معاني بيان کړئ او د غرائبو يې پيروي وکړئ او د قرآن غرائب د هغه فرضونه او حدود دي يعني امرونه او منعي. بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۲\۴۲۷، رقم: ۲۲۹۳.

**د لغاتو حل**: أعرِبوا: اى بينوا ما في القرآن من غرائب اللغة وبدائع الاعراب. (معاني بيانول).

**تشريح**: ددې وضاحت سوی دی چي د قرآن کريم غرائب څه دي، فرمايي چي د قرآن کريم فرائض او د هغه حدود د هغه غرائب دي اوس په دې هم پوه سئ چي د فرائضو او حدود څخه مراد منهيات دي يعني هغه شيان چي د هغه څخه منع فرمايل سوې ده، خلاصه دا چي د قرآن کريم د اطاعت او پيروی مطلب دادی چي قرآن کريم د کومو شيانو حکم ورکړی دی هغه وکړل سي او د کومو شيانو څخه چي يې منع کړې ده د هغو څخه پرهيز وکړل سي.

### د قرانکريم ويلو فضيلت

﴿۲۰۶۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قِرَاءَةُ الْقُرْآنِ فِي الصَّلَاةِ أَفْضَلُ مِنْ قِرَاءَةِ الْقُرْآنِ فِي غَيْرِ الصَّلَاةِ وَقِرَاءَةُ الْقُرْآنِ فِي غَيْرِ الصَّلَاةِ أَفْضَلُ مِنَ التَّسْبِيحِ وَالتَّكْبِيرِ وَالتَّسْبِيحُ أَفْضَلُ مِنَ الصَّدَقَةِ وَالصَّدَقَةُ أَفْضَلُ مِنَ الصَّوْمِ وَالصَّوْمُ جُنَّةٌ مِّنَ النَّارِ.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په لمانځه کي قرآن ويل غوره دئ تر ماسيوا د لمانځه ويلو څخه، او پرته تر لمانځه ويلو د تسبيح او تکبير څخه غوره دئ، او تسبيح او تکبير تر صدقې غوره دئ

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۲\ ۴۱۳، رقم: ۲۲۴۳.

**تشريح**: لکه څرنګه چي د لمانځه په حالت کي د قرآن کريم ويل د لمانځه څخه پرته ويلو څخه غوره دی همدارنګه د لمانځه څخه پرته په نورو وختونو کي د قرآن کريم تلاوت د تسبيح او تکبير او نورو اورادو او اذکارو څخه افضل دی ځکه قرآن کريم نه يوازي دا چي الهي کلام دی بلکه په دې کي د الله تعالی احکام هم مذکور دي.

تسبيح او تکبير او نورو اوراد او اذکار د الله تعالی په لار کي د خپل مال خرڅ کولو څخه افضل دي که څه هم مشهوره داده چي عبادت هغه دی چي د هغه فائده د خپل ذات څخه پرته نورو ته هم ورسيږي مثلاً صدقه افضل ده تر عبادت لازم (مثلاً تسبيح او اذکار وغيره) چي د هغه څخه ګټه يوازي خپل تر ځان پوري محدود وي مګر دا خبره د ذکر څخه پرته د نورو عباداتو سره خاص ده ذکر د دې څخه مستثنی دی ځکه چي د الله تعالی ذکر تر ټولو لوی او تر ټولو افضل دی (د دې مطلب دا سو چي د الله تعالی ذکر تر ټولو متعديه عباداتو افضل دی مګر په دې باره کي دا خبره ياد ساتل پکار دي چي د دين تعليم د دغه حکم څخه مستثنی دی ځکه چي محض ذکر د دين د تعليم او تعلم څخه غوره نه دی په کتاب العلم کي چي کوم حديثونه تير سوي دي د هغو څخه دا خبره په وضاحت معلوميږي چي د علم دين تعليم او تعلم د ذکر څخه افضل دی بلکه حقيقت خو دادی چي علم دين د ذکر د ډول څخه دی) لکه څرنګه چي په صحيح حديثونو کي فرمايل سوي دي چي د الله تعالی ذکر د الله تعالی په لار کي د سرو او سپينو زرو د خرڅ کولو څخه غوره او افضل دی.

صدقه تر روژې زيات ثواب لري يعني د الله تعالی په لار کي او د هغه د رضا لپاره خپل مال مصرف کول د نفلي روژې څخه افضل دی ځکه چي د صدقې فائده متعدي ده يعني د دې څخه نورو خلکو ته هم فائده رسيږي او د روژې فائده يوازي تر خپل ځان پوري محدود ده مګر د روژې په اړه دا حديث هم په ذهن کي ساتل پکار دي چي الله تعالی فرمايي د انسان پر هر عمل لس برابر ثواب حاصليږي مګر روژه زما لپاره ده او زه به د دې جزاء ورکوم (يعني د روژې ثواب لا محدود دی).

په دغه دواړو روايتو کي په ظاهره اختلاف معلوميږي ځکه د اول روايت څخه معلوميږي چي صدقه تر روژې افضله ده او د دغه روايت خلاصه داده چي روژه د صدقې څخه افضله ده علماء کرام ليکي چي په دغه مطابق سره دا ظاهري تضاد ختميږي چي د افضيلت په اعتبار غوره دی او روژه دار د الله تعالی صفت اختياروي په دې توګه چي هغه د خوراک او څښاک

ښخه ځان منعه کوي.

## قران کریم ته په کتلو سره ویل تر یادو ویلو غوره دی

﴿۲۰۶۳﴾: وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ أُوس الثَّقَفِيِّ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ

حضرت عثمان بن عبدالله بن اوس الثقفي (رض) د خپل نيکه ښخه روايت کوي چي

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِرَاءَةُ الرَّجُلِ الْقُرْآنَ فِيْ غَيْرِ الْمُصْحَفِ أَلْفُ دَرَجَةٍ وَقِرَاءَتُهُ فِي الْمُصْحَفِ تُضَعَّفُ عَلٰى ذٰلِكَ إِلٰى أَلْفَيْ دَرَجَةٍ.

رسول الله ﷺ وفرمایل: د قرآن په یاد ویل زر درجې ثواب لري او قرآن کریم ته په کتلو سره ویل دوه زره درجې ثواب لري.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۲\۴۰۷، رقم: ۲۲۱۸.

**تشريح**: مطلب دادی چي قرآن کریم ته په کتلو د تلاوت ثواب تر بېله کتلو تلاوت زیات دی او په دې کي د تلاوت د زیاتوب وجه داده چي په قرآن کریم کي کتونکی ته په تلاوت کي غور او فکر او خشوع زیاته حاصلیږي د قرآن کریم زیارت ور په برخه کیږي او قرآن کریم ته لاس ور وړل کیږي هغه لوړیږي همدارنګه نه یوازي دا چي د قرآن کریم د عظمت او احترام اظهار کیږي بلکه څرنګه چي منقول دي د قرآن کریم زیارت هم عبادت دی اکثر صحابه کرامو او تابعینو به د قرآن کریم په کتلو سره تلاوت کوی د حضرت عثمان ﷺ په باره کي منقول دي چي د تلاوت په وخت کي قرآن کریم ته د کتلو په وجه د هغه سره دوه قرآن کریمه د ښیري کېدو حالت ته رسیدلي وه.

## د زړه زنګ لیري کول

﴿۲۰۶۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ هٰذِهِ

د حضرت ابن عمر ﷺ ښخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: دغه

الْقُلُوْبَ تَصْدَأُ كَمَا يَصْدَأُ الْحَدِيْدُ إِذَا أَصَابَهُ الْمَاءُ قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللهِ وَمَا

زړونه زنګ نیسي لکه څنګه چي اوسپنه په اوبو سره زنګ نیسي، پوښتنه وسول: اې د الله رسوله! کوم شی

جِلاَؤُهَا ؟ قَالَ كَثْرَةُ ذِكْرِ الْمَوْتِ وَتِلاَوَةِ الْقُرْآنِ . روى البيهقي الأحاديث الأربعة في شعب الإيمان .

زړونه ځلانده کوي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : مرګ ډېر يادوئ او قرآن کريم واياست . بيهقي دا څلور سره حديثونه په شعب الايمان کي روايت کړي دي .

**تخريج** : البيهقي في شعب الايمان ۲\ ۳۵۳، رقم: ۲۰۱۴.

**تشريح** : مطلب دادی چي د ګناه او معصيت صادرېدل او په نيکيو کي د غفلت په وجه زړه ته زنګ لګيږي نو د زړه د رڼا ذريعه وښودل سوه چي مرګ زيات يادول او د قرآن کريم په تلاوت کي په بوختيا سره زړه ته رڼا تر لاسه کيږي .

## تر ټولو ستر سورت

﴿۲۰۶۵﴾ : وَعَنْ أَيْفَعَ بْنِ عَبْدِ الْكَلاَعِيِّ قَالَ قَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللهِ أَيُّ سُورَةِ

د حضرت ايفع بن عبد الکلاعي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي په قرآن کريم کي کوم سورت تر ټولو لوی دئ ؟

الْقُرْآنِ أَعْظَمُ ؟ قَالَ ( قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ) قَالَ فَأَيُّ آيَةٍ فِي الْقُرْآنِ أَعْظَمُ ؟

رسول الله ﷺ وفرمايل : قل هو الله احد .بيا هغه پوښتنه وکړه بل کوم آيت عظيم دئ ؟

قَالَ آيَةُ الْكُرْسِيِّ (اَللهُ لاَ إِلٰهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ) قَالَ فَأَيُّ آيَةٍ يَا نَبِيَّ اللهِ

رسول الله ﷺ وفرمايل : آية الکرسي ، بيا يې پوښتنه وکړه اې دالله رسوله ! تاسو د خپل ځان او

تُحِبُّ أَنْ تُصِيبَكَ وَأُمَّتَكَ ؟ قَالَ خَاتِمَةُ سُورَةِ الْبَقَرَةِ فَإِنَّهَا مِنْ خَزَائِنِ رَحْمَةِ

امت لپاره کوم آيت خوښوئ ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : د سورة بقرې آخري آياتونه ځکه دغه د الله جل جلاله د رحمت د خزاني څخه

اللهِ تَعَالٰى مِنْ تَحْتِ عَرْشِهِ أَعْطَاهَا هٰذِهِ الْأُمَّةَ لَمْ تَتْرُكْ خَيْرًا مِّنْ خَيْرِ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ إِلاَّ اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ . رواه الدارمي

او د الله جل جلاله تر عرش لاندي نازل سوي دي او دا آياتونه هغه زما امت ته داسي ورکړي دي چي په دې کي د دين او دنيا دواړو ښېګڼي پرتې دي. دارمي

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\۵۴۰، رقم: ۳۳۸۰.

**تشريح**: مخکي يو حديث تېر سوی دی چي په هغه کي سورة فاتحه ته ډېر لوی او تر ټولو عظيم سورت ويل سوي دي او دلته قل هو الله احد ته تر ټولو عظيم الشان سورت ويل کيږي که څه هم په دغه دواړو حديثو کي په څرګنده تضاد معلوميږي مګر په حقيقت کي څه تضاد او اختلاف نسته ځکه سورة فاتحه په دې اعتبار عظيم الشان سورت دی چي دا د الله تعالى پر حمد، دعاء او عبادت باندي مشتمل دی او د قرآن کريم خلاصه ده او سورة اخلاص (قل هو الله احد) په دې اعتبار سره تر ټولو عظيم الشان دی چي په دې کي د الله تعالى د وحدانيت صفت په ډېر لوړ او بليغ انداز کي بيان سوی دی.

د سورة بقره د آخري برخي څخه امن الرسول تر پايه سورت مراد دی دلته د پوښتنه کونکي په جواب کي د رسول الله ﷺ د ارشاد خلاصه داده چي زه دا خبره خوښوم او زما په نزد دا شي محبوب دی چي د سورة بقره د آخري برخي د آياتو ثواب او برکت ما ته او زما امت ته د ټول قرآن د برکت او فائدې څخه مخکي ورسيږي ځکه دغه آياتونه د دين او دنيا پر ټولو خبرو باندي حاوي دي، په دغه ټولو آياتو کي د امن الرسول څخه اشاره ده د اسلام او احکامو اطاعت او پابندي ته. واليک المصير کي اشاره ده په آخرت کي د عمل جزا ته او په لا يکلف الله نفسا.. کي اشاره ده د دنيوي او اُخروي ګټو ته.

## سورة فاتحه شفاء ده

﴿۲۰۶۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ مُرْسَلاً قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ فِي فَاتِحَةِ الْكِتَابِ شِفَاءٌ مِنْ كُلِّ دَاءٍ. رواه الدارمي والبيهقي في شعب الإيمان

د حضرت عبدالملک بن عمير رحمه الله څخه مرسلا روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: سورة فاتحه د هري ناروغی لپاره شفاء ده. دارمي، بيهقي په شعب الايمان کي

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\۵۳۸، رقم: ۳۳۷۰، البيهقي في شعب الايمان ۲\۴۵۰، رقم: ۲۳۷۰.

**تشريح**: مطلب دادی چي که چيري يو څوک سورة فاتحه په ايمان او يقين سره ووايي نو ددې برکتونه ديني، دنيوي، ظاهري باطني د هر ډول ناروغی او مصيبت څخه شفا او خلاصون تر

لاسه كيږي .

علماء كرام ليكي چي په هر ډول بدني او روحاني ناروغۍ كي د سورة فاتحې په ليكلو سره هغه څټل، څښل يا زړول كټه رسوي او ناروغ ته سكون تر لاسه كيږي .

## د سورة ال عمران فضيلت

﴿۲۰۶۷﴾ : وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانٍ قَالَ مَنْ قَرَأَ آخِرَ آلِ عِمْرَانَ فِيْ لَيْلَةٍ كُتِبَ لَهُ قِيَامُ لَيْلَةٍ . رواه الدارمي

د حضرت عثمان بن عفان ﷺ څخه روايت دئ چي څوک چي د سورة آل عمران آخري برخه د شپې تلاوت كړي نو د هغه لپاره د شپې د قيام (تهجد) ثواب ليكل كيږي . دارمي

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\ ۵۴۴، رقم: ۳۳۹۶.

**تشريح**: د آل عمران د آخري برخي څخه : ان في الخلق السموات والارض ... تر پايه پوري آياتونه مراد دي، د شپې مطلب د شپې ابتدائي برخه هم كېداى سي او آخري برخه هم يعني د شپې په ابتداء كي دغه آياتونه ووايي يا د شپې په آخري برخه كي ، د رسول الله ﷺ په اړه دا نقل سوي دي چي د تهجد لمانځه لپاره به پورته كېدى نو هغه وخت به يې اودس وغيره څخه مخكي دغه آياتونه ويل .

## سورة ال عمران د جمعې په ورځ ويل

﴿۲۰۶۸﴾ : وَعَنْ مَكْحُوْلٍ قَالَ مَنْ قَرَأَ سُوْرَةَ آلِ عِمْرَانَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ صَلَّتْ عَلَيْهِ الْمَلَائِكَةُ إِلَى اللَّيْلِ . رواهما الدارمي

د حضرت مكحول ﷺ څخه روايت دئ څوک چي د جمعې په ورځ سورة آل عمران ووايي نو د هغه لپاره تر شپې پوري ملائكي دعاء او استغفار كوي .دارمي

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\ ۵۴۴، رقم: ۳۳۹۷.

## د سورة بقره اخري درې اياتونه ښځو ته ښوول

﴿۲۰۶۹﴾ : وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ اللّٰهَ

د حضرت جبير بن نفير ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى

خَتَمَ سُوْرَةَ الْبَقَرَةِ بِآيَتَيْنِ أُعْطِيْتُهَا مِنْ كَنْزِهِ الَّذِيْ تَحْتَ الْعَرْشِ فَتَعَلَّمُوْهُنَّ

سورة بقرة پر دوو آياتو ختم كړې ده دا دواړه آياتونه ما ته د هغه خزانې څخه راكړل سوي دي چي تر عرش لاندي ده دا آياتونه خپله زده كړئ

وَعَلِّمُوْهُنَّ نِسَاءَكُمْ فَإِنَّهَا صَلَاةٌ وَّقُرْبَانٌ وَّدُعَاءٌ" . رواه الدارمي مرسلا

او خپلو ازواجو ته يې وښياست ځكه چي دا آياتونه رحمت دي د الله تعالى د نژديوالي ذريعه دي او دعاوي دي . دارمي مرسلا .

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\۵۴۲، رقم: ۳۳۹۰.

## د جمعې په ورځ د سورة هود ويلو حكم

﴿۲۰۷۰﴾: وَعَنْ كَعْبٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اقْرَؤُوْا سُوْرَةَ هُوْدٍ يَوْمَ الْجُمُعَةِ . رواه الدارمي مرسلا .

د حضرت كعب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د جمعې په ورځ سورة هود واياست . دارمي مرسلا

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\۵۴۵، رقم: ۳۴۰۳.

## د جمعې په ورځ د سورة كهف ويلو حكم

﴿۲۰۷۱﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ مَنْ قَرَأَ سُوْرَةَ الْكَهْفِ فِيْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ اَضَاءَ لَهُ النُّوْرُ مَا بَيْنَ الْجُمُعَتَيْنِ . رواه البيهقي في الدعوات الكبير

د ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د جمعې په ورځ سورة كهف تلاوت كړي نو د هغه لپاره د دوو جمعو په منځ كي د ايمان نور ځلانده كيږي . بيهقي.

## د سورة الم تنزيل ويلو بركت

﴿۲۰۷۲﴾: وَعَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ قَالَ اقْرَؤُوْا الْمُنْجِيَةَ وَهِيَ ( آلم تنزيل)

د حضرت خالد بن معدان رحمه الله څخه روايت دئ چي خلاصون وركوونكې سورت واياست او هغه

الم تنزيل دئ

فَإِنَّهُ بَلَغَنِي أَنَّ رَجُلاً كَانَ يَقْرَؤُهَا مَا يَقْرَأُ شَيْئًا غَيْرَهَا وَكَانَ كَثِيرَ الْخَطَايَا

ځکه چي ما ته دا خبره ځرګنده سوې ده چي يو سړي به دا سورت وايه او ددې پرته به يې هيڅ شی نه وايه او هغه سړی ډير ګناهکار وو،

فَنَشَرَتْ جَنَاحَهَا عَلَيْهِ قَالَتْ رَبِّ اغْفِرْ لَهُ فَإِنَّهُ كَانَ يُكْثِرُ قِرَاءَتِي فَشَفَّعَهَا

دې سورت پر هغه بازوګان خپاره کړل او ويل يې اې پروردګاره ! دی وبخښې ځکه چي ده به زه ډير ويلم، نو الله تعالی يې شفاعت قبول کړ،

الرَّبُّ تَعَالَى فِيهِ وَقَالَ اكْتُبُوا لَهُ بِكُلِّ خَطِيئَةٍ حَسَنَةً وَّارْفَعُوا لَهُ دَرَجَةً وَقَالَ

او وه يې فرمايل : دده د هري ګناه په بدله کي يوه نيکي وليکئ او دده درجه پورته کړئ او خالد

أَيْضًا إِنَّهَا تُجَادِلُ عَنْ صَاحِبِهَا فِي الْقَبْرِ تَقُولُ اللَّهُمَّ إِنْ كُنْتُ مِنْ كِتَابِكَ

هم وويل چي دا سورت د خپل ويونکي د لوري جګړه کوي او وايي اې الله ! که زه ستا د کتاب

فَشَفِّعْنِي فِيهِ وَإِنْ لَّمْ أَكُنْ مِنْ كِتَابِكَ فَامْحُنِي عَنْهُ وَإِنَّهَا تَكُونُ كَالطَّيْرِ

څخه يم نو زما شفاعت دده په حق کي قبول کړې او که ستا په کتاب کي نه يم نو ما د خپل کتاب څخه ليري کړې ، حضرت خالد وويل : دا سورت به په قبر کي د يو مرغه په ډول وي

تَجْعَلُ جَنَاحَهَا عَلَيْهِ فَتَشْفَعُ لَهُ فَتَمْنَعُهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَقَالَ فِي (تَبَارَكَ)

چي خپل وزر به پر خپل ويونکي کنبيږدي او د هغه شفاعت به کوي او دی به د قبر د عذاب څخه ژغوري او خالد وويل د سورة تبارک الذي بيده الملک

مِثْلَهُ وَكَانَ خَالِدٌ لاَ يَبِيتُ حَتَّى يَقْرَأَهُمَا وَقَالَ طَاوُسٌ فُضِّلَتَا عَلَى كُلِّ سُورَةٍ

فِي الْقُرْآنِ بِسِتِّيْنَ حَسَنَةً . رواه الدارمي

په اړه هم داسي خبره ده . او خالد چي به تر څو پوري دا دوه سورتونه ونه ويل د شپې به نه بيده کېدئ ، او طاؤس راوي وويل چي دې دوو سورتو ته د قرآن پر نورو سورتو په اندازه د شپېتو

نیکیو عظمت ورکړل سوی دی . دارمي

**تخریج**: سنن الدارمي ۲\۵۴۶، رقم: ۳۴۰۸.

**تشریح**: حضرت خالد رضي الله عنه یو جلیل القدر تابعي دی د اوویا ۷۰ صحابه کرامو د لیدني او صحبت شرف ورته حاصل دی ، همدارنګه طاوس رحمة الله علیه هم د مشهورو تابعینو څخه دی ، د خالد او طاووس دواړو څخه پورتني ذکر سوي روایتونه که څه هم مرسل دی چي دلته د صحابي واسطه ذکر سوې نه ده مګر په حکم کي مرفوع دي ځکه دا ډول خبري یوازي د رسول الله ﷺ څخه معلومیدای سي چي د صحابي په ذریعه تابعي ته رسیدلي وي ځکه نو دا خبره په ذهن کي ساتل پکار دي چي دغه روایتونه ددغه حضراتو خپل اقوال نه دي بلکه مرفوع روایتونه دي .

پر هغه یې خپل وزر خپور کړ: ددې مطلب دادی چي هغه سورت یا د هغه ثواب د مرغه شکل اختیار کړاو خپل وزر یې پر ویونکي خپور کړ چي پر هغه سایه وکړي یا دا چي هغه د خپل رحمت وزر خپاره کړل یعني په خپل پناه کي یې واخیستی او د هغه له خوا یې شفاعت او وکالت وکړ په قبر کي جګړه کوي: ددې مطلب دادی چي کوم څوک دا سورت همېشه وایي نو په قبر کي د عذاب د سپکوالي یا په قبر کي د پراخۍ او وسعت یا دا ډول نورو اسانیو او سهولت شفاعت کوي، د حضرت طاوس رحمة الله علیه د روایت الفاظ دادي چي دغه دواړو سورتو ته د قرآن کریم پر هر سورت فضیلت ورکړل سوی دی دا د هغه صحیح روایت خلاف نه دی چي سورة بقره د سورة فاتحې وروسته د قرآن کریم تر ټولو سورتونو افضل دی ، د سورة بقره فضیلت په دې اعتبار دی چي په دې کي ډېر لوړ او اعلی مضامین مذکور دي او په دغه دواړو سورتو ته ځکه فضیلت حاصل دی چي دا خپل ویونکي د قبر د عذاب څخه ساتي .

## د سورة یاسین په ویلو سره حاجتونه پوره کیږي

﴿۲۰۷۳﴾: وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ قَالَ بَلَغَنِي أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ مَنْ قَرَأَ (يس) فِي صَدْرِ النَّهَارِ قُضِيَتْ حَوَائِجُهُ. رواه الدارمي مرسلا

د حضرت عطاء بن ابی رباح رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما ته څرګنده سوې ده چي رسول الله ﷺ دا فرمایلي دي چي څوک د ورځي په پیل کي سورة یاسین ووایي د هغه حاجتونه پوره کیږي . دارمي مرسلا

**تخریج**: سنن الدارمي ۲\۵۴۹، رقم: ۳۴۱۸.

## د زکندن په وخت کي د سورة ياسين ويلو حکم

﴿۲۰۷۴﴾: وَعَنْ مُعْقِلِ بْنِ يَسَارِ الْمُزَنِي أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت معقل بن يسار المزني ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

مَنْ قَرَأَ (يس) اِبْتِغَاءَ وَجْهِ اللّٰهِ تَعَالٰى غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ فَاقْرَؤُوْهَا عِنْدَ مَوْتَاكُمْ . رواه البيهقي في شعب الإيمان.

چا چي يوازي د الله د رضا لپاره سورة ياسين ووايه د هغه مخکني گناه معاف کيږي نو دا سورت تاسو د خپلو مړو په وړاندي واياست . بيهقي

**تخريج** : البيهقي في شعب الايمان ۲\ ۴۷۹، رقم: ۲۴۵۸.

**تشريح** : د گناهو څخه صغيره گناهونه مراد دي چي هغه ددغه سورت په برکت بخښل کيږي همدارنگه کبيره گناه هم بخښل کيږي که د الله تعالى فضل او کرم او رحمت شامل حال وي . د مړو څخه مراد قريب الموت (يعني مرگ ته نژدې کسان ) دي، مطلب دادی چي کوم څوک مرگ ته نژدې وي د هغه په وړاندي سورة ياسين ويل پکار دي چي هغه د خپل ژوند په آخري گړي کي هغه واوري او د هغه معنى ته د هغه توجه وي همدارنگه ددې اوريدل به د هغه د ويلو په حکم کي سي چي د هغه د مغفرت او بخښني سبب به وي ، يا د مړو څخه مراد دا هم کېدای سي چي دغه سورت به د خپل مړي د بخښني زيات احتياج وي .

## سورة بقرة د قران کريم عظمت دی

﴿۲۰۷۵﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ أَنَّهُ قَالَ إِنَّ لِكُلِّ شَيْءٍ سَنَامًا وَإِنَّ سَنَامَ الْقُرْآنِ سُوْرَةُ الْبَقَرَةِ وَإِنَّ لِكُلِّ شَيْءٍ لُبَابًا وَإِنَّ لُبَابَ الْقُرْآنِ الْمُفَصَّلُ .

رواه الدارمي

د حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ څخه روايت دئ چي د هر شي لوړتيا وي او د قرآن لوړتيا سورة بقرة ده او د هر شي خلاصه وي او د قرآن خلاصه مفصل دئ يعني سورة حجرات څخه د قرآن کريم ترپايه پوري . دارمي .

**تخريج** : سنن الدارمي ۲\ ۵۳۹، رقم: ۳۳۷۷.

**تشریح**: سورة بقره د قرآن کریم رفعت او لوړي ځکه ده چي نه یوازي دا چي د قرآن کریم په سورتونو کي تر ټولو لوی سورت دی بلکه په دغه سورت کي ډېر زیات احکام هم مذکور دي.
مخکي په څو ځایو کي ښودل سوي دي چي مفصل د سورة حجرات څخه د قرآن کریم تر ختم پوري یعني تر سورة الناس پوري سورتو ته ویل کیږي دا سورتونه د ټول قرآن کریم خلاصه دي په دې توګه چي قرآن کریم کوم مضامین په اختصار او اجمالي توګه په متفرق سورتو کي ذکر سوي دي هغه په دغه سورتو کي په یو ځای او په تفصیل سره بیان سوي دي ځکه نو دغه سورتو ته د مفصل ویلو وجه تسمیه هم ډېره ښه ده.

﴿۲۰۷۵﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ أَنَّهُ قَالَ إِنَّ لِكُلِّ شَيْءٍ سَنَامًا وَإِنَّ سَنَامَ

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دئ چي د هر شي لوړتیا وي او د قرآن لوړتیا

الْقُرْآنِ سُوْرَةُ الْبَقَرَةِ وَإِنَّ لِكُلِّ شَيْءٍ لُبَابًا وَإِنَّ لُبَابَ الْقُرْآنِ الْمُفَصَّلُ.

رواه الدارمي

سورة بقرة ده او د هر شي خلاصه وي او د قرآن خلاصه مفصل دئ یعني سورة حجرات څخه د قرآن کریم تر پایه پوري. دارمي.

**تخریج**: سنن الدارمي ۲\۵۳۹، رقم: ۳۳۷۷.

**تشریح**: سورة رحمان ته د قرآن کریم ښکلا ځکه ویل سوي دي چي په دې کي د دنیا او آخرت د نعمتونو بیان دی د حورو د اوصافو بیان دی چي د جنت ناوي به وي او د دغه حورو د زېوراتو وغیره بیان دی.

## د سورة واقعه تاثیر

﴿۲۰۷۶﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي

قَرَأَ سُوْرَةَ الْوَاقِعَةِ فِيْ كُلِّ لَيْلَةٍ لَمْ تُصِبْهُ فَاقَةٌ أَبَدًا وَكَانَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ يَأْمُرُ بَنَاتِهِ يَقْرَأْنَ بِهَا فِيْ كُلِّ لَيْلَةٍ. رواه البيهقي في شعب الإيمان

هره شپه سورة واقعه وايي هغه به په فاقه (لوږه) کي هيڅ کله اخته نه سي او ابن مسعود به خپلو زامنو ته ويل چي دا سورت هره شپه واياست . دا دواړه حديثونه بيهقي په شعب الايمان کي نقل کړي دي .

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۲\۴۹۱، رقم: ۲۴۹۸.

**تشريح**: د فاقه معنی محتاج او اړتيا ده، ددغه ارشاد مطلب دادی چي کوم څوک هره ورځ د شپې سورة واقعه وايي نو د هغه لپاره محتاجي د تاوان او پريشانۍ باعث نه گرځي په دې وجه هغه ته د صبر او قناعت دولت ورکول کيږي يا دا چي داسي سړي ته د زړه محتاجي نه وي يعني د ظاهري محتاجۍ سربېره د هغه زړه مستغني وي ځکه چي د هغه زړه ته وسعت او پراخي تر لاسه کيږي الهي معرفت تر لاسه کيږي او د توکل او اعتماد سرمايه د هغه زړه او روح پيدا کوي او ددې سبب دا وي چي هغه سړی ددغه سورت د معنی او مفهوم څخه استفاده کوي .

په هر حال په دې خبره پوهېدل يکار دي چي شارع هغه عباداتو او نيکيو ته رغبت ورکړی دی چي نه يوازي په اخرت کي د فلاح او سعادت باعث دي بلکه په دنيوي امورو کي هم گټور او مؤثر دي چي د هغه حصول ددين لپاره ممد او معاون دي او د هغه مقصد دا وي چي خلک په هر حال په څه نا څه عبادت او نيکو کارو کي بوخت وي .

## د سورة اعلی فضيلت

﴿۲۰۷۸﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ هٰذِهِ السُّوْرَةَ (سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلٰى) رواه أحمد .

د حضرت علي ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به سورة سبح اسم ربک الاعلی ډير خوښوئ ، احمد

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۱\۹٦.

**تشريح**: رسول الله ﷺ به سورة اعلی يعني سبح اسم ربک الاعلی ډېر زيات خوښوی چي په هغه کي دغه آيت : ان هذا لفي الصحف الاولی صحف ابراهيم وموسی - دی چي د قرآن کريم پر حقانيت او صداقت شاهد او د مشرکينو او اهل کتاب د خيالاتو او اعتقاداتو ټينګ ترديد دی.
حضرت ابوذر ﷛ وايي چي ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي اې د الله رسوله ! د حضرت ابراهيم ؑ په صحيفو کي څه وه ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل په هغه کي ټول مثالونه بيان

سوي دي مثلا ويل سوي دي چي اې مسلط نفسه او فريب خوره پاچا ما ته دنيا ته ددې لپاره نه وې لېږلې چي تا دنيا جمع کول پيل کړل بلکه ما ته دنيا ته ددې لپاره لېږلې وې چي ته د مظلومانو د ښېرا څخه ځان وساتې که څه هم مظلوم کافر وي، د سليم الطبع او عقلمند انسان لپاره لازم دي چي هغه يوازي د درو شيانو طمع وکړي ۱: معاد يعني د آخرت لپاره د توښې تيارول، ۲: يا د خپل ژوند د اصلاح ۳: يا د غير حرام څخه د لذت او ګټې تر لاسه کول، د عقلمند لپاره لازم دي چي پر خپل زمانې باندي نظر کونکی وي خپل حال ته متوجه وي او د خپل ژبي حفاظت کونکی وي څوک چي د خپل خبرو د خپل اعمالو سره محاسبه وکړي د هغه کلام به زيات نه وي هغه به يوازي هغه کلام کوي چي ضروري وي.

ابوذر رضي الله عنه وايي چي ما عرض وکړ اې د الله رسوله! د حضرت موسی عليه السلام په صحيفو کي څه وه؟ رسول الله ﷺ وفرمايل په هغه کي عبرتونه يعني بېرونکي خبري وې مثلا په هغو کي ويل سوي وه چي ما ته پر هغه سړي تعجب دی چي پر مرګ باندي يقين لري مګر ددې سربېره هغه خوشحاله هم وي ما ته پر هغه سړي تعجب دی چي دنيا او د هغه انقلابويني او بيا هم په هغه سره مطمئن وي او ما ته پر هغه سړي تعجب دی چي سبا ته د قيامت پر ورځ يقين لري او بيا هم عمل نه کوي.

## جامع سورت

﴿۲۰۷۹﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَمْرٍو قَالَ أَتَى رَجُلٌ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
د حضرت عبدالله ابن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړی نبي کريم ﷺ ته راغلی

فَقَالَ أَقْرِئْنِي يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَقَالَ اقْرَأْ ثَلَاثًا مِنْ ذَوَاتِ الر فَقَالَ كَبُرَتْ سِنِّي
او ويې ويل اې د الله رسوله! ما ته (د ويلو لپاره) يو شی راوښيه؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ته دغه درې سورتونه وايه چي د هغه په پيل کي (الر) دي، هغه وويل زما عمر زيات سوئ دئ

وَاشْتَدَّ قَلْبِي وَغَلُظَ لِسَانِي قَالَ فَاقْرَأْ ثَلَاثًا مِنْ ذَوَاتِ حاميم فَقَالَ مِثْلَ
زما زړه سخت دئ او ژبه مي غټه ده يعني ددې کبله دا سورتونه نه سم يادولای، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ته په دې سورتو کي درې سورتونه وايه چي د هغه په پيل کي (حم) دئ، هغه هم هغه وويل کوم چي يې مخکي ويلی وه،

مَقَالَتِهِ فَقَالَ الرَّجُلُ يَا رَسُولَ اللهِ أَقْرِئْنِي سُورَةً جَامِعَةً فَأَقْرَأَهُ رسول الله

او عرض يې وکړ اې د الله رسوله ! ما ته يو داسي سورت پکار دئ چي جامع وي يعني په هغه کي ډيري خبري يو ځای سوي وي ، رسول الله ﷺ وفرمايل:

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا زُلْزِلَتِ الْأَرْضُ حَتَّى فَرَغَ مِنْهَا فَقَالَ الرَّجُلُ وَالَّذِي

اذا زلزلت الارض ووايه، تر څو چي د هغه څخه فارغ سو يعني ټول سورت يې ووايه، بيا هغه سړي وويل : په هغه ذات دي مي قسم وي چي

بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَا أَزِيدُ عَلَيْهَا أَبَدًا ثُمَّ أَدْبَرَ الرَّجُلُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

وَسَلَّمَ أَفْلَحَ الرُّوَيْجِلُ مَرَّتَيْنِ . رواه احمد وابوداؤد .

تا سو يې په حق راليږلي يا ست زه به تر دې هيڅکله زيات نه کړم ، بيا چي هغه سړی ستون سو نو رسول الله ﷺ وفرمايل : دا سړی کامياب سو ، دا الفاظ رسول الله ﷺ دوه واره وفرمايل . احمد او ابوداؤد .

**تخريج** : الامام احمد في مسنده ۲\۱۶۹، وابوداؤد ۲\۱۱۹، رقم: ۱۳۹۹.

**تشريح** : د کومو سورتونو په پيل کي چي لفظ د الر وي د هغو شمېر پنځه دی د دغه سورتونو په باره کي رسول الله ﷺ پوښتنه کونکي ته وفرمايل چي په دې کي يو درې سورتونه وايه .

سورة اذا زلزلت الارض ته جمع سورت ځکه ويل سوي دي چي په دغه سورت کي دغه يو آيت دی : فمن يعمل مثقال ذرة خيرا يره ومن يعمل مثقال ذرة شرا يره، چا چي د ذرې په اندازه نيکي وکړه هغه به ويني او چا چي د ذرې په اندازه بدي وکړه هغه به هم ويني .

په دغه آيت کي هغه ټول شيان راغلي دي چي د هغو د کولو حکم ورکړل سوی دی او د هغو د مجموعې نوم دی خېر او ښېگڼه او هغه ټول شيان هم په دې کي شامل دي چي د هغو څخه د ځان ساتلو حکم سوی دی چي د هغو د مجموعې نوم شر او بدي ده.

## د سورة التکاثر فضيلت

﴿۲۰۸۰﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا يَسْتَطِيعُ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا په تاسو کي څوک هره

أَحَدُكُمْ أَنْ يَّقْرَأَ أَلْفَ آيَةٍ فِيْ كُلِّ يَوْمٍ ؟ قَالُوْا وَمَنْ يَّسْتَطِيْعُ أَنْ يَّقْرَأَ أَلْفَ آيَةٍ

ورځ د زرو آياتو توان لري ؟ صحابه کرامو عرض وکړ څوک د دې توان لري چي هره ورځ زر

فِيْ كُلِّ يَوْمٍ ؟ قَالَ أَمَا يَسْتَطِيْعُ أَحَدُكُمْ أَنْ يَّقْرَأَ ( أَلْهَاكُمُ التَّكَاثُرُ ) . رواه البيهقي في شعب الإيمان

آياتونه ووايي ، رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا په تاسو کي څوک د دې توان لري چي هره ورځ الهاکم التکاثر ووايي . بيهقي په شعب الايمان کي .

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۲\ ۴۹۸، رقم: ۲۵۱۸.

**تشريح**: مطلب دادی که چيري يو څوک هره ورځ دغه سورت وايي نو هغه ته د زرو آياتونو ثواب ورکول کيږي ځکه په دغه سورت کي د دنيا څخه بې رغبتي سوې ده او آخرت ته د متوجه کېدو ترغيب ورکړل سوی دی .

## د قل هو الله احد ويلو تاثير او برکت

﴿۲۰۸۱﴾: وَعَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ مُرْسَلاً عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سعيد بن المسيب رضي الله عنه څخه مرسلا روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

قَالَ مَنْ قَرَأَ ( قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ ) عَشَرَ مَرَّاتٍ بُنِيَ لَهُ بِهَا قَصْرٌ فِي الْجَنَّةِ وَمَنْ

څوک چي لس واره قل هو الله احد ... ووايي نو د هغه لپاره به په جنت کي يوه ماڼۍ جوړه سي او

قَرَأَ عِشْرِيْنَ مَرَّةً بُنِيَ لَهُ بِهَا قَصْرَانِ فِي الْجَنَّةِ وَمَنْ قَرَأَهَا ثَلاثِيْنَ مَرَّةً بُنِيَ

څوک چي يې شل واره ووايي نو د هغه لپاره به په جنت کي دوې ماڼۍ جوړې سي او څوک چي يې ديرش واره ووايي نو د هغه لپاره به په جنت کي

لَهُ بِهَا ثَلاثَةُ قُصُوْرٍ فِي الْجَنَّةِ فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ وَاللهِ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِذًا

درې ماڼۍ جوړې سي . ( د دې په اورېدو سره ) حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه وويل په الله جل جلاله دي مي قسم وي اې د الله رسوله !

لَنُكَثِّرَنَّ قُصُوْرَنَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللهُ أَوْسَعُ مِنْ ذٰلِكَ .

رواه الدارمي

داسي خو به موږ په جنت كي ډير محلونه جوړ كړو، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: الله ﷻ تر دې هم زيات اوسع دئ، يعني د هغه فضل ډير پراخ دئ. دارمي.

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\۵۵۱، رقم: ۳۴۲۹.

## د شپې د قران كريم ويلو اثر

﴿۲۰۸۲﴾: وَعَنِ الْحَسَنِ مُرْسَلاً أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَرَأَ

د حضرت حسن ﷛ څخه مرسلا روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوك چي د شپې

فِيْ لَيْلَةٍ مِائَةَ آيَةٍ لَمْ يُحَاجَّهُ الْقُرْآنُ تِلْكَ اللَّيْلَةَ وَمَنْ قَرَأَ فِيْ لَيْلَةٍ مِائَتَيْ آيَةٍ

سل آياتونه ووايي نو د هغه سره به په هغه شپه كي قرآن جګړه نه كوي او څوك چي د شپې دوه سوه آياتونه تلاوت كړي

كُتِبَ لَهُ قُنُوْتُ لَيْلَةٍ وَمَنْ قَرَأَ فِيْ لَيْلَةٍ خَمْسِمِائَةٍ إِلَى الْأَلْفِ أَصْبَحَ وَلَهُ قِنْطَارٌ

د هغه لپاره د شپې د قيام (تهجد) ثواب ليكل كيږي او څوك چي د شپې د پنځو سوو څخه تر زرو پوري آياتونه ووايي نو هغه به په داسي حال كي سهار كوي چي د هغه لپاره به د قنطار

مِّنَ الْأَجْرِ قَالُوْا وَمَا الْقِنْطَارُ؟ قَالَ اثْنَا عَشَرَ أَلْفًا . رواه الدرامي

په اندازه ثواب وي، صحابه كرامو پوښتنه وكړه: قنطار څه ته وايي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: دوولس زره (درهم يا دينار). دارمي.

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\۵۵۷، رقم: ۳۴۵۹.

**تشريح**: قرآن كريم به د هغه سره جګړه نه كوي: د دې مطلب دادی چي كوم څوك قرآن كريم نه وايي او د هغه سره تعلق نه ساتي نو قرآن كريم د هغه دښمن سي او پر هغه لعنت وايي نو د شپې د قرآن كريم يو څو آياتونه ويل په هغه شپه كي د قرآن كريم د دښمنۍ دفع او د هغه د حق ادا كولو لپاره كافي دي.

سړي دم کوي او رسول الله ﷺ به دغه عمل خوښوي.

دار قطني او ابن عساکر د زيب ابن سائب رضي الله عنه څخه نقل کوي چي نبي کريم ﷺ د سورة فاتحې په ويلو سره پر هغه دم کړی او د دغه سورت په ويلو سره به يې خپل ناړي مبارکي د هغه د بدن پر هغه برخه و موږلې کوم ځای چي به درد وو.

بزار رحمه الله په خپل مسند کي د انس بن مالک رحمه الله څخه نقل کړي دي چي نبي کريم ﷺ وفرمايل کوم څوک چي خپل اړخ پر بستره کښيږدي (يعني د ښيده کېدو اراده وکړي) او بيا د سورة فاتحه او قل هو الله احد په ويلو سره هغه پر ځان دم کړي نو هغه د هر آفت او بلا څخه خوندي سو مګر دا چي مرګ يې راغلی وي يعني د مرګ څخه يې هيڅ شي نسي خوندي کولای.

عبد حميد په خپل مسند کي د ابن عباس رضي الله عنه څخه په مرفوع طريقه دا روايت نقل کړی دی چي فاتحه الکتاب يعني سورة فاتحه د ثواب په اعتبار د قرآن کريم د دوه پر درې برخي سره برابر ده، ابو الشيخ طبراني، ابن مردويه، ديلمي او ضياء مقدسي روايت کوي چي د نبي کريم ﷺ ارشاد دی ما ته د عرش د خزانې څخه څلور شيان راکړل سوي دي د دغه خزانو څخه د دغه څلورو شيانو څخه پر ته بل هيڅ شی هيچا ته نه دی ورکړل سوی او هغه څلور شيان دا دي:

۱- ام الکتاب (سورة فاتحه)، ۲: آيت الکرسي، ۳: د سورة بقرې آخري آياتونه، ۴: سورة کوثر.

ابو نعيم او ديلمي د ابوذر رضي الله عنه څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل سورة فاتحه د هغه شي څخه کفايت کوي کوم چي د قرآن کريم بل هيڅ سورت او آيت کفايت نه کوي که سورة فاتحه د ترازو په يوه پله کي واچول سي او پاته قرآن کريم په بله پله کي واچول سي نو يقينا سورة فاتحه به د او و قرآنو برابر وي.

ابو عبيد رحمه الله په فضائل قرآن کي د حسن بصري رحمه الله څخه روايت کوي چي نبي کريم ﷺ وفرمايل کوم څوک چي سورة فاتحه ووايي هغه ګويا تورات، انجيل، زبور او قرآن کريم ووايه. په تفسير وکيع، کتاب المصاحف ابن انباري، کتاب العظمة، ابو الشيخ او حلية اولياء ابو نعيم کي منقول دي چي ابليس ملعون د زارۍ او نوحه کولو لپاره څلور واره پر خپل سر خاوري اچولي دي ۱: اول هغه وخت کله چي هغه ملعون وګرځول سو، ۲: دوهم هغه وخت کله چي هغه د آسمان څخه مځکي ته راکښته کړل سو، ۳: دريم هغه وخت کله چي نبي کريم ﷺ په نبوت سره مشرف سو، ۴: څلورم هغه وخت کله چي سورة فاتحه نازل سوه.

ابو الشیخ په کتاب الثواب کي لیکلي دي چي کوم چا ته یو اړتیا پېښه سي نو هغه ته پکار ده چي هغه سورة فاتحه ووایي او د هغه وروسته د خپل حاجت لپاره دعاء وکړي انشاء الله تعالی د هغه اړتیا او حاجت به پوره سي.

ثعلبي رحمة الله عليه د شعبي رحمة الله عليه څخه روایت کوي چي یو سړی د هغه په خدمت کي حاضر سو او د ګردې (پښتورګو) د درد شکایت یې وکړ نو هغه ته یې وویل چي تا ته پکار دي چي د اساس القرآن په ویلو سره د درد پر ځای دم کړې انشاء الله تعالی شفا به تر لاسه کړې، هغه سړي پوښتنه وکړه چي اساس القرآن څه ته وایي، شعبي رحمة الله عليه ورته وویل فاتحه الکتاب یعني سورة فاتحه.

په مشائخ مجرب اَعمال کي دا مذکور دي چي سورة فاتحه اسم اعظم دی دا سورة د هر مطلب او حاجت لپاره ویل پکار دی په دې اړه د سورت د ویلو دوې طریقې منقول دي:

۱: اول دا چي دغه سورت د سهار د سنت او فرض په مینځ کي یو څلوېښت ۴۱ واره هره ورځ تر څلوېښت ورځو پوري داسي وویل سي چي د بسم الله الرحمن الرحیم میم د الحمد د لام سره یو ځای کړل سي یعني بسم الله الرحمن الرحیم الحمد لله رب العالمین ....، دغه سورت تر ټاکل سوو ورځو پوري په مذکوره طریقې سره د ویلو وروسته به انشاء الله مطلب تر لاسه سي، که د یو ناروغ یا جادو سوي شفا مطلوب وي نو په مذکوره طریقې سره د دغه سورت په ویلو سره پر اوبو دي یې دم کړي او هغه دي پر ناروغ یا جادو سوي باندي وڅښل سي انشاء الله تعالی شفاء به تر لاسه کړي.

۲: دوهم دا چي د نوي میاشتي د یکشنبې په ورځ د سهار د سنت او فرض لمانځه په مینځ کي د بسم الله الرحمن الرحیم د میم د الحمد لله د لام سره د یو ځای کولو د قید څخه پرته اوویا ۷۰ واره دي دغه سورت ووایي د هغه وروسته دي هره ورځ همداسي کوي مګر داسي چي هره ورځ د مذکوره شمېر څخه لس واره کمي کوي یعني د یکشنبې په ورځ اویا واره په دوهمه ورځ شپیته واره او په دریمه ورځ پنځوس واره همدارنګه لس لس واره کمول پکار دي تر دې چي د شنبې په ورځ ختم سي که په اوله میاشت کي مطلب تر لاسه سي خو ډېره ښه کنه نو په دویمه میاشت او دریمه میاشت کي دي همداسي وکړي انشاء الله تعالی مقصد به یې پوره سي.

د امراض مزمنه (پخوانیو ناروغیو) د شفا لپاره دغه سورت پر چیني پیالې یا غاب باندي په ګلاب او مشک او زعفران سره په لیکلو څښل یو مجرب عمل دی همدارنګه د غاښو درد، د نس درد او نورو دردو لپاره اووه واره د سورة فاتحې په ویلو سره دم کول مجرب دی.

## د سورة بقرې فضائل

د سورة بقرې هم ډېر زيات فضيلتونه نقل سوي دي، په صحيح مسلم کي د انس بن مالک رضي الله عنه څخه دا قول منقول دی چي په موږ کي به چا سورة بقره او سورة آل عمران وايه نو په موږ کي به د هغه مرتبه او عظمت ډېر لوړ کېدی ددې خبري تائيد ددې څخه هم کيږي چي رسول الله ﷺ يو ځای ته لښکر لېږی د هغه لښکر د امير په ټاکلو کي تردد پيدا سو رسول الله ﷺ د هغه لښکر هر کس را وغوښت د هغه څخه يې پوښتنه کول چي تا د قرآن کريم کوم سورت ياد کړی دی د هغه چي به کوم سورت ياد وو هغه به يې ښودی تر دې چي يو زلمي ته واری ورسيدی چي په عمر کي تر ټولو کوچنی وو رسول الله ﷺ د هغه څخه پوښتنه وکړه چي ستا کوم سورت په ياد دی هغه وويل چي فلانی او فلانی سورت او سورة بقره هم رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ستا سورة بقره هم په ياد ده هغه زلمي وويل هو ، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ځه ته ددغه لښکر امير وټاکل سوې .

بيهقي په شعب الايمان کي دا روايت نقل کړی دی چي حضرت عمر فاروق رضي الله عنه سورة بقره د هغه د حقائقو او نکاتو سره د دوولس کالو په وخت کي ووېل او په کومه ورځ چي هغه دغه سورت ختم کړی نو په هغه ورځ يې يو اوښ ذبح کړ او د رسول الله ﷺ په اصحابو يې وخوړی .

په دې اړه د ابن عمر رضي الله عنه څخه دا هم منقول دي چي هغه تر اتو کلو پوري ددغه سورت په ويلو کي خپل ځان بوخت وساتی د اته کاله وروسته يې دا سورت ختم کړی ، خلاصه دا چي د رسول الله ﷺ او اصحابو کرامو په نزد دغه سورت ته چي کوم عظمت او فضيلت تر لاسه وو هغه بل هيڅ سورت ته تر لاسه نه وو .

ددغه سورة د مجرب خواصو څخه يو دادی چي په کوم فصل کي پر کوچنيانو غټي دانې (د کال دانې) راخيږي نو هغه وخت چي د کوم کوچني روغتيا منظور وي د هغه په مخکي دي په تش نس دغه سورت په تجويد او ترتيل سره وويل سي او پر هغه دي دم کړل سي انشاء الله تعالی روغتيا به تر لاسه کړي ، کله چي دغه سورت پيل کړل سي نو دوه نيم پاوه وريجي دي چي په هغه کي مستې او بوره هم ګډه سي او په هغه مجلس کي دي يې يو مستحق ته د خوراک لپاره ورکړي .

## د سورة کهف د آيت فضائل

په در منثور کي منقول دي چي نبي کريم ﷺ وفرمايل کوم څوک چي د سورة کهف لومړني لس آياتونه په ياد کړي هغه به ددجال د فتنې څخه خوندي سي همدارنګه هغه څوک به هم د

دجال د فتنې څخه خوندي وي کوم چي د دغه سورت آخري لس آياتونه په ياد کړي او کوم څوک چي د بېده کېدو پر وخت د سورة کهف لس آياتونه وايي هغه به د دجال د فتنې څخه وساتل سي او کوم څوک چي د بېده کېدو پر وخت د دغه سورة آخري برخه وايي نو د هغه لپاره به د قيامت په ورځ د هغه د قرائت څخه د هغه تر قدمه پوري نور وي (د دغه جملې په معنی کي دوه احتماله دي يو خو دا چي چيري دی تلاوت کوي هلته به د هغه ځای څخه بيا تر هغه ځايه پوري چيري چي دی د قيامت په ورځ ولاړ وي د هغه لپاره نور وي او يا دا چي د قرائت د ځای څخه مراد د ويونکي مخ دی يعني د قيامت په ورځ به د هغه لپاره د هغه د مخ څخه د هغه تر پښو پوري نور وي).

په يو بل روايت کي دي چي کوم څوک د جمعې په ورځ سورة کهف وايي نو د هغه جمعې څخه تر بلي جمعې پوري به د هغه د صغيره ګناهو کفاره وي همدارنګه په يو بل روايت کي دي چي په کوم کور کي سورة کهف ويل کيږي په هغه شپه په هغه کور کي شيطان نه داخليږي.

## د سورة ملک او سورة ياسين وغيره فضيلت

د نبي کريم ﷺ ارشاد دی کوم څوک چي د ماخستن وروسته څلور رکعته لمونځ وکړي په داسي توګه چي په اولو دوو رکعتو کي قل يا ايها الکافرون او قل هو الله احد ووايي او په وروسته دوو رکعتو کي تبارک الذي او الم تنزيل السجده ووايي نو د هغه لپاره د دغه څلورو رکعتو ثواب د داسي څلورو رکعتو د ثواب په اندازه ليکل کيږي کوم چي په ليلة القدر کي وکړل سي، همدارنګه په يو بل روايت کي دي چي کوم څوک د ماښام او ماخستن د لمانځه په مينځ کي سورة تبارک الذي او الم تنزيل السجده وايي نو ګويا هغه په ليلة القدر کي شپه رڼه کړل.

په يو بل روايت کي د حضرت کعب رضي الله عنه څخه روايت دی چي کوم څوک د شپې الم تنزيل السجده او تبارک الذي وايي نو د هغه لپاره اويا ۷۰ نيکۍ ليکل کيږي او د هغه اويا بدۍ ليري کيږي او اويا درجې يې لوړيږي، او په يوه روايت کي دي چي کوم څوک د شپې الم تنزيل السجده او تبارک الذي وايي نو الله تعالی د هغه لپاره د ليلة القدر د ثواب په ډول ثواب ليکي.

ابن خريس، ابن مردويه، خطيب او بيهقي د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل په تورات کي د سورة ياسين نوم معمه اېښودل سوی دی د هغه مطلب دادی چي دغه سورت د خپل ويونکي لپاره د دنيا او آخرت پر ټولو نيکيو او ښېګڼو باندي مشتمل دی د خپل ويونکي څخه د دنيا او آخرت مصيبت دفع کوي او د هغه څخه د آخرت

بهره لیري کوي او ددې نوم رافعه، یا دافعه، یا خافضه او یا قاضیه هم ابښودل سوی دی ددې مطلب دادی چي دغه سورت د مؤمنانو مرتبه لوړوي او کافران کښته کوي او د خپل ویونکي ځخه هره بدي دفع کوي او د هغه هر حاجت پوره کوي، کوم څوک چي دغه سورت وایي نو د هغه په حق کي د شل حجونو ثواب دی او کوم څوک چي دغه اوري نو د هغه په حق کي دداسي دینارو برابر دی کوم چي د الله تعالی په لار کي (جهاد) خرڅ کړل سي او کوم څوک چي دا لیکي او څښني یې نو د هغه په نس کي زر نوره، زر برکتونه او زر رحمتونه داخلیږي او د هغه څخه هره کینه او هر ډول درد او تکلیف وځي.

په یوه روایت کي دي چي نبي کریم ﷺ وفرمایل زه دا خوښوم چي سورة یاسین زما د امت د هر کس په زړه کي وي (یعني د هر چا په یاد وي) او رسول الله ﷺ وفرمایل کوم څوک چي هره ورځ د سورة یاسین پر ویلو باندي همېشتوب کوي او بیا هغه مړ سي نو هغه ته د شهادت مرګ په برخه کیږي او رسول الله ﷺ وفرمایل چي کوم څوک د ورځي په شروع کي (یعني د سهار د لمانځه وروسته) سورة یاسین وایي نو د هغه حاجتونه پوره کیږي.

حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ فرمایي چي کوم څوک سورة یاسین د سهار په وخت کي وایي نو هغه ته تر ماښام پوري د هغه ورځي آساني ورکول کیږي او کوم څوک چي د شپې په لومړني برخه کي وایي نو هغه ته تر سهار پوري د هغه شپې اساني ورکول کیږي، بیهقي د ابو قلابه رحمۃ اللہ علیہ څخه چي د سترو تابعینو څخه دی روایت نقل کوي چي کوم څوک سورة یاسین ووایي د هغه بخښنه کیږي او کوم څوک چي د لوږي په حالت کي دغه سورت ووایي نو هغه مړیږي او کوم څوک چي په داسي حالت کي ووایي چي لاره ځیني ورکه وي نو خپل لار به تر لاسه کړي او کوم څوک چي په داسي حالت کي ووایي چي خپل حیوان ځیني ورک سوی وي نو هغه به تر لاسه کړي او کوم څوک چي د خوراک په حالت کي کله چي د خوراک د کمۍ بېره وي دغه سورت ووایي نو هغه خوراک به کافي سي او کوم څوک چي سورة یاسین مړي یا مرګ ته نژدې کس ته ووایي نو هغه پر هغه مړي یا مرګ ته نژدې کس باندي به اساني وسي او کوم څوک چي دغه سورة د یو ښځي په مخکي ووایي چي هغه د کوچني د پیدا کېدو په سخت کي درد کي اخته وي نو د هغه د کوچني په پیدا کېدو کي به اساني تر لاسه سي او کوم څوک چي دغه سورت ووایي نو لکه چي هغه پوره قرآن کریم یو ولس واره ووایه او په یاد ولرئ چي د هر شي زړه وي او د قرآن کریم زړه سورة یاسین دی.

مقبري رحمۃ اللہ علیہ وایي که چیري یو ډول بېره وي د وخت د حکومت څخه یا د دښمن څخه د

تکلیف رسیدو اندېښنه وي نو سورة یاسین دي ووایي انشاء الله د هر ډول ېږي او اندېښنې څخه به خوندي سي ، د نبي کریم ﷺ ارشاد دی څوک چي د جمعې په ورځ سورة یاسین او الصافات ووایي او بیا د الله تعالی څخه یو شی وغواړي نو الله تعالی به هغه شی ورکړي .

ابن عباس رضی الله عنه فرمایي چي موږ به د رسول الله ﷺ د لمانځه څخه فارغه کېدل په دې پېژندل چي رسول الله ﷺ به دغه آیت : سبحان ربک رب العزة عما یصفون... الخ، وایه او رسول الله ﷺ به فرمایل کوم څوک چي د لمانځه څخه وروسته دغه آیت درې واره وایي نو بېله شکه هغه په پوره پیمانې سره ثواب تر لاسه کړ، رسول الله ﷺ به دا هم فرمایل چي د چا دا خبره خوښه وي چي هغه د قیامت په ورځ د پوره ثواب وړ سي نو هغه ته پکار ده چي هغه د خپل مجلس په آخر کي کله چي د ولاړېدو اراده ولري دغه آیت : سبحان ربک ..الخ، ووایي .

نبي کریم ﷺ فرمایلي دي چي الله تعالی ما ته سبع طول (یعني اووه لوی سورتونه) د قرآن کریم په شروع کي د تورات پر ځای راکړی دی د الرات څخه (یعني هغه سورتونه چي په شروع کي یې الر یا المر وي) تر طواسین (یعني هغه سورتونه چي د هغو په شروع کي طس یا طسم وي) پوري د انجیل پر ځای راکړي دي ، د طواسین او حامیمون (یعني هغه سورتونه چي د هغو په شروع کي حم وي) په مینځ کي سورتونه د زبور پر ځای راکړل سوي دي او د حامیمون او مفصل په ذریعه ما ته امتیاز او فضیلت راکړل سوی دی ، زما څخه مخکي هیڅ نبي دغه سورتونه نه دي ویلي .

ابن عباس رضی الله عنه فرمایي چي د هر شي یو خلاصه وي او د قرآن کریم خلاصه حامیمون دی ، د سمرة ابن جندب رضی الله عنه څخه مرفوع روایت دی چي حامیمون د جنت د باغو څخه باغونه دي .

د نبي کریم ﷺ ارشاد دی چي حامیمون اووه دي (یعني هغه سورتونه چي په شروع کي یې حم دی ) او د دوږخ دروازې هم اووه دي په دې کي هر حم به د قیامت په ورځ د دوږخ پر هره دروازه ولاړ وي او هر یو به عرض کوي چي اې پروردګاره ! د دغه دروازې په ذریعه هغه سړی په دوږخ کي داخل مه کړې کوم چي پر ما باندي ایمان درلودی او زه یې ویلم ، او رسول الله ﷺ وفرمایل لکه څرنګه چي د هري درختي میوه وي همداسي د قرآن کریم میوې حامیمون دي هغه باغونه دي ارزاني کونکي ، مړونکي د تجارت ځای نو کوم څوک چي دا خوښوي چي هغه د جنت په باغو کي تفریح وکړي نو هغه ته پکار دي چي هغه حامیمون ووایي .

بیهقي په شعب الایمان کي نقل کړي دي چي نبي کریم ﷺ به تر هغه وخته پوري نه بېده کېدی تر څو چي به یې تبارک الذي او حم السجده ویلي نه وای ، په یو بل روایت کي ډېر چي

كوم څوک د جمعې په شپه كي حم الدخان او سورة ياسين ووايي نو هغه به په داسي حال كي سهار كوي چي د هغه بخښنه به سوې وي ، په يو بل روايت كي دي چي كوم څوک د جمعې په شپه يا د جمعې په ورځ حم الدخان وايي نو الله تعالى د هغه لپاره په جنت كي يو كور جوړوي او په يوه روايت كي دي چي كوم څوک د جمعې په شپه سورة دخان وايي نو هغه په داسي حال كي سهار كوي چي د هغه بخښنه سوې وي او د هغه نكاح به د حور عين سره كيږي او كوم څوک چي د شپې سورة دخان وايي نو د هغه مخكني گناهونه بخښل كيږي .

رسول الله ﷺ فرمايلي دي كوم څوک چي الم تنزيل ، ياسين ، اقتربت الساعة او تبارک الذي وايي نو دغه سورتونه به د هغه لپاره نور وي او د شيطان او شرک څخه به ورته پناه وكرځي او د قيامت په ورځ به يې درجې لوړي سي .

په يو بل روايت كي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل كوم څوک چي هره شپه اقتربت الساعة وايي نو الله تعالى به د قيامت په ورځ په داسي حال كي را پورته كړي چي د هغه مخ به د څوارلسمي شپې د سپوږمۍ په څېر ول ځلانده وي ، او همدارنگه رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي د سورة اذا وقعت او سورة رحمن ويونكي به د ځمكي او آسمان د اوسيدونكي په مينځ كي د ساكن الفردوس په نامه بلل كيږي يعني دغه خوشبخته كسان به په جنت الفردوس كي كوم چي تر ټولو لوړ جنت دی اوسيږي .

رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي سورة الواقعه سورة الغنى دی دا واياست او خپل اولادو ته يې ښياست او په يوه بل روايت كي دي چي دا خپلو ښځو ته ښياست .

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي هغې به ښځو ته دا ويل چي په تاسو كي دي څوک د سورة واقعه د ويلو څخه هيڅ شی منع نه كړي .

روايت دی چي رسول الله ﷺ يو سړي ته وفرمايل : كله چي ته د بېده كېدو لپاره خپلي بسترې ته ځې نو سورة حشر وايه ، او په يو بل روايت كي دي چي نبي كريم ﷺ وفرمايل كوم څوک چي په الله تعالى سره د شيطان څخه پناه غواړي او بيا درې واره د سورة حشر آخري برخه ووايي نو الله تعالى اوويا زره ملائكي را استوي او هغه شيطانان تر مابنام پوري د هغه څخه ليري ساتي او د رسول الله ﷺ ارشاد دی چي كوم څوک د سورة حشر آخري آياتونه په ورځ يا شپه كي وايي او په هغه ورځ يا شپه كي هغه مړ سي نو د هغه لپاره جنت واجب سو .

رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي زه دا خوښوم چي زما د امت د هر كس په زړه كي تبارک الذي وي (يعني د هر چا دغه سورت په ياد وي) .

عکرمه ابن سیان رحمة الله علیه وایي چي ما د اسماعیل رحمة الله علیه په مخکي قرآن کریم وایه کله چي زه سورة والضحی ته ورسېدم نو هغه وفرمایل چي د سورة والضحی څخه وروسته تر آخر پوري د هر سورت پر ختمېدو باندي الله اکبر وایه ځکه چي ما د عبدالله ابن کثیر رحمة الله علیه په مخکي قرآن کریم وایه او زه سورة والضحی ته ورسېدم نو هغه ماته وویل چي ددغه سورت وروسته تر آخر پوري الله اکبر وایه ، ابن عباس رضي الله عنه هم ددې خبري حکم کړی دی هغه فرمایي چي ددې خبري حکم ابی بن کعب رضي الله عنه وکړی او هغه ما ته وویل چي ما ته رسول الله ﷺ ددې خبري حکم کړی دی.

رسول الله ﷺ فرمایلي دي چي اذا زلزلت د نیم قرآن کریم برابر دی او والعادیات هم د نیم قرآن کریم برابر دی او رسول الله ﷺ فرمایلي دي چي کوم څوک د شپې زر آیاتونه وایي هغه به د الله تعالی سره په داسي حال کي ملاقات کوي چي خاندي به وویل سول اې دالله رسوله ! د زرو آیاتو ویلو طاقت څوک لري ؟. رسول الله ﷺ وفرمایل د بسم الله الرحمن الرحیم په ویلو سره الهاکم التکاثر ...الخ، وایاست او بیا یې وفرمایل قسم دي مي په هغه ذات وي چي د هغه په قبضه کي زما روح دی دغه سورة د زرو آیاتو برابر دی .

ابوالشیخ په عظمت کي او ابو محمد سمرقندي د قل هو الله احد په فضائلو کي د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت کوي چي د خیبر یهود د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سول او وه یې ویل چي اې ابوالقاسم ﷺ ! الله تعالی ملائکي د نور حجاب څخه، آدم علیه السلام د حماء مسنون (یعني ورستو غوښو) څخه ، ابلیس د اور د شغلې څخه ،آسمان د دود څخه او مځکي د اوبو د ځګ څخه پیدا کړه نو تاسو موږ د خپل رب په باره کي وښیاست چي الله تعالی د کوم شي څخه پیدا سو؟ نبي کریم ﷺ هغوئ ته هیڅ جواب ورنه کړ تر دې چي حضرت جبرائیل علیه السلام دغه سورت یعني قل هو الله احد راوړ ، ددې مطلب دادی چي اې محمد ﷺ! ته دوئ ته ووایه چي الله تعالی یوازي دی نه د هغه اصول سته او نه فروع او نه د هغه څوک شریک دی، الله الصمد الله تعالی بې پروا او مستغني دی نه هغه خوراک کوي او نه هغه یو شي ته اړتیا او ضرورت لري ، ددغه ټول سورت په ویلو سره یې هغوئ ته واوروئ ، په دغه سورت کي نه د جنت ذکر دی او نه د دوږخ ، نه د حلالو شیانو ذکر دی او نه د حرامو شیانو بلکه دغه سورت الله تعالی یوازي خپل ځان ته منسوب کړی دی نو دغه سورت په خاصه توګه د الله تعالی لپاره دی یعني ددغه سورت په ذریعه الله تعالی د خپل ذات او صفات او د وحدانیت حقیقت ښودلی دی ځکه نو کوم څوک چي دغه سورت درې واره ووایي لکه چي هغه ټول وحي (یعني قرآن کریم) ووایه، کوم څوک چي دغه سورت دېرش واره ووایي نو په هغه ورځ د دنیا هیڅ سړی د هغه د فضیلت برابر نه وي

مگر هغه څوک چي هغه تر دې هم زيات دغه سورت ووايي ، کوم څوک چي دغه سورت دوه واره ووايي نو هغه به په جنت الفردوس کي اوسيږي او کوم څوک چي خپل کورته د داخلېدو پر وخت دغه سورت دري واره ووايي نو هغه به د فقر او محتاجۍ څخه ليري وي .

په يو بل روايت کي دي چي يوه شپه رسول الله ﷺ ټوله شپه داسي تېره کړه چي تر سهاره پوري يې دغه سورت وايه . په يو بل روايت کي دي چي کوم څوک قل هو الله احد ووايي نو هغه لکه چي د قرآن کريم دريمه برخه وويل ، او په يو بل روايت کي دي چي کوم څوک دغه سورت دوه سوه واره ووايي نو د هغه د دوو سوو کالو گناه بخښل کيږي (يعني د هغه ډېر زيات گناهونه بخښل کيږي ) .

او په يو بل روايت کي دي چي کوم څوک قل هو الله احد پنځوس واره ووايي د هغه د پنځوسو کالو گناه بخښل کيږي ، په يو بل روايت کي دي چي نبي کريم ﷺ وفرمايل کوم څوک چي هره ورځ دوه واره قل هو الله احد ووايي نو د هغه لپاره پنځلس سوه نيکۍ ليکل کيږي او د هغه د پنځوسو کالو گناه ختميږي مگر دا چي پر هغه پور باندي نه وي .

ابن سعيد ، ابن خريس ، ابويعلي او بيهقي په دلائل کي د حضرت انس ﷺ څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ د شام په هيواد کي وو چي جبرائيل ﷺ نازل سو او وه يې ويل اې محمد ﷺ ! معاويه ابن معاويه مزني (صحابي) وفات سوی دی ، ايا تاسو غواړئ چي د هغه جنازه وکړئ ، رسول الله ﷺ وفرمايل هو ، نو جبرائيل ﷺ خپل وزر پر مځکه ووهئ چي په هغه سره دده لپاره هر شي په کښته کېدو سره د مځکي د مخ سره يو ځای سوه تر دې چي د معاويه جنازه په پورته کېدو سره مخته راغلل ، نبي کريم ﷺ د هغه د جنازې لمونځ د ملائکو د دوو صفو سره وکړی او په هر صف کي شپږ لکه ملائکي وې ، حضرت جبرائيل ﷺ وويل چي هغه قل هو الله احد هر وخت په ولاړه ، ناسته ، تلو ، راتلو او بېده کېدو پر وخت ويل .

په يو بل روايت کي د انس ﷺ څخه منقول دي چي موږ د رسول الله ﷺ سره په تبوک کي ملگري وو چي يوه ورځ لمر راوختی نو په هغه کي داسي رڼا او داسي نور وو چي ددې څخه مخکي موږ هيڅکله ليدلی نه وو نبي کريم ﷺ د لمر ددغه رڼا او نور په باره کي د تعجب اظهار کوی چي ناڅاپه جبرائيل ﷺ راغلی نو د هغه څخه يې پوښتنه وکړه چي د لمر لپاره داسي څه پېښه ده چي زه يې په داسي رڼا او نور سره وينم کوم چي مخکي مي هيڅکله داسي ليدلی نه دی ، هغه وويل ددې سبب دادی چي نن په مدينه کي معاويه ابن معاويه ليثي ﷺ وفات سوی دی (دا هغه معاويه دی کوم چي مخکي يادونه سوې ده مزن د هغه د عامي قبيلې نوم دی او ليث د

هغه د خاص قبيلې نوم دی ځکه هغه ته مزني هم ويل کيږي او ليثي هم) نو الله تعالی د هغه لپاره اوويا زره ملائکي راواستولې چي د هغه د جنازې لمونځ وکړي ، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه اې جبرائيل ! د دغه فضيلت او اکرام سبب څه دی ؟ جبرائيل عليه السلام وفرمايل ددې وجه داده چي هغه به قل هو الله احد ډېر زيات وايه په ولاړه، ناسته، تلو ، راتلو او د ورځي او شپې به يې دغه سورت ډېر زيات وايه ځکه چي دغه سورة ستا د رب په نسبت دی، څوک چي دغه پنځوس واره وايي نو الله تعالی د هغه پنځوس زره درجې لوړوي او د هغه څخه پنځوس زره بدی ليري کوي او د هغه لپاره پنځوس زره نيکی ليکي او کوم څوک چي تر دې هم زيات ووايي نو الله تعالی د هغه څخه هم زيات ثواب ورکوي بيا جبرائيل عليه السلام وويل ايا زه ستا لپاره دا مځکه را ټوله کړم چي تاسو د هغه د جنازې لمونځ وکړلای سئ رسول الله ﷺ وفرمايل هو نو رسول الله ﷺ د هغه د جنازې لمونځ وکړ .

نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چي درې شيان داسي دي چي څوک يې د ايمان د تکميل په وجه اختيار کړي نو هغه چي د جنت د کومي دروازې څخه وغواړي په جنت کي به داخل سي او د کومي حور عين سره وغواړي نکاح به وکړي هغه درې شيان دادي ۱: خپل قاتل معاف کړي، ۲: پور په پټه ادا کړي ، ۳: د هر فرض لمانځه وروسته قل هو الله احد ووايي، (ددې په اورېدو سره) حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه وويل که چيري يو څوک په دغه درو شيانو کي يو شی هم اختيار کړي نو د پورتني ثواب او نيکخبتی حقدار به وي .

د رسول الله ﷺ ارشاد دی چي کوم څوک هره ورځ پنځوس واره قل هو الله احد وايي نو هغه به د قيامت په ورځ د هغه د قبر څخه په داسي ويلو بلل کيږي چي اې د الله مدح کونکې! په جنت کي داخل سه .

په يو بل روايت کي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل د کوم چا چي د خوراک کولو پر وخت بسم الله ويل هير سي نو هغه ته پکار ده چي کله د خوراک څخه فارغ سي نو قل هو الله احد دي ووايي او رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي کوم څوک په خپل کور کي د داخلېدو پر وخت قل هو الله احد وايي نو نه يوازي دا چي د هغه کورنی بلکه همسايګان به هم د فقر او محتاجی څخه ليري وي.

په يو بل روايت کي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل يوه ورځ جبرائيل عليه السلام په ډېر ښه او خوشحاله صورت کي ما ته راغلی او وه يې ويل اې محمد ﷺ! علی اعلی (الله تعالی) پر تاسو سلام وايي او فرمايي چي د هر ذات لپاره د نسب لړی وي او زما د نسب لړی قل هو الله احد دی

نو ستا په امت کي چي کوم څوک ما ته په داسي حال کي راسي چي هغه قل هو الله احد زر واره ویلي وي نو زه به هغه ته خپل نشان ورکړم هغه به خپل عرش ته نژدې کړم او د داسي اوويا کسانو په حق کي به د هغه شفاعت قبول کړم چي د عذاب مستحق وي او که ما پر ځان دا نه وای واجب کړي چي کل نفس ذائقة الموت یعني ما دا کلیه نه وای جوړه کړې چي هر ساه لرونکی شی به د مرګ خوند ګوري نو ما به د هغه روح نه قبض کولای .

په یو بل روایت کي دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل کوم څوک چي د جمعې د لمانځه وروسته قل هو الله احد ، قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس اووه واره وایي نو الله تعالی به هغه تر دوهمي جمعې پوري د بدیو څخه خوندي کړي .

په یو بل روایت کي دي چي کوم څوک قل هو الله احد زر واره وایي نو د هغه دغه ویل به د الله تعالی په نزد تر دې خبري زیات محبوب او خوښ وي چي هغه د الله تعالی په لار کي زر آسونه سره د جلو او زین ورکړي .

حضرت کعب احبار رضي الله عنه وایي چي کوم څوک قل هو الله احد وایي نو الله تعالی د هغه غوښه پر اور حراموي .

او همدارنګه د کعب احبار رضي الله عنه څخه دا هم روایت دي چي کوم څوک هره ورځ په شپه او ورځ کي لس واره قل هو الله احد او آیت الکرسي باندي همېشتوب کوي نو هغه د الله تعالی رضا واجبوي او هغه به د انبیاؤ سره وي او د شیطان څخه د هغه ساتنه کیږي .

په یو بل روایت کي دي چي کوم څوک د عرفات په ورځ د لمر د زوال څخه وروسته زر واره قل هو الله حد وایي او د هغه وروسته د الله تعالی څخه یو څه و غواړي نو الله تعالی به یې هغه ته ورکړي ، او په یو بل روایت کي دي چي کوم څوک دغه سورت زر واره وایي نو هغه خپل نفس د الله تعالی څخه واخیستی یعني د اور څخه یې خوندي کړی .

او په یو بل روایت کي دي چي کوم څوک دغه سورت دوه سوه واره وایي نو هغه ته به د پنځه سوه کالو د عبادت ثواب ورکول کیږي .

په یو بل روایت کي دي چي د نبي کریم ﷺ په باره کي منقول دي چي کله رسول الله ﷺ د حضرت علي رضي الله عنه نکاح د بي بي فاطمې رضي الله عنها سره وکړه نو رسول الله ﷺ اوبه را وغوښتلې او هغه یې په خوله و لغړولې او بیا یې هغه بوتلل او د هغې په ګرېوان او د دواړو اوږو په مینځ کي یې وپاشلې او د قل هو الله احد ، قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس په ویلو سره یې هغه د الله تعالی په پناه کي ورکړل ، او په یو بل روایت کي دي چي کوم څوک د

سهار د لمانځه وروسته د یو چا سره د خبرو کولو مخکې اوویا واره قل هو الله احد ووایي نو په هغه ورځ د هغه له خوا د پنځوسو صدیقینو تر عمل پورې رسیږي.

=========

# بَابُ اٰدَابِ التِّلَاوَةِ (د تلاوت د ادبو بیان)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د قران ساتنه کوئ

﴿۲۰۸۳﴾: عَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعَاهَدُوا الْقُرْآنَ فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَهُوَ أَشَدُّ تَفَصِّيًا مِنَ الْإِبِلِ فِي عُقُلِهَا.

**متفق علیه**

د حضرت ابو موسی اشعري رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: د قرآن خبر ګیري کوئ زما دې په هغه ذات قسم وي د چا په لاس کې چې زما ساه ده څرنګه چې اوښ د رسۍ څخه وزي تر دې ژر قرآن د سینې څخه وزي. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۹\۷۹، رقم: ۵۰۲۳، ومسلم ۱\۵۴۵، رقم: ۲۳۱- ۷۹۱.

**د لغاتو حل**: تفصیا: ای فرارا وتخلصا (تېښته او خلاصون).

**تشریح**: یعنې د اوښ ساتونکی او مالک که چیرې د خپل اوښ څخه غفلت وکړي نو اوښ د رسۍ څخه په وتلو تښتي همدارنګه که قرآن کریم نه ویل کیږي نو هغه د اوښ څخه هم ژر د سینې څخه وځي یعنې ډېر ژر به هیر سي.

### د قران کریم یو ادب

﴿۲۰۸۴﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِئْسَ مَا

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: بد دئ

لِأَحَدِهِمْ أَنْ يَقُولَ نَسِيتُ آيَةَ كَيْتَ وَكَيْتَ بَلْ نُسِّيَ وَاسْتَذْكِرُوا الْقُرْآنَ

د یو سړي دا ویل چې د قرآن کریم فلانی او فلانی آیات مې هیر کړه، بلکې داسې دې وایي چې

زما څخه هير كړل سو ، تاسو قرآن كريم يادوئ

فَإِنَّهُ أَشَدُّ تَفَصِّيًا مِنْ صُدُورِ الرِّجَالِ مِنَ النَّعَمِ . متفق عليه وزاد مسلم بعقلها

ځکه چي هغه د انسانانو د سينو څخه ژر وځي تر حيوانانو . بخاري ، او مسلم دا الفاظ زيات نقل کړي دي چي اوښ په رسۍ سره تړلی وي .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۷۹، رقم: ۵۰۳۲، ومسلم: ۱\۵۴۴، رقم: ۲۸۸- ۷۹۰.

**تشريح**: دلته يو ادب ښودل سوی دی چي که چيري د يو چا د قرآن کريم يو سورت يا آيت په ياد نه وي نو هغه دي د هغه دا ښکندونه وکړي په داسي وخت دغه ويل چي زما څخه هير سوی دی ځکه منع دی چي داسي ويل پر دې خبره دلالت کوي چي هغه قرآن پرېښی دی او د بې پرواهۍ په سبب ځيني هير سوی دی ، څرګنده ده چي د قرآن د عظمت د شان خلاف دی داسي ويل چي را څخه سو ګويا د دغه سعادت او نعمت په تر لاسه کولو کي د خپل تقصير او کوتاهۍ اظهار دی چي صحيح دی .

## د صاحب قران يو مثال

﴿۲۰۸۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّمَا مَثَلُ صَاحِبِ الْقُرْآنِ كَمَثَلِ صَاحِبِ الْإِبِلِ الْمُعَقَّلَةِ إِنْ عَاهَدَ عَلَيْهَا أَمْسَكَهَا وَإِنْ أَطْلَقَهَا ذَهَبَتْ . متفق عليه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د قرآن د يا دونکی مثال په مثل د خاوند د اوښانو تړل سوو دی که خبر يې اخلي نو وه به يې ساتي او که ايله يې کړي نو ولاړ به سي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۷۹، رقم: ۵۰۳۱، ومسلم ۱\۵۴۳، رقم: ۲۲۶- ۷۸۹.

## تر څو چي موزړه وي قران وایاست

﴿۲۰۸۶﴾: وَعَنْ جُنْدُبِ بْنِ عَبْدِاللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقْرَءُوا الْقُرْآنَ مَا ائْتَلَفَتْ عَلَيْهِ قُلُوبُكُمْ فَإِذَا اخْتَلَفْتُمْ فَقُومُوا عَنْهُ . متفق عليه .

د حضرت جندب بن عبد الله رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : قرآن كريم تر هغو وايا ست تر څو چي زړونه مو ورسره لګېدلي وي هر كله چي طبيعت مو موړ سي نو ځيني ولاړ يږئ . بخاري او مسلم .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري) : ۱۰۱\۹، رقم : ۵۰۶۰، ومسلم ۲۰۵۳\۱، رقم : ۳ – ۲۶۶۷.

**تشريح** : ابن ملك رحمه الله وايي چي د قرآن كريم په تلاوت كي تر هغه وخته بوخت كېدل پكار دي تر څو چي زړه غواړي د زړه نه غوښتلو په صورت كي قرآن كريم نه ويل بېله د زړه د حضور څخه تر ويلو افضل دي مګر دلته د دغه حديث څخه دا خبره معلوميږي چي انسان ته پكار دي چي هغه خپل عادت جوړ كړي او خپل نفس په رياضت كي واچوي چي تر زيات وخت پوري په ويلو سره زړه تنګ نه سي بلكه زيات ه خوښي او فرحت محسوس سي ځكه كاهل او تنګ زړه چي د رياضت عادي نه وي ډېر ژر تنګيږي ځيني خو داسي وي چي د يوې پاړې په ويلو سره پر خپل طبيعت باندي بوج محسوس كوي او تنګيږي او حال دا چي هغه خلك چي د رياضت عادي وي يوه پاره بلكه تر دې هم زيات په دومره شوق او ذوق سره وايي چي نه خو د هغوئ پر طبيعت بوج وي او نه د هغوئ زړه تنګيږي .

## د رسول الله ﷺ قرائت

﴿۲۰۸۷﴾ : وَعَنْ قَتَادَةَ قَالَ سُئِلَ أَنَسٌ كَيْفَ كَانَتْ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت قتادة رحمه الله څخه روايت دئ چي د حضرت انس رضي الله عنه څخه پوښتنه وسول چي نبي كريم ﷺ به څنګه قرائت وايه ؟

وَسَلَّمَ فَقَالَ كَانَتْ مَدًّا ثُمَّ قَرَأَ { بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ } يَمُدُّ بِبِسْمِ

هغه وويل : رسول الله ﷺ به حروف په اوږدو لو سره ويل بيا هغه بسم الله الرحمن الرحيم ويلو وروسته وښودل چي اوږدوالى به يې كوى پر (بسم الله)

اللّٰهِ وَيَمُدُّ بِالرَّحْمٰنِ وَيَمُدُّ بِالرَّحِيمِ . رواه البخاري .

او اوږدوالى يې كوى د (رحيم) پر لفظ باندي . بخاري .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري) : ۹۱\۹، رقم : ۵۰۴۶.

**تشريح** : د رسول الله ﷺ قرائت به اوږد وو ، د دې مطلب دا دى چي رسول الله ﷺ به حروف مد او لين په اندازه د معروف مد چي د ارباب وقوف د قوائدو او شرائطو مطابق وي .

علامه طیبي رحمة الله عليه فرمايي چي مدونه دري دي: واو، الف، یا، په دې باره کي دا قاعده ده چي کله هغه په اندازه د همزه وي نو د الف په اندازه د هغه مد کول پکار دي ځيني حضرات وايي چي د دوو الفو څخه تر پنځو الفو پوري مد کول پکار دي.

د الف د اندازې څخه د اواز اوږدول مراد دي کله چي وويل سي با،يا،تا، او که چيري د دغه حروفو مد تشديد وي نو په اندازه د څلورو الفو مد کول پکار دي په اتفاق سره لکه دابة، او که چيري د هغه وروسته حرف ساکن وي نو په اندازه د دوو الفو مد کول پکار دي په اتفاق سره لکه صاد او يعلمون او که چيري ددې وروسته د پورتنيو حروفو څخه پرته بل حرف وي نو مد کول نه دي پکار بلکه يوازي پر هغه اواز اکتفاء کول پکار دي چي د هغه حرف د وتلو اندازه وي لکه اياک، دا خبره په ذهن کي ساتل پکار دي چي په بسم الله کي کوم مد دی هغه ټول ددې د قبيل څخه دي.

## د خدای جل جلاله په نزد تر ټولو غوره اواز

﴿۲۰۸۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا اَذِنَ اللّٰهُ لِشَيْءٍ مَا أَذِنَ لِلنَّبِيِّ أَنْ يَتَغَنَّى بِالْقُرْآنِ . متفق عليه .

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: الله تعالى هيڅ شی داسي نه اوري لکه څرنګه چي د نبي آواز اوري هر کله چي هغه په خوش آوازي سره قرآن وايي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۶۸، رقم: ۵۰۲۳، ومسلم ۱\۵۴۵، رقم: ۲۳۲- ۷۹۲.

**تشريح**: مطلب دادی چي هسي خو د نبي کريم صلى الله عليه وسلم آواز په خپله د هر چا تر اواز ښه او خوږ وو مګر کله چي نبي کريم صلى الله عليه وسلم قرآن کريم په خوش اوازۍ يعني تجويد او ترتيل سره وايه نو هغه وخت به د هغه آواز د کائناتو د هر آواز څخه خوندور او شيرين وو او داسي دي ولي نه وي د الله کلام او د الله رسول يې وايي نو ظاهره ده چي د کائناتو يوه يوه ذره يوازي د ساه لرونکو نه بلکه د غير ساه لرونکو هم په وجد کي راځي دا خبره ويل کيږي چي الله تعالى هغه آواز څومره خوښوي او څومره هغه قبلوي د هغه دغه قبوليت د کائناتو د هيڅ يو داسي شي څخه نه تر لاسه کيږي چي په هغه کي آواز وي او اوريدل کيږي.

﴿۲۰۸۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَذِنَ اللّٰهُ لِشَيْءٍ مَا أَذِنَ لِنَبِيٍّ حَسَنِ الصَّوْتِ بِالْقُرْآنِ يَجْهَرُ بِهِ . متفق عليه

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: الله تعالى هيڅ شي په دومره توجه سره نه اوري لکه څرنګه چي د نبي خوش آوازي اوري هر کله چي هغه په لوړ آواز سره قرآن وايي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۵۱۸، رقم: ۷۵۴۴، ومسلم ۱\۵۴۵، رقم: ۲۳۳- ۷۹۲.

## قران کريم او خوش اوازي

﴿۲۰۹۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ مِنَّا مَنْ لَمْ يَتَغَنَّ بِالْقُرْآنِ . رواه البخاري.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه څوک زموږ څخه نه دئ څوک چي په خوش آوازي سره قرآن نه وايي . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۵۰۱، رقم: ۷۵۲۷.

**تشريح**: مطلب دادی چي قرآن کريم په خوش آوازۍ سره ويل پکار دي په شرط ددې چي حروف، حرکات، مد، تشديد يا داسي نور شيان پکښي تغير نسي همدارنګه د راګ په ډول هم نه وي بلکه په دې باره کي مسئله داده چي يو سړی په قصد سره قرآن کريم د راګ په ډول وايي نو هغه د حرام د فعل مرتکب کيږي ددې څخه پرهيز کول ضروري دي .

## د قرآن کريم اورېدل

﴿۲۰۹۱﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ لِي رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل

وَسَلَّمَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ اقْرَأْ عَلَيَّ قُلْتُ آقْرَأُ عَلَيْكَ وَعَلَيْكَ أُنْزِلَ قَالَ إِنِّي أُحِبُّ

او هغه ﷺ پر منبر ناست وو: زما په وړاندي قرآن ووايه، ما عرض وکړ اې د الله رسوله! زه ستاسو په وړاندي قرآن ووايم حال دا چي قرآن خو پر تاسو نازل سوی دی؟ رسول الله ﷺ

وفرمایل : زه د بل چا څخه اوریدل زیات خوښوم،

أَنْ أَسْمَعَهُ مِنْ غَيْرِي فَقَرَأْتُ سُورَةَ النِّسَاءِ حَتَّى أَتَيْتُ إِلَى هَذِهِ الْآيَةِ

ابن مسعود رضی الله عنه وايي : ما د رسول الله ﷺ په وړاندي سورة نساء وويل او کله چي زه دې آيت ته

{ فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَؤُلَاءِ شَهِيدًا } قَالَ

راورسيدم : (فكيف ....) يعني دا يهود وغيره به څه کوي هر کله چي موږ د هر يو قوم څخه يو شاهد وړاندي کړو يعني د هغوئ نبي چي هغه به د هغوئ پر اعمالو او افعالو شاهدي ورکوي او تا هم موږ پر دې امت شاهد وګرځوو، د دې په اوریدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل :

حَسْبُكَ الْآنَ فَالْتَفَتُّ إِلَيْهِ فَإِذَا عَيْنَاهُ تَذْرِفَانِ . متفق عليه

بس کړه ، ددې وروسته ما نبي کريم ﷺ ته وکتل نو ما ته څرګنده سوه چي د رسول الله ﷺ د دواړو سترګو څخه اوښکي رواني وې . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\ ۲۵۰، رقم: ۴۵۸۲، ومسلم ۱\ ۵۵۱، رقم: ۲۴۷- ۸۰۰.

**تشريح**: د ابن مسعود رضی الله عنه قول چي قرآن کريم خو پر تاسو نازل سوی دی ددې مطلب دادی چي قرآن کريم خپله پر تاسو نازل سوی دی ځکه نو قرآن کريم ويل هم ستاسو حق دی او څرنګه چي دا نازل سوی دی هم هغسي يې تاسو ويلای سئ د بل چا به څه مجال وي چي هغه ستاسو په مخکي قرآن کريم ووايي، ددې په جواب کي رسول الله ﷺ وفرمايل چي زه دا خوښوم ...الخ، ددې مطلب دادی چي ځيني وختونه داسي کيږي چي زما خواهش وي چي د بل چا څخه قرآن کريم واورم او دا هغه وخت وي چي په هغه کي پر عارف باندي د سکوت حالت خپريږي لکه چي ويل کيږي من عرف الله کل لسانه ، يعني چا چي الله و پيژندی د هغه ژبه پټه خوله سوه ددې زلمي پر خلاف د عارف يو بل حالت وي چي د هغه په باره کي ويل کيږي من عرف الله طال لسانه يعني چا چي الله تعالی و پيژندی د هغه ژبه خلاصه سوه .

خلاصه دا چي ځيني وختونه خو عارف په حالت د تحير او استغراق کي وي چي سکونت اختياروي او ځيني هوښيار کيږي چي هغه وخت حقائق او معارف وغيره بيانوي .

د بل چا څخه د قرآن کريم په اوريدو کي يوه فائده دا هم وي چي د قرآن کريم د آياتو مفهوم او معنی په ښه ډول په فهم کي راځي غور او فکر د کمال درجې ته رسيږي .

د سورة نساء په حديث کي د پورتني آيت مقصد د قيامت د ورځي يادول دي ځکه چي رسول الله ﷺ د هغه ورځي خوف او د خپل امت ضعف په فکر کولو سره و ژړل دا ددې خبري ثرگنده نښه ده چي رسول الله ﷺ پر خپل امت باندي ډېر مهربان دی ، صلی الله علیه الف الف صلوة کلما ذکره الذاکرون وکلما غفل عن ذکره الغافلون .

## د حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه سعادت

﴿۲۰۹۲﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ابی بن کعب ته وفرمايل :

إِنَّ اللّٰهَ أَمَرَنِي أَنْ اقرا عليك الْقُرْآنَ قَالَ أَاللّٰهُ سَمَّانِي لَكَ قَالَ نَعَمْ قَالَ وَقَدْ

الله تعالی ما ته حکم راکړئ دئ چي زه ستا په وړاندي قرآن کريم ووايم، ابی بن کعب عرض وکړ : الله تعالی ستا سو په وړاندي زما نوم اخيستئ دئ ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل:هو،

ذُكِرْتُ عِنْدَ رَبِّ الْعَالَمِينَ قَالَ نَعَمْ فَذَرَفَتْ عَيْنَاهُ. وَفِيْ رِوَايَةٍ اَنَّ اللّٰهَ اَمَرَنِيْ

ابی وويل (سبحان الله) د دوا ړو جهانو پروردګار زما ذکر کړئ دئ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل :هو، د دې په اورېدو سره د ابی بن کعب رضي الله عنه د سترګو څخه اوښکي رواني سوې ، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالی ما ته حکم راکړئ دئ

اَنْ اَقْرَاَ عَلَيْكَ لَمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَقَالَ وَسَمَّانِيْ قَالَ نَعَمْ فَبَكٰى. متفق عليه

چي ستا په وړاندي لم يکن الذين کفروا ، ووايم، ابی عرض وکړ : ايا الله تعالی زما په نوم اخيستو سره فرمايلي دي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل :هو ، ددې په اورېدو سره ابی بن کعب رضي الله عنه په ژړا سو . بخاري او مسلم

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\ ۷۲۵ ، رقم: ۴۹۶۰، ومسلم ۱\ ۵۵۰، رقم: ۲۴۵- ۷۹۹.

**تشريح**: حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه په ټولو صحابه کرامو کي ستر قاري وو ، رسول الله ﷺ د هغه دغه امتياز او شرف د صحابه کرامو په مخکي داسي بيان کړ چي اقراکم .... ابی ، په تاسو کي تر ټولو ستر قاري ابی رضي الله عنه دی .

د حضرت أبی رضي الله عنه قول "الله سماني لک" : ددې مطلب دادی چي ايا په خاصه توګه الله تعالی زما نوم اخيستی دی او هغه دا خبره د خپل عاجزئ د اظهار په وجه وکړه چي زه ددې لائق

چيري يم چي الله تعالى په خاصه توګه زما نوم واخلي او تاسو ته حکم وکړي، او يا هغه دا خبره د ذوق او لذت له مخکي کړې وي او د خپل دغه عظيم سعادت او شرف اظهار يې وکړي چي الله تعالى ما ته دغه عظيمه مرتبه راکړه.

دغه عظيم شرف په اورېدو سره د حضرت ابی ﷺ د سترګو څخه اوښکي راتلل د خوشحالۍ په وجه وې داسي خوښي چي حقيقي عاشق ته د محبوب د وصال او د محبوب د کرم پر وخت حاصلیږي په داسي صورت کي د زړه حزن او سکون تر لاسه کېدو سره د سترګو څخه اوښکي روانيږي.

په خاصه توګه د سورة لم يكن ويلو حکم ځکه وسو چي دغه سورت د الفاظو په اعتبار ډېر مختصر هم دی او په دې کي فائدې هم ډېري زياتي دي ځکه چي په دغه سورت کي د دين اصول، وعد او وعيد او د اخلاص وغيره اعلى مضامين مذکور دي.

ددې حديث څخه دا خبره معلومه سوه چي د قرآن کريم ماهر او د اهل علم د فضل په مخکي قرآن کريم ويل مستحب دي که څه هم ويونکي تر اورېدونکي افضل وي.

## دار الحرب ته د قران کريم وړلو څخه منعه

﴿۲۰۹۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُسَافَرَ

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ددې څخه منع فرمايلې ده چي

بِالْقُرْآنِ إِلَى أَرْضِ الْعَدُوِّ. متفق عليه و في رواية لمسلم لاَ تُسَافِرُوْا بِالْقُرْآنِ فَإِنِّي لاَ آمَنُ اَنْ يَّنَالَهُ الْعَدُوُّ.

قرآن کريم دي د دښمنانو هيواد ته يوړل سي، د مسلم په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: په سفر کي د ځان سره قرآن کريم مه وړئ ځکه چي زه ددې اطمينان نه لرم چي د دښمن لاس ته به ورسي. مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\ ۱۳۳، رقم: ۲۹۹۰، ومسلم ۳\ ۱۴۹۰، رقم: ۹۲- ۱۸۶۹.

**تشريح** دلته يو ډېر باريک اشکال پيدا کيږي او هغه دا چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي خو مصحف ليکل سوی نه و نو بيا رسول الله ﷺ دا څرنګه وفرمايل چي د قرآن کريم په اخيستلو سره دي سفر نه کيږي، ددې جواب دادی چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي که څه هم پوره قرآن

کریم لیکل سوی نه وو مګر بیا هم څه چي نازل سوی وو هغه به خلکو په خپلو خپلو صحیفو کي لیکی او ظاهره خبره ده چي هغه د قرآن په حکم کي وو یا دا چي رسول الله ﷺ دا خبره د وړاند ويني په توګه فرمايلې ده چي زما څخه وروسته کله چي قرآن کریم په پوره توګه یو ځای ولیکل سي او د مصحف شکل ورکړل سي نو هغه دي د کفارو ملک ته نه وړل کیږي داسي نه چي د کفارو لاس ته ورسي او د هغه بې حرمتي وکړي ، ځیني علماء فرمايي چي په دارالکفر کي قرآن کریم د ځان سره وړل مکروه دی او مسئله داده که چیري یو څوک یو کافر ته یو خط وغیره لیکي نو په هغه کي د یو آیت لیکل پروا نه لري ځکه رسول الله ﷺ هر قل ته چي کوم خط لیکلی وو په هغه کي دغه آیت: تعالوا الی کلمه ...الخ، لیکلی وو .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### غریبو مهاجرینو ته زیری

﴿۲۰۹۴﴾: عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ جَلَسْتُ فِي عِصَابَةٍ مِنْ ضُعَفَاءِ الْمُهَاجِرِيْنَ

د حضرت ابو سعید ﷺ څخه روایت دئ چي زه د غریبو مهاجرو د یو ډلي سره ناست (یعني

وَإِنَّ بَعْضَهُمْ لَيَسْتَتِرُ بِبَعْضٍ مِنَ الْعُرْيِ وَقَارِئٌ يَقْرَأُ عَلَيْنَا إِذْ جَاءَ رَسُولُ

اصحابه صفه) ، او دا حال دا چي د لوڅېدو له کبله به ځينو خلکو د یو بل پرده کول او زموږ په منځ کي یو ويونکي قرآن کریم وايه، ناڅاپه رسول الله ﷺ تشریف راوړ

اللّٰهِ ﷺ فَقَامَ عَلَيْنَا فَلَمَّا قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ سَكَتَ الْقَارِئُ فَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ

او زموږ په خوا کي ودریدئ قرآن ويونکی پټه خوله سو ، رسول الله ﷺ سلام وکړ او بیا يې

مَا كُنْتُمْ تَصْنَعُوْنَ قُلْنَا كُنَّا نَسْتَمِعُ إِلَى كِتَابِ اللّٰهِ فَقَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي

پوښتنه وکړه تاسو څه کول ؟ موږ عرض وکړ د الله تعالی کتاب مو اوریدئ ، رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه الله لره هر ډول تعریف دئ چي هغه

جَعَلَ مِنْ أُمَّتِي مَنْ أُمِرْتُ أَنْ أَصْبِرَ نَفْسِي مَعَهُمْ قَالَ فَجَلَسَ وَسْطَنَا

زما په امت کي داسي خلک پیدا کړي دي چي زه په مستقله توګه په هغو کي شتون لرم، د راوي

بیان دئ ددې وروسته رسول الله ﷺ زموږ په منځ کې کښېنستئ چې خپل عظیم شخصیت زموږ

لِيَعْدِلَ بِنَفْسِهِ فِينَا ثُمَّ قَالَ بِيَدِهِ هَكَذَا فَتَحَلَّقُوا وَبَرَزَتْ وُجُوهُهُمْ لَهُ

د خلکو په منځ کې مساوي جوړ کړي ، بیا رسول الله ﷺ د ګوتې کړۍ جوړه کړه او وه یې فرمایل: داسې کښېنئ نو موږ د رسول الله ﷺ په وړاندې هم هغسې کړۍ جوړه کړه چې زموږ مخونه رسول الله ﷺ ته متوجه وه.

فَقَالَ أَبْشِرُوا يَا مَعْشَرَ صَعَالِيكِ الْمُهَاجِرِينَ بِالنُّورِ التَّامِّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

بیا رسول الله ﷺ وفرمایل: د مفلس مهاجرینو ډلې تاسو ته دې زیرې وي چې تاسو به د قیامت

تَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ قَبْلَ أَغْنِيَاءِ النَّاسِ بِنِصْفِ يَوْمٍ وَذَاكَ خَمْسُ مِائَةِ سَنَةٍ.

رواه ابو داؤد.

په ورځ جنت ته د شتمنو څخه نیمه ورځ وړاندې داخل سئ او دا نیمه ورځ به پنځه سوه کاله وي. ابو داؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۱۴\۷۲، ۷۳، رقم: ۳۶۶۶.

**تشریح**: وان بعضهم ... الخ: ددې مطلب دادی چې د کومو کسانو سره د خپل ملګري په نسبت که جامه وي او هغه د خپل ملګري شا ته ناست وي چې د جامې کمېدو په وجه د هغه بدن معلوم نه سي نو د لوڅ بدن څخه مراد د ستر څخه پرته د بدن پاته برخه د جامې څخه لوڅېدل دي او د ستر څخه پرته د بدن پاته برخه هم د عام نظر څخه د ساتلو په وجه نه یوازې دا چې د هغه مقدسو کسانو کمال د شرم او حیاء په درجه کې وو بلکه دا خبره د انساني ادب او تهولني خلاف وه بلکه دا خبره دا نساني ادب او تهولني خلاف ده چې د بدن یو برخه دې خلاصه پرېښودل سي کومه چې په عامه توګه سره نه خلاصېږي ، ددغه حالت بیانولو مقصد د صحابه کرامو د هغه مقدسې ډلې د فقر او افلاس اظهار دی چې هغوئ د خپل بدن پټولو لپاره په پوره توګه جامه هم نه درلودل او هغوئ به په مجلس کې د یو بل سره په جخت کېدو کښېنستل تر څو یو ډول پرده تر لاسه سي.

هغه وخت رسول الله ﷺ موږ ته سلام وکړ ، ددې څخه دا خبره معلومه سوه چې کوم څوک قرآن کریم وایي نو هغه ته سلام کول نه دي پکار بیا کله چې هغه پټه خوله سي نو هغه وخت سلام

کول پکار دي لکه څرنګه چي د فقهي مسئله ده ځکه علماء کرام فرمايي که يو سړی قرآن ويونکي ته سلام وکړي نو هغه ته د سلام جواب ورکول ضروري نه دي ·
صحابه کرام د قرآن کريم په ويلو کي د بوختيا سربېره رسول الله ﷺ دا خبره چي تاسو څه کوئ ولي پوښتنه وکړه ددې لپاره چي د هغوئ د جواب په اورېدو سره هغوئ ته دغه عظيم زيری واوروي ·
د : امرت ان اصبر نفسي ... الخ څخه دغه آيت کريمه ته اشاره ده :
وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُم بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ وَلاَ تَعْدُ عَيْنَاكَ عَنْهُمْ تُرِيدُ زِينَةَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَلاَ تُطِعْ مَنْ أَغْفَلْنَا قَلْبَهُ عَن ذِكْرِنَا وَاتَّبَعَ هَوَاهُ وَكَانَ أَمْرُهُ فُرُطًا.
سورة کهف آية ۲۸

**ژباړه:** او خپل ځان د هغه کسانو سره په ناسته کي مقيد ساته چي سهار او مابنام (يعني همېشه) د خپل رب عبادت محض د هغه د رضا لپاره کوي او د دنيوي ژوند د رونق له مخکي ستا سترګي د هغوئ څخه آخوا کېدل نه دي پکار او د داسي کس مه منه چي د هغه زړه موږ د خپل ياد څخه غافل کړي او هغه په خپل نفساني خواهشاتو پسي ځي او د هغه دغه حال د حد څخه تېر سوی دی ·
د راوي د الفاظو ليعدل ... الخ مطلب دادی چي رسول الله ﷺ خپل ځان زموږ په مينځ کي د ناستي په اړه د ټولو سره د عدل معامله کوي چي د رسول الله ﷺ نژدې کېدل د ټولو سره يو ډول وي يعني که چيري رسول الله ﷺ د يوه سړي سره کښيني نو پاته خلک به د هغه نيکبختۍ ته پسخېدل او د هر يوه خواهش به دا وو چي رسول الله ﷺ زما سره کښيني ځکه رسول الله ﷺ د يوه سړي سره د ناستي پر ځای په مينځ کي کښېنستی تر څو د قرب سعادت و ټولو ته يو ډول حاصل سي ، علامه طيبي رحمة الله عليه د دغه جملې معنی داسي ليکلې ده چي رسول الله ﷺ زموږ په مينځ کي ځکه کښېنستی چي زموږ په مينځ کي مساوات وکړي او د خپل ذات مبارک په ذريعه موږ ټولو ته شرف ورکړي ·
ټول خلک په دائره جوړولو سره کښېنستل، ددې مطلب دادی چي د رسول الله ﷺ مخ مبارک ته مخامخ په حلقه جوړولو سره کښېنستل په داسي توګه چي د ټولو مخونه رسول الله ﷺ ته سوه ، ددې مطلب دادی چي ټول خلک رسول الله ﷺ ته داسي کښېنستل چي رسول الله ﷺ د ټولو مخونهويني ·

د قیامت په ورځ به تاسو ته پوره نور حاصل وي، دلته دا اشاره ده چي د قیامت په ورځ به شتمن او دولتمند کسانو پوره نور حاصل نه کړي ځکه د رسول الله ﷺ دغه ارشاد مبارک دی چا چي خپل آخرت صحیح وساتي هغه خپل دنیا ته تاوان ورسوی او چا چي خپل دنیا صحیح وساتل نو هغه خپل آخرت ته تاوان ورسوی نو کوم شی چي فنا کېدونکی دی د هغه په مقابله کي هغه شی اختیار کړئ کوم چي باقي پاته کېدونکی دی (یعني آخرت).

او تاسو به تر شمتنو کسانو نیمه ورځ مخکي په جنت کي داخلیږي په دې باره کي دا خبره په فهم کي ساتل پکار دي چي دلته هغه فقراء مراد دي کوم چي صالح او صابر وي همدارنګه د شتمن څخه هغه شتمن مراد دي کوم چي صالح او شاکر وي او د خپل مال حق (صدقه، زکوة وغیره) ادا کونکي وي هغوئ به د حشر په میدان کي ودرول سي او پوښتنه به ځیني وسي چي تاسو مال د کوم ځای څخه او په کومه ذریعه حاصل کړی او هغه مو په کوم کوم ځای کي خرڅ کړی هغوئ به په دغه کتاب او حساب کي بوخت وي او فقراء به جنت ته داخل سي.

ددې څخه یوه خبره معلومه سوه چي د قیامت په ورځ به د الله تعالی د فضل او کرم او د هغه په رحمت کي به د فقراؤ برخه تر شمتنو زیاته وي ځکه شمتنو کسانو خو په دنیا کي راحت او نصرت تر لاسه کړی وو او فقراء د هغه څخه محروم وه.

## په تجوید او ترتیل سره د قران کریم ویلو حکم

﴿۲۰۹۵﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيِّنُوا الْقُرْآنَ بِأَصْوَاتِكُمْ. رواه احمد وابوداؤد وابن ماجة والدارمي.

د حضرت براء بن عازب رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: تاسو قرآن ته په خپلو آوازو (ترتیل او تجوید) سره ښکلا ورکړئ. احمد، ابوداؤد، ابن ماجة او دارمي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۴\ ۲۸۵، وابوداود ۲\ ۱۵۵، رقم: ۱۴۶۸، وابن ماجه ۱\ ۴۲۶، رقم: ۱۳۴۲، والدارمي ۲\ ۵۶۵، رقم: ۳۵۰۰.

**تشريح** د ښکلا ورکولو څخه مراد داد چي قرآن کریم په تجوید او ترتیل او د آواز په نرمی او لطافت سره وویل سي دا خبره مخکي هم ښودل سوې ده او اوس بیا پوه سئ چي په راګ کي د قرآن کریم ویل چي په حروفو یا حرکاتو کي زیاتوب یا کمي وي حرام دي او داسي قرآن کریم ویونکي فاسق دی او اورېدونکی ګناه کار دی او دداسي سړي د داسي قرآن ویلو څخه منع کول

واجب دي ځکه دا يو ډېر قبيح بدعت دی.

## د قران کريم پر هېرولو باندي وعيد

﴿۲۰۹۶﴾: وَعَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا

د حضرت سعد بن عبادة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي

مِنْ امْرِئٍ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ ثُمَّ يَنْسَاهُ إِلَّا لَقِيَ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَجْذَمَ. رواه ابوداؤد والدارمي.

قرآن ووايي او بيا يې هير کړي نو د قيامت په ورځ به د الله په وړاندي په داسي حال کي ملاقات کوي چي د هغه لاس به پری سوی وي. ابوداؤد او دارمي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\۱۵۸، رقم: ۱۴۷۴، والدارمي ۲\۵۲۹، رقم: ۳۳۴۰.

**تشريح**: د حنفيه په نزد د هېرېدو څخه مراد دادی چي په کتلو سره هم قرآن نسي ويلای او د امام شافعي رحمه الله په نزد ددې معنی داده چي هغه قرآن کريم په ياد کړي او بيا يې هېر کړي يا دا مطلب يې دی چي قرآن کريم ويل پرېږدي که هير يې وي او که هېر يې نه وي.

شاه محمد اسحاق رحمه الله به فرمايل چي ددې مطلب دا هم کېدای سي چي د استعداد والا لپاره هېرېدل دادي چي په ياد سوی قرآن بېله کتلو ونه ويلای سي او د غير استعداد والا لپاره هېرېدل دادي چي په کتلو سره يې هم نسي ويلای.

د دې څخه معلومه سوه چي د قرآن کريم د زده کولو او يادولو څخه وروسته هېرول لويه گناه ده پکار دي چي د قرآن کريم په باره کي د غفلت او کوتاهۍ لار اختيار نه کړل سي بلکه قرآن کريم همېشه ويل پکار دي.

## تر درو ورځو کم د قران کريم ختمولو مسئله

﴿۲۰۹۷﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ ابْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَمْ يَفْقَهْ مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ فِي أَقَلَّ مِنْ ثَلَاثٍ. رواه الترمذي وابوداؤد والدارمي

د حضرت عبدالله ابن عمرو رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چي تر درو شپو په کم وخت کي قرآن کريم ختم کړ هغه په قرآن پوه نه سو. ترمذي، ابوداؤد او دارمي.

**تخريج**: سنن ابي داود ٢\١١٦، رقم: ١٣٩٤، والترمذي ٥\١٨٢، رقم: ٢٩٤٩، والدارمي ١\٤١٨، رقم: ١٤٩٣.

**تشريح** علامه طيبي رحمه الله فرمايي چي ددې مراد دادی چي کوم څوک تر درو ورځو يا درو شپيو په کم وخت کي قرآن کريم ختم کړي نو هغه د قرآن په ظاهري معنی خو پوهېدای سي مګر د قرآن کريم حقائق او معارفو ته د هغه رسيدل نه سي کېدای ځکه په دغه شيانو کي درې ورځي خو ډېره ليري خبره بلکه کلونه کلونه هم بس نه دي نه يوازي دا بلکه په دغه لنډ وخت کي د يو آيت يا د يوې کلمې دقائق او نکات هم په فهم کي نسي راتلای، دلته د نفي څخه مراد د پوهېدو نفي ده نه د ثواب نفي يعني ثواب خو په هر صورت کي حاصلېږي او بيا دا چي د خلکو په پوهه کي هم فرق وي چي د هغه لپاره اوږد وخت هم څه حقيقت نه لري.

په سلفو کي ځينو کسانو ددغه حديث پر ظاهري مفهوم باندي عمل کړی دی د هغه خلکو معمول وو چي همېشه به يې قرآن کريم په درو ورځو کي ختموی او تر درو ورځو کم ختم کول به يې مکروه ګڼل او نورو کسانو بيا ددې پر خلاف عمل کوی ځينو خلکو به په يوه شپه او ورځ کي يو وار او ځينو خلکو به دوه دوه واره او ځينو خلکو به درې درې واره قرآن کريم ختموی بلکه د ځينو کسانو په اړه تر دې پوري ثابته ده چي هغوئ به په يوه رکعت کي يو وار قرآنکريم ختموی کېدای سي چي هغه خلکو ددغه حديث په باره کي دا خيال کړی وي چي ددې اړه د اشخاصو په اعتبار مختلف ده يعني ددغه حديث تعلق د هغه خلکو سره دی کوم چي کم فهمه وي که تر درو ورځو په کمه موده کي قرآ کريم ختم کړي نو ددې پر ظاهري معنی باندي هِم پوهېدای نسي يا د هغوئ په نزد دا خبره وي چي په دغه حديث کي د فهم نفي ده او په دغه صورت کي ظاهره ده چي په څومره کم وخت کي قرآن کريم ختم کړل سي نو ثواب حاصلېږي.

ځينو کسانو به په دوو مياشتو کي قرآن کريم ختموی او ځينو کسانو به په هره مياشت کي او ځينو به په لس ورځو کي او ځينو به په اووه ورځو کي قرآن کريم ختموی.

د بخاري او مسلم روايت دی چي نبي کريم صلی الله عليه وسلم عبدالله ابن عمر رضی الله عنه ته وفرمايل چي قرآن کريم په اووه ورځو کي ختموه او تر دې زياتوب مه کوه.

## ختم الاحزاب

د مشائخو او عارفينو په اصطلاح کي په اووه ورځو کي د قرآن کريم ختمولو ته ختم الاحزاب ويل کيږي، د ملاعلي قاري رحمه الله د وضاحت سره سم د ختم الاحزاب تر ټولو لوی صحيح ترتيب فمي بشوق دی، ملاعلي قاري رحمه الله فمي بشوق ته د ختم الاحزاب صحيح

ترتيب ځکه ويل دی چي د ځينو کسانو په نزد د ختم الاحزاب طريقه داده چي د جمعې په ورځ د قرآنکريم د شروع څخه تر سورة مائده پوري وويل سي ، د شنبې په ورځ د سورة انعام څخه د سورة توبې تر اخر پوري ، د يکشنبې په ورځ سورة يونس څخه تر سورة مريم پوري، د دوشنبې په ورځ د سورة طه څخه د سورة قصص تر آخر پوري، د سه شنبې په ورځ د سورة عنکبوت څخه د سورة ص تر آخر پوري ، د چار شنبې په ورځ د سورة زمر څخه د سورة رحمان تر اخر پوري ، د پنجشنبې په ورځ د سورة واقعه څخه د قرآن کريم تر پايه پوري وويل سي ، د اکثرو حاجتو د پوره کولو لپاره دغه ختم مجرب ګڼل سوی دی ، همدارنګه د فمي بشوق په ترتيب سره ختم د رزق د پراختيا او د نورو حاجاتو د تر لاسه کولو لپاره مجرب ښودل سوی دی ، په دغه ترتيب سره د قرآن کريم د ويلو دا هم ويل سوي دي چي شروع دي د جمعې د ورځي څخه وکړل سي، په هر حال د پورتني بحث خلاصه دا سوه چي د فمي بشوق په ترتيب سره ختم د قرآن عليحده شی دی او ختم الاحزاب بل شی دی او د ملا علي قاري رحمه الله د قول خلاصه داده چي علماء کرامو د قرآن کريم د ختمولو څو ترتيبو بيان کړي دي مګر تر ټولو زيات صحيح ترتيب فمي بشوق دی نو د ملا علي قاري رحمه الله د قول سره سم ختم الاحزاب او د فمي بشوق ترتيب يو شی دی .

اوس په دې هم پوه سئ چي فمي بشوق او د هغه ترتيب څه شي دی ؟ د فمي بشوق په ترتيب سره د قرآن کريم ختمولو مطلب دادی چي د قرآن کريم اووه منزلونه په اووه ورځو کي داسي وويل سي چي د هغه په پيل کي د فمي بشوق حروف واقع دي يعني د ف څخه سورة فاتحې ته اشاره ده او د م څخه سورة مائده ته اشاره ده او د ي څخه سورة يونس ته د ب څخه سورة بني اسرائيل ته او د ش څخه سورة شعراء ته او د و او څخه سورة والصافات ته او د ق څخه سورة ق ته اشاره ده ، نو د دغه حروفو د مجموعې نوم فمي بشوق دی او د قرآن کريم دغه ختم حضرت علي رضي الله عنه ته منسوب دی چي هغه به په دغه ترتيب سره قرآن کريم ختموی .

اوس بېرته د حديث مفهوم ته راسئ په دې اړه د نووي رحمه الله قول دی چي د حديث حکم د اشخاصو په اعتبار مختلف دی يعني هغه خبره چي د هغه تعلق د کم فهمه او کم علمه سره وي نو کوم کسان چي پر قرآني علومو او معارفو باندي نظر لري او د قرآن کريم په دقائقو او معارفو باندي د پوهېدو صلاحيت لري نو هغوئ هم دومره اقتصار کولای سي چي هغوئ قرآن ووايي نو د ويلو پر وخت د قرآن کريم د آيت کمال او فهم هم هغوئ ته حاصليږي او کوم څوک چي د علم د توسيع او خپرېدو يا د خلکو د فيصلو کولو يا دا ډول نورو کارونو کي بوخت وي نو هغه دي پر دومره ويلو باندي اکتفاء وکړي چي په هغه سره د هغه په کارونو کي حرج واقع نسي

همدارنگه کوم څوک چي د علم په ترلاسه کولو یا د خپلي کورنۍ د ژوند د اړتیاوو په برابرولو کي بوخت وي نو د هغه لپاره هم دا حکم دی ، د پورتنیو کسانو څخه پرته د نورو کسانو لپاره دا حکم دی چي هغوئ څومره ویلای سي وه دي یې وایي په شرط ددې چي زیات ویل د ستړیا او د الفاظو د تېز ادا کولو حد ته و نه رسیږي .

## قران کریم په لوړ اواز ویل غوره دی که په کښته ؟

﴿۲۰۹۸﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ ابْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عقبة بن عامر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل

اَلْجَاهِرُ بِالْقُرْآنِ كَالْجَاهِرِ بِالصَّدَقَةِ وَالْمُسِرُّ بِالْقُرْآنِ كَالْمُسِرِّ بِالصَّدَقَةِ .

رواه الترمذي وابوداؤد والنسائي وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب

په لوړ آواز سره قرآن ویونکی د هغه چا په ډول دئ چي صدقه په څرگنده ورکړي او په کراره قرآن ویونکی د هغه چا په ډول دئ چي په پټه صدقه ورکړي. ترمذي، ابوداؤد، نسائي، ترمذي ویلي دي دا حدیث حسن غریب دئ .

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\۸۳، رقم: ۱۳۳۳، والترمذي ۵\۱۶۵، رقم: ۲۹۱۹، والنسائي ۵\۸۰، رقم: ۲۵۶۰.

**تشريح**: په پټه صدقه ورکول تر ښکاره صدقې ورکولو غوره دي، ددغه حدیث مفهوم دادی چي همدارنگه د قرآن کریم په کراره ویل تر لوړ آواز ویلو غوره دي .

علامه طیبي رحمة الله علیه فرمایي څرنگه چي په کرار آواز سره د قرآن کریم د فضیلت په باره کي حدیثونه منقول دي همداسي په لوړ آواز د قرآن کریم ویلو د فضیلت په اړه هم حدیثونه منقول دي په دواړه ډوله حدیثو کي مطابقت دادی چي په کرار آواز سره ویل د هغه چا لپاره افضل دي چي په ریا کي د اخته کېدو بېره ولري او په لوړ اواز سره ویل د هغه چا په حق کي افضل دي کوم چي په ریا کي د لوېدو بېره نلري په شرط ددې چي د لوړ آواز په وجه لمونځ کونکو ، بېدو خلکو او یا بل چا ته تکلیف ونه رسیږي ، په لوړ آواز سره قرآن کریم ویل ځکه افضل دي چي په داسي کولو سره نورو ته هم گټه رسیږي یا نور خلک د قرآن کریم په اورېدو سره هغه زده کوي یا اورېدونکو ته ثواب رسیږي په لوړ آواز سره قرآن کریم ویل د دین د شعار او د الله تعالی د کلام څرگندونه ده د ویونکي زړه ته بېداري حاصلیږي د هغه توجه بلي خوا ته نه ځي د هغه د زړه غفلت لیري کوي او د خوب غلبه کموي او دا چي مسلمانانو ته د عبادت شوق ورکوي په هر

حال د ګټو څخه يوه ګټه که مقصود وي نو بيا په دې صورت کې په لوړ آواز سره ويل به افضل وي.

## د قران کريم د پوره پيروی تاکيد

﴿۲۰۹۹﴾: وَعَنْ صُهَيْبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مَا آمَنَ بِالْقُرْآنِ مَنِ اسْتَحَلَّ مَحَارِمَهُ. رواه الترمذي وقال هذا حديث ليس اسناده بالقوي

د حضرت صهيب رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چې د قرآن کريم حرام کړي شيان حلال وګڼل هغه په قرآن ايمان نه راوړئ، ترمذي، وويل ددې حديث اسناد قوي نه دي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۱۶۵، رقم: ۲۹۱۸.

**تشريح**: مطلب دادی چې الله تعالی په خپل کتاب کې کوم شيان حرام کړي دي که چيري يو څوک حلال وګڼي نو هغه کافر سو او کله چې هغه کافر سو نو بيا پر قرآن کريم باندي د هغه ايمان څرنګه وي، يا ددې مطلب دادی چې کوم څوک پر قرآن کريم باندي کامل ايمان نه راوړي او په هغه شيانو سره د حلال په شان معامله وکړي کوم چې الله تعالی حرام ګرځولي دي يعني هغه په قرآن کريم کې د مذکوره حرام او منع شيانو ارتکاب کوي.

## د رسول الله ﷺ قرائت

﴿۲۱۰۰﴾: وَعَنِ اللَّيْثِ ابْنِ سَعْدٍ عَنْ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ يَعْلَى بْنِ مَمْلَكٍ أَنَّهُ سَأَلَ

حضرت ليث بن سعد د حضرت ابو مليکه او هغه د يعلي بن مملک (رض) څخه روايت کوي چې هغه پوښتنه وکړه

أُمَّ سَلَمَةَ عَنْ قِرَاءَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا هِيَ تَنْعَتُ قِرَاءَةً مُفَسَّرَةً حَرْفًا حَرْفًا. رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي.

د بي بي ام سلمة (رض) څخه د رسول الله ﷺ د قرآن په اړه، هغې د رسول الله ﷺ د قرائت صفت دا بيان کړ چې د رسول الله ﷺ به يو يو حرف واضح وو، ترمذي، ابوداؤد او نسائي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\ ۱۵۴، رقم: ۱۴۶۶، والترمذي ۵\ ۱۶۷، رقم: ۲۹۲۳، والنسائي ۲\ ۱۸۱، رقم: ۱۰۲۱.

**تشریح** مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به قرآن کریم داسي وایه که چیري یو چا به غوښتل چي د قرائت حرفونه وشمېري نو دا ممکنه وه یعني قرآن کریم یې په ښه ترتیل او تجوید سره وایه.

علامه طیبي رحمه الله فرمایي چي د بي بي ام سلمه رضي الله عنها په اړه منقول الفاظ دوه احتماله لري یا خو هغې د رسول الله ﷺ د قرائت کیفیت په الفاظو کي بیان کړیا دا چي هغه قرآن کریم په داسي ویلو سره اوروئ لکه څرنګه چي به رسول الله ﷺ وایه.

د ابن عباس رضي الله عنه په اړه منقول دي چي هغه به فرمایل بېله ترتیله د ټول قرآن کریم ویلو په نسبت یو سورت په ترتیل سره ویل زما په نزد غوره دي.

**﴿۲۱۰﴾**: وَعَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ

حضرت ابن جریح د ابن ابي ملیکة څخه او هغه د بي بي ام سلمة څخه روایت کوي چي هغې وویل د رسول الله ﷺ په قرائت کي به

ﷺ يُقَطِّعُ قِرَاءَتَهُ يَقُولُ { الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ } ثُمَّ يَقِفُ ثُمَّ يَقُولُ

یو یو حرف بیل بیل او واضح وو، یعني رسول الله ﷺ به الحمد لله رب العلمین وویل او دریدئ به، بیا به یې

{ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ } ثُمَّ يَقِفُ. رواه الترمذي و قال ليس اسناده بمتصل لان الليث روى هذا الحديث عن ابن ابي مليكة من يعلي بن مملك عن ام سلمة و حديث الليث اصح.

الرحمن الرحیم، وویل او دریدئ به، ترمذي وویل ددې حدیث سند متصل نه دئ ځکه چي لیث دا حدیث د ابن ابي ملیکة څخه هغه د یعلي بن مملک څخه او هغه د بي بي ام سلمة څخه روایت کړئ دئ د لیث حدیث زیات صحیح دي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵/ ۱۷۰، رقم: ۲۹۲۷.

**تشریح** ځیني علماء وایي چي دغه حدیث د استدلال قابل نه دی او اهل بلاغت دا روایت نه قبلوي ځکه د قاعدې له مخي وقف تام پر مالک یوم الدین باندي دی ځکه امام ترمذي فرمایي چي په دې باره کي صحیح حدیث د حضرت لیث رضي الله عنه دی.

د جمهورو علماؤ (چي حنفيه هم په دوئ کي گډ دي د دوئ په نزد هم پر مالک يوم الدين باندي وقف دی) په نزد په دا ډول آياتونه کي چي په خپلو کي يو تر بل مربوط او متعلق وي وصل غوره دی او د جزري رحمة الله عليه قول دی چي وقف مستحب دی د هغه د ليل دغه حديث دی او د شوافع مذهب هم دا دی د دغه حديث په باره کي د جمهورو څخه دا جواب ورکړل سوی دی چي دا وقف ځکه وو چي اوريدونکو ته وښيي چي د دغه آياتونو ابتداء د کوم ځای څخه ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### قرائت يوازي د خوش اوازۍ نوم نه دی

﴿۲۱۰۲﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم زموږ په لور تشريف راوړ او موږ

نَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَفِينَا الْأَعْرَابِيُّ وَالْأَعْجَمِيُّ قَالَ اقْرَءُوا فَكُلٌّ حَسَنٌ وَسَيَجِيءُ

هغه وخت قرآن کريم وايه، او په موږ کي صحرايي خلک هم وه او عجمي (يعني غير عرب) خلک هم وه، رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: وه يې وايا ستړول صحيح دئ او ډير ژر به راسي

أَقْوَامٌ يُقِيمُونَهُ كَمَا يُقَامُ الْقِدْحُ يَتَعَجَّلُونَهُ وَلَا يَتَأَجَّلُونَهُ . رواه ابوداؤد والبيهقي في شعب الايمان .

داسي قومونه چي قرآن به داسي سيده کړي لکه څنګه چي غشی سيده کيږي او د قرآن کريم الفاظ به په ښه ښکلا سره وايي تلوار به کوي په هغه کي به د وخت انتظار نه کوي يعني په دنيا کي به د هغه ګټه تر لاسه کړي او په آخرت کي به هيڅ نه وي . ابوداؤد او بيهقي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۱\۵۲۰، رقم: ۸۳۰، البيهقي في شعب الايمان ۲\۵۳۸، رقم: ۲۶۴۲.

**تشريح**: عجم هغه خلکو ته وايي چي عرب نه وي ، حضرت جابر رضي الله عنه چي د کوم مجلس ذکر کوي په هغه کي داسي صحابه کرام هم وه چي د هغوئ تعلق د عربو سره نه وو بلکه هغوئ فارسي، رومي او حبشي وه لکه حضرت سلمان (فارسي) رضي الله عنه، حضرت صهيب (رومي) رضي الله عنه او حضرت بلال (حبشي) رضي الله عنه .

که څه هم په هغه مجلس کي د موجوده صحرائي او عجمي خلکو قرائت د عربو په ډول نه

وو مګر ددې سربېره رسول الله ﷺ هغوئ ته ووېل چې ستاسو د ټولو قرائت ښه او د ثواب وړ دی ځکه چې تاسو ددنيا په مقابله کې آخرت ته ترجيح ورکړې ده که تاسو خپله ژبه او آواز ښکلی کړی نه وي نو دا ستاسو لپاره ضروري نه ده او ستاسو څخه وروسته به يو داسې ډله پيدا کېدونکې وي چې هغوئ به قرآن کريم داسې سيده کړي لکه غشی چې سيده کيږي يعني خپل آوازونه او قرآني الفاظ به ښه سم کړي او د مخارجو په ادا کولو کې به ډېر زيات تکليف کوي مګر د هغوئ دغه ټول تکليف به د آخرت لپاره نه وي بلکه د خپل شهرت ، خپل عزت ، فخر او دنيا ته د ښودنې او اورولو لپاره به داسې کوي .

نو ددغه حديث د آخرې الفاظو مطلب دادی چې داسې خلک به محض د دنيوي ګټې لپاره قرآن کريم وايي او د آخرت د ثواب سره به يې هيڅ په قصد کې نه وي ځکه هغوئ به دنيا ته پر آخرت ترجيح ورکوي يا داسې چې دين به دنيا په بدله کې خرڅوي .

خلاصه دا چې د قرآن کريم ويلو په باره کې غور او فکر او د آياتو په معنی کې استغراق ته د اوليت مقام تر لاسه کېدل پکار دي محض د مخارج او صحيح الفاظو د ادا کولو او خوش آوازۍ سره ويل هيڅ په کار نه راځي .

﴿۲۱۰۳﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِقْرَؤُوْا

د حضرت حذيفة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : واياست

الْقُرْآنَ بِلُحُوْنِ الْعَرَبِ وَأَصْوَاتِهَا وَإِيَّاكُمْ وَلُحُوْنَ أَهْلِ الْعِشْقِ وَلُحُوْنَ أَهْلِ

قرآن د عربو په لهجه او آواز سره او خپل ځان د مينه ناکو غزلو او د اهل کتابو د لحن څخه ساتئ ،

الْكِتَابَيْنِ وَسَيَجِيْئُ بَعْدِيْ قَوْمٌ يُرَجِّعُوْنَ بِالْقُرْآنِ تَرْجِيْعَ الْغِنَاءِ وَالنَّوْحِ لَا

زما وروسته به يو قوم راسي چې قرآن کريم به په ښکلا سره وايي (يعني په غزلو کې) او د سندرو په ډول به يې وايي او حالت به يې دا وي چې قرآن کريم به د حلق څخه کښته نه ځي

يُجَاوِزُ حَنَاجِرَهُمْ مَفْتُوْنَةٌ قُلُوْبُهُمْ وَقُلُوْبُ الَّذِيْنَ يُعْجِبُهُمْ شَأْنُهُمْ . رواه البيهقي في شعب الإيمان وزرين في كتابه .

يعني پر زړه به يې هيڅ اثر نه کوي ددې خلکو زړونه به په فتنه کې پريوتلي وي او د هغه خلکو

زړونه هم چي هغوئ ته د سندرو په ډول د دې ويل ښه ځرگنديږي . بيهقي او زرين .

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۲\ ۵۴۰، رقم: ۲۶۴۹.

**تشريح** عرب بېله تکلفه او په اساني سره قرآن کريم وايي د هغوئ آواز د هغوئ د زړه د خواهش سره سميږي د هغوئ په مخکي د موسيقۍ وغيره په ډول قواعد نه وي نو هغوئ په تکلف کولو سره د خپل آواز او لهجې جوړولو هڅه کوي ځکه ويل سوي دي چي هر مسلمان ته پکار ده چي هغه قرآن کريم په هغه خاص لهجه او آواز کي ووايي کوم چي د قرآن کريم د عظمت او حقيقت مطابق وي او هغه د اهل عرب لهجه ده ، په دغه جمله کي د بلحون العرب واصواتها لفظ د اصواتها د عطف تفسيري په توگه دی .

د عاشقانو او اهل کتاب د طريقو مطابق : د دې څخه مراد دادی چي څرنگه چي عاشقان او شاعران خپل نظمونه او غزلې په آواز او ترنم سره وايي او د موسيقۍ او راگ رعايت کوي تاسو همدارنگه قرآن کريم مه واياست يهود او نصارا به هم خپل کتابونه په داسي غلطي طريقې سره ويل ځکه د هغو په ډول د ويلو څخه هم منع وفرمايل سوه .

د هغوئ زړونه به په فتنه کي اخته سي : د دې مطلب دادی چي هغوئ به د دنيا په محبت کي اخته سي او چونکه خلک به د هغوئ آوازو ته ښه وايي ځکه نو هغوئ به په نوري زياتي گمراهۍ کي اخته سي او همداسي د هغوئ اوازونه اوريدل او د هغوئ څخه خوند اخستلو په وجه هغوئ ته ښه ويل هم غلط کار دی او حال دا چي غلط کارکوونکي ته ښه ويل هم گمراهي او ضلالت دی .

## قران کريم په ترتيل سره د ويلو حکم

﴿۲۱۰۴﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ حَسِّنُوْا الْقُرْآنَ بِأَصْوَاتِكُمْ فَإِنَّ الصَّوْتَ الْحَسَنَ يَزِيْدُ الْقُرْآنَ حُسْنًا . رواه الدارمي

د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي قرآن کريم په خپلو آوازو سره په ښه ډول واياست ځکه چي په خوش آوازۍ سره د قرآن ښکلا زياتيږي . دارمي

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\ ۵۶۵، رقم: ۳۵۰۱.

## د حسن قرائت معيار

﴿۲۱۰۵﴾: وَعَنْ طَاوُوْسٍ مُرْسَلاً قَالَ سُئِلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ

د حضرت طاؤس څخه مرسلا روايت دئ چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول : څوک

النَّاسِ أَحْسَنُ صَوْتًا لِلْقُرْآنِ ؟ وَأَحْسَنُ قِرَاءَةً ؟ قَالَ مَنْ إِذَا سَمِعْتَهُ يَقْرَأُ

په قرآن ويلو کي ښه آواز لري ؟ او څوک د قرائت په اړه ښه دئ ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه څوک چي ته د هغه قرائت واورې

أُرِيتَ أَنَّهُ يَخْشَى اللّٰهَ قَالَ طَاؤُسٌ وَكَانَ طَلْقٌ كَذٰلِكَ . رواه الدارمي

نو دا حس کړې چي هغه د الله څخه بيريږي ، طاؤس وايي حضرت طلق رحمه الله همداسي لوستل کول . دارمي.

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\۵۶۳، رقم: ۳۴۸۹.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د جواب مطلب دادی چي که چيري يو څوک قرآن کريم وايي او د هغه په اوريدو سره ستاسو په زړو کي اثر کيږي يا دا چي د هغه په باره کي دا څرګنده سي چي هغه د قرآن کريم د ويلو پر وخت د الله تعالی څخه بېريږي مثلا د هغه رنګ د الله تعالی د بيري څخه بدل سي يا زيات ژاړي نو پوه سئ چي د قرآن کريم په ويونکو کي هغه د خپل آواز او قرائت د مؤثر کېدو په اعتبار تر ټولو غوره دی.

حضرت طلق رحمه الله يو جليل القدر تابعي دی کله چي به هغه قرآن کريم وايه نو د الله تعالی خوف به پر هغه خپريدی ، د نوموړي په اړه د مشکوة مؤلف ليکلي دي چي هغه صحابي دی.

## د قران کريم په اړه يو څو احکامات

﴿۲۱۰۶﴾: وَعَنْ عُبَيْدَةَ الْمُلَيْكِيِّ وَكَانَتْ لَهُ صُحْبَةٌ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

د حضرت عبيدة الملیکي رضي الله عنه څخه چي د رسول الله ﷺ د نژدې خلکو څخه دئ روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَهْلَ الْقُرْآنِ لَا تَتَوَسَّدُوا الْقُرْآنَ وَاتْلُوْهُ حَقَّ تِلَاوَتِهِ مِنْ

اې اهل قرآن ! تاسو د قرآن څخه ډډه مه کوئ او په شپه او ورځ کي قرآن وايا ست لکه څرنګه چي

لوستل يې پكار دي

آنَاءِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَأَفْشُوهُ وَتَغَنَّوهُ وَتَدَبَّرُوا مَا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ

او قرآن خپور كړئ او قرآن په ښكلي آواز سره وايا ست او څه چې په قرآن كي دي په هغه كي فكر وكړئ چې خلاصون او برياليتوب مو په برخه سي

وَلَا تُعَجِّلُوا ثَوَابَهُ فَإِنَّ لَهُ ثَوَابًا. رواه البيهقي في شعب الإيمان

او ددې په ثواب كي تلوار مه كوئ ځكه چي ددې لوى ثواب (په اخرت) كي دئ. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۲\۳۵۰، رقم: ۲۰۰۷.

**تشريح**: پر قرآن كريم تكيه مه كوئ: ددې مطلب دادى چې د قرآن كريم په ويلو او د هغه د حق په ادا كولو كي كوتاهي او غفلت مه كوئ بلكه قرآ نكريم وايا ست او د هغه حق ادا كوئ په دې توگه چي د هغه حروف په ښه ډول ادا كوئ او د هغه په معنى ځان پو هوئ او عمل په كوئ.

علامه ابن حجر رحمه الله فرمايي چي پر قرآن كريم باندي تكيه لگول پر هغه باندي په تكيه كولو سره كښېنستل يا پريوتل او يا هغه ته پښې غزول يا يو شى ور باندي ايښودل او هغه ته شا كول، يا تر پښو لاندي كول دا ټول شيان حرام دي، د قرآنكريم څخه فال اخيستل مكروه دي بلكه د ځينو مالېكه په نزد حرام دي.

د قرآن كريم د ويلو په وخت كي د څلورو خبرو خيال ساتل پكار دي: ۱- اول خو دا چي الفاظ صحيح او سم ادا كړل سي، ۲- دوهم دا چي د هغه په معنى او مفهوم باندي پو هېدل پكار دي، ۳- دريم دا چي د معنى او مفهوم په مقصد باندي پو هېدل پكار دي، ۴- او څلورم دا چي څه وويل سي په هغه عمل وكړل سي.

قرآن ظاهر كړئ، يعني قرآن كريم په لوړ آواز وايا ست چي نور خلك يې واورئ او د هغوئ هم د قرآن كريم د ويلو شوق پيدا سي، قرآن كريم نورو خلكو ته وښيا ست په قرآن كريم عمل كوئ او خپل ژوند د قرآن كريم مطابق وگرځوئ څه چي په هغه كي مذكور دي په هغه كي غور او فكر كوئ ددې مطلب دادى چي كوم آياتونه د تبيه، وعيد او د آخرت په باره كي راغلي دي په هغه آياتو كي ښه غور او فكر كوئ تر څو د دنيا څخه بې رغبتي او آخرت ته ميلان راسي.

==========

# بَابُ اِخْتِلافِ الْقِرَائَتِ وَجَمْعِ الْقُرانِ

## د قرائت اختلاف او د قران یو ځای کولو بیان

د مشکوة شریف په اکثرو نسخو کي یوازي باب لیکل سوی دی، ددې مطلب دادی چي دا باب د قرآن کریم سره اړوند دی مګر په ځینو نسخو کي دلته دا عنوان لیکل سوی دی : باب اختلاف القرآن وجمع القرآن- یعني د قرائت او لغاتو اختلاف او د قرآن کریم د جمع کېدو بیان ، د قرآن کریم کتابت یعني د هغه د مصحف په شکل کي لیکل.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د قرائت اختلاف

﴿۲۱۰۷﴾: عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ سَمِعْتُ هِشَامَ بْنَ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ

د حضرت عمر بن الخطاب ﷺ څخه روایت دئ چي ما د هشام بن حکیم بن حزام څخه

يَقْرَأُ سُورَةَ الْفُرْقَانِ عَلَى غَيْرِ مَا أَقْرَؤُهَا وَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

سورة فرقان واوریدئ چي د هغه طریقې څخه خلاف وو په کومه طریقه چي ما وایه ، او دا سورت خپله رسول الله ﷺ

أَقْرَأَنِيهَا فَكِدْتُ أَنْ أَعْجَلَ عَلَيْهِ ثُمَّ أَمْهَلْتُهُ حَتَّى انْصَرَفَ ثُمَّ لَبَّبْتُهُ بِرِدَائِهِ

ما ته ښودلی وو ، نژدې وو چي زه په دې اړه د هشام سره په جګړه اخته سم، مګر ما د آرامتیا څخه کار واخیستئ او هغه ته مي وخت ورکړ تر څو چي هغه سورت ختم کړ بیا ما د هغه په غاړه کي د هغه څادر واچوئ

فَجِئْتُ بِهِ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي سَمِعْتُ

او په راکشولو مي د رسول الله ﷺ ته راویست او رسول الله ﷺ ته مي وویل : اې د الله رسوله !

هَذَا يَقْرَأُ سُورَةَ الْفُرْقَانِ عَلَى غَيْرِ مَا أَقْرَأْتَنِيهَا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

دا (هشام) سورة فرقان د هغه طریقې څخه خلاف وایي په کومه طریقه چي تا ما ته ښودلی دئ ،

رسول الله ﷺ وفرمایل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْسِلْهُ اقْرَأْ فَقَرَأَ الْقِرَاءَةَ الَّتِي سَمِعْتُهُ يَقْرَأُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ

اې عمر ! دی پرېږده ، بیا یې هشام ته وفرمایل : ته یې ووایه، (یعني سورة فرقان) نو هشام په هغه طریقه ووایه په کومه طریقه چې ما ځیني اوریدلی وو، رسول الله ﷺ وفرمایل :

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَكَذَا أُنْزِلَتْ ثُمَّ قَالَ لِي اقْرَأْ فَقَرَأْتُ فَقَالَ هَكَذَا

دا سورت داسي نازل سوی دئ بیا رسول الله ﷺ ما ته د ویلو لپاره وفرمایل : ما په خپله طریقه ووایه ، رسول الله ﷺ چې واوریدئ نو وه یې فرمایل :

أُنْزِلَتْ إِنَّ هَذَا الْقُرْآنَ أُنْزِلَ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ .

متفق علیه و اللفظ لمسلم

دا سورة داسي نازل سوئ دئ بیا یې وفرمایل : دا قرآن په اوو حروفو (یعني اوو طریقو) نازل سوی دئ . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۷۳، رقم: ۲۴۱۹، ومسلم ۱\۵۶۰، رقم: ۲۷۰.

**تشریح**: د دغه حدیث په معنی او مفهوم کي د علماؤ ډېر زیات اختلاف دی او ددې په تشریح او وضاحت کي تقریبا څلوېښت اقوال نقل سوي دي په هغو کي یو قول دا هم دی چې دا حدیث د متشابهاتو څخه دی چې د هغه حقیقي معنی (بېله الله جلاله) هیچا ته معلومه نه ده .

ځیني حضرات وایي چې د قرائت اختلاف که څه هم د اوو طریقو څخه زیات منقول دي مګر هغه ټول اختلافات اووه وجو ته راجع دي او هغه اووه وجي دادي :۱-د د اختلاف اوله وجه د کلمې په ذات کي یعني د کلمې د کمۍ او زیاتوب اختلاف، ۲- دوهمه وجه د جمع او واحد د صیغې سره تغیر کېدل، ۳: دریمه وجه د مذکر او مؤنث اختلاف، ۴: څلورمه وجه د حروف صرفي اختلاف یعني تخفیف او تشدید ، فتحه او کسره او د ضمه اختلاف لکه مَيْتٌ هم ویل کیږي او مَيِّتٌ هم، همداسي يَقْنُط او يَقنِطُ او يَعرِشُ يَعرُش او داسي نور ، ۵: پنځمه وجه د حرکاتو اختلاف، ۶: شپږمه وجه د حروفو اختلاف لکه لكن الشياطين چې ځیني دغه نون په تشدید سره وایي او ځیني یې د نون په تخفیف سره وایي، ۷: اوومه وجه د لغاتو د ادا کولو اختلاف لکه تفخیم او اماله .

د مظاهر حق جدید په اول جلد باب العلم کي دغه باب په نسبت ددې ځای زیات په وضاحت سره بیان سوی دی .

## هر قرائت صحیح دی

﴿۲۱۰۸﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ سَمِعْتُ رَجُلًا قَرَأَ آيَةً وَسَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى

د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دئ چي ما د یو سړي څخه قرآن ویل واوریدل چي د هغه

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ خِلَافَهَا فَجِئْتُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

طریقې خلاف وو په کومه طریقه چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلی وو ، هغه سړی ما رسول الله ﷺ ته راوستئ

فَأَخْبَرْتُهُ فَعَرَفْتُ فِي وَجْهِهِ الْكَرَاهِيَةَ فَقَالَ كِلَاكُمَا مُحْسِنٌ فَلَا تَخْتَلِفُوْا فَإِنَّ

او ښېښه مي ورته بیان کړه ، ما ولیدل چي د ښېښي په اوریدو سره د رسول الله ﷺ پر مخ مبارک باندي د ناخوښۍ اثر څرګند سو ، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل : تاسو دواړه سم او ښه وایاست په خپل منځ کي اختلاف مه کوئ ځکه چي

مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ اخْتَلَفُوْا فَهَلَكُوْا . رواه البخاري

کوم خلک ستاسو څخه وړاندي تیر سوي دي هغوئ په خپل منځ کي د اختلاف په کبله هلاک سوي دي . بخاري.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۵\ ۷۰، رقم: ۲۴۱۰،

**تشریح** دلته د اختلاف څخه مراد د قرآن کریم هغه وجهو څخه د یوې وجي انکار دی چي د هغه مطابق قرآن کریم نازل سوی دی لکه څرنګه چي مخکي هم ښودل سوي دي، د قرآن کریم څومره قرائتونه چي منقول او رواج دي هغه ټول صحیح او پر حق دي په هغو کي د یوه قرائت څخه هم انکار کول نه دي پکار ځکه که یو څوک د هغه څخه د یوه قرائت انکار هم وکړي نو لکه چي هغه د قرآن کریم څخه انکار وکړ دلته دا هم په ذهن کي ساتل پکار دي چي ځیني قرائتونه متواتر دي او ځیني احاد، متواتر هغه اووه قرائتونه دي کوم چي ویل کیږي .

﴿۲۱۰۹﴾: وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ كُنْتُ فِي الْمَسْجِدِ فَدَخَلَ رَجُلٌ يُصَلِّي فَقَرَأَ

د حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه څخه روایت دئ چي زه په مسجد کي وم چي یو سړی راغلئ او لمونځ يې وکړ هغه قرآن په داسي طریقه ووایه چي

قِرَاءَةً أَنْكَرْتُهَا عَلَيْهِ ثُمَّ دَخَلَ آخَرُ فَقَرَأَ قِرَاءَةً سِوَى قِرَاءَةِ صَاحِبِهِ فَلَمَّا

ما د هغې طریقې څخه انکار وکړ، یو بل سړی راغلی او هغه د بل سړي خلاف قرائت ووایه.

قَضَيْنَا الصَّلَاةَ دَخَلْنَا جَمِيعًا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ ﷺ فَقُلْتُ إِنَّ هَذَا قَرَأَ قِرَاءَةً

کله چي موږ د لمانځه څخه فارغ سو نو د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او ما عرض وکړ دغه سړي په داسي ډول قرآن وایه

أَنْكَرْتُهَا عَلَيْهِ وَدَخَلَ آخَرُ فَقَرَأَ سِوَى قِرَاءَةِ صَاحِبِهِ فَأَمَرَهُمَا النبي ﷺ

چي زما غوږونو قبول نه کړ، دا دویم سړی چي راغلی نو ده د هغه سړي خلاف قرآیت وایه، رسول الله ﷺ هغو دواړو ته د ویلو حکم ورکړ،

فَقَرَأَ فَحَسَّنَ شَأْنَهُمَا فَسَقَطَ فِي نَفْسِي مِنَ التَّكْذِيبِ وَلَا إِذْ كُنْتُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ

هغوی وویل، او نبي کریم ﷺ د هغو دواړو خلکو د ویلو تعریف وکړ، په دې سره زما په زړه کي سخته شبه او شک پیدا سو، لکه چي ما هغه دروغ وګڼئ او دا شبه او شک د جاهلیت د شبهې او شک څخه هم زیات وو،

فَلَمَّا رَأَى رَسُولُ اللَّهِ ﷺ مَا قَدْ غَشِيَنِي ضَرَبَ فِي صَدْرِي فَفِضْتُ عَرَقًا

کله چي رسول الله ﷺ زما حالت ولیدئ نو زما پر سینه يې خپل لاس مبارک را تیر کړ او زه خوله خوله سوم

وَكَأَنَّمَا أَنْظُرُ إِلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ فَرَقًا فَقَالَ لِي يَا أُبَيُّ أُرْسِلَ إِلَيَّ أَنْ اقْرَأْ الْقُرْآنَ

او زما دا حالت سو لکه چي زه د بیري څخه الله تعالی په لور ګورم، بیا رسول الله ﷺ ما ته وفرمایل: اوس ما ته ملائکه راولیږل سوه او حکم راکړل سو چي ته قرآن کریم وایه

عَلَى حَرْفٍ فَرَدَدْتُ إِلَيْهِ أَنْ هَوِّنْ عَلَى أُمَّتِي فَرَدَّ إِلَيَّ الثَّانِيَةَ اقْرَأْهُ عَلَى حَرْفَيْنِ

په يوه طريقه ، ما الله ﷻ ته عرض وکړ چي زما پر امت اساني وکړي ، بيا ما عرض وکړ ، الله تعالى ما ته بيا په دوو طريقو د قرآن ويلو حکم وکړ ،

فَرَدَدْتُ إِلَيْهِ أَنْ هَوِّنْ عَلَى أُمَّتِي فَرَدَّ إِلَيَّ الثَّالِثَةَ اقْرَأْهُ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ وَلَكَ

ما بيا غوښتنه وکړه او عرض مي وکړ چي زما پر امت اساني وکړي ، نو په دريم وار په اوو طريقو د قرآن ويلو حکم وسو ،

بِكُلِّ رَدَّةٍ رَدَدْتُكَهَا مَسْأَلَةٌ تَسْأَلُنِيهَا فَقُلْتُ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِأُمَّتِي اللَّهُمَّ اغْفِرْ

او الله تعالى وفرمايل : څومره واره چي موږ تا ته حکم درکړئ دئ هغومره واره ته زموږ څخه سوال وکړه (يعني دري ځله) تا زموږ څخه سوال کړئ دئ نو دري واره زموږ څخه دعاء وغواړه چي موږ هغه قبوله کړو ، ما (نبي کريم ﷺ) وويل : اللهم اغفر لامتي اللهم اغفر

لِأُمَّتِي وَأَخَّرْتُ الثَّالِثَةَ لِيَوْمٍ يَرْغَبُ إِلَيَّ الْخَلْقُ كُلُّهُمْ حَتَّى إِبْرَاهِيمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ . رواه مسلم

لامتي (اې الله زما امت و بخښې ، اې الله زما امت و بخښې) ، او د دريم وار دعاء مي د هغه ورځي لپاره وساتل چي زما څخه به ټول مخلوق شفاعت وغواړي تر دي چي حضرت ابراهيم عليه السلام به هم زما څخه غوښتنه وکړي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۱ ۵۶۱- ۵۶۲، رقم: ۲۷۳- ۸۲۰.

**تشريح**: زما په زړه کي د تکذيب وسوسه پيدا سوه، کله چي رسول الله ﷺ د دواړو د قرائت تحسين او تائيد وکړ نو د حضرت اُبی په زړه کي د تکذيب وسوسه او شبه ځکه پيدا سوه چي رسول الله ﷺ خو دواړو قرائتو ته ښه وويل حالانکه قرآن کريم د الله تعالى کلام ځکه هغه په يو خاص طريقې سره ويل پکار دي دا څرنگه ممکن ده چي يو کلام دي څو کسان په مختلفو طريقو سره وايي او د هغو ټولو ويل دي صحيح وي.

داسي شبه او وسوسه چي د جاهليت په ورځو کي هم پيدا سوې نه وه: ددې مطلب دادی چي د جاهليت په زمانه کي زما زړه او د ماغ د ايمان او يقين په رڼا سره منور نه وو مگر اوس د الله تعالى په فضل سره زما زړه او د ماغ د اسلام په نور منور دی او د يقين او معرفت نعمت را ته حاصل دی نو دا وسوسه او شبه هم زيا ته لويه معلومه سوه .

څومره واره چي ما تا ته حکم درکړی دی : ددې مطلب دادی چي موږ تا ته درې واره حکم درکړ یعني یو وار خو د یوه قرائت مطابق، دوهم وار د دوهم قرائت مطابق او دریم وار د اووه قرائتو مطابق د قرآن کریم د ویلو حکم درکړ اوس ته ددغه درو سره په عوض کي زموږ څخه درې سواله وکړه چي موږ درې سره پوره کړو، نو رسول الله ﷺ درې سره سواله د خپل امت د بخښني لپاره وکړل ځکه چي اصل شی خو مغفرت دی که مغفرت نه وي نو د هیچا خلاصون ممکن نه دی لکه څرنګه چي د الله تعالی ارشاد دی :

وَإِن لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ

ژباړه: اې الله ! که ته موږ و نه بخښې او پر موږ رحم ونه کړې نو بېله شکه موږ د تاوانیانو څخه سو .

مګر رسول الله ﷺ پر دې موقع باندي مغفرت پر درو برخو تقسیم کړ دوه مغفرته خو رسول الله ﷺ د خپل امت لپاره یعني د ګناه کبیره او ګناه صغیره کونکو لپاره وغوښتل او دریم مغفرت یې د ټول مخلوق لپاره د قیامت ورځي لپاره پرېښود ، دې ته شفاعت کبری وایي یعني د قیامت په ورځ چي ټول به نفسي نفسي وایي او هیڅ نبي او پیغمبر به د مخلوق د شفاعت جرات نه کوي نو په پای کي به شافع محشر سرکار دوعالم ﷺ ته درخواست وکړل سي چي تاسو د پروردګار په دربار کي د مخلوق شفاعت وکړئ نو نبي کریم ﷺ به د ټولو شفاعت وکړي ، همدارنګه هغه دوهمه دعاء چي د هغه د قبولیت دعاء د الله تعالی د دربار څخه هغه وخت سوې ده او رسول الله ﷺ د نن یعني قیامت د ورځي لپاره پرې ایښې وه هغه به دلته په کار ورځي .

که څه هم ټول مخلوق تر دې چي ټول انبیاء به د رسول الله ﷺ د شفاعت خواهش کوي مګر په دغه ځای کي د ابراهیم علیه السلام نوم په خاصه توګه ذکر سوی دی ځکه ابراهیم علیه السلام د نبي کریم ﷺ څخه وروسته په ټولو انبیاؤ کي افضل دی .

## د قرائت په اختلاف سره پر دیني احکامو تاثیر نه لویږي

﴿۲۱۱۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

أَقْرَأَنِي جِبْرِيلُ عَلَى حَرْفٍ فَرَاجَعْتُهُ فَلَمْ أَزَلْ أَسْتَزِيدُهُ وَيَزِيدُنِي حَتَّى انْتَهَى

ما ته جبرائیل علیه السلام (قرآن) په یوه طریقه وښودئ ، ما الله تعالی ته د (اساني) لپاره

رجوع وکړه او همیشه به مي په اساني کي زیاتي غوښتني کولې تر څو چي

إِلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ . قال ابن شهاب بلغني ان تلك السبعة الاحرف انما هي في الامر تكون واحدا لا تختلف في حلال و لا حرام . متفق عليه .

اوو طریقو ته راورسیدو . د ابن شهاب راوي بیان دئ چي هغه اووه طریقي په دین کي متفق او یو برابر دي او په حرام او حلال کي هیڅ اختلاف نسته . بخاري او مسلم.

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۲۳، رقم: ۴۹۹۱، ومسلم ۱\۵۶۱، رقم: ۲۷۲ - ۸۱۹.

**تشريح** مطلب دادی چي د قرائت په اختلاف سره په قرآن کریم کي مذکوره احکام او مسائلو کي تغیر او تبدیل نه کیږي یعني داسي نه کیږي چي د قرآن کریم یو آیت په یوه قرائت ویل کیږي او په هغه آیت کي د یو شي د حلال کېدو ذکر موجود وي او بیا هغه آیت په دوهم قرائت سره ویل کیږي نو هغه د قرائت په اختلاف سره په حکم کي تغیر راسي او هغه شی چي په اول قرائت سره حلال ثابت وو اوس په دوهم قرائت سره هغه حرام سو داسي نه ده بلکه په یوه قرائت سره د یو شي د حلال کېدو حکم ثابتیږي نو په دوهم قرائت سره هم د هغه شي د حلال کېدو حکم ثابتیږي خلاصه دا چي د قرائت د اختلاف تعلق یوازي د الفاظو، لهجې او آواز سره دی د احکامو او معنی سره د دې هیڅ تعلق نسته .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د قران کریم په قرائت کي د اسانۍ لپاره د رسول الله ﷺ خواهش

﴿۲۱۱۱﴾ : عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ لَقِيَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جِبْرِيلَ

د حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه څخه روایت دئ چي نبي کریم ﷺ د جبرائیل علیه السلام سره ملاقات وکړ

فَقَالَ يَا جِبْرِيلُ إِنِّي بُعِثْتُ إِلَى أُمَّةٍ أُمِّيِّينَ مِنْهُمُ الْعَجُوزُ وَالشَّيْخُ الْكَبِيرُ

او وه یې فرمایل : اې جبرائیل ! زه یو بې علمه قوم ته رالیږل سوی یم او په دې قوم کي سپین سري ښځي او سپین ږیري خلک دي ،

وَالْغُلَامُ وَالْجَارِيَةُ وَالرَّجُلُ الَّذِي لَمْ يَقْرَأْ كِتَابًا قَطُّ قَالَ يَا مُحَمَّدُ إِنَّ الْقُرْآنَ

هلکان پکښې دي او انجوني دي، او داسې خلک هم سته چې هغو هیڅکله کتاب نه دی ویلی،
جبرائیل علیه السلام وویل : اې محمد ﷺ ! قرآن کریم

أُنْزِلَ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ . رواه الترمذي و في رواية لاحمد و ابي داؤد قال

په اوو طریقو باندې را استول سوی دی. ترمذي او د احمد او ابوداؤد په یوه روایت کې دا
الفاظ دي چې جبرائیل علیه السلام وویل :

ليس منها الا شاف كاف و في رواية للنسائي إِنَّ جِبْرِيلَ وَمِيكَائِيلَ عَلَيْهِمَا

او په دې اوو طریقو کې هره طریقه د کفر او شرک د ناروغۍ لپاره شفاء ده او د دین اسلام په حق
کیدو کې کافي ده او د نسائي په یوه روایت کې دا الفاظ دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل : ما ته
جبرائیل او میکائیل علیهما السلام راغلل،

السَّلَام أَتَيَانِي فَقَعَدَ جِبْرِيلُ عَنْ يَمِينِي وَمِيكَائِيلُ عَنْ يَسَارِي فَقَالَ

جبرائیل علیه السلام زما راسته لوري ته کښېنستئ او میکائیل علیه السلام زما چپه لوري ته
کښېنستئ، او جبرائیل علیه السلام وویل :

جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَام اقْرَأْ الْقُرْآنَ عَلَى حَرْفٍ قَالَ مِيكَائِيلُ اسْتَزِدْهُ حَتَّى

قرآن کریم په یوه طرز وایه او میکائیل علیه السلام نبي کریم ﷺ ته وویل نور زیات کړه، تر دې

بَلَغَ سَبْعَةَ أَحْرُفٍ فَكُلُّ حَرْفٍ شَافٍ كَافٍ .

چې د قرآن کریم قرائت اووه طریقو ته ورسیدئ او په هغو کې هره طریقه شافي او کافي ده.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\ ۱۷۸، رقم: ۲۹۴۴، الامام احمد في مسنده ۵\ ۱۲۴، وابوداؤد ۲\ ۱۶۰، رقم: ۱۴۷۷، والنسائي ۲\ ۱۵۴، رقم: ۹۴۰.

**تشریح** بې علمه قوم ته: د دې مطلب دا دی چې زه یو داسې قوم ته را لیږل سوی یم چې په هغه کې زیات داسې خلک دي چې په ښه ډول لیک او لوست نسي کولای که زه هغوئ ته د یوه قرائت مطابق قرآن کریم وښیم نو هغوئ به پر هغه قادر نسي د مثال په توګه په هغوئ کې داسې خلک دي چې د هغوئ ژبه یوازې پر اماله یا فتحه باندې چلیږي او ځیني خلک داسې دي چې د هغوئ پر ژبه باندې ادغام یا اظهار غالب وي بیا دا چې په دغه خلکو کې سپین سري ښځې او

سپین ږیري هم دي او کم عمره کوچنیان هم دي نو د هغوئ لپاره ممکن نه ده چي هغوئ د خپل سپین ږیرتوب یا کم عمرۍ په وجه یو خاص قرائت زده کړي نو د هغوئ لپاره ضروري ده چي څو قرائتونه وي او کوم یو چي ورته اسان وي د هغه مطابق قرآن کریم ووایي .

## قران کریم د سوال کولو ذریعه مه جوړوئ

﴿۲۱۱۲﴾ : وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ أَنَّهُ مَرَّ عَلَى قَاصٍّ يَقْرَأُ ثُمَّ سَأَلَ فَاسْتَرْجَعَ

د حضرت عمران بن حصین ﷺ څخه روایت دئ چي هغه د یو قصه ویونکي سړي سره تیر سو چي په قرآن ویلو سره یې خیرات غوښتئ ، د دې په لیدو سره هغه وویل انا لله وانا الیه راجعون،

ثُمَّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ يَقُولُ مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ فَلْيَسْأَلِ اللهَ بِهِ فَإِنَّهُ

بیا یې وویل : ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي څوک چي قرآن ووایي نو پکار دي چي د هغه په ذریعه د الله ﷻ څخه سوال وکړي

سَيَجِيءُ أَقْوَامٌ يَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ يَسْأَلُونَ بِهِ النَّاسَ. رواه احمد والترمذي

او هغه وخت نژدې دئ چي داسي خلک به پیدا سي چي په قرآن ویلو باندي د خلکو څخه خیرات غواړي . احمد او ترمذي .

**تخریج**: الامام احمد في مسنده ۴\ ۴۳۲، والترمذي ۵\ ۱۶۴، رقم: ۲۹۱۷.

**تشریح**: په دغه حدیث کي د هغه کسانو لپاره تنبیه او وعید دی کوم چي قرآن کریم د خیر غوښتلو یعني سوال کولو ذریعه جوړوي هسي خو دا خبره بذاته د انساني شرف خلاف ده چي یو سړي د خپل الله ﷻ په پرېښودو سره د ځان په ډول یو انسان څخه سوال کوي او هغه د دغه بد کار لپاره د قرآن کریم ذریعه جوړوي ځکه نو فرمایل سوي دي چي د قرآن کریم په ویلو سره د انسان په مخکي د سوال لاس مه غزوه ځکه چي هغه خپل د هغه ذات محتاج دی نو ستا حاجت به څه پوره کړي د قرآن کریم د تلاوت په وخت کي د الله تعالی څخه د دعاء غوښتلو غوره طریقه داده چي کله د رحمت یا د جنت ذکر راسي نو د الله تعالی څخه د هغه د رحمت او جنت غوښتونکی سه او کله چي د عذاب آیت یا د دوږخ ذکر راسي نو د الله تعالی پناه غواړه یا دا چي د قرائت څخه د فارغه کېدو وروسته هغه دعاوي غواړه کوم چي ماثوره دي او په دې وخت کي داسي دعاوي غوښتل پکار دي کوم چي د آخرت سره متعلق وي او په دین او دنیا کي د مؤمنانو د غوره والي او خیر لپاره وي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### قران كريم د دنياوي ګټې لپاره پر وسيله ګرځولو باندې تنبيه

﴿۲۱۱۳﴾: عَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ يَتَأَكَّلُ بِهِ النَّاسَ جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَوَجْهُهُ عَظْمٌ لَيْسَ عَلَيْهِ لَحْمٌ.

رواه البيهقي في شعب الإيمان

د حضرت بريدة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي قرآن كريم وايي او ددې له کبله د خلکو څخه خوري (يعني د دنيا تر لاسه کولو ذريعه يې جوړه کړي) نو هغه به د قيامت په ورځ په داسي صورت کي راوستل سي چي د هغه پر مخ به غوښه نه وي يوازي هډوکي به وي. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۲\۵۳۲، رقم: ۲۶۲۵.

### بسم الله د قران كريم يو ايت دی

﴿۲۱۱۴﴾: وَعَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَعْرِفُ فَصْلَ السُّورَةِ حَتّٰى تَنَزَّلَ عَلَيْهِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به د يوه سورت څخه د بل سورت فرق نه سو کولای تر څو چي د دوو سورتو په منځ کي د فرق کولو لپاره بسم الله الرحمن الرحيم نازل سوه. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۱\۴۹۹، رقم: ۷۸۸

**تشريح**: دا حديث په وضاحت سره دا ثابتوي چي بسم الله الرحمن الرحيم د قرآن كريم يو آيت دی چي د دوو سورتو په مينځ کي د فرق او امتياز ښکندولو لپاره نازل سوی دی لکه څرنګه چي د حنفيه مذهب دی.

### د حضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ سره يوه واقعه

﴿۲۱۱۵﴾: وَعَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ كُنَّا بِحِمْصَ فَقَرَأَ ابْنُ مَسْعُودٍ سُورَةَ يُوسُفَ فَقَالَ

د حضرت علقمه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ په حمص (شام) کي وو چي يوه ورځ ابن مسعود

ﷺ سورة يوسف تلاوت وکړ،

رَجُلٌ مَا هٰكَذَا أُنْزِلَتْ فَقَالَ عَبْدُ اللهِ وَاللهِ لَقَرَأْتُهَا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى

يوه سړي وويل: دا سورت داسي نه دئ نازل سوئ، عبد الله ابن مسعود ﷺ وويل: په الله ﷻ دي مي قسم وي ما دا سورت د رسول الله ﷺ په زمانه کي ويلي وو،

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَحْسَنْتَ فَبَيْنَمَا هُوَ يُكَلِّمُهُ إِذْ وَجَدَ مِنْهُ رِيحَ الْخَمْرِ

رسول الله ﷺ وفرمايل: تا ښه وو ايه، همدا خبري رواني وې چي د هغه سړي د خولې څخه د شرابو بوی راغلئ،

فَقَالَ اَتَشْرَبُ الْخَمْرَ وَتُكَذِّبُ بِكِتَابِ اللهِ فَضَرَبَهُ الْحَدَّ. متفق عليه

ابن مسعود ﷺ وويل ته شراب څښې او (قرائت د) کتاب الله دروا غجن ګڼې، بيا پر هغه شرعي حد جاري سو. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۴۷، رقم: ۵۰۰۱، ومسلم ۱\۵۵۱، رقم: ۲۴۹- ۸۰۱.

**تشريح**: که چيري د ابن مسعود ﷺ قرائت مشهور (يعني متواتر) وو نو هغه سړي د ده د قرائت په تکذيب کولو سره د کتاب الله تکذيب وکړ نو د هغه د دغه انکار او تکذيب يقينا هغه د کفر په حد کي داخل کړی وو او که د ابن مسعود ﷺ قرائت شاذ وي نو د هغه دغه تکذيب به د کتاب الله تکذيب ته نه مستلزم کيږي ځکه ويل کيږي چي په دغه صورت کي د ابن مسعود ﷺ هغه سړي ته دا ويل چي ته د کتاب الله تکذيب کوې تغليظا او تهديدا وو او په ظاهره دا خبره صحيح معلوميږي چي دلته د ابن مسعود ﷺ قرائت د شاذ مطابق سورة يوسف وايه دا وجه ده چي ابن مسعود ﷺ د هغه سړي د مرتد کېدو حکم ونه لګوی بلکه يوازي د شرابو پر حد جاري کولو يې اکتفاء وکړه.

علامه طيني رحمه الله فرمايي چي ابن مسعود ﷺ هغه سړي ته دا خبره تغليظا کړې ده ځکه قرائت او قرآن د اصل کلمې څخه انکار او دروا غ ګڼل کفر دی نه د هغه لهجه او ادا کول د کلمو.

خلاصه دا چي هغه سړي د لهجې او د کلماتو د ادا کولو څخه انکار کړی وو او د اصل قرآن کريم يا د اصل قرائت څخه يې انکار نه وو کړی ځکه ابن مسعود ﷺ پر هغه يوازي د شرابو حد جاري کړ او د مرتد کېدو حد يې پر جاري نه کړ.

د حديث د ظاهري مفهوم څخه يو بله مسئله هم اخيستل کيږي هغه دا چي عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه هغه سړي ته د شراب څښلو سزا ورکړه يعني پر هغه يې حد جاري کړ حال دا چي د شراب څښلو ثبوت د هغه د خولې څخه راتلونکی بوی دی ، د علماؤ د يو ډلي دا مذهب دی يعني د هغوئ په نزد د شراب څښلو جرم محض د خولې څخه د شرابو د بوی په راتلو باندي هم ثابتيږي مګر حنفيه او شوافع دواړو مذهب دادی چي د شراب څښلو جرم محض د خولې څخه بوی پر راتلو باندي نه ثابتيږي او نه پر داسي چا باندي حد جاري کيږي کله چي د هغه د خولې څخه د شرابو بوی راسي او د دې څخه پرته د هغه د شرابو څښلو بل ثبوت نه وي ځکه ډېر واره د ترش سيب او امرت بوی د شرابو د بوی مشابه وي .

کوم چي د ابن مسعود رضي الله عنه د دغه واقعې تعلق دی نو په دې اړه د دغه حضراتو له خوا دا ويل کيږي چي کېدای سي هغه سړي خپله د شرابو څښلو اقرار کړی وي يا د هغه پر شراب څښلو باندي شاهد قائم سوی وي ځکه نو پر هغه باندي حد جاري کړل سو .

## د قران کريم جمع کولو شروع

﴿۲۱۱۶﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ أَرْسَلَ إِلَيَّ أَبُو بَكْرٍ مَقْتَلَ أَهْلِ الْيَمَامَةِ فَإِذَا

د حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ابوبکر رضي الله عنه د اهل يمامه د وژلو په ورځو کي زه راوغوښتلم او زه د هغوئ په خدمت کي حاضر سوم ،

عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ عِنْدَهُ قَالَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ إِنَّ عُمَرَ أَتَانِي فَقَالَ إِنَّ

ږ ده مي ليدل چي حضرت عمر رضي الله عنه ناست دئ ، حضرت ابوبکر رضي الله عنه ما ته وويل چي عمر بن خطاب رضي الله عنه ما ته راغلئ او وه يې ويل :

الْقَتْلَ قَدِ اسْتَحَرَّ يَوْمَ الْيَمَامَةِ بِقُرَّاءِ الْقُرْآنِ وَإِنِّي أَخْشَى أَنْ يَسْتَحِرَّ الْقَتْلُ

د يمامه په جګړه کي ډېر قاريان شهيدان سوي دي زما سره بيره ده که په داسي مختلفو ځايو کي قاريان شهيدان کيږي

بِالْقُرَّاءِ بِالْمَوَاطِنِ فَيَذْهَبَ كَثِيرٌ مِنَ الْقُرْآنِ وَإِنِّي أَرَى أَنْ تَأْمُرَ بِجَمْعِ الْقُرْآنِ

نو د قرآن لويه برخه به ضائع سي ، زما په خيال مناسب دادي چي تاسو د قرآن د يو ځای کولو حکم ورکړئ ،

قُلْتُ لِعُمَرَ كَيْفَ تَفْعَلُ شَيْئًا لَمْ يَفْعَلْهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ

د عمر رضی اللہ عنہ د دې خبري په اورېدو سره ما عمر رضی اللہ عنہ ته وويل: ته هغه کار څنګه کوې چي رسول الله ﷺ نه دئ کړئ، عمر رضی اللہ عنہ وويل:

عُمَرُ هٰذَا وَاللهِ خَيْرٌ فَلَمْ يَزَلْ عُمَرُ يُرَاجِعُنِي حَتَّى شَرَحَ اللهُ صَدْرِي لِذٰلِكَ

په الله دي مي قسم وي دا کار غوره دئ نو عمر رضی اللہ عنہ زما سره په دې اړه خبري اترې کولې تر څو چي الله تعالی زما سينه هم ددې کار لپاره خلاصه کړل

وَرَأَيْتُ فِي ذٰلِكَ الَّذِي رَأَى عُمَرُ قَالَ زَيْدٌ قَالَ أَبُو بَكْرٍ إِنَّكَ رَجُلٌ شَابٌّ عَاقِلٌ

او کوم مصلحت چي عمر رضی اللہ عنہ په دې کي ليدلی وو ما ته هم د هغه علم تر لاسه سو، زيد بن ثابت رضی اللہ عنہ وايي ددې وروسته ابوبکر رضی اللہ عنہ وويل اې زيده! ته يو زلمی سړی يې، عقلمند يې،

لَا نَتَّهِمُكَ وَقَدْ كُنْتَ تَكْتُبُ الْوَحْيَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَتَبَّعْ

پر تا هيڅ تهمت نسته، او ته د رسول الله ﷺ د وحي ليکوال وې نو ته د قرآن کريم اياتونه ولټوه

الْقُرْآنَ فَاجْمَعْهُ فَوَاللهِ لَوْ كَلَّفُونِي نَقْلَ جَبَلٍ مِنَ الْجِبَالِ مَا كَانَ أَثْقَلَ عَلَيَّ

او يو ځای يې کړه، زيد بن ثابت رضی اللہ عنہ وايي په الله جل جلاله دي مي قسم وي که حضرت ابوبکر رضی اللہ عنہ ما ته د غره پورته کولو خدمت سپارلی وای نو هغه خدمت به زما لپاره اسانه وای

مِمَّا أَمَرَنِي بِهِ مِنْ جَمْعِ الْقُرْآنِ قَالَ قُلْتُ كَيْفَ تَفْعَلُونَ شَيْئًا لَمْ يَفْعَلْهُ

تر دغه خدمت چي د قرآن يو ځای کول يې زما پر ذمه کړل، د زيد بن ثابت رضی اللہ عنہ بيان دئ د ابوبکر رضی اللہ عنہ د حکم اورېدو سره ما عرض وکړ تاسو هغه کار څنګه کوئ کوم چي رسول الله ﷺ نه دئ کړئ؟

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هُوَ وَاللهِ خَيْرٌ فَلَمْ يَزَلْ أَبُو بَكْرٍ يُرَاجِعُنِي

ابوبکر رضی اللہ عنہ وويل په الله دي مي قسم وي دا کار غوره دئ، نو ابوبکر رضی اللہ عنہ زما سره په همدې اړه خبري اترې کولې چي

حَتَّى شَرَحَ اللهُ صَدْرِي لِلَّذِي شَرَحَ لَهُ صَدْرَ أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا

الله تعالى زما سينه هم ددې لپاره خلاصه كړل د كوم كار لپاره چي د ابوبكر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه سينه خلاصه كړل سوې وه ،

فَتَتَبَّعْتُ الْقُرْآنَ أَجْمَعُهُ مِنَ الْعُسُبِ وَاللِّخَافِ وَصُدُورِ الرِّجَالِ حَتَّى

نو ما د قرآن كريم لټول داسي وكړه چي ما به د خرما د پاڼو يا ښاخونو او سپينو ډبرو څخه يا د خلكو يعني قاريانو او حافظانو د سينو څخه جمع كوئ تر دې چي

وَجَدْتُ آخِرَ سُورَةِ التَّوْبَةِ مَعَ أَبِي خُزَيْمَةَ الْأَنْصَارِيِّ لَمْ أَجِدْهَا مَعَ أَحَدٍ

د سورة توبة آخري برخه ما د ابو خزيمة انصاري رضي الله عنه سره تر لاسه كړه او د هغه څخه پرته دا برخه مي د بل هيچا سره تر لاسه نه كړل

غَيْرِهِ { لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ } حَتَّى خَاتِمَةِ بَرَاءَةَ فَكَانَتِ الصُّحُفُ

او هغه آيت (لقد جاءكم رسول من انفسكم ) تر پايه پوري، نو دا ترتيب سوې صحيفې

عِنْدَ أَبِي بَكْرٍ حَتَّى تَوَفَّاهُ اللَّهُ ثُمَّ عِنْدَ عُمَرَ حَيَاتَهُ ثُمَّ عِنْدَ حَفْصَةَ بِنْتِ عُمَرَ .رواه البخاري .

د حضرت ابوبكر رضي الله عنه سره وې تر څو چي هغه ژوندی وو بيا الله تعالى هغه وفات كړئ نو تر ژوند پوري د حضرت عمر رضي الله عنه سره وې او د هغه وروسته د هغه د لور بي بي حفصې (رض) سره وې . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹/۱۰-۱۱، رقم: ۴۹۸۶.

**د لغاتو حل**: العُسُب: جمع عسيب، وهو جريدة النخل: (د خرما د درختي پوستكي). اللخاف: هي الحجارة البيضاء العلساء (سپينه ډبره).

**تشريح**: يمامه د يو ښار نوم دی حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په خپل خلافت كي د حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه په مشرتابه كي يو لښكر هلته وليږی او د هغه ځای د اوسيدونكو سره سخته جګړه وسوه چي په هغه كي مسيلمه كذاب هم قتل كړل سو ، د مسلمانانو لښكر ته هم ډېر زيات ځاني تاوان ورسيدی د مسلمانانو د لښكر په شهيدانو كي هغه مقدس كسان هم شامل وه د كومو په سينو كي قرآن كريم محفوظ وو يعني حافظان او قاريان وه د ځينو حضراتو تحقيق دادی چي په

دغه جګړه کي د شهیدانو شمېر اووه سوه وو او ځینو تر دوولس سوه پوري ښودلی دی ، ددغه تشویش ناک حالت سره سم حضرت عمر رضی الله عنه ته خیال راغلی چي د قرآن کریم د حفاظت په اړه یوازي پر یوه ذریعه یعني حافظانو باندي اعتماد او باور کول مناسب نه دي بلکه داسي عظیم امانت د حافظانو د سینو سره سره پر کاغذ باندي هم د محفوظ کولو انتظام کول پکار دي نو هغه دا یادونه حضرت امیر المؤمنین حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته وکړه د سوچ او فکر وروسته پر دې خبره اتفاق سو ، حضرت زید رضی الله عنه یې را وغوښتی او پر دغه عظیم خدمت یې مامور کړی چي تا به د رسول الله ﷺ وحي لیکلې ، ددې مطلب دادی چي تا به اکثر د رسول الله ﷺ وحي لیکلې د اکثر قید ځکه لګول سوی دی چي د رسول الله ﷺ د وحي لیکونکي ځلوېښت صحابه کرام وه چي په هغوئ کي خلفاء اربعه هم وه ، د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د ارشاد خلاصه دا وه چي ته د وحي لیکوال یې ځکه د قرآن کریم جمع کولو په اړه ستا امانتداري او فرض پېژندنه یقیني او منل سوې ده .

## د نبوت په زمانه کي قرآن کریم په کوم شکل وو؟

د رسول الله ﷺ په زمانه کي قرآن کریم پوره لیکل سوی وو مګر په مصحف (کتابي شکل) او یو ځای نه وو بلکه په بېلا بېل توګه لیکل سوی وو یو څه برخه د خرماوو پر پاڼو لیکل سوې وه او یو څه برخه د ډبرو پر ټوټو او یو څه برخه پر هډوکو وغیره لیکل سوی وو کله چي به قرآن کریم نازلیدی او رسول الله ﷺ به پر خپلو کاتبانو باندي په مذکوره شیانو باندي کوم چي به موجود وو پر هغه به یې قلم بند کوی ، د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په مشوره لکه څرنګه چي مخکي تفصیل بیان سو د قرآن کریم هغه بېلا بیلي برخي یو ځای کولو سره جمع کړې نو کله چي هغه بېلا بیلي ورقي په کوم کي چي قرآن کریم لیکل سوی وو په بېلا بېل توګه تر لاسه سوې او جمع سوې .

نن سبا چي د قرآن کریم سورتونه په کوم ترتیب زموږ په مخکي دي د رسول الله ﷺ په زمانه کي د سورتونو ترتیب دا نه وو بلکه د سورتونو دغه ترتیب د رسول الله ﷺ څخه وروسته د صحابه کرامو په اجتهاد سره رامنځته سوی دی هو د آیاتونو ترتیب د رسول الله ﷺ په مخکي او د هغه د حکم سره سم په عمل کي راغلی دی او ددې صورت به دا وو چي جبرائیل علیه السلام به د وخت سره سم یو آیت راوړی نو دا به یې هم فرمایل چي دغه آیت په فلاني سورت کي د فلاني آیت څخه مخکي یا د فلاني آیت څخه وروسته دی او په لوح محفوظ کي هم د قرآن کریم آیاتونه

په دغه ترتيب سره ليكل سوي دي بيا د هغه ځاى څخه قرآنكريم د دنيا آسمان ته راوړل سو او بيا د هغه ځاى څخه د ضرورت سره سم حضرت جبرائيل عليه السلام په سورتونه او آياتونه رسول الله ﷺ ته راوړل ، خلاصه دا چي د قرآن كريم د نزول ترتيب هغه نه وو كوم چي په اوسني ترتيب سره دى ، حضرت جبرائيل عليه السلام به هر كال په رمضان المبارك كي د رسول الله ﷺ سره يو وار د پوره قرآن كريم تكرار د نزول د ترتيب سره سم كوى او په كوم كال چي رسول الله ﷺ ددنيا څخه تشريف يووړى په هغه كال كي يې دوه واره تكرار وكړى .

لم اجدها مع احد غيره : ددې مطلب دادى چي د سورة براة په آخري برخه كي د ابوحزيمه رضي الله عنه څخه پرته د بل سره ليكل سوى تر لاسه نه سو هسي خو پوره قرآن كريم د حافظانو په سينو كي محفوظ وو د رسول الله ﷺ په زمانه كي صحابه كرام مثلا ابى بن كعب ، معاذ ابن جبل، زيد ابن ثابت او ابى درداء او داسي نورو صحابهٔ كرامو قرآن كريم ياد كړى وو .

د حديث د آخري جملو مطلب دادى چي زيد ابن ثابت رضي الله عنه د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د حكم سره سم قرآن كريم جمع كړ او پر دې د ټولو صحابه كرامو اتفاق سو او هغه په ډېرو صحيفو كي منتقل كړل سو او تر اوسه يې لا د يوه مصحف شكل اختيار كړى نه وو ، هغه صحيفې د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه سره وې او د هغه وروسته دغه صحيفې د حضرت عمر رضي الله عنه سره د هغه تر ژوند پوري وې بيا د هغه وروسته د هغه لور بي بي حفصې رضي الله عنها سره وې او بيا حضرت عثمان رضي الله عنه هغه صحيفې يعني پوره قرآن كريم په يوه مصحف كي جمع كړ او څو مصحفونه يې وليكل او د اسلامي نړۍ څو ښارونو ته يې ولېږل لكه څرنګه چي په راتلونكي حديث كي ددې ذكر راځي .

## د حضرت عثمان رضي الله عنه په ذريعه د قران كريم ترتيب او جمع

﴿۲۱۱۷﴾: وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ حُذَيْفَةَ بْنَ الْيَمَانِ قَدِمَ عَلَى عُثْمَانَ وَكَانَ

د حضرت انس بن مالك رضي الله عنه څخه روايت دئ چي حذيفة رضي الله عنه د حضرت عثمان رضي الله عنه په خدمت كي حاضر سو ، او دا وخت

يُغَازِي أَهْلَ الشَّأْمِ فِي فَتْحِ إِرْمِينِيَةَ وَأَذْرَبِيجَانَ مَعَ أَهْلِ الْعِرَاقِ فَأَفْزَعَ

حضرت عثمان رضي الله عنه د شام او عراق د مجاهدينو لپاره چي د ارمينيه او اذربايجان د جګړې لپاره تيارېدل د جهاد سامان په برابرولو كي بوخت وو ،

حُذَيْفَةَ اخْتِلَافُهُمْ فِي الْقِرَاءَةِ فَقَالَ حُذَيْفَةُ لِعُثْمَانَ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ

د خلکو هغه اختلاف چي هغوئ قرآن مجيد د قرائت سره بسم کوئ حذيفة يې په شک او بيره کي اخته کړي وو ، حذيفة د عثمان رضي الله عنه په خدمت کي حاضر سو او وه يې ويل : اې امير المؤمنين !

أَدْرِكْ هَذِهِ الأُمَّةَ قَبْلَ أَنْ يَخْتَلِفُوا فِي الْكِتَابِ اخْتِلَافَ الْيَهُودِ وَالنَّصَارَى

د امت د مسئلې تدارک (بندوبست) وکړئ تر دې وړاندي چي هغوئ په کتاب الله کي اختلاف وکړي لکه څرنګه چي يهود او نصارا اختلاف کړئ وو ، (د دې په اوريدو سره)

فَأَرْسَلَ عُثْمَانُ إِلَى حَفْصَةَ أَنْ أَرْسِلِي إِلَيْنَا بِالصُّحُفِ نَنْسَخُهَا فِي الْمَصَاحِفِ

حضرت عثمان رضي الله عنه بي بي حفصې ته سړی وليږئ او ورته وه يې ويل : کومي صحيفې چي حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ترتيب کړي وې هغه موږ ته را وليږه موږ به هغه د نقل اخيستو وروسته بيرته در کړو ،

ثُمَّ نَرُدُّهَا إِلَيْكِ فَأَرْسَلَتْ بِهَا حَفْصَةُ إِلَى عُثْمَانَ فَأَمَرَ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ وَعَبْدَ

نو بي بي حفصې هغه صحيفې حضرت عثمان رضي الله عنه ته را وليږلې ، حضرت عثمان رضي الله عنه زيد بن ثابت ، عبدالله بن زبير ،

اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ وَسَعِيدَ بْنَ الْعَاصِ وَعَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ

سعيد بن عاص او عبدالله بن حارث بن هشام ته حکم وکړ چي هغوئ د غه صحيفې نقل کړي نو هغوئ هغه صحيفې نقل کړې ،

فَنَسَخُوهَا فِي الْمَصَاحِفِ وَقَالَ عُثْمَانُ لِلرَّهْطِ الْقُرَشِيِّينَ الثَّلَاثَةِ إِذَا اخْتَلَفْتُمْ

حضرت عثمان رضي الله عنه د زيد بن ثابت رضي الله عنه څخه پرته چي هغه د انصارو څخه نه وو پاته درو قريشو ته دا حکم وکړ که په قرآن کريم کي يو ځای په يو لغت کي ستاسو او د زيد بن ثابت په منځ کي اختلاف راسي

نْتُمْ وَزَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ فِي شَيْءٍ مِنَ الْقُرْآنِ فَاكْتُبُوهُ بِلِسَانِ قُرَيْشٍ فَإِنَّمَا نَزَلَ

نو د لغت قريش د ژبي سره سم يې وليکئ ځکه چي قرآن د قريشو په ژبه کي نازل سوی دئ ، نو

بِلِسَانِهِمْ فَفَعَلُوا حَتَّى إِذَا نَسَخُوا الصُّحُفَ فِي الْمَصَاحِفِ رَدَّ عُثْمَانُ الصُّحُفَ

هغوئ همدا سي وکړل او کله چي هغه صحيفې نقل سوې او د هغو زيات نقلونه وايستل سول نو حضرت عثمان رضي الله عنه د بي بي حفصې صحيفې بيرته ورکړې

إِلَى حَفْصَةَ وَأَرْسَلَ إِلَى كُلِّ أُفُقٍ بِمُصْحَفٍ مِمَّا نَسَخُوا وَأَمَرَ بِمَا سِوَاهُ مِنَ

او خپل ترتيب سوي صحيفې يې ټوله شاوخوا ته وليږلې او حکم يې جاري کړ چي ددې صحيفو

الْقُرْآنِ فِي كُلِّ صَحِيفَةٍ أَوْ مُصْحَفٍ أَنْ يُحْرَقَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَأَخْبَرَنِي

پرته کوم مصحف يا صحيفه چي تر لاسه سي هغه دي په اور کي وسوځول سي ، ابن شهاب رضي الله عنه وايي

خَارِجَةُ بْنُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ انه سَمِعَ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ قَالَ فَقَدْتُ آيَةً مِنَ

خارجه بن زيد بن ثابت ماته بيان وکړ چي ما د زيد بن ثابت رضي الله عنه څخه دا اوريدلي دي چي کله موږ صحيفو نقل کولو ته ناست وو نو ما

الْأَحْزَابِ حِينَ نَسَخْنَا الْمُصْحَفَ قَدْ كُنْتُ أَسْمَعُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د سورة احزاب يو آيت تر لاسه نه کړ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلی وو،

وَسَلَّمَ يَقْرَأُ بِهَا فَالْتَمَسْنَاهَا فَوَجَدْنَاهَا مَعَ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيِّ

هغه آيت مو ولټوئ نو موږ هغه د خزيمة بن ثابت انصاري رضي الله عنه څخه تر لاسه کړ او هغه آيت دا دئ

{ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ } فَأَلْحَقْنَاهَا فِي سُورَتِهَا فِي الْمُصْحَفِ . رواه البخاري

(من المؤمنين رجال صدقوا ما عاهدوا الله عليه) نو موږ دا آيت هم د دې سورة سره په صحيفو کي ګډ کړ . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۱۱، رقم: ۴۹۸۷ و ۴۹۸۸.

**تشريح** کرماني رحمه الله د بخاري په شرح کي ليکلي دي چي لفظ د يغازي د معنى په اعتبار د يُغرى په معنى کي استعمال سوى دى لکه چي ددې لفظ مطلب دادى : کان عثمان يجهز اهل

الشام واهل العراق لغزوة هاتين الناحيتين وفتحهما، ژباړه : حضرت عثمان ﷺ په هغه ورځو کي د اهل شام او اهل عراق لپاره ددغه دواړو هيوادونو د جنګ او د هغوئ د فتح لپاره د جهاد د سامان په جمع کولو کي بوخت وو . نو په حديث کي ددغه لفظ ژباړه هم ددغه وضاحت سره سم سوې ده او کرماني رحمه الله هم دا ليکلي دي چي ارمينيه نواح روم (بنير لطين) کي د يوې سيمي نوم دی او اذربايجان د تبريز په سيمو کي يوه سيمه وه.

ملا علي قاري رحمه الله او شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله د کان اسم او د يغازي فاعل حذيفه ليکلی دی او ملاعلي قاري د قاموس په حوالې سره هم ليکلي دي چي دارمينيه او اذربائيجان يو سيمه وه نو په دې ډول حديث کي اذربائيجان تعميم بعد تخصيص په ډول ذکر سو، هغوئ د يهود او نصارا په ډول په کلام الله کي اختلاف پيل کړ ، ددې مطلب دادی چي ځرنګه يهود او نصارا په تورات او انجيل کي تغير او تبديل وکړی او د خپل خواهشاتو مطابق يې په کلام الله کي کمي او زياتوب وکړ نو داسي ونه سي چي مسلمانان هم داسي کول پيل کړي او هغوئ هم په دغه فتنه کي اخته سي ځکه ددغه فتنې را پورته کېدو څخه مخکي تاسو يو تدبير وکړئ، حضرت حذيفه ﷺ د حضرت عثمان ﷺ په مخکي د خپل دغه بيري اظهار وکړ نو حضرت عثمان ﷺ پر دغه مهمي مسئلې باندي د فکر کولو لپاره خلک را جمع کړل چي د هغو شمېر تقريبا پنځوس زره شاوخوا وو، حضرت عثمان ﷺ خلکو ته وفرمايل چي ما ته دا خبره معلومه سوې ده چي د قرآن کريم په ويونکو کي ځيني خلک يو بل ته دا وايي چي زما قرائت ستا تر قرائت غوره دی يعني هغوئ د يو بل د قرائت سره اختلاف کوي حالانکه داسي کول کفر ته نژدې دی، خلکو وويل نو ستا سو څه رايه ده او ددې د بندولو لپاره تاسو څه مناسب ګڼئ ؟ حضرت عثمان ﷺ وويل زه خو دا مناسب ګڼم چي ټول خلک پر يو مصحف باندي جمع کړم تر څو اختلاف پيدا نه سي ، خلکو وويل تاسو چي کوم شی مناسب ګڼلی دی هغه ډېر غوره دی ددې وروسته حضرت عثمان ﷺ دا اراده وکړه چي خلک پر يوه مصحف جمع کړي نو په حديث فارسل عثمان ﷺ ...الخ، (حضرت عثمان ﷺ بي بي حفصې رضي الله عنها ته پيغام ولېږی) دا خبره په تفصيل سره بيان سوې ده چي کلام الله د قريشو د لغت سره سم نازل سوی دی بيا د رسول الله ﷺ په درخواست په دې باره کي وسعت او پراخي وکړل سوه يعني دا اجازه ورکړل سوه چي هر سړي دي د خپل لغت سره سم وايي اوس حضرت عثمان ﷺ چي دا ولېدل چي دغه اختلاف په امت کي د يو لوی انتشار او په دين کي د يو لوی فتنې باعث کيږي نو حکم يې وکړ چي د قريشو د لغت څخه پرته نور ټول لغات دي منسوخ کړل سي او ټول خلک دي قرآن کريم د

قریشو د لغت مطابق وايي نو په حدیث کي د حضرت عثمان ﷛ د الفاظو : فاکتبوا بلسان قریش.. همدا مطلب دی .

سخاوي ﷫ په مصحف عثماني کي د قرآن کریم د نقل کولو پر وخت د مذکوره نقل کونکو په مینځ کي کېدونکي ځیني اختلافات بیان کړي دي هغه لیکي چي یو وار د لفظ تابوت په باره کي اختلاف پیدا سو ، حضرت زید ﷛ وویل چي دغه لفظ دي التابوه ولیکل سي مگر د نورو حضراتو وینا وه چي التابوت لیکل پکار دي ددې وروسته خلکو حضرت عثمان ﷛ ته رجوع وکړه نو هغه وفرمایل چي دغه لفظ په ت سره یعني التابوت ولیکئ ځکه د قریشو په لغت کي دغه لفظ همداسي دی ، بیا خلکو د حضرت عثمان ﷛ څخه د لم یتسن لفظ په باره کي پوښتنه وکړه نو هغه وفرمایل چي په دغه لفظ کي (ه) ولیکئ ، د دغه مصحف څخه پرته هر هغه صحیفه یا مصحف دي وسوځول سي...الخ: دلته په ځرگنده دا معلومیږي چي دلته د هري صحیفې څخه مراد هغه صحیفې دي کوم چي د بي بي حفصې رضي الله عنها سره وې او د مصحف څخه مراد هغه صحیفې دي کوم چي نورو خلکو جمع کړي دي او د هغوئ سره وې مگر دا احتمال هم دی چي په دغه لفظ في کل صحیفة او مصحف کي لفظ د او د راوي د شک د اظهار لپاره وي.

د حدیث په ظاهري مفهوم کي دا هم معلومیږي چي د بي بي حفصې رضي الله عنها سره کومي صحیفې وې هغه حضرت عثمان ﷛ د وعدې پوره کولو سره سم یې بیرته بي بي حفصې ته ورکړې مگر بیا دوهم وار په تر لاسه کولو سره یې سوځلي دي، مگر سخاوي ﷫ په دې باره کي په تفصیل سره لیکلي دي چي کله حضرت عثمان ﷛ د مصحف عثماني د پوره کولو څخه فارغ سو نو بي بي حفصې ته یې خپلي صحیفې بیرته واستولې د هغه صحیفو او مصحف څخه پرته نور ټولي صحیفې یې وسوځلې نو هغه صحیفې د بي بي حفصې سره وي مگر هغې د ورکولو څخه انکار وکړ ، د بي بي حفصې د وفات څخه وروسته مروان هغه صحیفې د هغه د ورور عبدالله بن عمر ﷛ څخه را وغوښتلې او ددې بیري څخه چي دا صحیفې د باندي را ونه ځي او خلک یې په لیدو سره بیرته په اختلاف کي اخته نه سي هغه یې وسوځلې .

حضرت عثمان ﷛ چي کوم مصحف د تیارولو وروسته د نړۍ شاوخوا ته لیږلی وو د هغو د شمېر په باره کي مختلف اقوال منقول دي مشهوره خبره داده چي د هغه مصاحفو شمېر پنځه وو مگر ابوداؤد وايي چي ما د ابوحاتم سجستاني څخه اوریدلي دي چي د هغو شمېر اووه وو په هغو کي یو مکې ته واستول سو ، یو شام ته ، یو یمن ته ، یو بحرین ته ، یو بصرې ته ، یو

کوفې ته او يو مدينې منورې ته واستول سو .

## د مصحف د خرابو سوو ورقو مسئله

په دې اړه د علماء کرامو اختلاف دی چي د مصحف په هغه زړو او خرابو ورقو څه وکړل سي کوم چي د هغه څخه ګټه نسي اخيستل کېدای يعني هغه ويل او تلاوت کول ممکن نه وي ايا د هغو سوځل غوره دي او که پريولل، ځيني حضرات وايي چي د هغو سوځل غوره دي چي د سوځلو په صورت کي د کلام الله د ذلت او بې حرمتۍ واقع کېدو امکان نه پاته کيږي، پر خلاف د پريولو چي د هغه پريولل سوي اوبه پر مځکه بهيږي او تر پښو لاندي کيږي، د ځينو علماؤ قول دی چي پريولل غوره دي او د هغه اوبه دي په پاک ځای کي واچول سي بلکه غوره داده چي د هغه اوبه وڅښل سي ځکه چي هغه د هر مرض دوا او د سيني د علتونو شفاء ده .

## د حضرت عثمان ﷺ کارنامه

اوس دا سوال پيدا کيږي چي حضرت عثمان ﷺ د مصحف عثماني څخه پرته نوري ټولي صحيفې ولي وسوځلې ؟ ددې جواب دادی که چيري هغه صحيفې سوځل سوې نه وای او همداسي پاته سوې وای نو کېدای سي چي وروسته د خلکو د اختلاف او فتنې باعث سوي وای ، حضرت عثمان ﷺ ددغه مصلحت په وجه چي اختلاف پاته نه سي هغه صحيفې وسوځلې همدارنګه د حضرت عثمان ﷺ دغه فعل د طعن سبب نسي ګرځېدای ځکه چي پر هغه خو طعن هغه وخت کېدای سو چي د شريعت څخه دا ثابته وای چي د قرآن کريم ورقې سوځل بې ادبي ده حال دا چي دا خبره ثابته نه ده او بيا دا چي د هغه دغه فعل پر مصلحت مبني وو نو پر هغه باندي هيڅ الزام نه وارد کيږي .

## د قرآن کريم اول جامع

علماء کرامو ليکلي دي چي د قرآن کريم جمع کېدل درې واره سوي دي اول خو خپله د رسول الله ﷺ په زمانه کي مګر هغه وخت پوره قرآن کريم په يوه مصحف کي په ترتيب سره جمع سوی نه وو ، دوهم د حضرت ابوبکر صديق ﷺ په مخکي جمع سو يعني اول جامع قرآن حضرت ابوبکر صديق ﷺ دی او هغه تر ټولو اول سړی دی چي کتاب الله يې جمع کړ ، په دريم وار د حضرت عثمان ﷺ په زمانه کي قرآن کريم جمع سو چي حضرت عثمان ﷺ ټول صحابه کرام جمع کړل او د هغوئ په مشوره يې قرآن کريم په مصاحف کي په ترتيب سره د قريشو د لغت مطابق نقل کړ او بيا يې هغه مصاحف شاوخوا ته واستول ، دا خبره د پنځه ويشتم ۲۵ هجري کال ده .

د حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ او حضرت عثمان رضی اللہ عنہ د واړو د قرآن په جمع کولو کي فرق دادی چي حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ قرآن کریم په دې خوف سره جمع کړ د قرآن کریم یو برخه ولاړه نه سي او حضرت عثمان رضی اللہ عنہ په دې وجه جمع کړ چي په امت کي د اختلاف او انتشار فتنه پیدا نه سي ، همدارنگه ویل کیږي چي حضرت عثمان رضی اللہ عنہ په حقیقت کي قرآن کریم نه دی جمع کړی بلکه هغه امت د اختلاف د لاري څخه د ساتني لپاره پر یوه لغت (لغت قریش) باندي قائم او جمع کړی.

## د سورة برائت په شروع کي د بسم الله نه ویلو وجه

﴿۲۱۱۸﴾: وَعَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قُلْتُ لِعُثْمَانَ مَا حَمَلَكُمْ على أَنْ عَمَدْتُمْ إِلَى

د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي ما حضرت عثمان رضی اللہ عنہ ته وویل : تا

الْأَنْفَالِ وَهِيَ مِنَ الْمَثَانِي وَإِلَى بَرَاءَةٌ وَهِيَ مِنَ الْمِئِينَ فَقَرَنْتُمْ بَيْنَهُمَا وَلَمْ

سورة انفال چي د مثاني څخه دئ او سورة براءة چي له مئین څخه دئ ولي یو د بل سره یو ځای کړل . یعني تا دواړه سورتونه یو د بل سره یو ځای کړل او د فرق لپاره دي په منځ کي

تَكْتُبُوا سَطْرَ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ وَوَضَعْتُمُوهَا فِي السَّبْعِ الطُّوَلِ مَا

بسم الله الرحمن الرحیم نه ولیکل، او بیا دا چي تا سورة انفال د اوو اوږدو سورتو سره یو ځای کړ

حَمَلَكُمْ عَلَى ذَلِكَ قَالَ عُثْمَانُ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّا يَأْتِي

حال دا چي هغه د هغه سورتو سره یو ځای کول پکار دي چي تر سلو آیاتو زیات ایاتونه ولري د دې وجه څه ده ؟ حضرت عثمان رضی اللہ عنہ وفرمایل: د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم په زمانه کي څو آیاتونو والا سورتونه نازل سوي وه

عَلَيْهِ الزَّمَانُ وَهُوَ تَنْزِلُ عَلَيْهِ السُّوَرُ ذَوَاتُ الْعَدَدِ فَكَانَ إِذَا نَزَلَ عَلَيْهِ الشَّيْءُ

او د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم عادت مبارک دا وو چي کله به یو شی نازلیدئ نو رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم به د وحي

دَعَا بَعْضَ مَنْ كَانَ يَكْتُبُ فَيَقُولُ ضَعُوا هَؤُلَاءِ الْآيَاتِ فِي السُّورَةِ الَّتِي يُذْكَرُ

لیکونکو څخه یو څوک راغوښتئ او حکم به یې ورکړ چي دا آیاتونه په هغه سورت کي ولیکئ

چي په هغه کي داسي د اسي بيان دئ،

فِيهَا كَذَا وَكَذَا وَإِذَا نَزَلَتْ عَلَيْهِ الْآيَةَ فَيَقُولُ ضَعُوا هَذِهِ الْآيَةَ فِي السُّورَةِ

او سورة انفال د هغه سورتو څخه دئ چي په مدينه کي وړاندي نازل سوئ دئ، او سورة براءة د

الَّتِي يُذْكَرُ فِيهَا كَذَا وَكَذَا وَكَانَتِ الْأَنْفَالُ مِنْ أَوَائِلِ مَا أُنْزِلَتْ بِالْمَدِينَةِ

قرآن کريم د هغه برخي څخه دئ چي په پای کي نازل سوی دئ او د سورة انفال مضمون د هغه

وَكَانَتْ بَرَاءَةٌ مِنْ آخِرِ الْقُرْآنِ نزولا وَكَانَتْ قِصَّتُهَا شَبِيهَةً بِقِصَّتِهَا فَقُبِضَ

مضمون مشابه دئ کوم چي په سورة براءة کي تر لاسه کيږي ، رسول الله ﷺ وفات سو

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يُبَيِّنْ لَنَا أَنَّهَا مِنْهَا فَمِنْ أَجْلِ ذَلِكَ

او موږ ته يې دا بيان نه وفرمايې چي براءة د سورة انفال څخه دئ (يا نه) نو د نبي کريم ﷺ د نه بيانولو له کبله

قَرَنْتُ بَيْنَهُمَا وَلَمْ أَكْتُبْ بَيْنَهُمَا سَطْرَ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ

او ددواړو سورتونو د مشابهت له کبله موږ دواړه يو ځای کړل او ددواړو په منځ کي مو د بسم الله الرحمن الرحيم فاصله نه وركړل،

فَوَضَعْتُهَا فِي السَّبْعِ الطُّوَلِ. رواه احمد والترمذي و ابوداؤد.

او بيا موږ دواړه سورتونه په طوال کي ګډ کړل او دواړه مو له دې کبله بيل بيل کړل چي د دواړو په يو کېدو کي هم شبه وه او په دوو کېدو کي هم. احمد، ترمذي، ابوداؤد.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ١١\٥٧، والترمذي ٥\٢٥۴، رقم: ٣٠٨٦، وابوداود ١١\۴٩٨، رقم: ٧٨٦.

**تشريح** د قرآن کريم سورتونه داسي ويشل سوي دي چي د سورة بقرې څخه تر سورة يونس پوري سورتو ته طوال وايي، په عربي ژبه کي طوال اوږدو ته وايي او د قرآن کريم ابتدائي اووه سورتونه اوږده دي ځکه نو په دغه مناسبت سره د هغو نوم سبع طوال يعني اووه اوږده سورتونه سو، د سورة يونس څخه تر سورة شعراء پوري سورتونو ته مئين وايي، مئين د مائة جمع ده او په عربي ژبه کي مائة سل ته وايي او دا سورتونه تر سلو آياتونو زيات دي يا سل ته نژدې دي

ځکه نو دغه سورتو ته مائين وايي ، او د سورة شعراء څخه تر سورة حجرات پوري سورتو ته مثاني وايي دا سورتونه تر سل سل آياتو کم دي او بيا دا چي ددغه سورتو مضمون او قصې مکرر دي ځکه نو دې ته مثاني وايي، د سورة حجرات څخه د قرآن کريم تر پايه پوري سورتونو ته مفصل وايي ځکه ددغه سورتو په مينځ کي د بسم الله الرحمن الرحيم فاصله نژدې ده ، دا درې ډولونه سوه بيا په دې کي آخري ډول يعني د مفصل هم درې ډولونه دي ۱: طوال، ۲: اوساط، ۳: قصار .

د سورة حجرات څخه تر والسماء ذات البروج پوري سورتونو ته طوال مفصل وايي ، د والسماء ذات البروج څخه تر سورة لم يکن پوري سورتونو ته اوساط مفصل وايي او د سورة لم يکن څخه تر پايه پوري سورتونو ته قصار مفصل وايي ، ددغه تفصيل په ذهن کي ساتلو سره اوس د حديث مطلب ته راسئ حضرت عثمان ﷺ ته د حضرت عباس ﷺ د ويلو مطلب دا وو چي سورة انفال د مثاني څخه دی ځکه چي هغه تر سلو آياتو کم دی او سورة براة د مئين څخه دی ځکه چي هغه تر سلو آياتونو زيات دی نو تاسو د قرآن کريم د جمع کولو پر وخت دغه دواړه سورتونه په طوال کي ولي کنښېنودل پکار خو دا وه چي سورة انفال په مثاني کي وای او سورة براة په مئين کي وای او په پای کي يو خبره دا هم ده چي ددغه دواړو سورتونو په مينځ کي بسم الله الرحمن الرحيم نه ده ليکل سوې .

حضرت عثمان ﷺ چي د هغه د خبري کوم جواب ورکړی دی د هغه خلاصه داده چي ددغه دواړو سورتونو په مينځ کي اشتباه پيدا سوې ده د يوې وجي خو دغه دواړه سورتونه يو سورت دی په دې سبب دا په طوال کي اېښودل او د دواړو په مينځ کي بسم الله الرحمن الرحيم نه ليکل صحيح سول او په يوې وجي دغه دواړه سورتونه بېل بېل سورتونه دي ځکه نو د دوئ په مينځ کي فاصله راوړل سول .

بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيم

# كِتَــابُ الدَّعْوَاتِ

## د دعاوو بيان

ددعاء معنى ده د اعلى ذات څخه د ادنى شيانو د عاجزي په توګه غوښتل، امام نووي رحمة الله عليه فرمايي چي په هره زمانه کي او د هر ځاى علماؤ پر دې اتفاق دى چي دعا غوښتل مستحب دي د هغو دليل د قرآن او حديث د ظاهري او واضح مفهوم څخه پرته د انبياء عليهم السلام فعل هم دى ځکه چي ټولو انبياء کرامو عليهم السلام به دعاء غوښتل.

مګر د ځينو زاهدانو او اهل معارف دا وينا هم ده چي دعا نه غوښتل افضل دي ځکه چي په داسي کولو سره د الله تعالى د رضا او د خپل قسمت او تقدير د راضي کېدو په پوره توګه اظهار کيږي، شاه محمد اسحاق رحمة الله عليه ددغه زاهدانو او اهل معارف د قول په اړه وايي چي دا قول پر هغه خاص کيفيت باندي محمول دى کوم چي ځيني وختونه پر ځينو مردان حق باندي خپريږي او په هغه کي رضا بقضاء غالب وي لکه څرنګه چي د حضرت ابراهيم عليه السلام واقعه ده چي هغه په اور کي واچول سو نو حضرت جبرائيل عليه السلام هغه ته وويل چي تاسو دعا وغواړئ او خپل پروردګار ته د خپل خلاصون او سلامتيا لپاره خواست وکړئ، نو هغه وفرمايل چي الله تعالى زما په حال خبر دى ما ته د خواست کولو او دعاء غوښتلو ضرورت نسته.

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

#### د رسول الله ﷺ شفقت

﴿۲۱۱۹﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِكُلِّ نَبِيٍّ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د هر نبي

دَعْوَةٌ مُسْتَجَابَةٌ فَتَعَجَّلَ كُلُّ نَبِيٍّ دَعْوَتَهُ وَإِنِّي اخْتَبَأْتُ دَعْوَتِي شَفَاعَةً لِأُمَّتِي

يوه دعاء قبليږي ، هر نبي په خپل دعاء غوښتلو کي تلوار وکړ خو ما هغه دعاء د قيامت په ورځ د خپل امت د شفاعت لپاره پټه ساتلې ده ،

الى يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَهِيَ نَائِلَةٌ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ مَنْ مَاتَ مِنْ أُمَّتِي لَا يُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَيْئًا. رواه مسلم و للبخاري اقصر منه.

زما دا دعاء انشاء الله زما په امت کي هغه چا ته رسيدونکې ده چي په داسي حال کي مړ سوی وي چي د الله تعالی سره يې هيڅوک نه وي شريک کړی. مسلم او بخاري لړ لنډ حديث بيان کړئ دئ.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۱۸۹، رقم: ۳۳۸- ۱۹۹، والبخاري (فتح الباري) ۱۱\۹۶، رقم: ۶۳۰۴.

**تشريح**: د هر نبي لپاره يو دعا ده: ددې مطلب دادی چي الله تعالی هر نبي ته حکم کړی دی چي د خپلو مخالفينو د تباهۍ لپاره ښېرا وکړي نو هغه به ښېرا کول او الله تعالی به هغه قبلول نو ددغه ښېرا په اړه رسول الله ﷺ وفرمايل چي الله تعالی هر نبي ته د دعا غوښتلو حق ورکړی دی او بيا د هغه د قبوليت يقين يې هم ورکړی دی نو هر نبي د خپل دغه حق په استعمال کي تلوار وکړ لکه څرنګه چي نوح عليه السلام د خپل امت د هلاکت او تباهۍ لپاره ښېرا وکړه او د هغه نتيجه دا سوه چي هغه ټول امت په طوفان کي غرق سو، همدارنګه حضرت صالح عليه السلام د خپل امت د تباهۍ لپاره ښېرا وکړه او هغه د حضرت جبرائيل عليه السلام د يو آواز په ذريعه د هلاکت په شپلو کي د هميشه لپاره پټ سوه مګر ما خپل دعاء خوندي وساتل يعني د خپلو مخالفينو پر ضرر رسولو مي صبر وکړ او د هغوئ لپاره مي ښېرا ونه کړه لکه چي زه رحمة للعالمين يم زما شان دا نه دی چي زه ښېرا وکړم او د خلکو لپاره د تباهۍ او بربادۍ سبب سم ما خپل دغه حق کوم چي ما ته تر لاسه سوی دی د قيامت لپاره ساتلی دی د قيامت په ورځ به زه په دغه دنيا کي د ښېرا پر ځای د هر هغه امتي په حق کي شفاعت کوم کوم چي په ايمان سره ددغه دنيا څخه رخصت سوی وي که څه هم هغه ګناه کاروي.

دلته په دې خبره هم پوه سئ چي شفاعت به پر څو ډوله وي ځيني خلک به د رسول الله ﷺ د شفاعت په نتيجه کي په دوږخ کي نه داخليږي او ځيني به د دوږخ څخه ووځي او ځيني به جنت ته ژر داخل سي او د ځينو به په جنت کي لوړي درجې وي. اللهم ارزقنا شفاعة نبينا عليه الف الف صلوة. آمين.

﴿۲۱۲۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ اللَّهُمَّ إِنِّي أَتَّخِذُ عِنْدَكَ عَهْدًا لَنْ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : اې الله ! ما ستا څخه يو عهد اخيستئ دئ

تُخْلِفَنِيهِ فَإِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ فَأَيُّ الْمُؤْمِنِينَ آذَيْتُهُ شَتَمْتُهُ لَعَنْتُهُ جَلَدْتُهُ

چي ته د هغه خلاف نه كوي زه هم يو بشر يم كوم مؤمن ته چي ما تكليف وركړى وي كوم مؤمن ته چي ما بد ويلي وي كوم مؤمن چي ما وهلى وي

فَاجْعَلْهَا لَهُ صَلَاةً وَزَكَاةً وَقُرْبَةً تُقَرِّبُهُ بِهَا إِلَيْكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . متفق عليه

نو دا ټول شيان ته د هغه په حق كي رحمت وګرځوې او د هغه لپاره يې د ګناهو د پاكى سبب وګرځوې او د خپل نژدېوالي ذريعه يې جوړه كړې چي د هغه په ذريعه د قيامت په ورځ تا ته نژدې سي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۱۷۱، رقم: ۶۳۶۱، وصحيح مسلم ۴\۲۰۰۸، رقم: ۹۰- ۲۶۰۱.

**تشريح**: لفظ د : انما انا بشر - د عذر تمهيد دى چي زه هم يو انسان يم كله نا كله د بشريت د تقاضا سره سم د يو چا څخه ناراضه كېږم .

لفظ د فاي المؤمنين د هغه شي تفصيل او بيان دى د كوم لپاره چي رسول الله ﷺ د خپل ارشاد : اللهم اتخذت ...الخ په ذريعه د الله تعالى په دربار كي خواست وړاندي كړي، په هر حال د رسول الله ﷺ د دغه دعا خلاصه داده چي كوم مؤمن ته زما له خوا كوم تكليف رسيدلى وي نو هغه تكليف د هغه په حق كي د رحمت سبب وګرځوې .

نقل سوي دي چي يو وار بي بي عائشې رضي الله عنها د دغه شي په طلب كي د ډېري سختى څخه كار واخيست تر دې چي د رسول الله ﷺ د لمن په نيولو سره ولاړه سوه رسول الله ﷺ د هغې پر دغه عمل باندي وفرمايل : قطع الله يدك: الله تعالي دي ستا لاس پرې كړي، بي بي عائشې رضي الله عنها دا خبره ډېر سخته محسوس كړه او سمدستي يې د رسول الله ﷺ لمن پرېښودل او د غصې څخه ډكه كښېنستل ، رسول الله ﷺ چي هغې ته تشريف راوړ او د هغې دغه كيفيت يې وليدى نو د هغې د خوشحاله كولو لپاره يې وفرمايل : اللهم اني اتخذت عندك عهد ...الخ،

علماء كرام ليكي چي د كوم چا لپاره ښېرا وكړل سي نو د هغه لپاره دا مسنون دي چي هغه

د دغه بنېرا په بدله کي پورتنۍ دعا هم خامخا وکړي.

## دعاء په یقین سره غواړئ

﴿۲۱۲۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَعَا أَحَدُكُمْ فَلَا

د حضرت ابو هريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي په تاسو کي يو څوک دعاء غواړي

يَقُلِ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي إِنْ شِئْتَ ارْحَمْنِي إِنْ شِئْتَ ارْزُقْنِي إِنْ شِئْتَ وَلْيَعْزِمْ

نو داسي دي نه وايي چي الله! ما و بخښې که ته وغواړې، پر ما رحم وکړې که ته وغواړې، ما ته رزق راکړې که ته وغواړي، بلکه په دعاء کي پخه اراده وکړي

مَسْأَلَتَهُ إِنَّهُ يَفْعَلُ مَا يَشَاءُ لَا مُكْرِهُ لَهُ. رواه البخاري

ځکه چي الله تعالى څه غواړي هغه کوي پر هغه څوک زور کونکی نسته. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۴۴۸، رقم: ۷۴۷۷.

**تشريح**. مطلب دادی چي د الله تعالى څخه څه غواړئ نو هغه په يقين سره غواړئ يعني داسي وا ياست اې الله! زموږ فلانی مطلب پوره کړې هغه چي څه غواړي کوي يې او دا مه واياست که ته وغواړې نو زموږ فلانی مطلب پوره کړې ځکه چي په داسي کولو سره د الله تعالى له خوا د دعا په قبوليت کي شک پيدا کيږي حالانکه د دعاء د قبوليت په اړه يقين درلودل پکار دي.

ځکه چي هغه د دعا د قبوليت دعوه کړې ده او الله تعالى د خپل وعدې خلاف ورزي نه کوي او بيا دا چي د الله تعالى ذات بې پروا او مستغني دی په يو کار کولو يا نه کولو کي پر هغه د چا زور نسته بلکه هغه کوي څه چي وغواړي ځکه د خپل دعا سره دا ويل که ته وغواړې بالکل بې ګټې او بې حاصله دي.

## دعاء غوښتل مه پر يږدئ

﴿۲۱۲۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَعَا أَحَدُكُمْ فَلَا

د حضرت ابو هريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو کي چي څوک

يَقُلِ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي إِنْ شِئْتَ وَلٰكِنْ لِيَعْزِمْ وَلْيُعَظِّمِ الرَّغْبَةَ فَإِنَّ اللّٰهَ لَا

يَتَعَاظَمُهُ شَيْءٌ أَعْطَاهُ . رواه مسلم .

دعاء غواړي نو داسي دي نه وايي چي الله ما و بخښې که ته وغواړې، بلکه دعاء دي په پو
يقين او شوق سره غواړي ځکه چي الله کوم شی ورکوي نو د هغه ورکول ورته گران نه وي . مس

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۲۰۶۳، رقم: ۸- ۲۶۷۹.

﴿۲۱۲۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسْتَجَابُ لِلْعَبْ

د حضرت ابو هريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د بنده دعاء قبليږي

مَا لَمْ يَدْعُ بِإِثْمٍ أَوْ قَطِيعَةِ رَحِمٍ مَا لَمْ يَسْتَعْجِلْ قِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَ

تر څو پوري چي هغه د گناه کولو يا د قرابت د پرې کولو دعاء و نه غواړي او تر څو پوري چي
هغه تلوار نه کوي، پوښتنه وسول چي اې د الله رسوله !

الِاسْتِعْجَالُ قَالَ يَقُولُ قَدْ دَعَوْتُ وَقَدْ دَعَوْتُ فَلَمْ أَرَ يستجاب لِي

فَيَسْتَحْسِرُ عِنْدَ ذٰلِكَ وَيَدَعُ الدُّعَاءَ . رواه مسلم

تلوار څنگه ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : تلوار دا چي دعاء غوښتونکي دا ووايي ما دعاء
وغوښتل يعني په څو واره مي دعاء وغوښتل مگر هغه قبوله نه سول او ددې وروسته هغه
نااميده کښيني او دعاء پريږدي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۲۰۹۶، رقم: ۹۲- ۲۷۳۵.

**د لغاتو حل**: فيستحسر: ای ينقطع ويمل. (قطع سي).

**تشريح**: ددغه حديث مطلب دادی چي څرنگه د دعا د قبوليت لپاره يقين او پر الله تعالی
باندي پوره باور شرط دی همدارنگه دا خبره هم ضروري ده چي دعا د هغه شيانو لپاره
وغوښتل کوم چي مباح وي ، دلته دا هم ښودل سوې ده چي د مؤمن دعا هغه وخت قبليږي کله
چي هغه د يو گناه شی و نه غواړي او نه د قرابت ختمولو دعا وکړي او نه د تلوار څخه کار واخلي.

د گناه د شي غوښتلو مطلب دادی چي يو سړی داسي دعاء وغواړي چي اې الله ! فلانی
سړی و بخښې په داسي حال کي چي دده يقين وي چي هغه کافر مړ سوی دی ، څرگنده ده چي دا

ډول دعا غوښتل او بيا د هغه د قبوليت توقع کول ليري خبره ده ، همدارنګه د محال او غير ممکن شيانو دعا غوښتل او بيا د هغه د قبوليت اميد کول هم ډېره بې عقلي ده مثلا يو بې عقل سړی دا دعا و غواړي چي اې الله ! زما او زما د پلار په مينځ کي بېلوالی راولې ، ددغه حديث د مفهوم سره سم د مؤمن داسي غير ايماني دعا هم نه قبليږي .

د حديث د آخري الفاظو مطلب دادی چي دا خبره د مؤمن د شان سره سمه نه ده چي کله د دعاء په قبلېدو کي ځنډ محسوس کړي نو په ستړي کېدو سره کښيني او د دعاء غوښتل پرېږدي ځکه چي دعاء هم عبادت دی او د عبادت څخه ستړی کېدل د مؤمن لپاره په هيڅ حال کي مناسب نه دي بيا دا چي د دعاء په قبوليت کي ځنډ يا خو ددې لپاره وي چي د هغه وخت نه وي راغلی ځکه چي د ازل څخه د هر شي د تکميل يو وخت ټاکل سوی دی تر څو پوري چي هغه وخت راغلی نه وي هغه شی نه واقع کيږي يا دعاء غوښتونکی چي کومه دعاء غواړي د هغه په تقدير کي د هغه دعاء قبلېدل نه وي ليکلي په دې صورت کي هغه ته ددغه دعاء په بدله کي د آخرت ثواب ورکول کيږي يا په قبلېدو کي تاخير ددې لپاره وي چي په دعاء غوښتلو کي د پوره عاجزۍ او پوره عبوديت اظهار وکړي ځکه الله تعالی په دعاء کي ددغه شيانو اختيارونکي ډېر خوښوي .

## د خپل مسلمان ورور لپاره دعاء قبليږي

﴿۲۱۲۴﴾: وَعَنْ اَبِي الدَّرْدَاءَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعْوَةُ

د حضرت ابو درداء رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د مسلمان دعاء

الْمَرْءِ الْمُسْلِمِ لِأَخِيهِ بِظَهْرِ الْغَيْبِ مُسْتَجَابَةٌ عِنْدَ رَأْسِهِ مَلَكٌ مُوَكَّلٌ كُلَّمَا

د خپل مسلمان ورور لپاره د هغه په نه شتون کي قبليږي ، د دعاء غوښتونکي سر ته نژدې يوه ملائکه ټاکل کيږي او هر کله چي هغه

دَعَا لِأَخِيهِ بِخَيْرٍ قَالَ الْمَلَكُ الْمُوَكَّلُ بِهِ آمِينَ وَلَكَ بِمِثْلٍ . رواه مسلم

د خپل ورور لپاره دعاء کوي نو ملائکه پر هغه آمين وايي او بيا ملائکه دعاء غوښتونکي ته وايي او ستا لپاره دي هم دده په ډول وي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\ ۲۰۹۴، رقم: ۸۸- ۲۷۳۳.

**تشریح**: دلته په خاصه توګه د هغه دعاء د قبلېدو زیری ورکړل سوی دی کوم چي د خپل مسلمان ورور لپاره د هغه په نه موجودتیا کي د ژبي ځخه راوځي، همدارنګه که چیري یو څوک د مسلمان ورور لپاره د هغه په مخکي په خپل زړه کي یا په پټه دعاء وکړي نو هغه دعاء هم په دغه زیري کي داخله ده.

د حدیث د آخري الفاظو مطلب دادی چي د دعاء کونکي سره ملائکه تاکل کیږي چي هغه د دعاء پر وخت د الله تعالی په دربار کي دا شفاعت کوي چي الهي ددغه سړي دعاء دده د ورور په حق کي قبوله کړې او بیا هغه دعا کونکی په مخاطب کولو سره ورته وایي چي څرنګه ددغه دعاء په نتیجه کي ستا ورور خېر او ښېګڼي ته ورسیدی همداسي دي الله تعالی تا ته درکړي.

**د ښېرا کولو ځخه منعه**

﴿۲۱۲۵﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَدْعُوا عَلَى

د حضرت جابر رضی الله عنه ځخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: ښیراوي مه کوئ

أَنْفُسِكُمْ وَلَا تَدْعُوا عَلَى أَوْلَادِكُمْ وَلَا تَدْعُوا عَلَى أَمْوَالِكُمْ لَا تُوَافِقُوا مِنَ اللّٰهِ

د خپل ځان لپاره او مه خپل اولاد ته ښیراوي کوئ ځکه چي کیدای سي د ښیرا ساعت د هغه ساعت سره سم سي کوم چي د دعاء قبلېدو ساعت وي

سَاعَةً يُسْأَلُ فِيهَا عَطَاءٌ فَيَسْتَجِيبُ لَكُمْ. رواه مسلم و ذكر حديث ابن عباس اتق دعوة المظلوم في كتاب الزكوة

او ستاسو ښیرا هم قبوله سي مسلم، د ابن عباس حدیث چي د مظلوم د (بد) دعاو ځخه وبیرېږئ په کتاب الزکوة کي بیان سوی دئ.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴ \ ۲۳۰۴، رقم: ۷۴ - ۳۰۰۹.

**تشریح**: د حدیث د اخري الفاظو مطلب دادی چي ځیني وختونه داسي وي چي په هغه کي د الله تعالی په دربار کي هره دعاء قبلیږي ځکه نو داسي باید نه وي چي کوم وخت تاسو د ځان لپاره یا د خپل اولاد او مال لپاره ښېرا کوئ او هغه وخت د قبلېدو وي او بیا ستاسو ښېرا قبوله سي چي د هغه په نتیجه کي به تاسو ته تاوان ورسیږي او پښیمانه به سئ، ددې ځخه معلومه سوه چي ناپوه کسان کله نا کله د خپل ځان، اولاد یا مال لپاره د غصې په وخت کي ښېراوي کوي

داسي کول مناسب نه دي . او د ابن عباس ﷺ حديث چي د مظلوم د ښېرا څخه و بيرېږئ....،
په کتاب الزکوة کي نقل سوی دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### دعاء عبادت ده

﴿۲۱۲۶﴾: عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت نعمان بن بشير ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

الدُّعَاءُ هُوَ الْعِبَادَةُ ثُمَّ قَرَأَ { وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ }. رواه احمد والترمذي و ابوداؤد والنسائي وابن ماجة .

دعاء عبادت دئ ، بيا رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت کړ : وقال ربکم ...... : او ستاسو پروردگار ويلي دي چي زما څخه دعاء غواړئ زه به يې قبلوم ، احمد ، ترمذي ، ابوداؤد ، نسائي او ابن ماجه

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۴\۲۷۶، وابوداود في السنن ۲\ ۱۶۱، رقم: ۱۴۷۹. والترمذي في السنن ۵\ ۱۹۴، رقم: ۲۹۶۹، وابن ماجه ۲\ ۱۲۵۸، رقم: ۳۸۲۸، والنسائي في الکبرى ۶\ ۴۵۰، رقم: ۱۱۴۶۴

**تشريح**: رسول الله ﷺ د مبالغې په توگه وفرمايل چي دعاء کول عبادت دی ځکه دعاء هغه عبادت دی چي په هغه کي بنده الله تعالى ته متوجه کيږي د الله تعالى د ذات څخه پرته د هر يو ذات څخه استغناء کوي د الله تعالى د ذات څخه پرته د بل هيچا څخه نه بيريږي او نه اميد لري او بيا دا چي په دعاء کي اخلاص وي د الله تعالى حمد او شکر وي د الله تعالى څخه سوال کيږي د الله تعالى د وحدانيت اظهار کيږي د خپل مقصد او مطلب د پوره کولو لپاره الله تعالى ته توجه او رغبت کيږي او د الله تعالى سره مناجات کيږي او د الله تعالى په مخکي د خپل ځان ذليل کولو او عاجز کولو سره د کمال عبوديت اظهار کيږي او الله تعالى ته فرياد کيږي او د هغه څخه مرسته غوښتل کيږي .

رسول الله ﷺ د خپل ارشاد د توثيق په اړه د دليل په توگه د قرآن کريم دغه آيت و وايه چي ددې څخه معلومه سي چي دعاء مامور به ده يعني د دعاء کولو حکم سوی دی او ددغه حکم تعميل يعني پر دعاء غوښتلو باندي ثواب ورکول کيږي او څرگنده ده چي کوم شی د درجې وي هغه ته عبادت ويل کيږي، ددغه آيت آخري برخه هم پر دې دلالت کوي چي دعاء عبادت دی لکه

چي مخکي ويل سوي دي : ان الذين يستكبرون عن عبادتي سيدخلون جهنم داخرين: کوم کسان چي زما د عبادت يعني دعاء په اړه تکبر کوي هغوئ به ډېر ژر ذليل او خوار کېدو سره په دوږخ کي داخل سي .

## د عاء د عبادت خلاصه ده

﴿۲۱۲۷﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الدُّعَاءُ مُخُّ الْعِبَادَةِ . رواه الترمذي

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : دعاء د عبادت مغز دئ . ترمذي

**تخريج** : الترمذي في السنن ۵\۴۲۵، رقم: ۳۳۷۰، وابن ماجه في السنن ۲\۱۲۵۸، رقم: ۳۸۲۹.

**تشريح** مطلب دادی چي دعاء د عبادت خلاصه ده او ددې مقصد بالذات دی څکه چي د عبادت حقيقت او خلاصه عاجزي او د خپل ځان ذليل او کم ګڼل دي او دا شيان په دعاء کي حاصلېږي.

## د دعاء فضيلت

﴿۲۱۲۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ شَيْءٌ اَكْرَمَ عَلَى اللّٰهِ تَعَالَى مِنَ الدُّعَاءِ . رواه الترمذي و ابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب .

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د الله په نزد د دعاء څخه هيڅ شی زيات ستر نه دئ . ترمذي، ابن ماجه، ترمذي ويلي دا حديث حسن غريب دئ.

**تخريج** : الترمذي في السنن ۵\۴۲۵، رقم: ۳۳۷۰، وابن ماجه في السنن ۲\۱۲۵۸، رقم: ۳۸۲۹.

**تشريح** د دعاء څخه زيات د لوړي مرتبې هيڅ شی نشته : ددې مطلب دادی چي اذکار او عبادات هيڅ شی د دعاء برابر نه دی ، د رسول الله ﷺ دغه ارشاد د قرآن کريم ددغه آيت سره خلاف نه دی : ان اكرمكم عند الله اتقاكم : د الله تعالی په نزد په تاسو کي ډېر زيات د لوړي درجې والا هغه څوک دی کوم چي په تاسو کي تر ټولو زيات پرهيزګار وي .

## دعاء تقدير بدلوي

﴿۲۱۲۹﴾: وَعَنْ سَلْمَانَ الْفَارِسِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَرُدُّ الْقَضَاءَ إِلَّا الدُّعَاءُ وَلَا يَزِيدُ فِي الْعُمْرِ إِلَّا الْبِرُّ . رواه الترمذي

د حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : تقدير د دعاء پرته بل هيڅ شی نه سي بدلولای او په عمر کي د نيکۍ څخه پرته بل هيڅ شی زياتوالی نه سي کولای . ترمذي

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\۳۹۰، رقم: ۲۱۳۹.

**تشريح**: د تقدير څخه مراد د داسي ناخوښه شي پېښېدل دي چي د هغه څخه انسان بيرېږي ، د حديث مطلب دادی چي کله بنده ته د دعاء کولو توفيق ورکړل سي نو الله تعالی د هغه څخه داسي شيان ليري کوي .

## د تقدير اقسام

د تقدير دوه ډولونه دي ۱: مبرم، ۲: معلق، تقدير مبرم خو د الله تعالی نه بدلېدونکي فيصله وي کوم شی چي پېښېدونکی وي په هغه کي هيڅ تغير او تبديل ممکن نه دی او په تقدير معلق کي د ځينو اسبابو په وجه تغير او تبديل هم کيږي ، دلته په دغه حديث کي د تقدير په اړه ويل سوي دي چي هغه په دعاء سره بدلېږي نو هغه تقدير معلق دی او تقدير مبرم نه دی .

## په نيکۍ سره د عمر د زياتوب مطلب

د حديث شريف څخه دا خبره معلومېږي چي په نيکۍ سره په عمر کي زياتوب راځي نو په دې باره کي پوه سه چي دلته د عمر کمي او زياتوب د تقدير معلق په اعتبار نه دی يعني په تقدير کي دا ليکل سوي دي چي فلانی سړی نيکي وکړي نو دومره عمر به يې وي او که نيکي ونه کړي نو دومره عمر به يې وي ، ددې صورت دادی چي په لوح محفوظ کي داسي ليکل سوي دي مثلاً که چيري فلانی سړی حج وکړي يا جهاد وکړي نو د هغه عمر به څلوېښت کاله وي او که چيري جهاد او حج دواړه وکړي نو د هغه عمر به شپېته کاله وي، که هغه سړی حج هم وکړي او جهاد هم وکړي نو د هغه عمر زيات سو او که هغه يوازي جهاد وکړ يا يوازي حج يې وکړ نو د هغه عمر به څلوېښت کاله وي نو د هغه د عمر انتهاء چي شپېته کاله وو کم سو .

ځيني حضرات د دغه حديث مطلب دا بيانوي چي کوم سړی نيکي وکړي د هغه عمر ضائع

نه سو يعني لکه چي د هغه عمر زيات سو په دې اعتبار دلته دا ويل سوي دي چي نيکي د انسان په عمر کي زياتوب راولي .

## دعاء د بلاوو دفع ده

﴿۲۱۳۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الدُّعَاءَ

د حضرت ابن عمر ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : دعاء

يَنْفَعُ مِمَّا نَزَلَ وَمِمَّا لَمْ يَنْزِلْ فَعَلَيْكُمْ عِبَادَ اللّٰهِ بِالدُّعَاءِ . رواه الترمذي و

رواه احمد عن معاذبن جبل وقال الترمذي هذا حديث غريب

هغه شی ته ګټه رسوي چي نازل سي (يعني بلا او ستونزي) او د هغه شی څخه چي تر اوسه نه وي نازل سوی له دې کبله اې دالله بندګانو ! دعاء پر خپل ځان لازمه کړئ . ترمذي، احمد، ترمذي ويلي دا حديث غريب دئ .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۵۱۵، رقم: ۳۵۴۸.

**تشريح** کوم شی چي سوی وي د هغه لپاره ددغه دعاء د ګټور کېدو مطلب دادی چي کوم مصيبت او آفت نازل سوی وي که چيري هغه د خلکو څخه وي نو په دعاء کولو سره دفع کيږي او انسان ته سکون او اطمينان حاصليږي او که چيري هغه مبرم وي نو بيا هم د دعاء ګټه ځرګنديږي په دې توګه چي الله تعالی هغه ته د صبر توان ورکوي چي د هغه په نتيجه کي نه يوازي دا چي د هغه مصيبت او آفت زغمل د هغه لپاره اسان سي او هغه په راضي سي بلکه هغه دا هم نه غواړي چي په په مصيبت او آفت کي اخته سي ځکه چي د صبر د تر لاسه کېدو وروسته د هغه د اطاعت جذبه دومره قوي کيږي چي هغه په مصيبت او آفت کي هم داسي احساس کوي لکه څرنګه چي خلک په دنيا کي د نعمتونو او راحتونو لذت محسوس کوي .

کوم شی چي سوی نه وي د هغه لپاره دعاء په دې توګه ګټوره ده چي هغه د نازليدو څخه منع کوي په شرط د دې چي د هغه تعلق هم د تقدير معلق سره وي .

﴿۲۱۳۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ أَحَدٍ

د حضرت جابر ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي

يَدْعُو بِدُعَاءٍ إِلَّا آتَاهُ اللَّهُ مَا سَأَلَ أَوْ كَفَّ عَنْهُ مِنَ السُّوءِ مِثْلَهُ مَا لَمْ يَدْعُ بِإِثْمٍ أَوْ قَطِيعَةِ رَحِمٍ. رواه الترمذي

د الله تعالی څخه یو شی غواړي یا خو الله تعالی د هغه سوال او غوښتنه پوره کوي یا دهغه څخه بدي چي د دعاء برابر وي لیري کوي تر څو پوري چي هغه د یوې ګناه یا د قرابت پرې کولو دعاء و نه غواړي. ترمذي

**تخریج**: الترمذي في السنن ۵\۴۳۱، رقم: ۳۳۸۱.

## د الله ﷻ څخه فضل غواړئ

﴿۲۱۳۲﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَلُوا

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د الله تعالی څخه د هغه

اللَّهَ مِنْ فَضْلِهِ فَإِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ يُحِبُّ أَنْ يُسْأَلَ وَأَفْضَلُ الْعِبَادَةِ انْتِظَارُ الْفَرَجِ. رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب.

فضل غواړئ ځکه چي الله تعالی غوښتل ډیر خوښوي او غوره عبادت د پراختیا انتظار دئ. ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دئ.

**تخریج**: الترمذي في السنن ۵\۵۲۸، رقم: ۳۵۷۱.

**تشریح**: د پراختیا د انتظار کولو مطلب دادی چي دعاء غوښتونکی د غیر الله څخه د شکایت او ناامیدۍ د اظهار کولو پرته ددې امید لري چي هغه د کوم مصیبت او غم لیري کولو دعاء غواړي هغه به انشاء الله تعالی خامخا لیري سي، که په دعاء قبلېدو کي په څرګندهٔ هر څومره ځنډ وسي مګر هغه د امید لمن هیڅ کله نه پرېږدي او په هیڅ وخت کي هم هغه د الله تعالی د فضل او کرم څخه د یوې لحظي لپاره هم نه نا امیده کیږي، دا یو اشاره ده صبر ته چي د صبر طاقت نه یوازي دا چي د انسان په قوت اراده کي د زیاتوب سبب ګرځي بلکه د الله تعالی پر ذات باندي د پوره اعتماد او یقین جذبه پیدا کوي او په دې کي خو شک نسته چي د صبر جزاء او انعام ډېر او بې شمېره دی.

## د الله ﷻ څخه نه غوښتل د الله ﷻ د ناراضګی سبب دی

﴿۲۱۳۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَمْ يَسْأَلِ اللّٰهَ يَغْضَبْ عَلَيْهِ. رواه الترمذي

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د الله تعالى څخه سوال نه کوي الله تعالى د هغه څخه ناراضه کيږي. ترمذي.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۴۲۶، رقم: ۳۳۷۳.

## عافيت غوښتل

﴿۲۱۳۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ فُتِحَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو کي چي

لَهُ مِنْكُمْ بَابُ الدُّعَاءِ فُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ الرَّحْمَةِ وَمَا سُئِلَ اللّٰهُ شَيْئًا يَعْنِي

د چا لپاره د دعاء دروازه خلاصه سي نو د هغه لپاره د رحمت دروازې هم خلاصي سي او د الله تعالى څخه چي کوم شی وغوښتل سي

أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ أَنْ يُسْأَلَ الْعَافِيَةَ. رواه الترمذي

په هغه کي د الله تعالى په نزد تر ټولو غوره شی عافيت دئ. ترمذي.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۵۱۵، رقم: ۳۵۴۸.

**تشريح**: د حديث د آخري برخو مطلب دادی چي الله تعالى عافيت غوښتل ډېر خوښوي او د بل هيڅ شي غوښتل تر دې نه خوښوي، د عافيت معنی د دنيا او آخرت ټول ظاهري او باطني ناخوښه شيان ټول آفتونه او مصيبتونه ټولي ناروغۍ او بلاوو څخه سلامتيا او حفاظت غوښتل دي، نو عافيت د دنيا او آخرت پر ټولو شيانو باندي حاوي دی. چا چي عافيت و غوښتی هغه د دنيا او آخرت ټول خيرونه وغوښتل ځکه الله تعالى عافيت غوښتل خوښوي.

## په خوشحالي او پراخي کي ډيري دعاوي غواړئ

﴿۲۱۳۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَسَلَّمَ مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَسْتَجِيبَ اللّٰهُ لَهُ عِنْدَ الشَّدَائِدِ فَلْيُكْثِرِ الدُّعَاءَ فِي الرَّخَاءِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

څوک چي دا خوښوي چي د سختۍ په وخت کي الله تعالى د هغه دعاء قبوله کړي نو هغه ته پکار دي چي د پراختيا او خوښي په وخت کي ډيري دعاوي و غواړي . ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۴۳۱، رقم: ۳۳۸۲.

## د دعاء کولو پر وخت د قبليدو يقين کوئ

﴿۲۱۳۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ادْعُوا اللّٰهَ وَأَنْتُمْ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د الله تعالى څخه دعاء

مُوقِنُونَ بِالْإِجَابَةِ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللّٰهَ لَا يَسْتَجِيبُ دُعَاءً مِنْ قَلْبٍ غَافِلٍ لَاهٍ .

رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب .

غواړئ په دې يقين سره چي هغه ضرور قبلونکی دئ او په دې خبره پوه سئ چي الله تعالى د غافل زړه دعاء نه قبلوي . ترمذي ويلي دا حديث غريب دئ .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۴۸۳، رقم: ۳۴۷۹.

**تشريح**: د حديث د اولنۍ برخي مطلب دادی چي د دعاء پر وخت تاسو ته په داسي حالت کي کېدل پکار دي چي د هغه سبب تاسو د دعاء د قبوليت مستحق وګرځئ مثلا په نېک کار کي بوختيا او د خرابو کارونو څخه ساتنه وي ، د دعاء چي کوم شرطونه دي د هغو رعايت کيږي مثلا توجه الى الله ، د زړه حضور او اخلاص حاصل وي ، آخري خبره داده چي ستاسو پر زړه باندي د قبوليت يقين او اعتماد وي او پر نه قبلېدو او نااميدی باندي غالب وي ، يا مراد دادی چي د دعاء غوښتلو پر وخت تاسو ته پوره باور کول پکار دي چي الله تعالى خپل وسيع او لا محدود فضل په وجه موږ نه نااميده کوي او زموږ دعاء به خامخا قبلوي .

## د دعا پر وخت لاسونه!

﴿۲۱۳۷﴾: وَعَنْ مَالِكِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا

د حضرت مالک بن يسار رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي

سَأَلْتُمُ اللَّهَ فَاسْأَلُوهُ بِبُطُونِ أَكُفِّكُمْ وَلَا تَسْأَلُوهُ بِظُهُورِهَا، و في رواية ابن

تاسو د الله څخه دعاء غواړئ نو دلاسو په دننه خوا يې غواړئ (يعني ورغوي خپل لوري ته کړئ) او هغه د شا د لوري څخه مه غواړئ ،

عباس قَالَ سَلُوا اللَّهَ بِبُطُونِ أَكُفِّكُمْ وَلَا تَسْأَلُوهُ بِظُهُورِهَا فَإِذَا فَرَغْتُمْ فَامْسَحُوا بِهَا وُجُوهَكُمْ . رواه ابوداؤد .

او د ابن عباس په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د الله تعالى څخه د لاسو دننه خوا څخه غواړئ او د هغه د شا د خوا څخه يې مه غواړئ او هر کله چي تاسو د دعاء څخه فارغ سئ نو لاسونه پر مخ راتير کړئ . ابوداؤد

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\ ۱۶۴، رقم: ۱۴۸۶.

**تشريح**: مطلب دادی چي د دعاء پر وخت لاسونه پورته کوئ او هغه داسي ايږدئ چي د لاسونو د ننه خوا يعني ورغوي مخ ته وي لکه څرنګه چي د دعاء پر وخت معمول دی ، په اړول سوو لاسو باندي دعاء مه غواړئ ، د استسقاء حالت دده څخه استثناء دی ځکه چي هغه وخت د لاسونو په اړولو سره دعاء غوښتل منقول دي او په باب الاستسقاء کي دده بيان سوی دی .

## د دعاء پر وخت پورته سوي لاسونه

﴿۲۱۳۸﴾: وَعَنْ سَلْمَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ رَبَّكُمْ

د حضرت سلمان رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ستاسو پروردګار

حَيِيٌّ كَرِيمٌ يَسْتَحْيِي مِنْ عَبْدِهِ إِذَا رَفَعَ يَدَيْهِ أَنْ يَرُدَّهُمَا صِفْرًا. رواه الترمذي و ابوداؤد والبيهقي في الدعوات الكبير .

ډیر حیاناکه دئ، بې غوښتني ورکونکی دئ او هغه ددې څخه حیاء کوي چي بنده د هغه په لور لاس پورته کړي او هغه د هغه لاسونه خالي راستانه کړي. ترمذي، ابوداؤد او بیهقي

**تخریج**: الترمذي في السنن ۵\ ۵۲۰، رقم: ۳۵۵۶، وابوداود في السنن ۲\ ۱۶۵، رقم: ۱۴۸۸.

## د دعاء وروسته لاسونه پر مخ راتېرول

﴿۲۱۳۹﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَفَعَ يَدَيْهِ فِي الدُّعَاءِ لَمْ يَحُطَّهُمَا حَتَّى يَمْسَحَ بِهِمَا وَجْهَهُ . رواه الترمذي

د حضرت عمر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي کله به رسول الله ﷺ د دعاء لپاره لاسونه پورته کول نو تر هغو به یې نه کښته کول تر څو پوري چي پر مخ به یې راتیر نه کړل. ترمذي

**تخریج**: الترمذي في السنن ۵\ ۴۳۲، رقم: ۳۳۸۶.

## رسول الله ﷺ جامع دعاوي خوښولې

﴿۲۱۴۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَحِبُّ الْجَوَامِعَ مِنَ الدُّعَاءِ وَيَدَعُ مَا سِوَى ذٰلِكَ . رواه ابوداؤد

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به هغه دعاوي خوښولې کومي چي به جامع وې او کومي چي به داسي نه وي نو هغه به یې پرېښودلې. ابوداؤد.

**تخریج**: ابوداود في السنن ۲\ ۱۶۲، رقم: ۱۴۸۳.

**تشریح** جامع دعاء هغه دعاء ته وایي چي په هغه کي الفاظ خو کم وي مگر هغه د دنیوي او اُخروي امورو باندي حاوي وي لکه دغه دعاوي:

ربنا آتنا في الدنیا حسنة وفي الاخرة حسنة وقنا عذاب النار: اې الله! موږ په دنیا کي هم خېر راکړې او په آخرت کي هم خیر راکړې او موږ د اور د عذاب څخه وساتې.

اللهم اني اسئلک العفو والعافیة في الدین والدنیا والآخرة: اې الله! زه ستا څخه په دین کي په دنیا کي او په آخرت کي عفو او عافیت غواړم.

دا ډول نوري هم ډېري جامع دعاوي سته چي په حدیثو کي منقول سوي دي.

د حدیث د آخري جملې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ داسي دعاوي پرېښودلي کوم چي جامع نه وي بلکه د يو خاص مطلب او مقصد په باره کي وي مثلا دغه دعاء: ارزقني زوجة حسنة: اې الله ! ما ته ښائسته ښځه راکړې، مګر دا خبره هم بايد په فکر کي وي چي دا د رسول الله ﷺ د عادت په اعتبار ويل سوي دي چي رسول الله ﷺ به زيات وخت جامع دعاوي غوښتلې مګر کله نا کله يې د يو خاص مطلب لپاره هم دعاء غوښتل ثابت دي.

## غائبانه دعاء قبليږي

﴿۲۱۴۱﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَسْرَعَ الدُّعَاءِ إِجَابَةً دَعْوَةُ غَائِبٍ لِغَائِبٍ. رواه الترمذي و ابوداؤد.

د حضرت عبدالله ابن عمرو رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ډير ژر قبليدونکې دعاء هغه ده چي غائب يې د غائب لپاره وکړي. ترمذي، ابوداؤد.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۳۰۹، رقم: ۱۹۸۰. و ابوداود في السنن ۲\۱۸٦، رقم: ۱۵۳۵.

**تشريح**: د کوم چا لپاره چي د هغه په نه موجودتيا کي دعاء کوي نو د هغه دعاء ژر قبليږي ځکه داسي دعاوي يو چا ته د ښوونې يا اورولو لپاره نه کيږي بلکه په خاص اخلاص او خلوص کيږي.

## د ښه خلکو څخه د دعاء غوښتنه

﴿۲۱۴۲﴾: وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ اسْتَأْذَنْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه د عمرې کولو اجازه وغوښتل،

فِي الْعُمْرَةِ فَأَذِنَ لِي وَقَالَ أَشْرِكْنَا يَا أُخَيَّ فِي دُعَائِكَ وَ لَا تَنْسَنَا فَقَالَ كَلِمَةً مَا

رسول الله ﷺ اجازه راکړه او وه يې فرمايل: زما کشره وروره ! په خپلو دعاوو کي ما هم ګډ لره چي هير دي نه سي، رسول الله ﷺ دا يو داسي خبره وفرمايل

يَسُرُّنِي أَنَّ لِي بِهَا الدُّنْيَا. رواه ابوداؤد والترمذي و انتهت روايته عند قوله ولا تنسنا.

چي زما د ټولي دنيا په مقابله کي خوښه ده. ابوداؤد، ترمذي،

**تخريج:** ابو داود في السنن ۲\۱۶۹، رقم: ۱۴۹۸، والترمذي في السنن ۵\۵۲۳. رقم: ۳۵۶۲.

**تشريح:** د رسول الله ﷺ فرمايل سوې هغه کلمه ده چې د هغه په بدله کې ټوله دنيا تر لاسه کېدل هم د حضرت عمر رضي الله عنه لپاره د خوشحالۍ باعث نه وو ، په دې باره کې دوه احتماله دي يو خو دا چې د کلمې څخه مراد د رسول الله ﷺ حضرت عمر رضي الله عنه ته د هغه د عمرې لپاره د تلو په وخت کې فرمايل وي يعني په دعاء کې يادول او د دعاء پر وخت نه هېرول، مګر دا احتمال هم دی چې رسول الله ﷺ په دغه وخت کې يو بله خبره فرمايلې وي چې د حضرت عمر رضي الله عنه په نزد تر ټولې دنيا قيمتي وي او هغه خبره دلته په حديث کې نه وي نقل سوې ، رسول الله ﷺ چې حضرت عمر رضي الله عنه ته د دعاء کوم خواست وکړ نو په دې کې يوازې دا دي چې د ذات نبوت له خوا د عبوديت په مرتبه او مقام کې د عجز اظهار دی بلکه په داسې کولو سره د امت خلکو ته ددې ترغيب هم ورکړل سوی دی چې د الله تعالی د نيکو او عابد بندګانو او ښو خلکو څخه د خير دعاء غوښتل کېدای سي که څه هم هغوئ د مرتبې په لحاظ کم وي ، او دلته د رسول الله ﷺ په داسې لطيف انداز کې وينا امت ددې څخه خبرول دي چې خپل دعاوې دې يوازې د خپل ځان لپاره نه خاصوي بلکه په دعاوو کې دې په خاص توګه هغه دعاوو کې چې د قبوليت پر مقام غوښتل کيږي خپل قريبان، دوستان او ملګري هم شامل کړي .

په پای کې يوه خبره دا هم ده چې ددغه حديث څخه د حضرت عمر رضي الله عنه د عظمت او بزرګۍ اظهار هم کيږي رسول الله ﷺ هغه ته د دعاء خواست وکړ دا داسې دی لکه چې د هغه د عظمت او بزرګۍ تصديق يې وکړ .

## هغه خوشبخته چې دعاء يې نه رد کيږي

﴿۲۱۴۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةٌ لَا

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : د درو کسانو

تُرَدُّ دَعْوَتُهُمُ الصَّائِمُ حِينَ يُفْطِرَ وَالْإِمَامُ الْعَادِلُ وَدَعْوَةُ الْمَظْلُومِ يَرْفَعُهَا

دعاء نه رد کيږي يو د روژه دار دعاء هغه وخت چې هغه روژه ماتوي، دويم د عادل حاکم دعاء ، دريم د مظلوم دعاء چې د هغه دعاء الله تعالی

اللَّهُ فَوْقَ الْغَمَامِ وَيَفْتَحُ لَهَا أَبْوَابَ السَّمَاءِ وَيَقُولُ الرَّبُّ وَعِزَّتِي لَأَنْصُرَنَّكَ

وَلَوْ بَعْدَ حِينٍ. رواه الترمذي .

د وريځي پورته وړي او د مظلوم د دعاء لپاره د آسمان دروازې خلاصي سي او الله تعالى فرمايي : زما دي په خپل عزت قسم وي خامخا به ستا مرسته کوم که څه لږ وخت وروسته وي . ترمذي

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۵۳۹، رقم: ۳۵۹۸.

**تشريح**: د مظلوم دعاء وريځي ته پورته کېدل او د هغه لپاره د آسمانو دروازې خلاصېدل دا په اصل کي کنايه ده ددې څخه چي د مظلوم دعاء ژر پورته کيږي او قبليږي .

﴿۲۱۴۴﴾: وَ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثُ دَعَوَاتٍ مُسْتَجَابَاتٌ لَا شَكَّ فِيهِنَّ دَعْوَةُ الْوَالِدِ وَدَعْوَةُ الْمُسَافِرِ وَدَعْوَةُ الْمَظْلُومِ . رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة .

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : درې ډوله دعاوي قبليږي او دهغو په قبلېدو کي هيڅ شک نسته : د پلار دعاء ، دويم د مسافر دعاء، او دريمه د مظلوم دعاء . ترمذي، ابوداؤد ، ابن ماجة .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\ ۲۷۷، رقم: ۱۹۰۵، وابوداود في السنن ۲\ ۱۸۷، رقم: ۱۵۳۶، وابن ماجه في السنن ۲\۱۲۷۰، رقم: ۳۸۶۲.

**تشريح**: د پلار دعاء : ددې مطلب دا دی چي پلار د خپل اولاد لپاره دعاء وکړي يا ښېرا وکړي نو هغه ژر قبليږي او کله چي د پلار دعاء قبليږي نو د مور دعاء په طريقه اولى قبليږي که څه هم دلته په حديث کي د مور په باره کي ذکر نه دی سوی ځکه مور پر خپل اولاد باندي د پلار په نسبت ډېر شفيقه وي .

د مسافر د دعاء په باره کي دوه احتماله دي يو خو دا چي د مسافر دعاء د هغه چا په حق کي قبليږي چي د هغه سره احسان او ښه چلن وکړي او د هغه ښېرا د هغه چا په حق کي قبليږي چي هغه ته تکليف او ضرر ورسوي او د هغه سره بد چلن کوي يا دا چي د مسافر دعاء مطلقا قبليږي که هغه يې د ځان لپاره وکړي او يا د بل چا لپاره .

د مظلوم د دعاء مطلب دا دی چي کوم څوک د مظلوم مرسته وکړي يا هغه ته داد ورکړي او مظلوم د هغه لپاره دعاء وکړي نو د هغه دعاء قبليږي همدا رنګه کوم څوک چي پر مظلوم ظلم

کوي یا کوم څوک چي د ظالم په تائید کولو سره مظلوم ته ذهني، روحاني او بدني تکلیف رسوي او مظلوم د هغه لپاره ښېرا وکړي نو د هغه دغه ښېرا قبلیږي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### خپل ادنا حاجت هم د الله ﷻ څخه غواړئ

﴿۲۱۴۵﴾: عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيَسْأَلْ أَحَدُكُمْ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: پکار ده چي تاسو خپل

رَبَّهُ حَاجَتَهُ کلها حَتَّى يَسْأَلَهُ شِسْعَ نَعْلِهِ إِذَا انْقَطَعَ. زاد في رواية عن ثابت

حاجتونه یوازي د الله څخه وغواړئ تر دې چي د څپلیو تسمه مو وشکیږي نو هغه هم د الله څخه غواړئ، او د ثابت بناني په روایت کي دا الفاظ دي چي

البناني مرسلا حتى يساله الملح و حَتَّى يَسْأَلَهُ شِسْعَ نَعْلِهِ إِذَا انْقَطَعَ. رواه الترمذي

مالګه دي هم غواړي او تر دي چي د څپلیو تسمه وشکیږي نو هغه دي هم د الله څخه غواړي. ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۷۸۲، رقم: ۳۶۸۲،

**د لغاتو حل**: شِسع بکسر المعجمة وسکون المهملة، ای شراکهما (تسمه).

**تشریح**: د مشکوة مصنف رحمه الله ته پکار وه چي هغه د زاد في رواية پر ځای داسي ویلي وای چي رواه الترمذي و زاد في رواية، په دوهم روایت کي دغه جمله حتى يساله شسعه..الخ، یعني که چیري د هغه د څپلی تسمه هم وشکیږي نو هغه دي هم د الله تعالی څخه غواړي دا الفاظ مکرر ذکر سوي دي او دا ځکه مکرر دي چي پر دې خبره دلالت وکړي چي د الله تعالی څخه په غوښتلو کي پر هیڅ ډول باندي د سائل لپاره څه بندیز او محرومي نسته الله تعالی پر خپلو بندګانو باندي ډېر مهربان دی هغوئ چي څه غواړي الله تعالی یې ورکوي نو بندګانو ته پکار دي چي هغوئ خپل هر حاجت که څه هم ادنا شی وي د الله تعالی څخه غواړي او یوازي د هغه پر ذات باور وکړي.

ابو علي دقاق رحمه الله وایي چي دا خبره د معرفت نښه ده چي خپل هر حاجت که هغه لوی وي

او كه كوچنى وي د الله تعالى څخه وغوښتل سي او دلته يې د حضرت موسى عليه السلام ډېر ښه مثال وړاندي كړى دى چي يوې خوا ته خو د الله تعالى د ديدار شوق و سو نو هغه د الله تعالى په حضور كي دغه تر ټولو لوى درخواست وړاندي كړ: رب ارني انظر اليک: اې زما ربه! ما ته وښيه چي زه تا ووينم، بلي خوا ته د اوربشو د ډوډۍ محتاج سو نو پروردګار ته يې عرض وكړ: رب لما انزلت الي من خير فقير: اې الله! ما ته د مال او رزق څخه يو شى را واستوې نو زه د هغه محتاج يم.

## په دعاء كي لاسونه پورته كول

﴿۲۱۴۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي الدُّعَاءِ حَتّٰى يُرٰى بَيَاضُ إِبْطَيْهِ.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به په دعاء كي لاسونه دومره پورته كول چي د رسول الله ﷺ د بغلو سپين والى به ښكاره سو. بيهقي

**تخريج**: رواه البيهقي في الدعوات الكبير.

﴿۲۱۴۷﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَ يَجْعَلُ أُصْبَعَيْهِ حِذَاءَ مَنْكِبَيْهِ وَيَدْعُوا.

د حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به د دواړو لاسو د ګوتو سرونه د دواړو اوږو برابر ساتل او بيا به يې دعاء غوښتل. بيهقي

**تخريج**: رواه البيهقي في الدعوات الكبير.

**تشريح**: په دغه حديث كي چي د دعاء پر وخت د لاسو پورته كولو كومه اندازه ښودل سوې ده دا د لاسو پورته كولو اوسط درجه ده او رسول الله ﷺ به د دعاء پر وخت زيات وخت خپل لاسونه دومره پورته كول، تر دې ځايه د اولني حديث تعلق دى چي د هغه څخه د لاسونو زيات پورته كول معلوميږي مګر دا صورت پر ځينو وختو محمول دى يعني په دعاء كي چي ډېر زيات استغراق او مبالغه وي مثلا د استسقاء يا سخت آفات په وخت كي نو رسول الله ﷺ به خپل لاسونه مبارک دومره پورته كول چي د بغلو سپين والى به يې معلوم سو.

## د دعاء وروسته لاسونه پر مخ تېرول

﴿۲۱۴۸﴾: وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدٍ عَنْ أَبِيْهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت سائب بن زيد رضي الله عنه د خپل پلار څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ به

كَانَ إِذَا دَعَا فَرَفَعَ يَدَيْهِ مَسَحَ وَجْهَهُ بِيَدَيْهِ. روى البيهقي الأحاديث الثلاثة في "الدعوات الكبير"

دعاء غوښتل نو دواړه لاسونه به يې پورته کړل او بيا به يې دواړه لاسونه د دعاء وروسته پر مخ راتير کړل. دري سره حديثونه بيهقي په دعوات کبير کي نقل کړي دي.

**تخريج**: رواه البيهقي في الدعوات الكبير.

**تشريح**: علامه طيبي رحمه الله وايي چي دا حديث پر دې خبره دلالت کوي چي نبي کريم ﷺ به د دعاء وروسته لاسونه پورته کول او که چيري د دعاء پر وخت به يې لاسونه پورته نه کړل نو هغه به يې پر مخ نه را تېرول د لمانځه په حالت کي، په طواف کي او د ډوډه کېدو پر وخت او د خوراک وروسته همدارنګه پر نورو ځايو باندي رسول الله ﷺ چي کومي دعاوي کولې نو په هغو کي لاسونه پورته کول منقول دي او رسول الله ﷺ به په دغه وختونو کي لاسونه هم پر مخ مبارک نه را تېرول.

## د دعاء ادب

﴿۲۱۴۹﴾: وَعَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ الْمَسْأَلَةُ أَنْ تَرْفَعَ يَدَيْكَ حَذْوَ

حضرت عکرمة رضي الله عنه د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت کوي چي هغه وويل: د دعاء غوښتلو طريقه داده چي دواړه لاسونه

مَنْكِبَيْكَ أَوْ نَحْوَهُمَا وَالاِسْتِغْفَارُ أَنْ تُشِيرَ بِأُصْبُعٍ وَاحِدَةٍ وَالاِبْتِهَالُ أَنْ تَمُدَّ

تر اوږو پوري يا هغه ته نژدې پورته کړل سي او د استغفار طريقه داده چي ته په خپل يوې ګوتي سره اشاره وکړې او په دعاء کي د عاجزۍ طريقه داده چي ته خپاره کړې

يَدَيْكَ جَمِيعًا، و في رواية قَالَ وَالاِبْتِهَالُ هٰكَذَا وَرَفَعَ يَدَيْهِ وَجَعَلَ ظُهُورَهُمَا

مِمَّا يَلِي وَجْهَهُ . رواه ابوداؤد .

خپل دواړه لاسونه او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي ابن عباس ﷺ وويل : د عاجزی طريقه داده د دې ويلو سره ابن عباس خپل دواړه لاسونه پورته کړل او د لاسو شا يې خپل مخ ته نژدې کړل . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\۱۶۵، رقم: ۱۴۸۹.

**تشريح** په يوې ګوتي سره اشاره کوئ: دلته د ګوتي څخه مراد د مسواک ګوته ده چي د شهادت ګوته هم ورته وايي او ددې څخه مقصد سب دی يعني نفس اماره او ملعون شيطان ملامتول او د هغه د بديو څخه پناه غوښتل دلته د يوه قيد ځکه لګول سوی دی چي په دوو ګوتو سره اشاره کول مکروه دي ، رسول الله ﷺ يو سړی په دوو ګوتو سره په اشاره کولو وليدی نو هغه ته يې وفرمايل چي په يوې ګوتي سره اشاره کوه .

د حديث د آخري برخي مطلب دادی چي ابن عباس رضي الله عنه په دعاء کي د ډېر عجز د اظهار په ذريعه وښودل هغه خپل دواړه لاسونه دومره پورته کړل چي د بغلو سپين والي يې معلوم سو او لاسونه يې د سر برابر ته ورسېدل .

## د لاسو ډېر پورته کول بدعت دی

﴿۲۱۵۰﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهُ يَقُوْلُ إِنَّ رَفْعَكُمْ أَيْدِيَكُمْ بِدْعَةٌ مَا زَادَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى هٰذَا يَعْنِي إِلَى الصَّدْرِ . رواه احمد

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي په دعاء کي لاسونه ډير پورته کول بدعت دئ، رسول الله ﷺ تر دې زيات لاسونه نه دي پورته کړي ، يعني تر سينې پوري . احمد

**تخريج**: مسند الامام احمد ۲\۶۱.

**تشريح** ابن عمر رضي الله عنه د لاسو ډېر پورته کولو ته ځکه بدعت وويل چي هغه خلکو به خپل لاسونو په اکثرو وختو کي زيات پورته کول او په حالات او مواقع کي به يې څه فرق نه کوی حالانکه هغوئ ته پکار وه چي هغوئ د يو مقصد لپاره لاسونه تر سينې پوري پورته کړي او او يا د بل مقصد لپاره يې د اوږو څخه پورته کړي .

په دې خبره دا ډول پوه سئ چي د رسول الله ﷺ د لاسو پورته کولو مقدار د حالاتو او مواقع په اختلاف وو او رسول الله ﷺ به اکثر تر خپل سينې پوري لاسونه پورته کول او پر يو

ځای به یې د سینې ښخه پورته کول مگر ابن عمر ﷛ چي کومو کسانو ته تنبیه ورکړه هغوئ د موقع او حالت اعتبار نه کوی بلکه هره وخت به یې او په هري دعاء کي به یې لاسونه ډېر زیات پورته کول ځکه نو ابن عمر ﷛ د هغوئ د دغه عمل څخه د بیزاری اظهار وکړ او هغه یې د سنت خلاف وګرځوی.

## د دعاء پر وخت خپل ځان اول کړئ

﴿۲۱۵۱﴾: وَ عَنْ اُبَيِّ ابْنِ كَعْبٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا

د حضرت ابی بن کعب ﷛ څخه روایت دئ چي کله به رسول الله ﷺ د یو چا یادونه کول

ذَكَرَ أَحَدًا فَدَعَا لَهُ بَدَأَ بِنَفْسِهِ . رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن غريب صحيح .

او بیا به یې د هغه لپاره د دعاء کولو اراده کول نو لومړی به یې د ځان لپاره دعاء پیل کول. ترمذي ویلي دي دا حدیث حسن غریب صحیح دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۴۳۲، رقم: ۳۳۸۵.

**تشریح**: په دغه حدیث کي د امت لپاره ښوونه ده که چیري یو ثوک د یو چا لپاره دعاء کوي نو مخکي دي د خپل ځان لپاره دعاء کوي او بیا دي د هغه سړي لپاره کوي مثلا داسي دعاء دي کوي: اللهم اغفرلي ولفلان: اې الله! ما ته بخښنه وکړې او فلاني سړي ته بخښنه وکړې.

## د دعاء په نیتجه کي د درو شیانو څخه یو شی خامخا حاصلیږي

﴿۲۱۵۲﴾: وَعَنْ اَبِي سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا

د حضرت ابو سعید خدري ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم مسلمان چي

مِنْ مُسْلِمٍ يَدْعُو بِدَعْوَةٍ لَيْسَ فِيهَا إِثْمٌ وَلَا قَطِيعَةُ رَحِمٍ إِلَّا أَعْطَاهُ اللّٰهُ بِهَا

دعاء غواړي او په هغه کي د یو داسي شی دعاء نه وي چي په هغه کي د ګناه کولو یا د خپلوۍ پرې کولو ذکر وي نو الله تعالی دعاء غوښتونکي ته

إِحْدَى ثَلَاثٍ إِمَّا أَنْ تُعَجَّلَ لَهُ دَعْوَتُهُ وَإِمَّا أَنْ يَدَّخِرَهَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ وَإِمَّا أَنْ

د درو شيانو څخه يو شی خامخا ورکوي : يا خو دهغه مقصد ژر ورپوره کړي، يا د هغه دعاء د آخرت لپاره ذخيره جوړه کړي،

يَصْرِفَ عَنْهُ مِنَ السُّوءِ مِثْلَهَا قَالُوا إِذًا نُكْثِرُ قَالَ اللهُ أَكْثَرُ . رواه احمد

يا د دعاء غوښتونکي هغومره بدي ليري کړي څومره چي هغه په دعاء کي د خپل ګټي يا غوښتي کړي وي ، صحابه کرامو عرض وکړ اوس به نو موږ ډيري دعاوي کوو، رسول الله ﷺ وفرمايل : د الله تعالی فضل ډير زيات دئ . احمد

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۱۸\۳.

**تشريح**: د الله تعالی فضل ډېر زيات دی: ددې مطلب دادی چي الله تعالی ستاسو د دعاء په نتيجه کي تاسو ته څه چي غواړئ تر هغه زيات درکوي کوم چي تاسو غوښتي دي .

### هغه پنځه دعاوي چي نه رد کيږي

﴿۲۱۵۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَمْسُ دَعَوَاتٍ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د پنځو کسانو دعاوي

يُسْتَجَابُ لَهُنَّ دَعْوَةُ الْمَظْلُومِ حَتَّى يَنْتَصِرَ وَدَعْوَةُ الْحَاجِّ حَتَّى يَصْدُرَ وَدَعْوَةُ

دي چي هغه خامخا قبليږي : يو د مظلوم دعاء تر څو چي هغه د (ظالم څخه) بدله واخلي ، دويم د حاجي دعاء تر څو پوري چي کور ته راستون نه سي،

الْمُجَاهِدِ حَتَّى يَقْعُدَ وَدَعْوَةُ الْمَرِيضِ حَتَّى يَبْرَأَ وَدَعْوَةُ الْأَخِ لِأَخِيهِ بِظَهْرِ

دريم د جهاد کونکي دعاء تر څو پوري چي هغه د جهاد څخه فارغ نه سي ، څلورم د ناروغ دعاء تر څو پوري چي هغه روغ نه سي (يا وفات سي) ، پنځم د يو مسلمان د خپل مسلمان ورور لپاره

الْغَيْبِ ثُمَّ قَالَ وَأَسْرَعُ هٰذِهِ الدَّعَوَاتِ إِجَابَةً دَعْوَةُ الْأَخِ بِظَهْرِ الْغَيْبِ . رواه البيهقي في الدعوات الكبير

په غياب کي، بيا يې وفرمايل چي دغه دعاء تر ټولو ژر قبليږي . بيهقي .

**تخريج**: رواه البيهقي في الدعوات الكبير.

# بَابُ ذِكْرِ اللهِ عَزَّوَجَلّ وَالتَّقَرُّبِ اِلَيْهِ

## د الله ﷻ ذکر او د الله ﷻ د قرب بیان

تقرب الی الله یعني د الله تعالیٰ قرب او نژدېوالی تر لاسه کول، د الله تعالی د ذکر په ذریعه د الله تعلی قرب تر لاسه کول هم مراد کیدای سي او د نوافلو په ذریعه د الله تعالی قرب تر لاسه کېدل هم مراد کېدای سي.

## د الله تعالی د ذکر ډولونه

د الله تعالی ذکر په زړه سره هم کیږي او په ژبه سره هم، او غوره دادی چي په زړه او ژبه دواړو سره د الله تعالی ذکر وسي او که په یوه سره وي نو بیا د زړه ذکر افضل دی، په زړه سره د ذکر کولو هم دوه ډولونه دي یو ډول خو دادی چي د الله تعالی په عظمت، جبروت، ملکوت او د هغه د قدرت په نښانو کي چي په مځکي او آسمانو کي وي فکر او استغراق وکړي او دا ډول ذکر ته ذکر خفي وایي.

په حدیث شریف کي راغلي دي چي ذکر خفي اویا (۷۰) درجې افضل دی چي حفظه (اعمال لیکونکي ملائکي) یې هم نه اوري، د قیامت په ورځ کله چي الله تعالی ټول مخلوقات د حساب او کتاب لپاره راجمع کړي نو حافظین به د هغه د ټول یادداشت سره حاضر سي کوم چي هغوئ لیکلي او محفوظ کړی وي د هغه ټول ثبت په لېدو سره به الله تعالی هغوئ ته فرمایي چي وګورئ زما د بندګانو په اعمالو کي بل یو شی پاته سوی دی، هغوئ به ووایي چي اې پروردګاره! د بندګانو د اعمالو په اړه چي څه موږ ته معلوم وه او څه موږ یاد کړي دي موږ هغه ټول په دغه ثبت کي جمع کړي دي په دغه ثبت کي موږ هیڅ داسي یو شی نه دی پرې اېښي چي د هغه څخه موږ خبر یو بیا به الله تعالی بنده ته په مخاطب کولو سره وفرمایي چي زما سره ستا داسي نیکي محفوظ ده چي هغه هیچا ته نه ده معلومه او هغه ذکر خفي دی زه به تا ته ددې نیکی اجر درکوم.

په زړه سره د ذکر دوهم ډول دادی چي الله تعالی بندګانو ته کوم احکام ورکړي دي که د هغو تعلق د امر سره وي او که د نهي سره وي نو د هغه د ادا کولو پر وخت الله تعالی یاد کړل سي په زړه سره د ذکر په دغه دواړو ډولو کي اول ډول ذکر غوره او اعلی دی.

ځیني فقهاء وایي چي د ذکر اطلاق یوازي په ژبه سره د الله تعالی پر ذکر باندي کیږي او د

قول مختار مطابق ددې غوره درجه داده چي هغه يو ازي په ځان واورول سي يعني د ذکر کونکي آواز کراروي چي په خپله يې اوري ، ددغه فقهاء په نزد تر دغه درجې کم ذکر معتبر نه دی او دا فقهاء وايي چي د زړه د ذکر حيثيت د علم او تصور د زړه فعل دادی مگر دې ته به ذکر نه وايو ذکر هغه ته وايي چي د هغه تعلق د ژبي سره وي اوس دا نسي ويل کيدای چي ددغه خبري څخه د فقهاؤ مقصد څه شي دی که چيري مطلب يې دا وي چي په لغوي توگه د زړه پر فعل باندي د ذکر اطلاق نه کيږي نو دا خبره د هغه شي خلاف ده کوم چي د لغت په کتابو کي موجود ده په صحاح او قاموس کي ليکل سوي دي چي ذکر د نسيان ضد دی او ظاهره ده چي دا خپله د زړه فعل دی ځکه څرنگه چي د هيري تعلق د زړه سره دی همداسي ددې د ضد يعني ذکر تعلق هم د زړه سره دی ، مگر دا بېله خبره ده چي کوم څه په ژبه سره ادا کيږي هغه ته هم ذکر ويل کيږي .

خلاصه دا چي لفظ د ذکر د زړه او ژبي د فعل په مينځ کي مشترک دی لکه څرنگه چي د زړه فعل ته ذکر وايي همداسي د ژبي فعل ته هم ذکر ويل کيږي او لکه څرنگه چي په ژبه سره ذکر معتبر دی همداسي په زړه سره هم معتبر دی بلکه په زړه سره ذکر کول افضل دی ، د طريقت مشائخ فرمايي چي د ذکر دوه ډولونه دي قلبي او لساني ، او د ذکر قلبي اثر د ذکر لساني تر اثر زيات قوي او افضل دی .

ځيني فقهاء د ذکر قلبي څخه انکار کوي ، کېدای سي چي د هغوئ مراد دا وي چي شريعت په کوم ځای کي د ژبي د ذکر تعليم ورکړی وي لکه تسبيحات، قرائت، او د لمانځه څخه وروسته اذکار وغيره نو هلته په زړه سره ذکر کول کافي نه دی بلکه په ژبه سره ذکر کول پکار دي ، ددغه فقهاؤ مراد دا نه دی چي د زړه پر ذکر باندي اُخروي ثواب نه مرتب کيږي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د ذکر کوونکو فضيلت

﴿۲۱۵۴﴾ : عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَأَبِي سَعِيدٍ قَالَا قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو هريرة او ابو سعيد (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

لَا يَقْعُدُ قَوْمٌ يَذْكُرُونَ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ إِلَّا حَفَّتْهُمُ الْمَلَائِكَةُ وَغَشِيَتْهُمُ

هر کله چي خلک د الله ﷻ د ذکر لپاره کښيني نو ملائکي چاپيره سي او پر هغوئ رحمت خپور

الرَّحْمَةُ وَنَزَلَتْ عَلَيْهِمُ السَّكِينَةُ وَذَكَرَهُمُ اللّٰهُ فِيمَنْ عِنْدَهُ . رواه مسلم

سي سکينه پر نازله سي او الله تعالی هغه مقربو ملائکو ته چي د هغه نژدې دي ددې خلکو ذکر کوي . مسلم .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۴\۲۰۷۴، رقم: ۳۹- ۲۷۰۰.

**تشريح** سکينه د زړه د سکون او اطمينان نوم دی چي د هغه په وجه د دنيا د خوندونو خواهش او د الله تعالی څخه پرته د بل شي لذت او طلب د زړه څخه وځي او د الله تعالی په ذات کي استغراق او استحضار او هغه ته توجه په برخه کيږي ، د سکينې نازلېدل د دغه آيت څخه هم ثابت دي : (الا بذکر الله تطمئن القلوب) خبردار اوسئ! د الله تعالی په ذکر سره زړونو ته اطمينان او سکون تر لاسه کيږي .

﴿۲۱۵۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسِيرُ فِي

د حضرت ابوهريرة ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د مکې پر لاره روان وو چي

طَرِيقِ مَكَّةَ فَمَرَّ عَلَى جَبَلٍ يُقَالُ لَهُ جُمْدَانُ فَقَالَ سِيرُوا هَذَا جُمْدَانُ سَبَقَ

په لاره کي يوه غونډۍ راغلل چي جمدان نومېده دې په لېدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل : راځئ دا جمدان غونډۍ ده

الْمُفَرِّدُونَ قَالُوا وَمَا الْمُفَرِّدُونَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ الذَّاكِرُونَ اللّٰهَ كَثِيرًا وَالذَّاكِرَاتُ . رواه مسلم

مفردونو وړاندي والي تر لاسه کړ ، صحابه کرامو عرض وکړ اې د الله رسوله ! مفردون کوم خلک دي ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : د الله ﷻ ډېر ذکر کونکي خلک او ښځي . مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۴\۲۰۶۲، رقم: ۴- ۱۶۷۶.

**تشريح** ما المفردون ؟ (مفردون څوک دی؟): دلته د صحابه کرامو د حقيقت په باره کي پوښتنه وسوه چي د مفردون صفت څه شي دی ؟ رسول الله ﷺ د پورته ذکر سوي جواب په ذريعه د مفردون صفت ته اشاره وکړه چي حقيقي يوازيوالي چي د اعتبار وړ دی هغه د الله تعالی د ياد لپاره د نفس يوازيوالي دی ، نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ د مکې څخه په راتلو

كي د خپلو ملګرو سره جمدان غره ته ورسيدی چي د مکې څخه د يوه منزل پر پړاو واقع دی، نو د صحابه کرامو خپلو کورونو ته د ژر تلو شوق پيدا سو ځيني صحابه کرامو د خپل قافلې د ملګرو څخه په بېلېدو په تيزي سره مخکي سول چي تر نورو مخکي خپل وطن ته ورسيږي، کوم صحابه کرام چي وروسته پاته سوي وه رسول الله ﷺ هغوئ ته وفرمايل کور نږدې سوی دی په تلوار درځئ ځکه چي مفردون (د قافلې څخه بېل سوي) مخکي رسيدلي دي، دلته صحابه کرامو د مفردون د صفت پوښتنه وکړه، رسول الله ﷺ چي کوم جواب ورکړ د هغه خلاصه دا وه چي ددغه مفردون (يعني مخکي تلونکو کسان) د دوئ په باره کي څه پوښتنه کوئ د هغوئ مطلب خو ظاهر دی چي دغه کسانو کور ته په رسيدو کي تر موږ مخکي سوي دي د هغه کسانو په اړه پوښتنه وکړئ چي په نيکۍ کي مخکي سي، نو واورئ! په نيکيو کي سبقت کونکي هغه خلک دي خپل نفس د الله تعالی د ياد او د هغه د ذکر لپاره يوازي او بېل کړي يعني هغوئ د خلکو څخه په بېلېدو سره د الله تعالی په ذکر او ياد کي بوخت وي.

د الله تعالی ډېر يادولو څخه مراد دادی چي بېله غفلت او کوتاهۍ د الله تعالی پر ذکر باندي همېشتوب اختيار کړل سي که چيري غفلت او کوتاهي وسي نو هغه په سمدستي ختمولو سره د الله تعالی په ذکر او ياد کي بوخت سي.

ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چي د لمانځه وروسته، سهار، ماښام، په بېده کېدو، ناستي او همداسي په نورو وختونو کي د الله تعالی په ډېر ذکر کولو سره درجه تر لاسه کيږي.

## د ذکر کونکو او نه ذکر کونکو مثال

﴿۲۱۵۶﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى رضي الله عنه قَالَ قَالَ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ الَّذِي يَذْكُرُ رَبَّهُ وَالَّذِي لَا يَذْكُرُ رَبَّهُ مَثَلُ الْحَيِّ وَالْمَيِّتِ. متفق عليه

د حضرت ابو موسی رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د الله جل جلاله ذکر کوي او څوک چي د الله ذکر نه کوي هغوئ د مړه او ژوندي په ډول دي. بخاري او مسلم

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ١١\ ٢٠٨، رقم: ٦٤٠٧، مسلم في الصحيح ١\ ٥٣٩، رقم: ٢١١- ٧٧٩.

**تشريح**: مطلب دادی چي د الله تعالی ذکر د ذاکر د زړه ژوند دی او د دې څخه غفلت د زړه مرګ دی او څرنګه چي ژوندی سړی د خپل ژوند څخه د باندي ورکيږي همدارنګه ذکر کونکي د

خپل عمل څخه دباندي ورکيږي او څرنګه چي د مرګ څخه وروسته مړي ته خپل ژوند نه تر لاسه کيږي همداسي د الله تعالی د ذکر څخه غافل د خپل عمل څخه نه برخمن کيږي ، يو چا څومره ښه ويلي دي :

زندګاني نتوان ګفت حياتي که مراست　　　زنده آنست که بادوست وصالي دارد

## ذکر د الله ﷻ د تقرب باعث دی

﴿۲۱۵۷﴾: وَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالی فرمايي :

اللّٰهُ تَعَالَى أَنَا عِنْدَ ظَنِّ عَبْدِي بِي وَأَنَا مَعَهُ إِذَا ذَكَرَنِي فَإِنْ ذَكَرَنِي فِي نَفْسِهِ

زما بنده چي زما په اړه کوم ګمان کوي زه د هغه لپاره هم هغسي يم (يعني د هغه د ګمان سره سم معامله ورسره کوم) او هر کله چي زما بنده ذکر کوي نو زه د هغه سره موجود يم که هغه ما په زړه

ذَكَرْتُهُ فِي نَفْسِي وَإِنْ ذَكَرَنِي فِي مَلَإٍ ذَكَرْتُهُ فِي مَلَإٍ خَيْرٍ مِنْهُمْ . متفق عليه .

کي يادوي نو زه يې هم په زړه کي يادوم ، که په مسجد کي زما ذکر کوي نو زه يې هم ذکر په داسي ډله کي کوم چي د هغه څخه غوره دئ . بخاري او مسلم

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۳\ ۳۸۴، رقم: ۷۴۰۵، ومسلم في الصحيح ۴\ ۲۰۶۱، رقم: ۲- ۲۶۷۵.

**تشريح**: انا عند ظن عبدي (زه د خپل بنده تر ګمان نژدې يم) : د دې مطلب دادی چي زما بنده زما په اړه کوم ګمان لري زه د هغه لپاره هم هغسي يم او د هغه چا سره هم هغسي معامله کوم کوم چي د هغه زما څخه توقع وي که هغه زما څخه د عفو او معافی امید لري نو هغه ته معافي کوم او که هغه زما د عذاب ګمان لري نو بيا عذاب ورکوم .

دد غه ارشاد په ذريعه ترغيب ورکول کيږي چي د الله تعالی د رحمت او د هغه د فضل او کرم اميد د هغه د عذاب پر خوف باندي غالب کېدل پکار دي او د هغه په باره کي ښه ګمان درلودل پکار دي چي هغه به ما په خپل بې پايه بخښني او لامحدوده رحمت سره ونازوي .

په يوه روايت کي نقل سوي دي چي الله تعالی به د يو سړي په اړه د دوږخ حکم وکړي کله چي هغه د دوږخ پر غاړه ودرول سي نو هغه به ووايي اې زما ربه ! ستا په اړه زما ګمان ښه وو ، الله

تعالى به فرمايي چي دی بهرته راولئ زه د خپل بنده تر ګمان نژدې يم کوم چي هغه زما په اړه لري ، د اميد مطلب او حقيقت دا دی چي عمل وکړل سي او بيا د بخښني اميد ولري بېله عمله يوازي پر اميد باندي تکيه کول يخه او سپنه ټکول دي يعني دا سي اميد هيڅ ګټه نه لري .

کله چي هغه ما يادوي نو زه د هغه سره يم : ددې مطلب دادی چي کوم څوک زما په ياد کي بوخت وي نو زه هغه د لا زياتو نيکيو او ښېګڼو توفيق ورکوم پر هغه رحمت نازلوم او د هغه مرسته او ساتنه کوم.

## الله ﷻ ته لږ توجه کول ....

﴿۲۱۵۸﴾: وَ عَنْ اَبِيْ ذَرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اللّٰهُ

د حضرت ابوذر ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى فرمايي :

عَزَّ وَجَلَّ مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا وَأَزِيدُ وَمَنْ جَاءَ بِالسَّيِّئَةِ

څوک چي يوه نيکي کوي هغه ته د لسو نيکيو ثواب رسيږي بلکه تر دې هم زيات، او څوک چي يوه بدي کوي

فَجَزَاؤُهُ سَيِّئَةٌ مِثْلُهَا أَوْ أَغْفِرُ وَمَنْ تَقَرَّبَ مِنِّي شِبْرًا تَقَرَّبْتُ مِنْهُ ذِرَاعًا وَمَنْ

هغه ته د يوې بدۍ سزا او يا معافوم يې ، او څوک چي زما په لور يوه لوېشت راسي (زما په اطاعت کي) نو زه د هغه په لور يو ګز ورانږدې کيږم او څوک چي

تَقَرَّبَ مِنِّي ذِرَاعًا تَقَرَّبْتُ مِنْهُ بَاعًا وَمَنْ أَتَانِي يَمْشِي أَتَيْتُهُ هَرْوَلَةً وَمَنْ

زما په لور کرار کرار راځي زه هغه ته منډه ورځم او څوک چي ما ته د ځمکي د اندازې برابر ګناه

لَقِيَنِي بِقُرَابِ الْأَرْضِ خَطِيئَةً لَا يُشْرِكُ بِي شَيْئًا لَقِيتُهُ بِمِثْلِهَا مَغْفِرَةً. رواه مسلم .

سره راسي او زما سره يې څوک نه وي شريک کړئ زه به ورسره د هغو مره بخښني سره يو ځای سم . مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۱۴\۳۰۶۸، رقم: ۲۲– ۲۶۸۷.

**تشریح**: الله تعالی څومره مهربان او کریم دی د هغه محبت څومره پراخ دی پر خپلو بندګانو باندي څومره مهربانه دی د هغه د عفو شان څومره بې پایه دی او د هغه فضل څومره بې اندازې دی د هغه لړ اندازه د دغه حدیث څخه معلومیږي، د حدیث حاصل دادی چي بنده الله تعالی ته لړ توجه او رجوع وکړي نو هغه د الله تعالی د دربار څخه د هغه تر توجه زیات التفات او رحمت هغه ته رسیږي.

## د تقرب الهي ثمره

﴿۲۱۵۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی فرمایي:

قَالَ مَنْ عَادَى لِي وَلِيًّا فَقَدْ آذَنْتُهُ بِالْحَرْبِ وَمَا تَقَرَّبَ إِلَيَّ عَبْدِي بِشَيْءٍ

څوک چي زما یو دوست ته تکلیف ورکړي زه د هغه سره د جنګ اعلان کوم، یو مؤمن بنده د فرضونو په غوره شکل کي د ادا کولو په ذریعه نژدې کیږي

أَحَبَّ إِلَيَّ مِمَّا افْتَرَضْتُ عَلَيْهِ وَمَا يَزَالُ عَبْدِي يَتَقَرَّبُ إِلَيَّ بِالنَّوَافِلِ حَتَّى

او همیشه داسي وي چي هر کله زما بنده ما ته د نفلو په ذریعه نژدې والی تر لاسه کوي حتی چي زه د هغه سره مینه کوم

احببته فَإِذَا أَحْبَبْتُهُ فَكُنْتُ سَمْعَهُ الَّذِي يَسْمَعُ بِهِ وَبَصَرَهُ الَّذِي يُبْصِرُ بِهِ

او هر کله چي زه هغه دوست کړم نو زه د هغه سماعت جوړ سم چي په هغه سره اوري او د هغه سترګي جوړي سم چي په هغو سرهویني

وَيَدَهُ الَّتِي يَبْطِشُ بِهَا وَرِجْلَهُ الَّتِي يَمْشِي بِهَا وَإِنْ سَأَلَنِي لَأُعْطِيَنَّهُ وَلَئِنْ

او د هغه لاسونه جوړ سم چي په هغه سره نیول کوي او د هغه پښې جوړي سم چي په هغه سره ګرځي او هر کله چي هغه زما څخه یو شی و غواړي نو زه یې ورکوم، او هر کله چي زما په ذریعه

اسْتَعَاذَنِي لَأُعِيذَنَّهُ وَمَا تَرَدَّدْتُ عَنْ شَيْءٍ أَنَا فَاعِلُهُ تَرَدُّدِي عَنْ نَفْسِ

پناه و غواړي زه پناه ورکوم، او کوم کار چي زه کوم په هغه کي شک او توقف نه کوي مګر د

هغه مؤمن بنده روح قبض کولو کي ما ته تردد او تامل وي

الْمُؤْمِنِ يَكْرَهُ الْمَوْتَ وَأَنَا أَكْرَهُ مَسَاءَتَهُ ولا بد له منه . رواه البخاري

چي مرګ بد ګڼي حال دا چي واقعه داده چي کوم شی هغه بد ګڼي زه هغه نه خوښوم مګر د مړګ څخه په هيڅ حالت کي خلاصون نسته .بخاري

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۱\۳۴۰، رقم: ۶۵۰۲.

**تشريح**: فقد اذنته بالحرب: ددې يو مطلب خو هغه دی کوم چي د ژباړي څخه معلوميږي يعني کوم څوک چي زما ولي ته ضرر رسوي نو ددغه بد حرکت په وجه زه د هغه سره د خپل جګړې اعلان کوم ، يا مطلب دادی چي زه د ځان سره د هغه د جګړې اعلان کوم نو هغه سړي زما ولي ته په ضرر رسولو سره لکه زما سره چي جګړه کوښکی وي، ائمه وايي چي داسي هيڅ ګناه نسته چي د هغه د کونکي په باره کي الله تعالی دا فرمايلي وي چي د هغه سره د جګړې اعلان کوي پرته د دغه ګناه څخه يعني د الله تعالی محبوب بنده او ولي ته د تکليف او ضرر رسولو او سود خوړلو ، او د سود خوړونکي په باره کي د الله تعالی دا ارشاد دی : فاذنوا بحرب من الله ورسوله : که تاسو ددې (سود) څخه نه منع کيږي نو د الله تعالی او د هغه د رسول له خوا د جګړې اعلان واورئ.

معلومه سوه چي دغه دواړه ګناهونه د ډېر نفرت وړ او بد ترين دي او په دغه دواړو کي د دنيا او اخرت د پوره تباهي خطره ده او ددې وجه داده چي د بنده سره د الله تعالی جګړه د هغه د بدی پر خاتمې دلالت کوي ځکه د چا سره چي الله تعالی جګړه وکړي نو هغه هيڅکله کاميابي او نجات نسي تر لاسه کولای .

څه چي ما پر هغه فرض کړي دي: ددې مطلب دادی چي کوم شيان ما پر هغه واجب کړي دي يعني اوامر او مناهي ددغه شيانو په اختيارولو سره چي بنده د الله تعالی تقرب تر لاسه کوي هغه زما تر ټولو زيات محبوب دی ددغه شيانو په اندازه بل هيڅ داسي شی نسته چي د هغه په اختيارولو سره بنده ددغه درجې تقرب تر لاسه کړي .

زه د هغه سماعت سم : په دې اړه علامه خطابي رحمه الله فرمايي چي ددې مطلب دادی چي زه پر بنده باندي هغه کارونه او اعمال آسانه کوم د کوم تعلق چي د اندامو سره دی او هغه ته د هغه اعمالو او افعالو توفيق ورکوم .

ځيني علماء ددې مطلب دا بيانوي چي الله تعالی د هغه بنده خواص او د هغه اندامونه د

خپل رضا او خوښۍ سبب ګرځوي نو هغه بنده په خپل غوږو يوازي هغه خبري اوري کوم چي د الله تعالی په نزد غوره وي او همدارنګه هغه په خپل سترګو سره يوازي هغه شيانويني کوم چي الله تعالی يې خوښوي، ځيني حضرات ددې مطلب دا ليکي چي الله تعالی پر هغه بنده باندي خپل محبت غالبوي او د هغه نتيجه داسي چي هغه داسي شيان ويني کوم چي الله تعالی يې خوښوي او هغه شيان اوري کوم چي الله تعالی يې خوښوي او په دې اړه الله تعالی د هغه مرسته کونکی او سازګار سي او د هغه غوږونه، سترګي، لاسونه او پښې د هغه شيانو څخه ساتني کوم چي هغه يې نه خوښوي.

زه تردد کوم: يعني الله تعالی فرمايي چي زه د خپل مهربانۍ په سبب چي د هغه بنده شامل حال وي د هغه د ژوند په ختمولو کي تردد کوم ځکه چي مرګ د هغه لپاره يو خوښ شی نه وي مګر د مرګ څخه تېښته نسته او دا فيصله سوی کار دی چي په دغه دنيا کي کوم يو ساه لرونکی راغلی دی پر هغو به مرګ خامخا راځي ځکه هغه ته مرګ ورکوم بيا دا چي د هغه مرګ د هغه لپاره د خير سبب کيږي ځکه چي د مرګ څخه وروسته عظيم الشان سعادتونو او لوړو درجو ته رسيږي مثلا د الله تعالی حضور د جنت نه ختمېدونکي نعمتونه او داسي نور د مرګ څخه وروسته تر لاسه کيږي.

دلته په دې خبره هم پوه سئ چي د تردد معنی د داسي دوو شيانو په مينځ کي تحير او مخته شاته کېدل دي چي د هغه په باره کي دا يقيني علم نه وي چي په دغه دواړو شيانو کي کوم شی زيات غوره دی، څرګنده ده چي د الله تعالی پر ذات باندي د تردد ددغه معنی اطلاق قطعا ناممکن او محال دی نو د الله تعالی ددغه ارشاد مطلب به دا وي چي زه د خپل يو فيصلې په پوره کولو کي داسي ځنډ او توقف نه کوم لکه څرنګه چي يې يو متردد سړی په يو کار او معامله کي کوي.

د مؤمن بنده د روح قبض کولو معامله داسي ده چي زه په هغه کي لږ توقف کوم چي پر هغه مؤمن بنده باندي مرګ اسان وي د هغه زړه هغه ته مائل سي او هغه خپله د مرګ د راتلو خواهش مند سي، بيا ددې وروسته هغه د مقربينو په ډله کي په داخلېدو سره په اعلی عليين کي خپل ځای تر لاسه کړي.

## ملائکي په اهل ذکر پسي ګرځي

﴿۲۱۶۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِلّٰهِ مَلَائِكَةً

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د الله د ملائكو يوه ډله ده

يَطُوفُونَ فِي الطُّرُقِ يَلْتَمِسُونَ أَهْلَ الذِّكْرِ فَإِذَا وَجَدُوا قَوْمًا يَذْكُرُونَ اللَّهَ

چي په لارو كي هغه لټوي كوم چي د الله جل جلاله ذكر كوي هر كله چي هغوئ په يو ځاى كي د الله جل جلاله ذكر كوونكي تر لاسه كړي

تَنَادَوْا هَلُمُّوا إِلَى حَاجَتِكُمْ قَالَ فَيَحُفُّونَهُمْ بِأَجْنِحَتِهِمْ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا

نو خپلو ملګرو ته آواز وكړي چي خپل مقصد ته راسئ ، ددې وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه ملائكي راسي او په خپلو وزرو سره د الله جل جلاله ذكر كونكي پټ كړي او د دنيا تر آسمان پوري

قَالَ فَيَسْأَلُهُمْ رَبُّهُمْ وَهُوَ أَعْلَمُ مِنْهُمْ مَا يَقُولُ عِبَادِي قَالُوا يَقُولُونَ

خپرې سي ، بيا نبي كريم ﷺ وفرمايل : هر كله چي هغه ملائكي ستنې سي نو د هغوئ پروردګار د هغوئ څخه پوښتنه كوي حال دا چي هغه په خپلو بندګانو تر دوئ زيات خبردار دئ ، الله ﷻ ملائكو ته وايي چي زما بندګان څه وايي ؟ ملائكي ورته وايي :

يُسَبِّحُونَكَ وَيُكَبِّرُونَكَ وَيَحْمَدُونَكَ وَيُمَجِّدُونَكَ قَالَ فَيَقُولُ هَلْ رَأَوْنِي قَالَ

ستا حمد او ستا د بزرګۍ او عظمت ذكر يې كوئ ، بيا الله تعالى د ملائكو څخه پوښتنه كوي ايا زه هغوئ ليدلى يم ؟ ملائكي ورته وايي :

فَيَقُولُونَ لَا وَاللَّهِ مَا رَأَوْكَ قَالَ فَيَقُولُ وَكَيْفَ لَوْ رَأَوْنِي قَالَ يَقُولُونَ لَوْ رَأَوْكَ

قسم په خداى هغوئ ته نه يې ليدلې ، الله تعالى وايي كه هغوئ زه ليدلى واى نو د هغوئ به څه حال واى ؟ ملائكي ورته وايي كه هغوئ ته ليدلى واى

كَانُوا أَشَدَّ لَكَ عِبَادَةً وَأَشَدَّ لَكَ تَمْجِيدًا وَأَكْثَرَ لَكَ تَسْبِيحًا قَالَ يَقُولُ فَمَا

نو ستا ډير زيات عبادت به يې كولاى او ستا ډيره زياته بزرګي به يې بيانولاى او ستا ډيره پاكي به يې بيانولاى ، بيا الله تعالى پوښتنه كوي

يَسْأَلُونِي قَالَ يَسْأَلُونَكَ الْجَنَّةَ قَالَ يَقُولُ وَهَلْ رَأَوْهَا قَالَ يَقُولُونَ لَا وَاللَّهِ يَا

هغوئ زما څخه څه غواړي ؟ ملائكي ورته وايي: هغوئ جنت در څخه غواړي، الله تعالى پوښتنه كوي: ايا هغوئ جنت ليدلى دئ ؟ ملائكي ورته وايي : يا، په الله دي مو قسم وي

رَبِّ مَا رَأَوْهَا قَالَ يَقُولُ فَكَيْفَ لَوْ أَنَّهُمْ رَأَوْهَا قَالَ يَقُولُونَ لَوْ أَنَّهُمْ رَأَوْهَا

هغوئ جنت نه دئ ليدلى ، الله تعالى ورته وايي كه هغوئ جنت ليدلى واى ؟ ملائكي ورته وايي كه هغوئ ليدلى واى

كَانُوا أَشَدَّ عَلَيْهَا حِرْصًا وَأَشَدَّ لَهَا طَلَبًا وَأَعْظَمَ فِيهَا رَغْبَةً قَالَ فَمِمَّ يَتَعَوَّذُونَ

نو د جنت غوښتنه، خواهش او شوق به يې نور هم زيات سوى واى ، بيا الله تعالى پوښتنه كوي هغوئ د څه شي څخه پناه غواړي ؟

قَالَ يَقُولُونَ مِنَ النَّارِ قَالَ يَقُولُ فَهَلْ رَأَوْهَا قَالَ يَقُولُونَ لَا وَاللَّهِ يَا رَبِّ مَا

ملائكي ورته وايي د دوږخ د اور څخه ، الله تعالى پوښتنه كوي ايا هغوئ دوږخ ليدلى دئ ؟ ملائكي وايي : يا، په الله دي مو قسم وي اې پروردګاره

رَأَوْهَا قَالَ يَقُولُ فَكَيْفَ لَوْ رَأَوْهَا قَالَ يَقُولُونَ لَوْ رَأَوْهَا كَانُوا أَشَدَّ مِنْهَا فِرَارًا

هغوئ دوږخ نه دى ليدلئ، الله تعالى فرمايي كه هغوئ دوږخ ليدلى واى نو څه حال به يې واى ؟ ملائكي به وايي كه هغوئ دوږخ ليدلى واى نو د هغه څخه به ډير ليري تښتېدلاى

وَأَشَدَّ لَهَا مَخَافَةً قَالَ فَيَقُولُ فَأُشْهِدُكُمْ أَنِّي قَدْ غَفَرْتُ لَهُمْ قَالَ يَقُولُ

او بيريداى ، الله تعالى فرمايي : زه تاسو شاهدان جوړوم چي ما هغوئ و بخښل ، (د دې په اورېدو سره ) په هغو ملائكو كي يوه ملائكه وايي

مَلَكٌ مِنَ الْمَلَائِكَةِ فِيهِمْ فُلَانٌ لَيْسَ مِنْهُمْ إِنَّمَا جَاءَ لِحَاجَةٍ قَالَ هُمُ

په هغو خلكو كي خو يو داسي كس هم وو چي په هغوئ كي يې ګڼون نه درلودئ د يو كار لپاره راغلئ وو هلته كښينستئ ، الله تعالى فرمايي هغوئ (ذكر كونكي)

الْجُلَسَاءُ لَا يَشْقَى جَلِيسُهُمْ . و في رواية البخاري قَالَ إِنَّ لِلَّهِ مَلَائِكَةً سَيَّارَةً

داسي خلك دي چي د هغوئ سره ناست كس هم محروم كيدلاى نه سي . بخاري ، او د مسلم په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي نبي كريم ﷺ وفرمايل : د الله تعالى د ملائكو يوه ډله ده

فُضُلًا يَبْتَغُونَ مَجَالِسَ الذِّكْرِ فَإِذَا وَجَدُوا مَجْلِسًا فِيهِ ذِكْرٌ قَعَدُوا مَعَهُمْ

چي زيات گرځي او كښنت كوي دا ډله د الله ﷻ د ذكر مجلسونه لټوي هر كله چي دا ملائكي يو داسي مجلس تر لاسه كړي چي په هغه كي د الله ﷻ ذكر كيږي نو هغوئ هم هلته كښيني

وَحَفَّ بَعْضُهُمْ بَعْضًا بِأَجْنِحَتِهِمْ حَتَّى يَمْلَئُوا مَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ السَّمَاءِ الدُّنْيَا

خپل وزرونه پر خپاره كړي په هغه ټوله فضاء كي چي د آسمان او د دې مجلس په منځ كي ده ،

فَإِذَا تَفَرَّقُوا عَرَجُوا وَصَعِدُوا إِلَى السَّمَاءِ قَالَ فَيَسْأَلُهُمُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ وَهُوَ

هر كله چي د ذكر الهي كوونكو دا مجلس پاى ته ورسيږي نو دا ملائكي آسمان ته خيژي او اووم آسمان ته ورسيږي نو الله تعالى پوښتنه كوي حال دا چي

أَعْلَمُ مِنْ أَيْنَ جِئْتُمْ فَيَقُولُونَ جِئْنَا مِنْ عِنْدِ عِبَادٍ لَكَ فِي الْأَرْضِ يُسَبِّحُونَكَ

الله تعالى تر هغوئ زيات د ذكر كوونكو په حال خبر دئ ، چي تاسو د كوم ځاى څخه راغلي ياست ؟ ملائكي وايي موږ ستا د هغه بندګانو څخه راغلو چي په مځكه كي يې ستا پاكي

وَيُكَبِّرُونَكَ وَيُهَلِّلُونَكَ وَيُمَجِّدُونَكَ وَيَسْأَلُونَكَ قَالَ وَمَاذَا يَسْأَلُونِي قَالُوا

او ستا عظمت بيانوئ ، ستا كلمه وايي او تا په بزرګي سره يادوي او ستا څخه سوال كوي ، الله تعالى پوښتنه كوي هغوئ زما څخه څه غواړي ؟ ملائكي وايي

يَسْأَلُونَكَ جَنَّتَكَ قَالَ وَهَلْ رَأَوْا جَنَّتِي قَالُوا لَا أَيْ رَبِّ قَالَ فَكَيْفَ لَوْ رَأَوْا

هغوئ ستا څخه جنت غواړي ، الله تعالى پوښتنه كوي ايا هغوئ زما جنت ليدلى دئ ؟ ملائكي به وايي : يا ، اې پروردګاره ، الله تعالى به وايي كه هغوئ زما جنت ليدلى واى نو څه حال به يې واى ؟

جَنَّتِي قَالُوا وَيَسْتَجِيرُونَكَ قَالَ وَمِمَّ يَسْتَجِيرُونِي قَالُوا مِنْ نَارِكَ يَا رَبِّ

ملائكي وايي هغوئ ستا څخه پناه غواړي ، الله تعالى به فرمايي چي هغوئ زما پناه د څه شي

څخه غواړي ؟ ملائکي به وايي ستا د اور څخه ،

قَالَ وَهَلْ رَأَوْا نَارِي قَالُوا لَا قَالَ فَكَيْفَ لَوْ رَأَوْا نَارِي قَالُوا وَيَسْتَغْفِرُونَكَ

نو الله تعالی به فرمايي چي ايا هغوئ زما اور ليدلی دی ؟ ملائکي وايي :يا ، الله تعالی به وفرمايي که هغوئ زما د دوږخ اور ليدلی وای نو څه حال به يې وای ! ملائکي بيا وايي هغوئ ستا څخه بخښنه غواړي ،

قَالَ فَيَقُولُ قَدْ غَفَرْتُ لَهُمْ فَأَعْطَيْتُهُمْ مَا سَأَلُوا وَأَجَرْتُهُمْ مِمَّا اسْتَجَارُوا

الله تعالی به فرمايي هغوئ ما و بخښل او د هغه شی څخه مي پناه هم ورکړه چي د هغه څخه يې پناه غوښتل ،

قَالَ فَيَقُولُونَ رَبِّ فِيهِمْ فُلَانٌ عَبْدٌ خَطَّاءٌ إِنَّمَا مَرَّ فَجَلَسَ مَعَهُمْ قَالَ

ملائکي وايي اې پروردګاره ! په هغوئ کي فلانی بنده هم وو چي ډير ګناه کار دئ هغه يو ځای تلئ چي په لاره کي د دغه خلکو سره کښينستئ ،

فَيَقُولُ وَلَهُ غَفَرْتُ هُمُ الْقَوْمُ لَا يَشْقَى بِهِمْ جَلِيسُهُمْ .

الله تعالی به فرمايي : ما هغه هم و بخښئ دا يو داسي ډله ده چي د هغوئ سره کښينستونکی هم محروم کيدلای نه سي .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۰۸ ، رقم: ۶۴۰۸ ، ومسلم ۴\۲۰۶۹ ، رقم: ۲۵– ۲۶۸۹.

**د لغاتو حل** : فُضُلا : جمع فاضل ، وهو من فاق اصحابه و اقرانه علما وشرفا .

**تشريح** : ښکاره ده چي د الله تعالی علم د کائناتو پر ذره ذره باندي حاوي دی هغه د يوه يوه فرد د يوې يوې لمحې د حالاتو څخه خبر دی ځکه نو ددې خبري سوال نه پيدا کيږي چي الله تعالی د ذکر کونکو بندګانو په باره کي چي پوښتنه کوي نو هغه د علم تر لاسه کولو لپاره کوي بلکه هغه د پيژندلو سربيره محض الزاما د ملائکو څخه پوښتنه کوي چي پر هغوئ د انسان کمال عبديت ښکاره سي ځکه د حضرت آدم عليه السلام د پيدا کېدو پر وخت دغه ملائکو ويلي وه چي اې پروردګاره ! ته آدم عليه السلام او دهغه اولاده ولي پيدا کوې هغوئ به په دنيا کي د فسق او فساد څخه پرته بل هيڅ نه کوي ، ستا تسبيح او تقديس خو موږ کولا يسو او هغه موږ کوو ځکه نو الله

تعالی د هغه ملائکو څخه په داسي سوال کولو سره پر هغوئ د انسان بزرګي څرګندوي او په داسي کولو سره ملائکو ته ښودل غواړي چي تاسو وليدل د کوم مخلوق په باره کي چي تاسو غلط ګمان درلودی نو هغه مخلوق اوس زما عبادت او زما ياد او زما په ذکر کي څرنګه بوخت دی چي تاسو خپله د هغه شاهدي ورکوئ.

د بخاري په روايت کي دغه سوال (که هغوئ جنت ليدلی وای نو د هغوئ به څه حال وای) او د ملائکو له خوا دغه جواب (که هغوئ جنت ليدلی وای نو ...الخ) هم منقول دی مګر د مسلم په روايت کي يوازي سوال نقل سوی دی جواب نه دی ذکر سوی ددې وجه داده چي د بخاري په روايت کي دغه جمله يوازي د سوال لپاره ده مګر د مسلم په روايت کي دغه سواليه جمله د تعجب لپاره ده، د دواړو روايتونو د آخري جملې په ذريعه د امت په خلکو کي د اهل ذکر د ناستي ترغيب ورکړل سوی دی چي د الله تعالی په ياد او د هغه په ذکر کي بوخت کسان د الله تعالی د نيک او صالح بندګانو هم نشيني او ملګرتيا اختيارول د کاميابۍ او سعادت خبره ده، يو عارف څومره ښه خبره کړې ده چي د الله تعالی صحبت (يعني د هغه ياد او د هغه په ذکر کي بوختيا اختيار کړئ که داسي نسئ کولای نو بيا د هغه مقدس بندګانو ملګرتيا او صحبت اختيار کړئ کوم چي د الله تعالی صحبت يې اختيار کړی دی.

## د ذکر څخه غفلت

﴿۲۱۶۱﴾: وَعَنْ حَنْظَلَةَ ابْنِ الرَّبِيْعِ الْأُسَيْدِيِّ قَالَ لَقِيَنِي أَبُو بَكْرٍ فَقَالَ كَيْفَ

د حضرت حنظلة بن ربيع اسيدي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زما سره حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ملاقات وکړ او وه يې فرمايل: اې حنظلة! ستا څه حال دئ؟

أَنْتَ يَا حَنْظَلَةُ قُلْتُ نَافَقَ حَنْظَلَةُ قَالَ سُبْحَانَ اللهِ مَا تَقُولُ قُلْتُ نَكُونُ

ما ورته وويل حنظله منافق سو، ابوبکر رضي الله عنه وويل: پاکي ده الله لره دا څه وايې؟ ما ورته وويل

عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُذَكِّرُنَا بِالنَّارِ وَالْجَنَّةِ كَأَنَّا رَأْيُ عَيْنٍ

کله چي موږ د نبي کريم صلی الله عليه وسلم سره يو او هغه موږ ته نصيحت کوي او د دوږخ او جنت يادونه راته کوي نو موږ ته داسي محسوس کيږي لکه دوږخ او جنت چي موږ په خپلو سترګو سره وينو

فَإِذَا خَرَجْنَا مِنْ عِنْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَافَسْنَا الْأَزْوَاجَ

خو کله چي موږ د رسول الله ﷺ څخه ولاړ سو او د ښځو،

وَالْأَوْلَادَ وَالضَّيْعَاتِ نَسِينَا كَثِيرًا قَالَ أَبُو بَكْرٍ فَوَاللَّهِ إِنَّا لَنَلْقَى مِثْلَ هَذَا

اولاد، مځکو او باغو په کارونو بوخت سو نو په دغه خبرو کي موږ ډيري هيري کړو، ابوبکر رضی الله عنه وويل: په الله دي قسم وي زموږ هم دغه حال دئ،

فَانْطَلَقْتُ أَنَا وَأَبُو بَكْرٍ حَتَّى دَخَلْنَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نو زه او ابوبکر رضی الله عنه دواړه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو

فَقُلْتُ نَافَقَ حَنْظَلَةُ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا

او ما عرض وکړ اې دالله رسوله! حنظلة منافق سو، رسول الله ﷺ وفرمايل:

ذَاكَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ نَكُونُ عِنْدَكَ تُذَكِّرُنَا بِالنَّارِ وَالْجَنَّةِ كَأَنَّا رَأْيَ عَيْنٍ

ددې څه سبب دئ؟ ما عرض وکړ اې دالله رسوله! کله چي موږ ستا په خدمت کي يو او تاسو موږ ته نصيحت کوئ او زموږ په وړاندي د دوږخ او جنت ذکر کوئ نو موږ داسي محسوس کوو چي لکه جنت او دوږخ چي موږ په خپلو سترګو سره وينو

فَإِذَا خَرَجْنَا مِنْ عِنْدِكَ عَافَسْنَا الْأَزْوَاجَ وَالْأَوْلَادَ وَالضَّيْعَاتِ نَسِينَا كَثِيرًا

مګر کله چي ستاسو څخه ولاړ سو او ښځي، اولاد، مځکو او باغو په جګړو کي بوخت سو نو موږ ډيري خبري هيري کړو،

فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنْ لَوْ تَدُومُونَ

(د دې په اورېدو سره) رسول الله ﷺ وفرمايل: په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه په لاس کي زما روح دی که تاسو هميشه په هغه حال کي ياست

عَلَى مَا تَكُونُونَ عِنْدِي وَفِي الذِّكْرِ لَصَافَحَتْكُمُ الْمَلَائِكَةُ عَلَى فُرُشِكُمْ وَفِي

په کوم حال کي چي زما سره په ناسته کي ياست او دالله جل جلاله په ياد کي بوخت ياست نو د الله ملائکو به ستاسو په بسترو

طُرُقِكُمْ وَلٰكِنْ يَا حَنْظَلَةُ سَاعَةً وَسَاعَةً ثَلَاثَ مَرَّاتٍ . رواه مسلم

او ستاسو په لارو کي ستاسو سره مصافحه کولای، مګر حنظله دا يو ساعت وي، رسول الله ﷺ دا الفاظ درې واره وفرمايل: (يعني يو ساعت د حضور قلب لپاره وي او يو ساعت د دنيا د غفلت او بوختيا وي او دا حالت د منافق والي نه دئ.) .مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۴\۲۱۰۶، رقم: ۱۲- ۲۷۵۰.

**د لغاتو حل**: عافسنا: اى خالطنا ولاعبناهم وعالجنا امورهم و اشتغلنا بمصالحهم. (د كورنى سره بوختيا)

**تشريح**: ملائکي به ستاسو سره مصافحه کوي، ددې مفهوم دادی چي په داسي صورت کي به ملائکي په ډاګه يعني د ټولو په مخکي ستاسو سره مصافحه کوي او تاسو به د هغوئ سره مصافحه کوئ، د علانيه قيد ځکه لګول سوی دی چي ملائکي خو د اهل ذکر سره په خفيه توګه مصافحه کوي کوم چي په دنيا کي نه ليدل کيږي.

په لېدو کي: ددې څخه مراد دادی چي د فراغت په حالت کي او د بوختيا په حالت کي، مطلب دا چي په پوره توګه ذکر سوي صورت کي که تاسو په يو کار کي بوخت ياست يا فارغ ياست هر وخت به ملائکي ستاسو سره مصافحه کوي.

دا يو ساعت دی او هغه يو ساعت دی: ددې مطلب دادی چي يو وخت داسي وي کله چي پر تاسو باندي د حضور حالت خپور سي تر څو تاسو د خپل پروردګار حقوق ادا کړای سئ او په ذکر کي بوخت اوسئ او يو وخت داسي وي چي پر تاسو باندي د غفلت غلبه وي چي تاسو د خپل نفس او د خپلو متعلقينو حقوق ادا کړای نو د خپل او خپلو متعلقينو د حقوقو د ادا کولو پر وخت د ذکر او حضور څخه غفلت تاواني نه دی چي په دې صورت کي تاسو خپل ځان منافق وګڼئ ځکه د خپل زړه څخه دا ېره و باسئ چي تاسو خدای مه کړه منافق سوي ياست.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د الله ﷻ د ذکر فضيلت او اهميت

﴿۲۱۶۲﴾: عَنْ اَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا اُنَبِّئُكُمْ

د حضرت ابو درداء ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ايا زه تاسو خبر نه کړم

بِخَيْرِ اَعْمَالِكُمْ وَاَزْكَاهَا عِنْدَ مَلِيكِكُمْ وَاَرْفَعِهَا فِي دَرَجَاتِكُمْ وَخَيْرٍ لَكُمْ مِنْ

ستاسو د هغه اعمالو څخه چي ستاسو د پاچا په خیال کي غوره اعمال دي او ډیر پاک اعمال دي
او ستاسو په درجو کي ډیر لوړ اعمال دي او ستاسو لپاره

انفاق الذَّهَبِ وَالْوَرِقِ وَخَيْرٍ لَكُمْ مِنْ أَنْ تَلْقَوْا عَدُوَّكُمْ فَتَضْرِبُوا أَعْنَاقَهُمْ

تر سرو زرو او سپینو زرو خرڅ کولو څخه غوره دي او ستاسو لپاره تر دې غوره دي چي تاسو
(په جګړه کي) د خپلو دښمنانو سره یو ځای سئ تاسو د هغوئ غاړي وهئ

وَيَضْرِبُوا أَعْنَاقَكُمْ قَالُوا بَلَى قَالَ ذِكْرُ اللهِ تَعَالَى . رواه مالك و احمد

والترمذي و ابن ماجة الا ان مالكا وقفه على ابي الدرداء

او هغوئ ستا غاړي وهي؟ صحابه کرامو عرض وکړ: هو، اې د الله رسوله! رسول الله ﷺ ورته
وفرمایل: هغه د الله تعالی ذکر دئ. مالک، احمد، ترمذي، ابن ماجة. مګر امام مالک دا
موقف ذکر کړي دئ پر ابو درداء باندي.

**تخریج**: الامام مالک في الموطا ۱\ ۲۱۱، رقم: ۲۴، والامام احمد في المسند ٦\ ۴۷۷، والترمذي في السنن ۵\ ۴۲۸، رقم: ۳۳۷۷، وابن ماجه في السنن ۲\ ۱۲۴۵، رقم: ۳۷۹۰.

**تشریح**: په څرګنده خو دا معلومیږي چي دلته د ذکر څخه مراد هغه ذکر دی کوم چي په ژبه او زړه دواړو سره وي او د دغه حدیث څخه دا خبره معلومه سوه چي د الله تعالی ذکر تر صدقې، خیرات، جهاد او نورو ټولو اعمالو افضل دی.

**غوره عمل**

﴿۲۱٦۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُسْرٍ قَالَ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبد الله بن بسر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي یو صحرائي رسول الله ﷺ ته راغلی

وَسَلَّمَ فَقَالَ أَيُّ النَّاسِ خَيْرٌ؟ فَقَالَ طُوبَى لِمَنْ طَالَ عُمْرُهُ وَحَسُنَ عَمَلُهُ قَالَ

او وې ویل: څوک غوره دئ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: زیری دئ د هغه چا لپاره چي اوږد
عمر یې وي او غوره اعمال یې پکښې وکړل، بیا هغه پوښتنه وکړل:

يَا رَسُولَ اللهِ أَيُّ الأَعْمَالِ أَفْضَلُ؟ قَالَ اَنْ تُفَارِقَ الدُّنْيَا وَلِسَانُكَ رَطْبٌ مِّنْ

ذِكْرِ اللهِ . رواه أحمد والترمذي

اې د الله رسوله کوم عمل تر ټولو غوره دئ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : دا چي ته د دنیا څخه بیلیږې نو ستا ژبه د الله په ذکر کي لنده وي، احمد او ترمذي .

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۴\۱۸۸، والترمذي ۴\۴۸۹، رقم: ۲۳۲۹.

**تشريح** لکه څرنګه چي د ژبي وچېدل د ژبي بندېدو لپاره کنايه ده همدارنګه د ژبي لوندوالی د ژبي د روانېدو لپاره کنايه ده يا دا چي دلته د ژبي د لوندوالي څخه دا مراد دی چي تر مرګ پوري پر ذکر باندي همېشتوب وسي په دې توګه چي د الله تعالی د ذکر په سره وچه پاته سوې نه وي کله چي ساه خيژي .

په حديث شريف کي د ذکر سوي ذکر څخه ذکر جلي مراد دی او ذکر خفي هم مراد دی ، د ژبي په اړه دواړه احتماله دي قلبي ژبه هم مراد کېدای سي او قالبي ژبه هم يعني که په زړه سره ذکر وکړل سي او که په ژبه سره مګر که چيري په دواړو سره وي نو ډېر ښه دی .

## د ذکر حلقې د جنت باغونه دي

﴿۲۱۶۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا مَرَرْتُمْ بِرِيَاضِ الْجَنَّةِ فَارْتَعُوا قَالُوا وَمَا رِيَاضُ الْجَنَّةِ قَالَ حِلَقُ الذِّكْرِ . رواه الترمذي

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هر کله چي تاسو د جنت په باغو کي تيريږئ نو ميوه خوري کوئ ، صحابه کرامو پوښتنه وکړه د جنت باغونه کوم دي ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : د الله د ذکر حلقې . ترمذي .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۴۹۸، رقم: ۳۵۱۰.

**تشريح** مطلب دادی چي کله تاسو پر يو داسي مجلس باندي تيريږي چيري چي خلک د الله تعالی په ذکر کي بوخت وي نو تاسو هم په هغه مجلس کي ګډون کوئ او د الله تعالی په ذکر کي بوخت کيږئ ، د لته د ذکر حلقو ته د جنت په باغو کي د داخلېدو په سعادت سره نازول کيږي .

امام نووي رحمه الله فرمايي څرنګه چي ذکر کول مستحب دی همدارنګه د ذکر په حلقو کي ناسته هم مستحب ده ، ذکر په زړه سره هم کيږي او په ژبه سره هم کيږي مګر غوره دادی چي په دواړو سره وي لکه څرنګه چي دا خبره مخکي په تفصيل سره بيان سوې ده که چيري ذکر يوازي په ژبه سره وي نو هم د ثواب څخه خالی نه دی .

نقل سوي دي چي يو سړي خپل شيخ ته وويل چي زه په ژبه سره الله تعالى يادوم مگر زما زړه په غفلت كي وي ، شيخ صاحب ورته وويل چي الله يادوه او شكر ادا كوه چي الله تعالى ستا يو اندام په خپل ياد كي بوخت كړی دی .

**د ذكر څخه خالي وخت ...**

﴿۲۱۶۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَعَدَ

د حضرت ابوهريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي كښيني

مَقْعَدًا لَمْ يَذْكُرِ اللّٰهَ فِيهِ كَانَتْ عَلَيْهِ مِنَ اللّٰهِ تِرَةٌ وَمَنِ اضْطَجَعَ مَضْجَعًا

په يو مجلس كي او هلته يې د الله جل جلاله ذكر ونه كړ د الله تعالى د لوري به هلته ناسته پر هغه د افسوس او تاوان وي، څوک چي په خپله بستره كي پريوتئ

لَا يَذْكُرُ اللّٰهَ فِيهِ كَانَتْ عَلَيْهِ مِنَ اللّٰهِ تِرَةٌ . رواه ابوداؤد

او د الله جل جلاله ذكر يې ونه كړ نو پر هغه به د الله جل جلاله د لوري افسوس او تاوان وي . ابوداؤد .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۵\۱۸۱، رقم: ۴۸۵۶.

**د لغاتو حل**: تِرَة: اى تبعة ومعاتبة: (افسوس او زيان).

**تشريح**: د دغه حديث شريف مطلب دادی چي په هر وخت او هر حال كي په ناسته، ولاړه ، بېده كېدو ، پورته كېدو ، شپه او ورځ كي د الله تعالى په ذكر كي بوخت كېدل پكار دي ، كوم وخت چي د الله تعالى د ذكر څخه خالي وي هغه به د قيامت په ورځ د پښيماني او افسوس سبب وي، يو چا څومره ښه ويلي دي :

چو اول شب آهنگ خواب آورم — بـه تسبيح نامت شتاب آورم
وگرنيم شب سربرآرم زه خـواب — تـرا خوانم و زيزم از ديده آب
وگربا مرادست راهم به قسـت — همه روز تا شب پناهم به تست

**په كوم مجلس كي چي د الله ﷻ ذكر نه وي**

﴿۲۱۶۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ مَا مِنْ قَوْمٍ يَقُوْمُوْنَ مِنْ مَجْلِسٍ لَا يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ فِيهِ إِلَّا قَامُوْا عَنْ مِثْلِ جِيفَةِ حِمَارٍ وَكَانَ لَهُمْ حَسْرَةً . رواه

احمد و ابوداؤد.

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چي خلک په یو ځای کي کښیني او ولاړیږي او په هغه ناسته کي د الله ذکر ونه کړي نو د هغه د هغه ځای څخه ولاړیدل د مردار خره په ډول دئ او پر هغه به حسرت وي. احمد او بوداؤد.

**تخریج**: الامام احمد في المسند ۲\ ۵۱۵، وابوداود في السنن ۵\ ۱۸۰، رقم: ۴۸۵۵.

**تشریح**: د دغه حدیث څخه د هغه نامبارک مجلس په باره کي د حسرت او افسوس اظهار کیږي کوم چي د الله تعالی د ذکر څخه خالي وي، د ارشاد مبارک خلاصه داده چي په کوم مجلس کي د الله تعالی ذکر نه وي هغه د مردار خره په ډول دی او کوم خلک چي هلته ناست وي هغوئ لکه چي د مردار خره په خوړلو سره ولاړ سول.

﴿۲۱۶۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا جَلَسَ قَوْمٌ

د ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم خلک چي یو ځای کښیني

مَجْلِسًا لَمْ يَذْكُرُوا اللّٰهَ فِيهِ وَلَمْ يُصَلُّوا عَلَى نَبِيِّهِمْ إِلَّا كَانَ عَلَيْهِمْ تِرَةً فَإِنْ شَاءَ عَذَّبَهُمْ وَإِنْ شَاءَ غَفَرَ لَهُمْ. رواه الترمذي.

او په هغه مجلس کي د الله جل جلاله ذکر ونه کړي او نه پر خپل نبي ﷺ درود ولیږي نو هغه مجلس به پر هغوئ د حسرت وي که الله جل جلاله وغواړي نو عذاب به ورکړي او که وغواړي نو وه به یې بخښي. ترمذي.

**تخریج**: الترمذي في السنن ۵\ ۴۳۰، رقم: ۳۳۸۰.

**تشریح**: په عذاب کي اخته کېدل به د هغو د تېرو ګناهو نو په سبب وي او د بخښني دار او مدار به یوازي د الله تعالی په فضل او د هغه پر رحمت باندي وي، په دغه حدیث کي دې ته اشاره ده که چیري د مجلس غړي الله تعالی یادوي نو الله تعالی هغوئ په عذاب کي نه اخته کوي بلکه په یقیني توګه سره د هغوئ بخښنه او مغفرت کوي.

### کتوري خبري

﴿۲۱۶۸﴾: وَعَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ

د حضرت ام حبيبة (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هره

كَلَامِ ابْنِ آدَمَ عَلَيْهِ لَا لَهُ إِلَّا أَمْرٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ نَهْيٌ عَنْ مُنْكَرٍ أَوْ ذِكْرُ اللّٰهِ .

رواه الترمذي وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث غريب .

خبره د انسان پر هغه وبال دئ هغه ته گټه نه ورکوي پرته د هغه خبري څخه چي په هغه کي د نيکۍ کولو لارښوونه وکړي يا د بدۍ څخه منع وکړي يا د الله ﷻ ذکر وکړي. ترمذي، ابن مامجه، ترمذي ويلي دا حديث غريب دئ .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\۵۲۵، رقم: ۲۴۱۲، وابن ماجه في السنن ۲\۱۳۱۵. رقم: ۳۹۷۴.

**تشريح**: د دغه حديث شريف څخه په څرگنده دا معلوميږي چي په انساني خبرو کي هيڅ ډول اباحت نسته مگر علماء کرام وايي چي دغه ارشاد په شرعي توگه د ناخوښه او غير صحيح خبرو څخه د منع کولو لپاره پر تاکيد او مبالغې محمول دی، په دې کي خو هيڅ شک نسته چي مباح کلام د آخرت په اعتبار نافع نه دی او نه ددې څه اثر مرتب کيږي په اخرت کي خو به هغه کلام نافع او گټور وي کوم چي محض د ديني تقاضا سره سم وي مثلا امر بالمعروف او نهي عن المنكر او د الله تعالی ذکر، يا داسي ويل کيږي چي د رسول الله ﷺ دغه ارشاد د مفهوم په اعتبار داسي دی چي د انسان هر کلام د هغه لپاره د افسوس باعث دی چي په هغه کي د هغه لپاره څه گټه نه وي پرته د هغه کلام څخه چي د هغه تعلق د امر بالمعروف، نهي عن المنكر او د الله تعالی د ذکر او داسي نورو شيانو سره وي، په دغه تاويل سره نه يوازي دا چي ټول مذکوره حديثو کي مطابقت پيدا کيږي بلکه هغه اشکال هم نه پاته کيږي کوم چي د مباح خبرو په اړه پيدا کيدی .

## د ذکر څخه بغير ډيري خبري د زړه د سختۍ سبب دی

﴿۲۱۶۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُكْثِرُوا

د حضرت ابن عمر ﷜ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ډيري خبري مه کوئ

الْكَلَامَ بِغَيْرِ ذِكْرِ اللّٰهِ فَإِنَّ كَثْرَةَ الْكَلَامِ بِغَيْرِ ذِكْرِ اللّٰهِ قَسْوَةٌ لِلْقَلْبِ وَإِنَّ أَبْعَدَ النَّاسِ مِنَ اللّٰهِ الْقَلْبُ الْقَاسِي . رواه الترمذي .

د الله ﷻ د ذکر پرته ځکه چي د الله ﷻ د ذکر څخه پرته ډيري خبري کول زړه سختوي او کوم خلک چي د الله څخه ډير ليري دي د سخت زړو خلک دي. ترمذي

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\۵۲۵، رقم: ۲۴۱۱.

**تشريح** د خبرو ډېروالي ته د زړه د سختئ سبب ځکه ويل سوي دي چي په عامه توګه ډېري خبري کونکی سړی يوازي خپل خبري کوي او په خلکو يې منل غواړي هغه صحيح او پر حق خبري بالکل نه اوري او نه د خپل خبري څخه پرته د بل چا خبره صحيح ګڼي که څه هم هغه حقيقت ته نژدې هم نه وي د هغه تر ټولو لوی خواهش د خلکو سره بانډار او ارتباط وي د الله تعالی خوف د هغه په نزد هيڅ ارزښت نه لري او د آخرت څخه بې پرواهي د هغه شعار وي.

## غوره سرمايه

﴿۲۱۷۰﴾: وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ { وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ }

د حضرت ثعبان رضي الله عنه څخه روايت دئ چي کله د غه آيت نازل سو (والذين يكنزون.....) کوم خلک چي سره او سپين يو ځای کوي،

كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ فَقَالَ بَعْضُ أَصْحَابِهِ

نو هغه وخت موږ د رسول الله ﷺ سره په يو سفر کي وو ، ځينو صحابه کرامو وويل :

نَزَلَتْ فِي الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ لَوْ عَلِمْنَا أَيُّ الْمَالِ خَيْرٌ فَنَتَّخِذَهُ فَقَالَ أَفْضَلُهُ

دا آيت يوازي د سرو او سپينو زرو په اړه نازل سوی دئ کاش چي موږ ته څرګنده سوې وای چي کوم مال غوره دئ. نو موږ به هغه يو ځای کړو، رسول الله ﷺ چي دا واوريدل نو وه يې فرمايل:

لِسَانٌ ذَاكِرٌ وَقَلْبٌ شَاكِرٌ وَزَوْجَةٌ مُؤْمِنَةٌ تُعِينُهُ عَلَى إِيمَانِهِ . رواه احمد والترمذي وابن ماجة .

غوره مال د الله ﷻ ذکر کونکې ژبه ده او د الله ﷻ شکر کونکی زړه دئ او هغه مؤمنه ښځه ده چي د خاوند د دين او ايمان مرستياله وي. احمد . ترمذي او ابن ماجه.

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۵\۲۷۸، والترمذي في السنن ۵\۲۵۹، رقم: ۳۰۹۴، وابن ماجه في السنن ۱\۵۹۶، رقم: ۱۸۵۶.

**تشريح** په څرګنده خو دا معلوميږي چي صحابه کرامو د ظاهر مال څخه د يو شي د تعين د خواهش اظهار کړی وو مګر په حقيقت کي د هغوئ مراد دا وو چي تاسو يو داسي شی وښياست چي د ظاهري مال څخه پرته وي او داسي سرمايه وي چي زموږ په پيښيدونکو اړتياوو کي ګټور ثابت سي ، رسول الله ﷺ د هغوئ د حقيقي مراد سره سم هغه شيان وښودل کوم چي ګټور دي او د هغو په غوره سرمايه کيدو کي هيڅ شک نسته .

د خپل خاوند د ايمان مرستياله وي: ددې مطلب دادی چي د خپل خاوند په ديني کارو او فرائضو په ادا کولو کي مرسته کونکې وي مثلا د لمانځه وخت سي نو هغه ته لمونځ وريادوي ، د روژې وخت راسي نو هغه ته د روژې نيولو په اړه د هغه ضروريات پوره کوي او ددې څخه پرته د نورو عباداتو په وخت کي د هغه سره هر ډول مرسته کوي او د خاوند لپاره داسي حالات پيدا کوي چي هغه په نيکو کارو کي بوخت پاته سي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### الله جل جلاله د ملائکو په مخکي په ذاکرينو فخر کوي

﴿۲۱۷۱﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ خَرَجَ مُعَاوِيَةُ عَلَى حَلْقَةٍ فِي الْمَسْجِدِ

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يوه ورځ حضرت معاوية رضي الله عنه يو مسجد ته ورسيدئ چيري چي حلقه جوړه سوې وه ،

فَقَالَ مَا أَجْلَسَكُمْ قَالُوا جَلَسْنَا نَذْكُرُ اللهَ قَالَ آللهِ مَا أَجْلَسَكُمْ إِلَّا ذَاكَ

هغه پوښتنه وکړه تاسو دلته څنګه ناست ياست؟ هغوئ وويل : موږ دلته د الله جل جلاله د ذکر لپاره ناست يو ، معاوية رضي الله عنه وويل : ستاسو دي قسم په خدای وي چي تاسو ددې څخه پرته د بل شي

قَالُوا وَاللهِ مَا أَجْلَسَنَا غيره قَالَ أَمَا إِنِّي لَمْ أَسْتَحْلِفْكُمْ تُهْمَةً لَكُمْ وَمَا كَانَ

لپاره ناست نه ياست ؟ هغوئ وويل : قسم په خدای موږ پرته ددې څخه د بل هيڅ شي لپاره نه يو ناست ، حضرت معاوية وويل : خبردار اوسئ چي ما پر تاسو باندي د تهمت لګولو لپاره قسم نه دئ درکړئ او

أَحَدٌ بِمَنْزِلَتِي مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقَلَّ عَنْهُ حَدِيثًا مِنِّي وَإِنَّ

د رسول الله ﷺ څخه د کم حدیث نقل کولو کي زما تر مرتبې کم هیڅوک نسته (یعني زه احتیاط کونکی راوي یم)

رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ عَلَى حَلْقَةٍ مِنْ أَصْحَابِهِ فَقَالَ مَا

یوه ورځ رسول الله ﷺ د خپلو صحابه کرامو یوې حلقې ته تشریف یووړ او د هغوئ څخه یې پوښتنه وکړه

أَجْلَسَكُمْ ههنا قَالُوا جَلَسْنَا نَذْكُرُ اللَّهَ وَنَحْمَدُهُ عَلَى مَا هَدَانَا لِلْإِسْلَامِ وَمَنَّ

تاسو دلته څنګه ناست یاست؟ صحابه کرامو عرض وکړ موږ دلته د الله ﷻ د ذکر کولو لپاره ناست یو، او موږ د هغه تعریف کوو چي هغه موږ ته د اسلام لار راوښودل او په موږ یې دا

بِهِ عَلَيْنَا قَالَ آللَّهِ مَا أَجْلَسَكُمْ إِلَّا ذَاكَ قَالُوا االلَّهِ مَا أَجْلَسَنَا إِلَّا ذَاكَ قَالَ أَمَا

احسان وکړ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: ستاسو دي قسم په خدای وي چي تاسو ددې لپاره ناست یاست؟ صحابه کرامو عرض وکړ هو، قسم په خدای موږ یوازي دد غه لپاره ناست یو، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: خبردار اوسئ

إِنِّي لَمْ أَسْتَحْلِفْكُمْ تُهَمَةً لَكُمْ وَلَكِنَّهُ أَتَانِي جِبْرِيلُ فَأَخْبَرَنِي أَنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ يُبَاهِي بِكُمُ الْمَلَائِكَةَ. رواه مسلم

ما پر تاسو د تهمت لګولو لپاره تاسو ته قسم نه دئ درکړئ بلکه ما ته جبرائیل علیه السلام راغلئ او ما ته یې وویل چي الله تعالی په خپلو ملائکو کي پر تاسو فخر کوي. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\۲۰۷۵، رقم: ۴۰-۲۷۰۱.

**تشریح**: رسول الله ﷺ د تاکید او ټینګار په توګه په قسم سره پوښتنه وکړه، نه په دې وجه چي خدای مه کړه رسول الله ﷺ هغوئ په خپلو خبرو کي دروغجن ګڼل، د حدیث د آخري جملې مطلب دادی چي کله د الله تعالی نیک بندګان په خلکو کي په حلقه جوړولو سره کښیني او د الله تعالی ذکر او د هغه په یاد کي په ډلییز توګه بوخت وي نو الله تعالی خپلو ملائکو ته فرمایي چي زما دغه بندګانو ته وګورئ! ما پر دوئ د دوئ نفس، د دوئ خواهشات او شیطانان څرنګه مسلط کړي دي مګر ددې سربېره دوئ زما په عبادت او ذکر کي بوخت دي نو د دوئ د عبودیت

تقاضا داده چي د دوئ تعريف ستاسو ځخه زيات وسي په دې وجه چي تاسو ته زما په عبادت کي مشقت او تکليف نه وي ليکن د دوئ عبادت ستاسو د عبادت په نسبت داسي دی چي په هغه کي محنت، تکليف او مشقت دی.

## د الله ﷻ ذکر کول

﴿۲۱۷۲﴾: وَ عَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ بُسْرٍ أَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ شَرَائِعَ

د حضرت عبد الله ابن بسر ؓ ځخه روايت دئ چي يو سړي د رسول الله ﷺ په خدمت کي عرض وکړ اې د الله رسوله! د اسلام احکام (يعني نفلونه)

الْإِسْلَامِ قَدْ كَثُرَتْ عَلَيَّ فَأَخْبِرْنِي بِشَيْءٍ أَتَشَبَّثُ بِهِ قَالَ لَا يَزَالُ لِسَانُكَ

پر ما ډير غالب سوي دي ما ته يو داسي شی راوښيه چي زه پر و مو ښلم، (يعني زما لپاره بس وي) رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ستا ژبه دي هميشه

رَطْبًا مِنْ ذِكْرِ اللهِ. رواه الترمذي و ابن ماجة و قال الترمذي هذا حديث حسن غريب.

د الله ﷻ په ذکر لنده وي. ترمذي، ابن ماجه، او ترمذي ويلي دي دا حديث حسن غريب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۴۲۷، رقم: ۳۳۷۵، وابن ماجه ۲\۱۲۴۶، رقم: ۳۷۹۳.

## د ذکر کوونکي فضيلت

﴿۲۱۷۳﴾: وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ أَيُّ

د حضرت ابو سعيد ؓ ځخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ ځخه پوښتنه وسول چي

الْعِبَادِ أَفْضَلُ وَ أَرْفَعُ دَرَجَةً عِنْدَ اللهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ الذَّاكِرُونَ اللهَ كَثِيرًا

د قيامت په ورځ به د الله ﷻ په نزد کوم بنده افضل او د لوړي درجې خاوند وي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: د الله ﷻ ډير يادوونکي خلک

وَالذَّاكِرَاتُ قِيلَ يَا رَسُولَ اللهِ وَمِنَ الْغَازِي فِي سَبِيلِ اللهِ قَالَ لَوْ ضَرَبَ

او ښځي، بيا پوښتنه وسول اې دالله رسوله ! ايا د الله ﷻ ذکر کوونکی د الله ﷻ په لار کي تر

بِسَيْفِهِ فِي الْكُفَّارِ وَالْمُشْرِكِينَ حَتَّى يَنْكَسِرَ وَيَخْتَضِبَ دَمًا فان الذَّاكِرُونَ

جهاد کوونکي هم غوره دي ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : که هغه (مجاهد) خپله توره پر کافراو او مشرکانو وچلوي تر څو چي د هغه توره ماته سي او هغه خپله په وينو رنګ سي (يعني شهيد سي) بيا هم د الله ﷻ ذکر کوونکی

اللَّهَ أَفْضَلَ مِنْهُ دَرَجَةً . رواه احمد والترمذي و قال هذا حديث غريب .

تر هغه په مرتبه کي غوره دئ . احمد، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۳\۷۵، والترمذي ۵\۴۲۸، رقم: ۳۳۷۶.

**تشريح**: مطلب دادی چي په جهاد کي زخمي کېدونکي خو ښېل دی که چيري جهاد دې حد ته ورسيږي چي مجاهد په خپلو وينو کي رنګ سي بيا هم د الله تعالی ذکر کونکي به غوره وي.

## د الله ﷻ په ذکر سره د شيطان څخه حفاظت

﴿۲۱۷۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ اَلشَّيْطَانُ جَاثِمٌ عَلَى قَلْبِ ابْنِ آدَمَ فَإِذَا ذَكَرَ اللهَ خَنَسَ وَإِذَا غَفَلَ وَسْوَسَ ..رواه البخاري تعليقا

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : شيطان د انسان په زړو کي ګونډې لګوي هر کله چي انسان د الله ذکر په زړه سره کوي نو شيطان ځيني شا تـه سي او هر کله چي د الله د ذکر څخه غافل سي نو وسوسې په زړه کي ور اچوي . بخاري.

**تخريج** : لم نجده.

## د ذکر مثال او د هغه فضيلت

﴿۲۱۷۵﴾: وَعَنْ مَالِكٍ قَالَ بَلَغَنِي أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ

د حضرت مالک رحمه الله څخه روايت دئ چي ما ته دا څرګنده سوې ده چي رسول الله ﷺ

يَقُوْلُ ذَاكِرُ اللهِ فِي الْغَافِلِيْنَ كَالْمُقَاتِلِ خَلْفَ الْفَارِّيْنَ وَذَاكِرُ اللهِ فِي الْغَافِلِيْنَ

فرمايلي دي : په غافلو خلکو کي د الله ﷻ ذکر کونکی د هغه کس په ډول دئ چي د

تښتېدونکو د ښمنانو سره جنګيږي او په غافلو خلکو کي د الله جل جلاله ذکر کونکی

كَغُصْنٍ أَخْضَرَ فِيْ شَجَرٍ يَابِسٍ، وَفِيْ رِوَايَةٍ: مَثَلُ الشَّجَرَةِ الْخَضْرَاءِ فِيْ وَسَطِ

د شنه ښاخ په ډول دئ چي په وچه درخته کي وي . او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي هغه د هغه شنې درختي په ډول دئ چي د درختو په منځ کي وي

الشَّجَرِ وَذَاكِرُ اللهِ فِي الْغَافِلِيْنَ مِثْلُ مِصْبَاحٍ فِيْ بَيْتٍ مُظْلِمٍ وَذَاكِرُ اللهِ فِي

او په غافلو انسانانو کي د الله جل جلاله ذکر کونکی په تاریکو کورو کي د څراغ په ډول دئ، او د الله جل جلاله ذکر کوونکی په

الْغَافِلِيْنَ يُرِيْهِ اللهُ مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ وَهُوَ حَيٌّ وَذَاكِرُ اللهِ فِي الْغَافِلِيْنَ يُغْفَرُ

غافلانو کي داسي دئ چي الله هغه ته په ژوند کي جنت د هغه ځای ورښیي ، او په غافلو انسانانو کي د الله جل جلاله ذکر کونکي ته به د هغه د ګناهو په شمیر

لَهُ بِعَدَدِ كُلِّ فَصِيْحٍ وَأَعْجَمَ وَالْفَصِيْحُ بَنُوْ آدَمَ وَالْأَعْجَمُ الْبَهَائِمُ . رواه رزين

د هر فصیح او عجمي بخښنه کیږي ، د فصیح څخه مراد انسانان دي او د عجم څخه مراد حیوانان دي . رزین.

**تخريج**: رواه رزين.

## د الله جل جلاله ذکر تر ټولو زیات خلاصون ورکونکی عمل دی

﴿۲۱۷۶﴾: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ مَا عَمِلَ الْعَبْدُ عَمَلاً أَنْجٰى لَهُ مِنْ عَذَابِ اللهِ مِنْ ذِكْرِ اللهِ . رواه مالك والترمذي وابن ماجه

د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت دئ چي بنده کوم عمل کوي په هغو کي د الله جل جلاله د ذکر څخه پرته بل هیڅ عمل د الله جل جلاله د عذاب څخه نجات ورکونکی نسته . مالک، ترمذي او ابن ماجه

**تخريج**: مالک في الموطا ۱\۲۱۱، رقم: ۲۴، والترمذي ۵\۴۲۸، رقم: ۳۳۷۷، وابن ماجه ۲\۱۲۴۵، رقم: ۳۷۹۰.

**تشريح**: مطلب دادی چي د ذکر په مثل هیڅ عمل نسته چي د قیامت په ورځ د الله تعالی د

عذاب څخه زيات د خلاصون وركولو سبب وي ، خلاصه دا چې د الله تعالى ذكر په ټولو اعمالو كې غوره دى .

## د ذكر كوونكي سعادت

﴿۲۱۷۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى يَقُوْلُ اَنَا مَعَ عَبْدِيْ اِذَا ذَكَرَنِيْ وَتَحَرَّكَتْ بِيْ شَفَتَاهُ. رواه البخاري

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى فرمايي : زه د خپل بنده سره يم تر څو پورې چې هغه ما يادوي او د هغه دواړې شونډې زما په ذكر سره ښوري . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) معلقا ۱۳\۴۹۹،

## د الله جل جلاله ذكر د زړه د صفائي باعث دى

﴿۲۱۷۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ كَانَ

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ به فرمايل :

يَقُوْلُ لِكُلِّ شَيْءٍ صَقَالَةٌ وَصَقَالَةُ الْقُلُوْبِ ذِكْرُ اللّٰهِ وَمَا مِنْ شَيْءٍ اَنْجٰى مِنْ

د هر شي پاكي شته او د زړه پاكي د الله جل جلاله ذكر دئ ، او هيڅ شى د الله جل جلاله د عذاب څخه

عَذَابِ اللّٰهِ مِنْ ذِكْرِ اللّٰهِ قَالُوْا وَلَا الْجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؟ قَالَ وَلَا اَنْ يَّضْرِبَ

ساتونكى د الله جل جلاله د ذكر څخه پرته نسته ، صحابه كرامو عرض وكړ ايا د الله جل جلاله په لاره كې جهاد هم نه ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : دا هم نه دى

بِسَيْفِهِ حَتّٰى يَنْقَطِعَ . رواه البيهقي في الدعوات الكبير

كه څه هم د جهاد كوونكي توره په جګړه كې ماته سي . بيهقي

**تخريج**: رواه البيهقي في الدعوات الكبير.

**د لغاتو حل**: صَقالة: اى تجلية و تخلية و تزكية. (ځلا او پاكي).

# بَابُ اَسْمَاءِ اللهِ تَعَالٰـى

## (د الله ﷻ د مبارکو نومانو بیان)

په دې خبره پوه سئ چې د الله تعالی نوم توقیفي یعني پر سماع او د شارع پر اذن موقوف دی، ددې مطلب دادی چې کوم نوم د شریعت څخه منقول دی هغه ویل پکار دی خپل د عقل څخه نوم اخیستل پکار نه دی که څه هم هغه نوم د معنی په اعتبار د شریعت د نقل سوي نامه سره سم وي مثلاً الله تعالی عالم ویل پکار دي مگر عاقل دي نه ویل کیږي، جواد ویل پکار دي مگر سخي نه سي ویل کېدای ، همدارنگه شافي ویل پکار دي مگر طبیب نسي ویل کېدای ، بنده ته پکار دي چې هغه د الله تعالی صفات په خپل ځان کي د پیدا کولو تر خپله توانه هڅه وکړي ، په راتلونکو مخونو کي د الله تعالی د نومو د وضاحت او د نورو عباداتو په تشریح کي د الله تعالی د صفاتو د تر لاسه کولو چې کوم تلقین سوی دی په هغه په پوره توگه عمل کول پکار دي چې د هغه صفاتو د تر لاسه کولو وروسته خپل ذات د انوار الهیه عکس او خپل ژوند د اسلامي اخلاقو د تعلیم پیرو جوړ کړي . اللهم وفقنا و یسرلنا حصولها .

د یوه بزرگ په اړه نقل سوي دي چې هغه ته به یو څوک د بیعت لپاره راتلی نو مخکي به یې هغه ته حکم کوی چې اودس وکه او بیا راسه کله چې به هغه اودس وکړی او را به غلی نو د هغه مخکي به یې د الله تعالی مبارک نومونه په پوره عظمت او جلال سره په لوړ آواز ویل بیا به یې په هغه سړي کي چې د کوم مبارک نوم تاثیر ولیدی نو د هغه تعلیم به یې ورکوی په دې امید چې هغه ته د مقصد تر لاسه کېدل اسان او ژر وسي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د الله ﷻ نومونه یادول

﴿۲۱۷۹﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِلّٰهِ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل : د الله تعالی

تِسْعَةً وَتِسْعِينَ اسْمًا مِائَةً إِلَّا وَاحِدًا مَنْ أَحْصَاهَا دَخَلَ الْجَنَّةَ . و في رواية و

هو وتر يحب الوتر . متفق عليه .

نهه نيوي نومونه يعني يو كم سل نومونه دي څوک چي يې ياد کړي هغه به په جنت کي داخليږئ او په يوه روايت کي دا هم دي چي الله تعالى طاق دئ او طاق خوښوي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۳۷۷، رقم: ۷۳۹۲، ومسلم ۴\۲۰۶۳، رقم: ٦- ۲٦۷۷.

**د لغاتو حل**: احصاها : اى من آمن بها او عدها كلمة على طريق الترتيل تبركا.

**تشريح**: په دغه حديث شريف کي ويل سوي دي چي د الله تعالى نهه نيوي ۹۹ نومونه دي ، ددې څخه شمېر او تحديد مراد نه دی چي د الله تعالى بس هم دومره نومونه دي ځکه د الله تعالى ډېر نومونه دي په راتلونکو مخونو کي د نهه نيوي نومونو وروسته يو څو نور نومونه هم ذکر کيږي ، مګر دلته د نهه نيوي ۹۹ شمېر ذکر کولو څخه مراد او مقصد دادی چي په حديث شريف کي د الله تعالى کوم خاصيت بيان سوی دی چي څوک دا په ياد کړي هغه به په جنت کي داخليږي نو هغه ددغه نهه نيوي نومونو سره خاص دی .

د احصاها لفظ په باره کي د علماؤ اختلاف دی ، بخاري او داسي نورو ددې معنى هغه ليکلې ده کوم چي د ژباړې څخه څرګنديږي يعني دغه نومونه يې ياد کړل او دا قول زيات صحيح دی په ځينو روايتو کي د احصاها پر ځای حفظها هم منقول دی ، ځيني علماء وايي چي ددې معنى داده چي هغه وواياست او ايمان پر راوړئ يا د هغه په معنى ځان پوه کړئ او د هغه په معنى عمل وکړئ .

هو وتر يحب الوتر : ددې مطلب دادی چي الله تعالى طاق اعمال او اذکار خوښوي او مراد ددې څخه دا دی چي الله تعالى په ټولو اعمالو کي هغه عَمَل خوښوي د کوم چي بنياد پر اخلاص باندي وي او محض د الله تعالى لپاره سوی وي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د الله تعالى (۹۹) نومونه او د هغو تفصيل

﴿۲۱۸۰﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ لِلّٰهِ

د حضرت ابوهريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د الله تعالى

تَعَالَى تِسْعَةً وَتِسْعِيْنَ اسْمًا مَنْ أَحْصَاهَا دَخَلَ الْجَنَّةَ هُوَ اللّٰهُ الَّذِيْ لَا إِلٰهَ إِلَّا

نهه نيوي نومونه دي څوک چي دا په ياد کړي هغه به جنت ته داخليږي (او هغه نومونه دا دي) :
هغه الله دئ د هغه څخه پرته بل څوک د عبادت وړ نسته

هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيمُ الْمَلِكُ الْقُدُّوسُ السَّلَامُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيزُ

هغه ډير مهربان دئ ، هغه ډير رحم کونکی دئ ، حقيقي پاچا دئ ډير پاک دئ بې عيبه او د
سلامتۍ خاوند دئ امن ورکولو والا دئ ساتونکی او نگهبان دئ غالب او بې مثل دئ

الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ الْغَفَّارُ الْقَهَّارُ الْوَهَّابُ الرَّزَّاقُ الْفَتَّاحُ

د ورانو کارو سمونکی دئ تکبر کوونکی دئ پيدا کونکی دئ ، پيدا کونکی دئ صورت
جوړونکی دئ ډير بخښونکی ، زبردست د غلبې خاوند دئ ، پرته د معاوضې ډير څه ورکونکی
دئ ، رزق پيدا کولو او رسولو والا دئ ، خلاصونکی او حکم ورکونکی دئ

الْعَلِيمُ الْقَابِضُ الْبَاسِطُ الْخَافِضُ الرَّافِعُ الْمُعِزُّ الْمُذِلُّ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ

د ظاهر او باطن علم لرونکی روزي او د بندګانو زړه تنګونکی دئ روح قبض کونکی دئ د
بندګانو زړه او رزق پراخوونکی دئ د کافرانو پست کونکی دئ د مؤمنانو لوړونکی دئ يا
خپل درګاه ته نژدې کونکی ، عزت ورکونکی ، ذلت ورکونکی ، ليدونکي ،

الْحَكَمُ الْعَدْلُ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ الْحَلِيمُ الْعَظِيمُ الْغَفُورُ الشَّكُورُ الْعَلِيُّ

حکم کونکي داسي چي څوک د هغه حکم نه سي رد کولای، انصاف کونکی ، باريک ليدونکی
، پر خپلو بندګانو لطف او مهرباني کونکی ، د زړه خبري پيژندونکی ، بردبار ، بنديانو ته عذاب
ورکولو کي تلوار نه کونکی ، بزرګ او برتر چي په ذات او صفات کي يې هيڅوک سيال نسته ، ډير
بخښونکی په ډيره اندازه شناس لږ عمل باندي ډير ثواب ورکونکی ، ډير د لوړي مرتبې والا ،

الْكَبِيرُ الْحَفِيظُ الْمُقِيتُ الْحَسِيبُ الْجَلِيلُ الْكَرِيمُ الرَّقِيبُ الْمُجِيبُ الْوَاسِعُ

داسي لوی چي هيڅوک تر هغه لوی نسته ، عالم د آفتو څخه ساتونکی ، بدنو او روحو ته توان
ورکونکی ، حساب اخيستونکی او کفايت کونکی ، لوړي مرتبې والا ، ډير سخي ، ډير
ورکونکی د هر شي ساتونکي او د بندګانو حال پيژندونکي ، وسيع العلم او وسعت ورکونکی ،

## اَلْحَكِيمُ اَلْوَدُودُ اَلْمَجِيدُ اَلْبَاعِثُ اَلشَّهِيدُ اَلْحَقُّ اَلْوَكِيلُ اَلْقَوِيُّ اَلْمَتِينُ اَلْوَلِيُّ

د کارو سمونکی ، د پوه او فرمانبردارو سره دوستي کونکي ، په ذات او افعالو کي شریف او بزرګ د مرګ څخه وروسته ژوندی کونکی ، مړي د قبرو څخه پورته کونکی ، د غافلانو زړونه د غفلت څخه بیداره کونکی ، حاضر او ظاهر پر غائب باندي خبر لرونکی ، د پاچاهی او خدایي وړ ، د خلکو کارونه سمونکی د لوی زور او توان خاوند ، ټول کارونه سمونکی د مؤمنانو دوست او مرستیال ،

## اَلْحَمِيدُ اَلْمُحْصِي اَلْمُبْدِئُ اَلْمُعِيدُ اَلْمُحْيِي اَلْمُمِيتُ اَلْحَيُّ اَلْقَيُّومُ اَلْوَاجِدُ

په خپل ذات او صفاتو کي تعریف کونکی یا تعریف کړل سوی ، د هر شی په علم سره احاطه کونکی ، په لومړی وار پیدا کونکی ، دویم وار پیدا کونکی ، ژوندی کونکی ، زړونه د ایمان په نور سره ژوندي کونکي ، د بدنو او زړو وژونکی ، همیشه ژوندی ، خپله قائم او مخلوقات قائمونکي ، غني چي هیڅ شي ته اړ نه وي ،

## اَلْمَاجِدُ اَلْوَاحِدُ اَلْاَحَدُ اَلصَّمَدُ اَلْقَادِرُ اَلْمُقْتَدِرُ اَلْمُقَدِّمُ اَلْمُؤَخِّرُ اَلْاَوَّلُ اَلْاٰخِرُ

بزرګ او برتر ، په خپل ذات ، صفاتو او افعالو کي بې مثله او بې مثاله ، په ذات او صفاتو کي یوازي ، بې پرواه ، بې نیازه ، د لوی قدرت خاوند ، قدرت ښکاره کونکی ، دوستان په خپل بارګاه کي عزت ته وړاندي کونکي ، د ښمنان د خپلي مهرباني څخه لیري کونکي ، تر هر چا لومړی ، د ټولو موجوداتو وروسته ،

## اَلظَّاهِرُ اَلْبَاطِنُ اَلْوَالِيَ اَلْمُتَعَالِي اَلْبَرُّ اَلتَّوَّابُ اَلْمُنْتَقِمُ اَلْعَفُوُّ اَلرَّءُوفُ مَالِكُ

ښکاره او ښکاره ، هغه ذات چي د خپل وجود د ښکاره ونښو څخه ښکاره وي ، هغه ذات چي د وهم او خیال څخه مخفي دئ ، لوی کارساز ، لوړ مرتبه ، نیکی کونکی ، توبه قبلونکی ، بدله اخیستونکی ، ګناهونه او غلطی معافونکی ، ډیر مهربان ، د ټولي دنیا د نظم خاوند ،

## اَلْمُلْكِ ذُو الْجَلَالِ وَالْاِكْرَامِ اَلْمُقْسِطُ اَلْجَامِعُ اَلْغَنِيُّ اَلْمُغْنِي اَلْمَانِعُ اَلضَّارُّ

د بزرګی او بخښني خاوند ، عدل او انصاف کونکی ، د قیامت په ورځ ټول مخلوق یو ځای کونکی ، د هر شي څخه بې پرواه ، بې پروا کونکی ، بندګان د هلاکت او تاوان څخه

خلاصونکی، نافرمانو ته تاوان رسونکی،

النَّافِعُ النُّورُ الْهَادِي الْبَدِيعُ الْبَاقِي الْوَارِثُ الرَّشِيدُ الصَّبُورُ . رواه الترمذي و البيهقي في الدعوات الكبير وقال الترمذي هذا حديث غريب .

ډېر ګټه رسونکی، آسمان په ستورو سره ځلانده کونکی او مځکي په انبیاؤ ، صالحانو او عالمانو سره ځلانده کونکی، لارښوونکی او هدایت کونکی، پرته د مثال څخه د عالم پیداکونکی، همیشه باقي پاته کېدونکی، همیشه اوسیدونکی، په موجوداتو کي د فنا وروسته باقي پاته کېدونکی، لارښوونکی، د دنیا راهنما، بردبار چي په عذاب ورکولو کي تلوار نه کوي، ډېر صبرناک . ترمذي، بيهقي، ترمذي ويلي دا حديث غريب دئ .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۵۳۰، رقم: ۳۵۰۷، البيهقي في الدعوات.

**تشريح**: هو الله الذي لا اله الا هو : دا جمله مستانفه (يعني يوه عليحده جمله ده) او د هغه نهه نيوي ۹۹ نومو بيان دی کوم چي مخکي تېر سوي دي .

د دغه کلمې څو مرتبې دي لومړی دا چي منافق دا کلمه ووايي او د هغه زړه د تصديق څخه خالي وي يعني هغه د زړه د تصديق او باور پرته د خپل ځان مسلمان ښکاره کولو لپاره دا کلمه يوازي په ژبه سره ادا کوي نو دا کلمه د هغه د دنيا لپاره خو نافع ګرځي په دې توګه چي د دې په وجه د هغه ځان، مال او کورنۍ خوندي سي مګر د آخرت په اعتبار دا کلمه هغه ته هيڅ ګټه نه رسوي .

دوهم دا چي دغه کلمه په ژبه سره د ويلو سره د زړه اعتقاد هم وي مګر د تقليد محض په توګه د دغه درجې په صحيح کېدو کي مختلف قولونه دي او صحيح قول دادی چي دا درجه صحيح ده، دريم دا چي د دغه کلمې په ويلو سره اعتقاد قلبي هم وي مګر داسي اعتقاد چي د الله تعالی د قدرت د نښانو په لېدو سره حاصل سوی وي د اکثرو علماؤ په نزد دغه درجه هم معتبره ده .

څلورم دا چي په ژبه سره د دغه کلمې د ادا کولو اعتقاد جازم هم وي يعني د دليل قطعي له مخي حاصل سوی وي او په اتفاق سره دغه درجه مقبوله ده، پنځم دا چي د دغه کلمې ادا کونکی داسي وي چي هغه د زړه په سترګو سره د دغه کلمې معنی پېژني يعني هغه ته په پوره توګه عرفان حق حاصل وي او دغه لوړه درجه ده، دا تفصيل خو په هغه صورت کي دی کله چي دغه کلمه په ژبه سره ادا کړل سي ، دوهم شکل دادی چي دغه کلمه په زړه سره ووايي يعني په

ژبه سره یې ادا نه کړي نو په دې صورت کې دا تفصیل دی که د یو عذر مثلا د ګونګتوب وغیره په وجه دغه کلمه په ژبه سره نسي ادا کولای نو دغه کلمه د دنیا او آخرت دواړو په اعتبار خلاصون ورکونکې ده او که د عذر څخه پرته یې په ژبه سره ادا نه کړي نو بیا په آخرت کې ددې هیڅ فائده نسته ، امام نووي رحمه الله پر دې خبره د اهل سنت اجماع نقل کړې ده .

===========

**الله** جل جلاله : د الله تعالی اسم ذات دی، ددې معنی ده هغه ذات چې د عبادت وړ دی، اکثر علماء وایي چې د الله تعالی په نومو کې دغه نوم تر ټولو لوی د او ویل سوي دي چې عوامو ته پکار ده چې هغوئ دغه نوم پر خپل ژبه جاري کړي او د خشیت او تعظیم په توګه په دغه نامه سره ذکر کوي او خواصو ته پکار ده چې هغوئ ددغه نامه په معنی کې غور او فکر کوي او په دې پوه سي چې ددغه نوم اطلاق یوازې پر هغه ذات کیږي کوم چې دصفات الوهیت جامع دی او خواص الخواص ته پکار ده چې هغوئ په خپل زړه په الله کې مستغرق ولري او ددغه ذات څخه پرته بل هیچا ته التفات ونه کړي او یوازې د هغه څخه و بیریږي ځکه چې هغه حق او ثابت دی د هغه څخه پرته هر شی فاني او باطل دی لکه چې په بخاري کې نقل سوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل : د شاعرانو په کلام کې تر ټولو صحیح کلام د لبید شاعر دی :

الا کل شئ ما خلا الله باطل : یاد لرئ چې د الله تعالی څخه پرته هر شي باطل دی .

**خاصیت** : کوم څوک چې د الله تعالی اسم ذات (الله) زر واره وایي نو هغه به صاحب د یقین سي او کوم څوک چې د هر لمانځه وروسته سل واره وایي نو د هغه باطن به پراخ سي او هغه به صاحب کشف سي .

**الرحمن** جل جلاله: بخښونکی، **الرحیم** جل جلاله: مهربان: ددغه دواړو نومو څخه د بنده نصیب دادی یعني د الله تعالی د صفاتو خپلولو په اړه ددغه نومو تقاضا داده چې د الله تعالی مبارک ذات ته پوره توجه وي پر هغه ذات باندي توکل او باور وکړل سي خپل باطن د هغه په ذکر کې بوخت وساتل سي د غیر الله څخه بې پرواهي وکړل سي د الله تعالی پر بندګانو باندي رحم وکړل سي د مظلوم مرسته وکړل سي او ظالم په ښه طریقه سره د ظلم څخه منع کړل سي د الله تعالی عبادت او د هغه د ذکر څخه غفلت کونکي خبردار کړل سي ګناه کار ته د رحمت نظر وسي نه دا چې هغه ته د سپکاوی په نظر وکتل سي د خپل توان سره سم د شرعي امورو په خپریدو کې هڅه وکړل سي او د خپل توان سره سم د اړو او محتاجو کسانو اړتیاوي پوره کولو هڅه وکړل سي.

**خاصیت** : کوم څوک چې د هر لمانځه وروسته سل واره الرحمن الرحیم وایي نو الله تعالی به د

هغه د زړه څخه غفلت، هيره او سختي ليري کړي او ټول مخلوق به پر هغه مهربان او مشفق وي.
**الملک** جَلَّ جَلَالُهُ: حقيقي پاچا، يعني هغه د مځکي او آسمان او د ټول عالم حقيقي پاچا دی، دواړه جهانه د هغه په تصرف او واک کي دي هغه د ټولو څخه بې نيازه دی او ټول د هغه محتاج دي.
کوم بنده چي د الله تعالی دغه حيثيت او صفت و پيژني نو اوس پر هغه لازم دي چي د هغه د دربار بنده او غلام سي او د هغه فرمانبرداري په ذريعه د هغه د دربار څخه عزت وغواړي او پر بنده باندي لازم دي چي د هغه په قدرت او تصرف سره تعلق پيدا کړي د هغه څخه پرته د هر چا څخه بې نيازي اختيار کړي نه چا ته خپل ضرورت او اړتيا بيان کړي او نه د چا څخه و بيريږي او نه د چا څخه اميد ولري خپل زړه او خپل نفس د دنيا حاکم سي او خپل اندامونه او قوت په واک کي لرلو سره د هغه د اطاعت او عبادت او د شريعت په فرمانبردارۍ کي ځان ولګوي چي په صحيح معنی د خپل وجود د دنيا حاکم سي.
**خاصيت** : کوم څوک چي دغه نوم د القدوس سره (يعني الملک القدوس) په پابندي سره وايي نو که چيري هغه د پاچاهۍ خاوند وي نو د هغه پاچاهي به الله تعالی قائم او دائم ولري او څوک چي د پاچاهۍ خاوند نه وي نو ددغه په برکت به د هغه خپل نفس مطيع او فرمانبردار سي او کوم څوک چي دغه د عزت لپاره وايي نو د هغه مقصد به تر سره سي او په دې باره کي دغه عمل ډېر مجرب دی.
شاه عبد الرحمن رحمة الله عليه ددې خاصيت ليکلی دی چي کوم څوک دغه نوم هره ورځ نيوي واره وايي نو نه يوازي دا چي ځلانده به سي بلکه حاکمان او پاچاهان به ورته مسخر سي او د عزت او احترام د زياتوب لپاره دا مجرب دی.
**القدوس** جَلَّ جَلَالُهُ : ډېر پاک : ويل سوي دي چي کوم څوک په دې پوه سي چي الله تعالی ډېر پاک دی نو اوس هغه ته پکار دي چي ددې ارزو وکړي چي الله تعالی به هغه په هر حالت کي د عيوب او آفاتو څخه د ليري کولو او د ګناهونو د نجاست څخه پاک ساتي.
**خاصيت** : کوم څوک چي دغه مبارک نوم هره ورځ د لمر دزوال پر وخت وايي نو د هغه زړه به پاک سي او څوک چي د جمعې د لمانځه وروسته دغه نوم د السبوح (يعني القدوس السبوح) د ډوډۍ پر ټوټه وليکي او وه يې خوري نو د ملائکي صفت به يې سي او د بيري پر وخت د دښمنانو څخه د ساتني پر وخت چي دغه نوم څو مره ويل کيږي وه دي يې وايي او مسافر دي هم دغه نوم وايي او هيڅکله دي نه عاجزه کيږي او که چيري دغه نوم درې سوه او نولس ۳۱۹ واره پر يو خواړه شي وويل سي او په دښمن وخوړل سي نو هغه به پر مهربان سي.

**السلام** ﷻ: بې عیبه او سلامت، ددغه نوم څخه د بنده نصیب دادی چي هغه خپل ځان د هر خراب کار او هري بداخلاقۍ څخه وژغوري، قشیري رحمه الله وایي چي ددغه نوم څخه د بنده نصیب دادی چي هغه په قلب سلیم سره خپل مولا ته رجوع وکړي، ځیني حضرات دا وایي چي مسلمان د هغه د ژبي او د هغه د لاس څخه خوندي او سلامت وي بلکه هغه د مسلمانانو سره د ډېر زیات شفقت معامله کوي کله چي هغه یو داسي مسلمان ویني چي د هغه څخه په عمر کي زیات وي نو دا وایي چي دی تر ما غوره دی ځکه چي ده زما په نسبت زیات عبادت او اطاعت کړی دی او په ایمان او معرفت کي تر ما مخته والی لري او که یو داسي مسلمان ویني چي په عمر کي تر هغه کوچنی وي نو دا دي وایي چي دی تر ما غوره دی ځکه چي ده زما په نسبت کم گناهونه کړي دي او که چیري د یو مسلمان ورور څخه یو کوتاهي وسي او هغه بخښنه وغواړي نو د هغه معذرت قبلولو سره د هغه کوتاهي دي معاف کړل سي.

**خاصیت**: که یو څوک دغه مبارک نوم پر یو ناروغ سړي باندي سل واره ووایي نو انشاء الله تعالی هغه ته به روغتیا او شفاء تر لاسه سي او که یو څوک دغه مبارک نوم ډېر وایي نو د بیري څخه به بې خوفه سي.

**المؤمن** ﷻ: امن ورکونکی، ددغه نوم څخه د بنده نصیب دادی چي هغه د الله تعالی د مخلوق څخه یوازي د خپل شر او خپل بدۍ نه بلکه د نورو د بدیو او شر څخه هم په امن کي وساتي.

**خاصیت**: کوم څوک چي دغه مبارک نوم ډېر وایي یا یې ولیکي او د ځان سره یې وساتي نو الله [illegible] به هغه د شیطان د شر څخه په امن کړي او هر څوک به د هغه مرسته کونکی وي او د هغه [illegible] او باطن به د الله تعالی په امان کي وي او کوم څوک چي دغه نوم ډېر وایي نو د الله تعالی [illegible]خلوق به د هغه فرمانبرداره وي.

**[illegible]مهین** ﷻ: د هر شي په بنه ډول ساتونکی، ددغه نوم څخه د بنده نصیب دادی چي د خرابو [illegible]ادتونو، خرابو عقیدو او خرابو شیانو مثلاً حسد، کینه او داسي نورو څخه د خپل زړه ساتنه [illegible]کړي خپل اعمال صحیح کړي او خپل قوت او خپل اندامونه په هغه شیانو کي د بوختیا څخه [illegible]ساتي کوم چي زړه د الله تعالی څخه په غفلت کي اچوي.

**[illegible]اصیت**: کوم څوک چي د غسل کولو څخه وروسته دغه مبارک نوم یو سل او پنځلس ۱۱۵ واره [illegible]ایي نو هغه به د غیب او باطن په خبرو خبردار سي او کوم څوک چي دغه نوم ډېر وایي نو هغه به [illegible]ټولو آفاتو څخه پناه تر لاسه کړي او د جنتیانو په ډله کي به شامل سي.

**عزیز** ﷻ: غالب او بې مثله چي هیڅوک پر هغه غالب نه وي، ددغه مبارک نامه څخه د بنده

نصیب دادی چي خپل نفس ، خپل خواهشات او شیطان باندي غالب وي په علم او عمل کي بې مثله سي او د الله تعالی د مخلوق په وړاندي لاس ونه غزوي او د غیر الله په مخکي د سوال لاس اوږدولو سره خپل ځان ذلیل نه کړي.

ابو العباس مریسي رحمة الله عليه وايي چي قسم په خدای ما خو عزت د الله تعالی د مخلوق څخه په لوړ همتۍ اختیارولو (یعني د چا په مخکي مي لاس نه غزولو) کي لیدلی دی.

ځیني علماء وايي چي الله تعالی هغه څوک ا غالب او بې مثله وګڼي چا چي د هغه احکام او د هغه شریعت او د هغه په فرمانبرداری کي ځان بې مثله جوړ کړئ او چا چي په دغه شیانو کي بې پرواهي وکړه نو هغه د الله تعالی عزت ونه پيژندی. د الله تعالی ارشاد دی:

و لله العزة ولرسوله وللمؤمنین ولکن المنافقین لایعلمون، او عزت خو الله ، د هغه رسول او مؤمنانو لره دی مګر منافقان په دې نه پوهیږي.

**خاصیت** : کوم څوک چي دغه مبارک نوم د سهار د لمانځه وروسته یو څلوېښت ۴۱ واره وايي نو هغه به په دنیا او آخرت کي د چا اړ نه سي او د خوارۍ وروسته به عزیز سي ددې څخه پرته ددغه مبارک نامه عجیب او غریب خاصیتونه مذکور دي.

**الجبار** جل جلاله : د وران کارو سمونکی، او ځیني علماء وايي چي ددې معنی داده چي بندګان هغه شي ته راوستونکی کوم چي د هغه اراده کوي ، ددغه نامه څخه د بنده نصیب دادی چي د فضائل او کمال تر لاسه کولو سره د خپل نفس خرابي سمه کړي او پر تقوا او پرهیزګارۍ باندي په همېشتوب کولو سره پر خپل نفس غالب وي او په همداسي د کمال درجې ته ورسیږي.

قشیري رحمة الله عليه وايي چي په ځینو کتابو کي دا نقل سوي دي چي الله تعالی فرمایي د هغه شي په باره کي ستا خواهش څه وي او زما مشیت بل څه وي هغه چي زه یې اراده وکړم که ته په هغه راضي سې د کوم چي زه اراده کوم (یعني د هغه شي په باره کي یو فیصله وسي) ته هغه بېله چون او چرا ومنې او په هغه راضي سې نو ته چي کومه اراده کوې زه به په هغه کي ستا کفایت کوم (یعني د هغه بنه بدله به درکوم) او که ته په هغه راضي نه سې نو بیا هغه به کیږي چي زه یې اراده وکړم او ته به محروم پاته سې.

**خاصیت** : څوک چي د مسبحات عشر څخه وروسته دغه نوم یوویشت ۲۱ واره وايي نو هغه به د ظالمانو د شر څخه په امان کي وي او کوم څوک چي دغه نوم همېشه وايي نو هغه به د غیبت او د مخلوق د بدویلو څخه بې بیري او په امان وي او د اهل دولت او پاچاهۍ څخه به وي او که یو څوک دغه نوم پر ګوتمۍ باندي په لیکلو سره په ګوته کړي نو د خلکو په زړونو کي به د هغه

هيبت او شوكت وي .

**المتكبر** ﷻ: ډېر بزرګ، د دغه نامه څخه د بنده نصيب دا دی چې کله هغه ته د الله تعالی بزرګي معلومه سي نو اوس هغه ته پکار ده چې هغه نفساني خواهشاتو ته ميلان او شهواني خوندو ته د رغبت څخه تکبر يعني پرهيز وکړي ځکه دغه شيانو ته رغبت کول د حيوانانو کار دی که چيري هغه ته رغبت کوي نو د حيوانانو سره به شريک سي بلکه د هر هغه شي څخه تکبر کول پکار دي کوم چې باطن د حق څخه منع کوي او الله تعالی ته د رسيدو څخه پرته هر شي سپک ګڼل او د تواضع او تذلل طريقه اختيارول پکار دي او د خپل ذات څخه د تکبر ټولي دعوې زائلول پکار دي چې نفس پاک سي او په هغه کي د الله محبت ځای کړل سي او همداسي به د نفس اختيار باقي پاته سي او نه د غير الله سره قرار .

**خاصيت** : کوم څوک چې د خپل ښځي سره د مباشرت (کوروالي) پر وخت د دخول څخه مخکي دغه مبارک نوم لس واره وايي نو انشاء الله تعالی پرهيزګار زوی به ورکړل سي او کوم څوک چې د هر کار په پيل کي دغه مبارک نوم ډېر وايي نو انشاء الله تعالی خپل مراد ته به ورسيږي .

**الخالق** ﷻ : د مشيت او حکمت موافق د پيدا کونکي شي اندازه کونکی .

**خاصيت** : کوم څوک چې دغه مبارک نوم ډېر ډېر وايي نو الله تعالی به د هغه لپاره يوه ملائکه پيدا کړي چې د هغه لپاره به تر قيامت پوري عبادت کوي او الله تعالی به د دغه مبارک نامه په برکت د هغه زړه او مخ روښانه او منور کړي .

شاه عبدالرحمن رحمة الله عليه ليکلي دي چې کوم څوک د شپې دغه نوم ډېر وايي نو د هغه زړه او مخ به ځلانده او منور وي او پر ټولو کارو به حاوي وي .

**الباري** ﷻ : پيدا کونکی .

**خاصيت** : څوک چې دغه مبارک نوم په اونۍ کي سل واره وايي نو الله تعالی به هغه په قبر کي نه پرېږدي بلکه رياض قدس ته به يې واستوي او کوم حکيم يا علاج کونکی چې دغه نوم په دوام سره وايي نو هغه چې کوم علاج کوي هغه به کامياب وي .

**المصور** ﷻ : صورت جوړونکی، د پورتنيو درو نومونو څخه د بنده نصيب دا دی چې کله هغه شی ويني او کله هم د يو شي تصور وکړي نو د الله تعالی په قدرتونو او عجائبو کي غور او فکر وکړي کوم چې په هغه شي کي موجود دی .

**خاصيت** : کومه ښځه چې وچه وي او د اولاد څخه محرومه وي نو هغې ته پکار دي چې اووه ورځي روژې ونيسي او هره ورځ د روژې ماتولو پر وخت يوويشت ۲۱ واره دغه نوم پر اوبو

باندي په ويلو سره دم کړي او هغه اوبه وڅښي انشاء الله تعالى نيک اولاد به يې په برخه سي، کوم څوک چې د يو سخت او مشکل کار په وخت کي دغه نوم ډېر وايي نو هغه کار به انشاء الله تعالى پر اسانه سي.

**الغفار** جل جلاله: د بندګانو ګناهونه بخښونکی او د هغوئ عيبونه پټونکی، ددغه نامه څخه د بنده نصيب دادی چي هغه دا خبره په ښه ډول په ذهن کي کښېنوي چي ګناهونه د الله تعالى څخه پرته بل هيڅوک نه سي بخښلای او هغه ته پکار دي چي هغه د خلکو عيبونه پټ کړي که د چا څخه څه قصور او کوتاهي وسي نو هغه ورته معاف کړي او پر ځان همېشه په خاصه توګه د سهار په وخت کي استغفار لازم کړي.

**خاصيت**: کوم څوک چي د جمعې د لمانځه وروسته سل واره دغه کلمات وايي (يا غفار اغفرلي ذنوبي) اې بخښونکې! زما ګناهونه و بخښې، نو الله تعالى به يې د هغو خلکو څخه وګرځوي کوم چي بخښل سوي دي.

**القهار** جل جلاله: د هغه د قدرت په وړاندي ټول عاجز او مغلوب دي، ددغه نامه څخه د بنده نصيب دادی چي هغه پر خپل لوی دښمنانو باندي په غالب کېدو سره هغوئ عاجز او مغلوب کړي او د هغه لوی دښمنان نفس او شيطان دی.

**خاصيت**: څوک چي دغه مبارک نوم ډېر وايي نو الله تعالى به د هغه د زړه څخه د دنيا محبت ليري کړي او د هغه خاتمه به په خير کړي او الله تعالى به د هغه په زړه کي د نيکو اعمالو شوق او محبت پيدا کړي او کوم څوک چي دغه مبارک نوم د خپل يو کار لپاره سل واره وايي نو د هغه کار به اسان سي او څوک چي يې همېشه وايي نو د هغه د زړه څخه به د دنيا محبت ووځي او که يو څوک يې د سنت او فرضو لمونځو په مينځ کي سل واره د مقهوري په نيت وايي نو لوی تر لوی دښمن په يې مقهور او مغلوب سي.

**الوهاب** جل جلاله: بېله بدلې ډېر ورکونکی، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصيب دادی چي د الله تعالى په لار کي بېله غرضه او بېله کوم عوض خپل سر او مال مصرف کړي.

**خاصيت**: کوم څوک چي د فقر او تنګدستی تکليف او مصيبت زغمي نو هغه ته پکار دي چي دغه مبارک نوم همېشه وايي نو الله تعالى به د هغوئ څخه داسي خلاصون ورکړي چي حيران به سي او څوک چي دغه مبارک نوم د ځان سره ليکلی ساتي نو همداسي اثر به يې تر لاسه کړي او څوک چي د څاښت د لمانځه وروسته د سجدې يو آيت ووايي او بيا په سجده کي د سر په ايښودو سره اووه واره دغه مبارک نوم ووايي نو هغه به د مخلوق څخه بې نيازه او بې پروا سي

او که خپل یو حاجت پوره کول غواړي نو په نیمه شپه کي دي د خپل سرای یا مسجد په غولي کي درې واره سجده وکړي بیا دي لاس پورته کړي او دغه مبارک نوم دي سل واره ووایي نو انشاءالله تعالی حاجت به یې خامخا پوره سي.

شاه عبدالغفور رحمة الله علیه فرمایي چي د رزق د پراختیا لپاره د څاښت په وخت کي دي څلور رکعته لمونځ وکړي او د لمانځه څخه د فارغه کېدو وروسته دي سجدې ته ولاړ سي او یو سل څلور واره دي یا وهاب ووایي که چیري دومره وخت ورسره نه وي نو بیا پنځوس واره دي یې ووایي انشاءالله تعالی په رزق کي به یې پراختیا په برخه سي.

**الرزاق** جل جلاله: رزق پیدا کونکی او مخلوق ته رزق رسونکی، رزق هغه شي ته وایي چي د هغه څخه ګټه پورته کړل سي او بیا د رزق دوه ډولونه دي ۱: ظاهري، ۲: باطني، باطني رزق هغه دی چي نفس او زړه ته فائده ځیني رسیږي لکه علوم، معارف او داسي نور، او ظاهري رزق هغه دی چي د هغه څخه بدن ته ګټه رسیږي مثلاً د خوراک او څښناک شیان او اسباب یعني جامې وغیره، د دغه نامه څخه د بنده نصیب دادی چي هغه پر دې خبره پوره یقین او اعتماد ولري چي د الله تعالی څخه پرته بل هیڅ ذات د رزق ورکولو وړ نه دی او هغه دي د رزق توقع یوازي د الله تعالی څخه لري او خپل ټول امور دي هغه ته سپاري او په خپل لاس او ژبه سره دي خلکو ته بدني او روحاني رزق رسوي یعني څوک چي محتاج او اړ وي پر هغوئ دي خپل مال مصرفوي او څوک چي بې علمه او ګمراه وي نو هغوئ ته علم ورکړي لارښوونه دي ورته وکړي او د هر مسلمان لپاره دي د خیر دعاوي کوي او داسي نور.

د یو عارف څخه پوښتنه وسوه چي ستا د خوراک او څښناک بندوبست څرنګه کیږي؟ هغه جواب ورکړ چي کله ما ته د خپل خالق عرفان حاصل سوی دی ما هیڅکله هم د خپل رزق فکر نه دی کړی، همداسي د یو عارف څخه پوښتنه وسوه چي قوت (غذا) څه شي دی؟ هغه وویل: حي الذي لا یموت، هغه پاک ذات یعني الله داسي ژوندئ دی چي د هغه لپاره مرګ نسته یعني د هغه ذکر.

**خاصیت**: څوک چي د صبح صادق راختلو څخه وروسته او د سهار د لمانځه مخکي د خپل کور په څلورو خواوو کي دغه مبارک نوم لس لس واره وایي په داسي توګه چي د راسته خوا څخه ویل پیل کړي او مخ د قبلې څخه ونه ګرځوي نو د هغه په کور کي به ناروغي او مفلسي پاته نه سي.

**الفتاح** جل جلاله: حکم کونکی، او ځینو ویلي دي چي د رزق او رحمت دروازې خلاصونکی، د دغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دادی چي د خلکو په مینځ کي د صلح او انصاف لپاره د فیصلې

کولو هڅه او سعي کوي او د مظلومانو مرسته کوي او د خلکو دنیوي او اُخروي اړتیاوي پوره کولو اراده ولري.

قشیري رحمه الله فرمایي چي کوم څوک په دې پوه سي چي الله تعالی د رزق او د رحمت د دروازو خلاصونکی، اسباب تیارونکی او د ټولو شیانو سمونکی دی نو اوس هغه ته د الله تعالی څخه پرته د بل چا سره خپل زړه نه لګول پکار دي.

**خاصیت**: څوک چي د سهار د لمانځه وروسته پر خپل سینه دواړه لاسونه کښېږدي او اویا واره دغه مبارک نوم وایي نو د هغه د زړه څخه خیري وځي او د زړه د باطن ډېر صفائي به یې په برخه سي.

**العلیم** جل جلاله: په ظاهر او باطن پوه، یو چا څومره ښه ویلي دي چي کوم څوک په دې پوه سي چي الله تعالی زما په حال ښه خبر دی نو اوس هغه ته پکار ده چي کله هغه الله تعالی په یو مصیبت کي اخته کړي نو پر هغه صبر وکړي او که هغه ته یو څه ورکړي نو پر هغه شکر ادا کړي او د هغه څخه د خپلو خطاوو د بخښني او معافی غوښتونکی وي.

په ځینو کتابو کي منقول دي چي الله تعالی خپلو بندګانو ته فرمایي که تاسو په دې پوهیږئ چي زه تاسو هر وخت وینم نو بیا تاسو ولي ما په لیدونکو کي تر ټولو حقیر ګڼئ یعني د نورو څخه تاسو بیریږئ او شرم کوئ چي ستاسو خرابي او جرم ونه ویني مګر د یو خرابی او جرم پر وخت زما څخه نه بیریږئ او نه شرم کوئ په داسي حال کي چي ستاسو پر یوه یوه حرکت زما نظر وي، ددې مطلب دادی چي (نعوذ بالله) زما په مقابله کي تاسو دنیاوالو ته ډېر اهمیت ورکوئ.

**خاصیت**: څوک چي دغه مبارک نوم ډېر وایي نو الله تعالی هغه ته خپل معرفت ډېر ورکوي او کوم څوک چي د لمانځه وروسته یا علیم الغیب سل واره وایي نو هغه صاحب کشف جوړیږي او که څوک غواړي چي هغه ته د یو پټ شي علم وسي نو هغه ته پکار دي چي د ماخستن د لمانځه وروسته په مسجد کي سل واره دغه نوم ووایي بیا بیده سي انشاء الله تعالی د هغه شي حقیقت به ورته ښکاره سي.

**القابض** جل جلاله: د بندګانو روزي یا زړه تنګونکی او د هغوئ روح قبض کونکی.

**خاصیت**: که یو څوک دغه مبارک نوم تر څلوېښت ورځو پوري هره ورځ د ډوډۍ یا بل شي پر څلورو ګولو ولیکي او وه یې خوري نو انشاء الله تعالی هغه به د لوږي او د قبر د عذاب څخه په امان کي وي.

**الباسط** جل جلاله: د بندګانو په روزي کي پراختیا کونکی یا د هغو زړه پراخونکی، ددغه دواړو نومو (القابض الباسط) څخه د بنده نصیب دادی چي هغه نه د یو مصیبت او تکلیف په وخت

کي نا امیده سي او نه د هغه د بخښني او ورکړي پر وخت بې فکري اختیار کړي او تنګي د هغه د عدل نتیجه وګڼي او پر هغه دي صبر وکړي او پراخي او وسعت دي د هغه د فضل ثمره وګڼي او پر هغه دي شکر کونکی سي .

قشیري رحمة الله علیه وایي چې دغه دواړه کیفیته (یعني د زړه تنګوالی او پراخي) د عارفانو پر زړه جاري کیږي کله چې د الله تعالی بیره پر غالبه سي نو د هغوئ زړه تنګ سي او کله چې د رحمت امید پر جاري سي نو د هغوئ زړه پراخ سي .

د حضرت جنید بغدادي رحمة الله علیه په اړه منقول دي چې هغه وفرمایل خوف زما زړه تنګوي ، امید زما زړه پراخوي ، حق ما جمع کوي او مخلوق ما منتشر کوي او د بنده د شان تقاضا داده چې د تنګۍ او پریشانۍ په حالت کي د ناکرارۍ څخه پرهیز وکړي او د وسعت او پراخۍ پر وخت د بې ځایه خوشحالۍ او بې ادبۍ څخه پرهیز وکړي چې د دغه شیانو څخه لوی لوی خلک بیریږي

**خاصیت** : کوم څوک چې سهار وختي د لاس په پورته کولو سره دغه مبارک نوم لس واره وایي او بیا خپل لاسونه پر مخ را تېر کړي نو هغه ته به هیڅکله دا ضرورت نه محسوس کیږي چې هغه چا ته د خپل یو حاجت پوره کولو لپاره خواست وکړي .

**الخافض** جل جلاله : د کافران خوار او ذلیل کولو سره یا هغوئ د خپل دربار څخه په لیري کولو سره کښته کونکی .

**خاصیت** : څوک چې درې روژې ونیسي او په څلورمه ورځ په یو ځای کي دغه مبارک نوم اوویا واره ووایي نو پر د ښمنانو به بریالیتوب تر لاسه کړي .

**الرافع** جل جلاله : د مؤمنانو مرسته کونکی یا هغوئ ته د خپل دربار په قرب ورکولو سره لوړونکی، د دغه دواړو نومو (الخافض او الرافع) څخه د بنده نصیب دادی چې هغه دي پر خپل هیڅ حالت باندي هم اعتماد نه کوي او نه دي پر خپل علومو او اعمالو باندي پر یو شي باور کوي او هغه شي دی کښته او مغلوب کړي کوم چې الله تعالی د هغه د کښته کولو حکم کړی دی مثلا نفس او خواهشات او هغه شي دي لوړ کړي کوم چې الله تعالی د هغه د لوړولو حکم کړی دی لکه زړه او روح، نقل سوي دي چې یو سړی خلکو په هواء کي په الوتلو ولیدی نو د هغه څخه یې پوښتنه وکړه چې ته دغه مرتبې ته څرنګه ورسیدی ؟ هغه وویل: ما خپل هوا یعني خواهشات کښته وغورځول نو الله تعالی د فضاء هواء ما ته مسخره کړه .

**خاصیت** : کوم څوک چې دغه مبارک نوم د یخ په موسم کي د شپې په وخت کي یا په غرمه کي دوه سوه واره ووایي نو الله تعالی به هغه په مخلوق کي بزرګ او بې نیازه کړي .

**المعز** ﷻ : عزت ورکونکی .
**خاصیت** : کوم څوک چي دغه نوم مبارک د دوشنبې په شپه یا د جمعې په شپه یوسل او څلوېښت ۱۴۰ واره ووایي نو د مخلوق په نظر کي به د هغه هیبت او شوکت پیدا سي او هغه به د الله تعالی څخه پرته د بل چا په خوف کي اخته نه سي .
**المذل** ﷻ : ذلت ورکونکی. ددغه دواړو مبارکو نوموُ (المعز او المذل) څخه د بنده نصیب دادی چي هغه به هغه خلک عزیز ګڼي کوم چي الله تعالی د علم او معرفت په وجه عزیز کړي دي او هغه خلک به ذلیل او خوار ګڼي کوم چي الله تعالی د کفر او ضلالت په سبب ذلیل او خوار ګرځولي دي .
**خاصیت** : که یو څوک د یو ظالم او حاسد څخه بیرېږي نو هغه ته پکار دي چي دغه مبارک نوم پنځه اویا ۷۵ واره ووایي او د هغه وروسته دي سجده وکړي او د الله تعالی په دربار کي دي داسي ووایي چي اې الله ! د فلاني ظالم یا حاسد د شر څخه ما ته امان راکړې نو الله تعالی به هغه ته امان ورکړي .
**السمیع** ﷻ : اوریدونکی، **البصیر** ﷻ : لیدونکی، په دغه مبارکو نومو کي د بنده نصیب دادی چي هغه د شریعت خلاف ویلو، اورېدلو، لېدلو او کولو څخه پرهیز وکړي او الله تعالی پر خپلو ویناوو او کړنو باندي حاضر او ناظر وګڼي .
امام غزالي رحمۃ اللہ علیہ فرمایي چا چي د غیر الله څخه هغه شی پټ کړ کوم چي یې د الله تعالی څخه نه پټوي نو هغه لکه د الله تعالی نظر چي حقیر وګڼی او کوم څوک چي په دې پوهېدو سره یو ګناه وکړي چي الله تعالی هغهویني نو هغه لوی جرات وکړ، او چا چي په دې ګمان سره یو ګناه وکړه چي الله تعالی هغه نه ویني نو هغه لوی کفر وکړ او ډېر لوی کفر یې وکړی، ځکه د تعلیق بالمحال په توګه ویل کیږي که ته د خپل خدای یو جرم کوې نو په داسي ځای کي یې وکړه چیري چي هغه تا نه ویني ، مطلب دادی چي داسي هیڅ یو ځای نسته چي د الله تعالی د نظر څخه پټ وي او کله چي داسي ځای نسته چیري چي خدای تا نه ویني نو بیا ګناه مه کوه .
**خاصیت** : کوم څوک چي د غه مبارک نوم (السمیع ﷻ) د پنجشنبې په ورځ د څاښت د لمانځه وروسته پنځه سوه واره ووایي او د یو قول مطابق هره ورځ د څاښت د لمانځه وروسته سل واره ووایي او د ویلو په مینځ کي هیڅ خبري ونه کړي او د هغه وروسته چي کومه دعاء وغواړي هغه به قبوله سي او که یو څوک د سهار د سنت او فرض لمانځه په مینځ کي دغه نوم (البصیر ﷻ) په پوره او صحیح عقیده سره سل واره ووایي نو انشاء الله تعالی هغه به د الله تعالی د مهربانۍ

سره خاص سي.

**الحکم** جلاله: حکم کوونکی چي د هغه حکم هیڅوک نه سي رد کولای، ددغه نامه څخه د بنده نصیب دادی چي کله هغه په دې پوه سي چي الله تعالی داسي حاکم دی چي د هغه حکم او فیصله هیڅوک منع کولای نه سي نو اوس هغه ته پکار ده چي د هغه هر حکم ومني او د هغه د مشیت او قضا تابعدار سي کوم څوک چي د هغه په مشیت او قضا راضي نه سي نو الله تعالی به پر هغه خپل مشیت او خپله فیصله په زور جاري کړي او کوم څوک چي په رضا او د زړه په خوشحالۍ سره هغه ومني نو الله تعالی به یې په خپل رحمت او کرم سره ونازوي او د خوشحالۍ او اطمینان ژوند به تېروي او هغه به د غیر الله په مخکي خپل فریاد چا ته نه کوي.

**خاصیت**: څوک چي دغه مبارک نوم د جمعې په شپه او د یو قول مطابق په نیمه شپه یا غرمه کي دومره زیات ووایي چي بې هوښه سي نو الله تعالی به د هغه باطن د پټو رازو خزانه وګرځوي.

**العدل** جلاله: انصاف کوونکی، په دې باندي د پوهېدو وروسته چي الله تعالی انصاف کوونکی دی بنده ته پکار دي چي د هغه د احکامو او فیصلو سره په ځان کي خوف او تنګي پیدا نه کړي بلکه دا یقین ولري چي هغه زما په اړه څه فیصله کړې ده هغه عین انصاف دی نو پر هغه باندي د توکل او باور په ذریعه دي راحت او اطمینان پیدا کړي او څه چي الله تعالی هغه ته ورکړي دي هغه دي پر ځان باندي د مصرف کولو څخه نه منع کوي چیري چي مصرف کول د شریعت او عقل له مخي مناسب وي او د هغه د عدل څخه دي وبیرېږي او د هغه د فضل او کرم دي امیدوار وي او په ټولو کارو کي دي د افراط او تفریط څخه پرهیز وکړي او میانه روي دي اختیار کړي.

**خاصیت**: څوک چي دغه مبارک نوم د ډوډۍ پر شلو ټوټو باندي ولیکي او وه یې خوري نو الله تعالی به ټول مخلوق د هغه لپاره مسخر کړي.

**اللطیف** جلاله: پر خپلو بندګانو باندي نرمي کوونکی او باریک بین چي د هغه لپاره نژدې او لیري یو ډول دي، ددغه نامه څخه د بنده نصیب دادی چي هغه د دین او دنیا په امورو کي غور او فکر وکړي او په نرمۍ سره خلک د حق لاري ته را وبلي.

**خاصیت**: کوم چا ته چي د معیشت اسباب تیار نه وي او په فقر او مفلسۍ کي اخته وي یا په غربت کي وي یا ناروغ وي او څوک یې علاج نه کوي یا د هغه لور وي چي څوک یې په نکاح نه غواړي نو هغه ته پکار دي چي اول په ښه ډول اودس وکړي بیا دوه رکعته نفل وکړي او د غه مبارک نوم د خپل مقصد په نیت سره سل واره ووایي انشاء الله تعالی د هغه مشکل به الله

تعالی اسان کړي ، همدارنګه د انجونو د نصیب خلاصولو لپاره د ناروغیو څخه د روغتیا تر لاسه کولو لپاره او د اسبابو د تر لاسه کولو لپاره دغه مبارک نوم سل واره ویلو باندي همېشتوب اختیارول پکار دي، ددغه نامه په اړه د پیرانو عمل دادی چي د هر دیني او دنیوي کار لپاره په یو خالي ځای کي ددغه نوم د دعاء د شرائطو سره شپاړلس زره درې سوه یو ځلوېښت (۱۶۳۴۱) واره ویل کیږي انشاء الله تعالی مراد به یې تر لاسه سي .

**الخبیر** جل جلاله : د زړه د خبرو او د ټولو شیانو خبر لرونکی، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دادی چي کله هغه په دې پوه سي چي الله تعالی زما د زړه رازونو خبر دی نو اوس هغه ته پکار ده چي هغه هم په یاد ولري او د هغه د یاد په مخکي نور یادونه هیر کړي ، د ضلالت د لارو څخه پرهیز وکړي پر خپل ذات باندي ریارکاي پریږدي د باطن په اصلاح کي دي بوخت سي او غفلت دي نه کوي او ددین او دنیا د غوره او ښو خبرو خبر لرونکی دي وي .

**خاصیت** : کوم څوک چي د نفس اماره په جال کي راګېر وي نو هغه دي دغه مبارک نوم ډېر وایي انشاء الله تعالی خلاصون به تر لاسه کړي .

**الحلیم** جل جلاله : بردبار چي مؤمن ته په عذاب ورکولو کي تلوار نه کوي بلکه هغه ته مهلت ورکوي چي په توبه کولو سره خلاصون تر لاسه کړي، ددغه مبارک نامه څخه دبنده نصیب دادی چي د بدو خلکو پر تکلیف رسولو باندي صبر وکړي ، تر خپل ځان لاندي کسانو ته په سزا ورکولو کي تامل وکړي او د غصب او غصې څخه لیري اوسي او د حلم هغه مرتبې ته د رسیدو هڅه وکړي که چیري یو څوک د هغه سره بد وکړي نو هغه دي ورسره نیکي کوي .

**خاصیت** : که یو څوک دغه مبارک نوم پر کاغذ باندي ولیکي او پریولي او هغه اوبه په کښت یا درختي کي واچوي نو د تاوان څخه به خوندي سي او په هغه کي به برکت راسي او د هغه څخه به پوره ثمره تر لاسه سي .

**العظیم** جل جلاله : په ذات او صفاتو کي د شعور د حد څخه هم زیات بزرګ او لوړ ، یعني د خپل ذات او صفاتو په اعتبار د هغه بزرګي، لوئي او عظمت دومره زیات دی چي د انسان عقل او د هغه فهم د هغه د عظمت په مخکي کونین هم حقیر وګڼي، د دنیا لپاره دي د هیچا په مخکي سر نه کښته کوي خپل نفس دي حقیر وګڼي او الله تعالی چي د کومو شیانو د کولو حکم کړی دی هغه دي وکړي او د کومو شیانو څخه چي د ځان ساتني حکم کړی دی د هغه څخه دي ځان وساتي او کوم شیان چي الله تعالی ته خوښ دي په هغو کي د بوختیا سره دي خپل نفس ذلیل کړي چي د الله تعالی رضا ورته په برخه سي .

**خاصیت** : کوم څوک چي دغه مبارک نوم همېشه وايي نو هغه به د مخلوق په نظر کي عزيز او عزتمند سي .

**الغفور** ﷻ : ډېر بخښونکی، ددغه نامه څخه د بنده نصيب دادی چي په شپه او ورځ کي په خاصه توګه په سهار او ماښام کي استغفار پر ځان لازم کړي او هغه چا ته بخښنه او عفوه وکړي کوم چي ده ته تکليف رسوي .

**خاصیت** : که يو چا ته ناروغي وي مثلا تبه، د سردرد او داسي نور نو هغه ته پکار دي چي دغه نوم پر کاغذ وليکي او د هغه نقش دي پر ډوډۍ باندي په جذب کولو سره وخوري نو الله تعالى به شفاء او خلاصون ورکړي او کوم څوک چي دغه مبارک نوم ډېر وايي نو د هغه د زړه تياري به ليري سي ، په يو حديث کي نقل سوي دي چي کوم څوک سجده وکړي او په سجده کي (يا رب اغفرلي) اې زما پروردګاره! ما وبخښې، درې واره وايي نو الله تعالى به د هغه مخکني او وروستني ګناهونه و بخښي .

کوم څوک چي د سر په درد اخته وي يا بله ناروغي يې په بدن کي وي نو هغه ته پکار دي چي د يا غفور مقطعات دي په درې واره ليکلو سره وخوري انشاء الله تعالى شفاء به تر لاسه کړي .

**الشکور** ﷻ : قدر دان او پر لږ عمل باندي ډېر ثواب ورکونکی، ويل کيږي چي يو سړی (چي مړ سوی وو) په خوب کي وليدل سو نو د هغه څخه پوښتنه وسوه چي ستا سره الله تعالى څه معامله وکړه ؟ هغه سړي وويل کله چي الله تعالى زما سره حساب وکړ نو زما د نيکيو پله سپکه سوه او د ګناهو پله پر غالبه سوه ، ناڅاپه د نيکيو په پله کي يوه کڅوړه را اېله سوه چي په هغه سره پله درنه سوه ما چي دا وليدل نو وه مي ويل چي دا څه شي دي نو ما ته وښودل سوه چي دا هغه يو موټ خاوره ده چي تا د خپل يو مسلمان ورور پر قبر اچولې وه ، ددې څخه معلومه سوه چي د الله تعالى فضل او کرم پر څومره معمولي عمل باندي هم بنده په بې پايه او زيات ثواب او رحمت نازوي ، ددغه نامه څخه د بنده نصيب دادی چي د الله تعالى شکر دي ادا کړي په دې توګه چي ټول نعمتونه د هغه په ګټلو سره خپل هر اندام د هغه په کار کي بوخت وساتي د کوم لپاره چي هغه الله تعالى پيدا کړي دي ، د خلکو سره دي ښه چلن کوي او د هغوئ شکر دي ادا کوي ځکه چي په حديث شريف کي راغلي دي : لا يشکر الله من لا يشکر الناس: هغه څوک د الله تعالى شکر نه ادا کوي څوک چي د خلکو شکر نه ادا کوي .

**خاصیت** : د چا چي ژوند تنګ وي يا د هغه د سترګو په رڼا او د زړه په نور کي کمي پيدا سوې وي نو د دغه مبارک نوم دي يو څلوېښت واره پر اوبو باندي په دم کولو سره وڅښي او پر سترګو

دي يې وموږي انشاء الله تعالى شفاء به تر لاسه کړي.

**العلي** ﷻ : د لوړي مرتبې خاوند، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصيب دادی چي د الله تعالی د ظاهري او باطني اطاعت او عبادت په ذريعه خپل نفس ذليل کړي او خپل ټول توان د علم او عمل په تر لاسه کولو کي مصرف کړي تر دې چي هغه تر ټولو لوړ او عالي کمالاتو او مرتبو ته ورسيږي.

په حديث شريف کي راغلي دي چي الله تعالى اعلى امور خوښوي ځکه چي ددې په وجه بنده لوړو مرتبو ته رسيږي او ادنا امور نه خوښوي ځکه د حضرت علي ﷺ دا مقوله ده چي لوړ همتي د ايمان څخه پيدا کيږي.

**خاصيت** : کوم څوک چي دغه مبارک نوم همېشه وايي يا يې د ځان سره ليکلی ساتي که هغه بې قدره وي نو د لوړي مرتبې خاوند به سي او که په فقر او مفلسۍ کي اخته وي نو شتمن به سي او که د سفر په تکليفو کي راګير وي نو خپل خواږه هيواد ته به ستون سي.

**الكبير** ﷻ: لوی، داسي لوی چي د هغه په لويي کي څوک سيال نه وي، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصيب دادی چي د هغه لويي همېشه په ياد ولري تر دې چي د هغه څخه ماسوا د بل چا لويي بالکل هېره کړي، د علم او عمل په ذريعه خپل نفس د پوره جوړولو هڅه وکړي چي د هغه د کمال او فيض څخه نور خلک مستفيد سي په تواضع او انکساري اختيارولو کي مبالغه کوي او د خلکو خدمت او د الله تعالى عبادت پر ځان لازم وګڼي.

**خاصيت** : څوک چي دغه مبارک نوم ډېر وايي نو هغه به بزرګ او د لوړي مرتبې خاوند وي، که حاکمان پر دغه نامه همېشتوب وکړي نو پر خلکو به يې رعب او دبدبه غالبه وي او د هغوئ ټول کارونه به په ښه ډول سر ته رسيږي.

**الحفيظ** ﷻ: عالَم د آفاتو او تاوانو څخه ساتونکی، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصيب ادی چي هغه خپل اندامونه د ګناهونو څخه خوندي وساتي او په خپل ټولو کارو کي د الله تعالى پر فيصلو او د هغه پر مشيت اکتفاء وکړي او د هغه پر قضا او قدر راضي سي.

د يو بزرګ څخه دا قول نقول سوي دي چي الله تعالى د کوم چا اندامونه محفوظ وساتي نو دهغه زړه يې محفوظ وساتي او د چا زړه چي يې محفوظ وساتي نو د هغه رازونه يې محفوظ وساتل.

نقل سوي دي چي يوه ورځ ناڅاپه د يو بزرګ او صالح سړي نظر پر يو منعه سوي شي ولوېدی نو هغه سمدستي د الله تعالى په دربار کي عرض وکړ چي اې الله! ما ته د خپل بنائي د

بقاء ارزو څکه وه چي په ستا په عبادت کي په کار راسي اوس ستا د حکم د مخالفت سبب وګرځېدی نو اې الله ! دغه بنائي زما څخه واخلې نو د هغه بنائي ولاړه او ړوند سو ، هغه به د شپې لمونځ کوی ، د سترګو ړندېدو وروسته هغه پرېشانه سو تر دې چي هغه د اوداسه لپاره د اوبو اخيستو هم محتاج سو اوس چي اوبه نه سي را اخيستلای نو په لمانځه او عبادت کي خنډ پيدا سو نو بيا يې الله تعالى ته عرض وکړ چي اې الله ! ما خپله ويلي وه چي زما بنائي واخله مګر اوس په شپه کي ستا د عبادت لپاره ما ته ددې ضرورت دی ، ددې وروسته الله تعالى بيرته بنائي ورکړه او هغه سم سو .

**خاصيت** : که يو څوک دغه مبارک نوم وليکي او پر راسته موټ يې وتړي نو هغه به د ډوبېدو، سوځېدو، پيريانو او بد نظر وغيره څخه خوندي وي .

**المقيت** ﷻ: د بدن او روح لپاره غذا پيدا کونکی او هغه ته قوت ورکونکی، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصيب دادی چي کله په دې پوه سي چي هغه غذا پيدا کونکی دی او قوت ورکونکی دی نو اوس هغه ته پکار دي چي د هغه د الله تعالى د ذکر په مخکي د خپل غذا ذکر يعني د خپل غذا فکر هېر کړي ځکه چي حقيقي غذا خو د هغه ذکر او د هغه ياد دی.

څرنګه چي د حضرت سهل څخه نقل سوي دي چي د هغه څخه د قوت په باره کي پوښتنه وسوه نو هغه وفرمايل چي هغه حي الذي لا يموت، داسي ژوندی دی چي نه مړ کيږي، د هغه ذکر دی او بنده ته پکار دي چي هغه غذا او قوت د خپل بادار څخه پرته د بل چا څخه و نه غواړي، د الله تعالى ارشاد دی : وان من شئ الا عندنا خزائنه وما ننزله الا بقدر معلوم، داسي هيڅ شی نسته چي د هغه زموږ سره خزانې نه وي او موږ هغه د خپل اندازې سره سم نازلوو .

بنده ته پکار دي چي هغه خپل هر متعلق ته غذا ورکړي چي د هغه مستحق وي نورو ته ګټه رسول ، ګمراهانو ته هدايت کول او په لوږو باندي خوراک خوړل د هغه امتياز وګرځي .

قشيري رحمة الله عليه فرمايي چي د قوت مختلف انواع دي يو خو دا ظاهري غذا او خوراک چي پر هغه د انسان د ژوند دار او مدار دی مګر ځيني بندګان داسي دي چي د الله تعالى د عبادت توفيق د هغوئ د نفس غذا او د مکاشفات صدور د هغوئ د زړه غذا او همېشه مشاهدات د هغوئ د روح قوت ګرځوي ، الله تعالى چي خپل يو نيک بنده په خپل اطاعت او عبادت کي بوخت کړي او همداسي يو بنده چي د خپل نفساني خواهشاتو څخه په قطع نظر کولو سره په پوره حضور او اخلاص يوازي خپل مولا ته متوجه کيږي نو الله تعالى د هغه لپاره يو داسي څوک تياکي چي د هغه خبر اخلي او خدمت يې کوي او د هغه په ذريعه د هغه د ژوند ضروريات

په خپله پوره کیږي مگر کله چي یو بنده د نفساني خواهشاتو د تکمیل په لور متوجه کیږي نو الله تعالی د هغه د خواهش پوره کېدل هغه ته پریږدي او د هغه څخه د خپل مرستي سایه پورته کوي.

**خاصیت** : که یو څوک یو غریب سړی ووینئ یا په خپله غریب وي یا یو کوچنی د خپلو بدو کارو څخه نه منع کیږي یا ډېر ژاړي نو پر یو خالي پیاله یا بل شي باندي دي دغه مبارک نوم اووه واره دم کړي او بیا دي په هغه پیاله کي اوبه واچوي او په هغه دي یې وڅښي یا چا ته چي ضرورت وي په هغه دي یې وڅښي ، همدارنگه که چیري یو روژه نیونکي ته د هلاکت بېره وي نو دغه مبارک نوم دی په یوه گل باندي ووایي او بوی دي یې کړي انشاء الله تعالی هغه ته به غذا او تقویت تر لاسه سي او د روژې نیولو وړ به سي.

**الحسیب** ﷻ: په حال کي کفایت کونکی یا د قیامت په ورځ حساب اخیستونکی، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دادی چي د اړو کسانو کفایت کونکی یعني د هغوئ اړتیاوي پوره کونکی سي او د خپل نفس محاسبه وکړي.

قشیري رحمة الله علیه فرمایي چي د الله تعالی د بندگانو کفایت کول دادی چي د هغوئ په هر حال کي او هر کار کي مرسته کونکی وي او د هغوئ هر کار پوره کوي کله چي بنده په دې پوه سي چي الله تعالی زما لپاره کافي او زما هر مراد او زما هر کار پوره کونکی دی نو اوس هغه ته پکار ده چي هغه پر هیڅ یو دنیوي شي باندي باور ونه کړي بلکه هغه ته د خپل مقصد په تر لاسه کولو کي هیڅ دنیوي شي څخه د ضرورت پر وخت فائده ونه رسیږي کله چي هغه ته پر هغه شي باندي باور هم وي نو د هغه څخه نه پریشان کیږي بلکه دا یقین لري چي الله زما په مقدر کي څه فیصله کړې وي هغه به هر صورت کي کیږي که چیري په قسمت کي د مقصد تر لاسه کېدل لیکلي وي نو هغه به خامخا تر لاسه کیږي که څه هم دنیوي اسباب مایوس کونکي وي او که په قسمت کي د مقصد تر لاسه کېدل نه وي لیکلي نو هغه به نه تر لاسه کیږي که څه هم دنیاوي اسباب هر څومره زورور وي ، او بیا دا چي کوم څوک د الله تعالی له خوا پر پېښېدونکي شي باندي که چیري مطلوب نه وي اکتفاء وکړي نو الله تعالی به هغه سړی پر هغه شي راضي او مطمئن کړي کوم چي د هغه لپاره فیصله سوې وي او ددې اثر به دا وي چي داسي بنده د خپل دغه وصف په وجه د خپل مطلوب عدم حصول د هغه د حصول په مقابله کي او فقر د غناء په مقابله کي به رضا او رغبت اختیار او قبول کړي او په سبب د مشاهده او تصرف د بادار د حصول مقصد اسباب او ذرائع نه تیارېدو باندي مطمئن سي.

**خاصیت** : کوم څوک چې د غله، حاسد، بد همسایه او دښمن د شر څخه ویریږي یا تنګیږي، زړه څخه پریشان وي نو هغه دې تر یوه اونۍ پورې سهار او ماښام سل ځله حسبي الله الحسیب ووایي الله تعالی به یې ددغه شیانو د شر او پریشانۍ څخه خوندي کړي.

**الجلیل** ﷻ : بزرګ قدر، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دا دی چې هغه د صفتونو په ذریعه د خپل نفس په ښکلي کولو سره د لوړې مرتبې خاوند شي.

**خاصیت** : که یو څوک دغه مبارک نوم په مشک او زعفران سره په لیکو د خپل ساتنې ودیې خوري نو ټول خلک به د هغه تعظیم او عزت کول شروع کړي.

**الکریم** ﷻ : ډېر سخي او ډېر ورکونکی چې د هغه ورکول هیڅکله نه ختمیږي او نه د هغه خزانې خالي کیږي، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دا دی چې هغه د الله تعالی مخلوق ته بیله وعدې مال او صدقه ورکوي او د هغوی هر ډول مرسته کوي او د خپلو تکلیفونو رسولو څخه پرهیز کوي.

**خاصیت** : څوک چې خپل بستري ته په رسیدو سره دغه مبارک نوم تر هغه پورې وایي چې په ویلو ویلو کې ویده شي نو د هغه لپاره ملائکي دعاء کوي او وایي چې: کرمک الله تعالی دې تا بزرګ کړي او ته دې مکرم او معزز شي. ویل کیږي چې حضرت علي رضي الله عنه دغه مبارک نوم ډېر وایه په دې وجه هغه ته کرم الله وجهه ویل کیږي.

**الرقیب** ﷻ : د هر شي ساتنه کونکی، او ځینو ویلي دي چې د بندګانو په احوالو او عملونو خبردار، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دا دی چې هغه په هر وخت او هر حال کې په الله تعالی باندې نظر ولري د هغه څخه پرته د بل چا څخه سوال و نه کړي چې د غیر الله ته التفات ضرر سي او الله تعالی چې هغه د چا پر ساتنې ټاکلی دی د هغوی په ساتنې کې هیڅ کوتاهي و نه کړي.

په حدیث شریف کې راغلي دي چې تاسو ټول راعي یعني ساتونکي یاست او ستاسو څخه به د خپل رعیت په باره کې محاسبه کیږي یعني د چا پر ساتنې او خبر اخیستلو چې تاسو ټاکل شوي یاست د هغوی د ساتنې او خبر اخیستنې حال به ستاسو څخه پوښتل کیږي چې تاسو خپل فرض تر کومه حده ادا کړی دی.

قشیري رحمه الله وایي چې ددغه طائفې یعني اولیاء الله په نزد د مراقبې حقیقت دا دی چې بنده بندې په زړه سره د الله تعالی یاد غالب وي او دا یقین وي چې الله تعالی زما په حال خبر دی نو هغه دې په هر حال کې هغه ته رجوع کوي او هر وخت دې د هغه د عذاب څخه ویریږي او

صاحب مراقبه د الله تعالى د هيبت له کبله د شريعت خلاف خبري تر هغه چا زياتي پريږدي کوم چي د الله تعالى د بيري گناه پريږدي او کوم څوک چي د خپل زړه رعايت کوي نو د هغه هيڅ لمحه د الله تعالى د ياد او د هغه د اطاعت څخه خالي نه وي ځکه چي هغه ښه پوهيږي چي الله تعالى به زما څخه د يوې يوې لمحې او د يوه يوه عمل حساب اخلي که څه هم هغه کوچنى عمل وي يا لوى عمل وي.

د الله تعالى د يو ولي په باره کي نقل سوي دي چي د هغه د وفات وروسته هغه يو چا په خوب کي وليدى نو د هغه څخه يې پوښتنه وکړه چي الله تعالى ستا سره څه معامله وکړه؟ هغه وويل: الله تعالى زه و بخښلم او پر ما يې خپل احسان وکړ مگر پوره حساب يې واخيستى تر دې چي زما څخه يې د هغه عمل مؤاخذه هم وکړه چي په کومه ورځ زما روژه وه نو کله چي د روژه مات وخت راغلى نو ما د يو ملگري د دوکان څخه د غنم يو دانه را پورته کړه او بيا مي ماته کړه، ما ته سمدستي خيال راغلى چي د غنم دغه دانه زما په ملکيت کي نه وه په دې خيال سره ما هغه دانه پر هغه ځاى کښېښودل اوس چي زما حساب واخيستل سو نو د هغه غنم د ماتولو په قدر نيکي زما د نيکيو څخه واخيستل سوه.

د فکر کولو خبره ده چا ته چي دا معلومه سي چي هغه ته يوه ورځ د الله تعالى په دربار کي د ددومره کوچنۍ خبري حساب هم ورکول دي نو ايا هغه به دا وزغمي چي خپل عمر په باطل شيانو کي ضائع کړي او خپل وخت په کوتاهيو او غفلت کي تېر کړي.

په حديث شريف کي راغلي دي چي تاسو د خپلو اعمالو په خپله محاسبه کوئ تر دې مخکي چي ستاسو څخه ستاسو د اعمالو حساب واخيستل سي.

**خاصيت**: کوم څوک چي پر خپل ښځي، اولاد او يا مال باندي دغه مبارک نوم په اووه واره ويلو سره د هغه پر څلورو خواوو دم کړي نو هغوئ به د ټولو دښمنانو د آفتو او بيري څخه بې خوفه سي.

**المجيب** جل جلاله: د عاجزانو دعاء قبلونکى او د بلونکي جواب ورکونکى، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصيب دادى چي هغه په اوامرو او نواهي کي د الله تعالى فرمانبرداري وکړي او اړو کسانو اړتياوي پوره کړي.

**خاصيت**: څوک چي دغه مبارک نوم ډېر وايي او بيا دعاء وکړي نو د هغه دعاء به ژر قبليږي او که د ځان سره يې ليکلى وساتي نو الله تعالى به يې په امان کړي.

**الواسع** جل جلاله: د پراخ علم والا او په خپل نعمتونو سره ټول پالونکى، ددغه مبارک نامه څخه د

بنده نصیب دادی چي په خپل علم کي ، په خپل سخاوت کي او په معارف او اخلاق کي د پراختیا پیدا کولو هڅه وکړي ، د ټولو انسانانو سره په ورین تندي مخامخ سي او د دنیوي مقصدو په تر لاسه کېدو کي فکرمند نه سي .

**خاصیت** : کوم څوک چي دغه مبارک نوم ډېر ډېر وایي نو الله تعالی به هغه د قناعت او برکت په دولت سره ونازوي .

**الحکیم** ﷻ : دانا او د حکمت خاوند ، د دغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دادی چي په کتاب الله کي ذکر سوي صفات حمیده خپل کړي او د هغه سره د تعلق پیدا کولو هڅه وکړي او په خپل ټولو کارو کي د حکمت څخه کار واخلي او هغه ته پکار دي چي د ناپوهۍ څخه پرهیز وکړي او هیڅ یو کار د الله تعالی د رضا پرته ونه کړي .

د ذوالنون مصري رحمه الله په باره کي ویل کیږي چي هغه وفرمایل : ما واورېدل چي د لوېدیځ په سیمه کي یو سړی د خپل علم او حکمت په وجه ډېر مشهور او معروف دی نو زه د هغه لیدني ته ورغلم ، زه څلوېښت ورځي د هغه پر دروازه پروت وم او کتل مي چي هغه به د لمانځه پر وخت مسجد ته راتلی نو حېران او پرېشان به ګرځیدی او ما ته یې هیڅ توجه نه کول ، د دغه کړني څخه زه تنګ سوم نو یوه ورځ مي پوښتنه وکړه چي محترمه زه د څلوېښتو ورځو څخه دلته پروت یم مګر ته ما ته هیڅ توجه نه کوې او نه زما سره خبري کوې ما ته یو نصیحت وکړه او د حکمت خبري را ته وښیه چي هغه په یاد کړم ، هغه وویل ایا ته به په هغه عمل وکړې که یا؟ ما وویل هو ، که الله تعالی توفیق راکړی نو خامخا به عمل په وکړم ، بیا هغه د حکمت او موعظت څخه ډکي دغه خبري ما ته وکړې چي دنیا صحیح مه ګڼه ، فقر غنیمت وګڼه ، بلا نعمت وګڼه ، منع یعني نه تر لاسه کېدل عطا یعني تر لاسه کېدل وګڼه ، خواري عزت وګڼه ، مرګ حقیقي ژوند وګڼه ، اطاعت او عبادت د خپل عزت ذریعه وګڼه او توکل خپل معاش وګرځوه .

از سینه محو کن همه نام و نشان غیر الا کسي که مي دهد از وی نشان ترا

**خاصیت** : که یو چا ته په یو کار کي پریشاني وي او هغه نه پوره کیږي نو هغه ته پکار دي چي دغه مبارک نوم همېشه وایي انشاء الله تعالی کار به یې تر سره سي .

**الودود** ﷻ : د فرمانبردار دوست یا د اولیاء الله په زړو کي محبوب ، د دغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دادی چي هغه د الله تعالی د مخلوق لپاره هغه شی خوښ کړي کوم چي د ځان لپاره خوښوي او پر هغوئ تر خپل وس پوري احسان کوي ، د رسول الله ﷺ ارشاد دی : په تاسو کي یو څوک تر هغه وخته د کامل مؤمن ویلو وړ نه دی تر څو چي د خپل مسلمان ورور لپاره هغه

شی خوښ نه کړي کوم چي د ځان لپاره خوښوي.
د الله تعالی دوست کېدل دادي چي هغه پر خپل بندګانو باندي رحمت نازل کړي د هغوئ تعریف کوي هغوئ ته نیکي رسوي او الله تعالی د بندګانو دوست کېدل دادي چي د هغه تعظیم وکړي او په خپل زړه کي د هغه هیبت او لوئي ولري، په حدیث شریف کي راغلي دي چي الله تعالی فرمایي: زما په دوستانو کي لوی دوست هغه دی چي بېله ورکړي زما عبادت کوي یعني د بخښني او ورکړي په امید نه بلکه زما د رضا او خوښۍ لپاره عبادت کوي.
**خاصیت** : که د ښځي په خاوند کي لاتعلقي پیدا سي او تعلقات یې خراب سي نو دغه مبارک نوم دي د خوراک پر یو شي باندي زر واره دم کړي او په هغه دي وخوړل سي انشاء الله تعالی په مینځ کي به یې اتفاق او الفت پیدا سي او که په دواړو یې وخوري نو ډېره ښه ده.
**المجید** ﷻ : بزرګ او شریف ذات، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب هغه د یکوم چي د العظیم په اړه تېر سوی دی.
**خاصیت** : که یو څوک د ابرص، جزام یا بلي ناروغۍ باندي اخته وي نو هغه ته پکار دي چي هغه د ایام بیض په ورځو کي روژې ونیسي او د روژې ماتولو په وخت کي دغه نوم ډېر ډېر ووایي او پر اوبو باندي په دم کولو سره یې وڅېښي انشاء الله تعالی شفاء به تر لاسه کړي او کوم څوک چي خپل سیالانو او هم جنسو ته د عزت او احترام په نظر نه سي کتلای نو هغه دي هر سهار دغه مبارک نوم نهه نیوي واره وایي او پر ځان دي یې دم کړي انشاء الله تعالی عزت او احترام به تر لاسه کړي.
**الباعث** ﷻ : د مړو د قبرو څخه راپورته کونکی او ژوندي کونکي او د غافلانو زړه د غفلت څخه بېداره کونکی، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دادی چي هغه جاهلو خلکو ته په تعلیم ورکولو سره او د اخرت د نعمتونو په شوق ورکولو سره هغوئ ته د دنیا څخه د بې رغبتۍ په احساس ورکولو سره او د آخرت د نعمتونو په راغب جوړولو سره د جهالت او غفلت څخه بیدار کړي او د هغوئ مړه زړونه را ژوندي کړي او د خپل ځان څخه دي ددې شروع وکړي او ددې وروسته دي نورو ته متوجه سي.
**خاصیت** : که یو څوک غواړي چي د هغه زړه ته حقیقي ژوند حاصل سي نو هغه دي د بېده کېدو پر وخت پر خپل سینه لاس کېښېږدي او دغه مبارک نوم دي سل واره وایي انشاء الله تعالی د زړه مرتوب به یې لیري سي او په انوارو به منور سي.
**الشهید** ﷻ : په ظاهر او باطن باندي خبردار، قشیري رحمة الله علیه فرمایي چي اهل معرفت د

الله تعالی سره د هغه د ذات څخه پرته د بل هیڅ مونس خواهش نه لري بلکه حقیقت خو دادی چې هغوئ یوازي د هغه ذات څخه خوشحاله او مطمئن وي ځکه چې یوازي الله تعالی د هغوئ پر ټولو حالو نظر لري او هغه د هغوئ په ټولو کارو او افعالو خبر دی، الله تعالی فرمایي:

او لم یکف بربک انه علی کل شئ شهید: ایا ستا پروردګار! ستا لپاره په دې خبره کې کافي نه دی چې هغه په هر شي خبر دی.

ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دادی چې هغه دي ددې خبري خیال وساتي چې د هغه پروردګار هغه په داسي ځای کې ونه ویني کوم چې د هغه لپاره ممنوع وي یعني په خراب ځای کې، او په داسي هیڅ ځای کې یې غیر موجود ونه ویني چیري چې هغه ته د موجود کېدو حکم سوی دی یعني د نیکۍ په ځای کې، او ددغه یقین په وجه الله تعالی زما حال تر ما ښه پېژني او زما په حال ښه خبر دی، د غیر الله په مخکې د خپلو اړتیاوو وړاندي کولو او غیر الله تعالی د امید په نظر رغبت او میلان کولو څخه منع سي او پر بنده باندي ددغه مبارک نامه یوه تقاضا دا هم ده چې هغه همېشه د رښتیا شاهد سي او د رښتیا ویلو مراعت کوي.

**خاصیت**: که د یو چا زوی نافرمانه وي یا د هغه لور ناصالحه وي نو هغه ته پکار ده چې هره ورځ سهار د هغه پر تندي خپل لاس کښېږدي او د هغه مخ آسمان ته په پورته کولو سره دغه مبارک نوم یوویشت واره ووایي نو الله تعالی به یې فرمانبردار او صالح کړي.

**الحق** ﷻ: په شهنشاهۍ سره قائم او د خدایي لائق، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دادی چې کله هغه پوه سي چې د هغه ذات حق دی نو د هغه په مقابله کې د مخلوق یاد او د هغوئ طلب پرېږدي او ددغه مبارک نامه تقاضا داده چې بنده په خپل ټولو خبرو، کارو او حالاتو کې حق خبره او حق ویل پر خپل ځان لازم کړي.

**خاصیت**: که د یو چا یو شی ورک وي نو د یو کاغذ پر څلورو کونجانو دي دغه نوم ولیکي او د کاغذ په مینځ کې دي د هغه شي نوم ولیکي او بیا په نیمه شپه کې د هغه کاغذ پر ورغوي باندي په ایښودو سره دي آسمان ته په نظر کولو سره د الله تعالی څخه ددغه مبارک نامه په برکت او ددغه نامه د وسیلې په ذریعه د هغه شي د ترلاسه کولو دعاء وکړي انشاء الله تعالی هغه شی به هم هغسي ترلاسه کړي یا د هغه یو برخه به ترلاسه سي، او که یو بندي په لوځ سره دغه مبارک نوم یو سل اته واره ووایي نو الله تعالی به یې خلاصون ورپه برخه کړي.

**الوکیل** ﷻ: کارساز، د الله تعالی ارشاد دی: وکفی بالله وکیلا: یعني په کار جوړېدو کې الله تعالی کفایت کوي، او: وعلی الله فتوکلوا ان کنتم مؤمنین: که تاسو مؤمنان یاست نو خپل هر

کار الله تعالی ته وسپارئ، ومن یتوکل علی الله فهو حسبه: څوک چي پر الله باندي باور او اعتماد کوي نو الله تعالی د هغه لپاره کافي دی، او : وتوکل علی الحي الذي لا یموت: یعني پر داسي ژوندي ذات باندي باور کوئ چي د هغه لپاره مرګ نسته، وتوکل علی العزیز الرحیم: او پر هغه ذات باندي توکل کوئ چي غالب او مهربان دی.

ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دادی چي هغه د کمزورو او لاچاره کسانو مرسته کونکی جوړ سي او د هغوئ کارونه درست کړي د هغه د اړتیاوو په پوره کولو کي دومره هڅه وکړي لکه هغه دي د هغوئ لپاره وکیل وي.

**خاصیت** : که چیري د آسماني برېښنا را لوېدو بېره وي یا د تېزباد، اوبو او اور څخه بېره وي نو ددغه مبارک نامه وظیفه دي کوي انشاء الله تعالی خلاصون به تر لاسه کړي او که یو څوک دغه مبارک نوم د یو بیري په ځای کي ووایي نو بې خوفه به سي.

**القوي** جل جلاله : قوت والا، **المتین** جل جلاله : په ټولو کارو کي هموار، ددغه دواړو مبارکو نومو څخه د بنده نصیب دادی چي هغه پر نفساني خواهشاتو باندي غالب او قوي وي او ددین په معامله کي سخت او قوت والا وي او د شرعي احکامو په نافذ کولو او خپرولو کي سستي او کمزوري نه کوي.

**خاصیت** : که د یو چا دښمن قوي وي او د هغه په دفاع کي عاجز او کمزوری وي نو هغه دي لړ اوړه واغڅي او د هغویو زر سل ګولې دي جوړي کړي بیا دي یوه یوه ګوله پورته کوي او یا قوي دي پر وایي او هغه ګوله دي د دښمن د دفاع په نیت د چرګ مخته غورځوي نو الله تعالی به د هغه دښمن مغلوب او مقهور کړي او که دغه مبارک نوم د جمعې په شپه ډېر وویل سي نو د هیري ناروغي به ختمه سي او که یو کوچنی د تي څخه پرې سوی وي او هغه کوچنی بې صبري کوي نو دغه نوم دي ولیکل سي او په هغه کوچني دي وځښل سي انشاء الله تعالی هغه ته به صبر او کرار راسي، همدارنګه که چیري د ښځي په شېدو کي کمي وي نو دغه مبارک نوم دي ولیکي او وه دي یې څښني د هغې په شیدو کي به زیاتوب راسي، که چیري یو څوک د حکومت یا یو وظیفې د تر لاسه کېدو خواهش لري نو هغه دي د یکشنبې په ورځ په اول ساعت کي د خپل مقصد په نیت دغه مبارک نوم (المتین جل جلاله) درې سوه شپیته ۳۶۰ واره ووایي انشاء الله تعالی مقصد به یې تر سره سي.

**الولي** جل جلاله: مرسته کونکی او د مؤمنانو دوست، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دادی چي د مسلمانانو سره دوستي وکړي د دین په تائید او حمایت کي هڅه وکړي او د مخلوق په

اړتیاوو پوره کولو کي هڅه وکړي .
قشیري رحمه الله وايي چي د الله تعالی د نښانو څخه دادي چي الله تعالی کوم څوک دوست کړي نو هغه ته همېشه د خیر، برکت او ښېګڼي توفیق ورکوي تر دې چي هغه بنده که چیري د بشریت د غوښتني سره سم د یو بدۍ اراده وکړي نو الله تعالی یې د هغه څخه ساتي او که چیري هغه ناڅاپه په هغه بدۍ کي اخته سي نو په هغه کي یې اخته نه پرېږدي بلکه ژر یې توبه په برخه کوي او د هغه څخه یې راګرځوي ځکه ویل سوي دي چي : اذا حب الله عبدا لم یضره ذنب: الله تعالی چي د چا دوست سي نو هغه ته ګناه تاوان نه رسوي .
او که چیري په عبادت او اطاعت کي کوتاهۍ ته د هغه مېلان وي نو الله تعالی هغه ته په اطاعت او عبادت کي د بوختیا توفیق ورکوي او دا خبره د بنده د نیکبختۍ نښه ګرځي کله چي ددې برعکس د بنده د شقاوت او بدبختۍ علامه ده او د الله تعالی د دوستۍ یو بله علامه داده چي الله تعالی د خپل اولیاؤ په زړو کي د داسي بنده محبت ځای کړي چي د هغه په وجه اولیاء الله د هغه بنده سره تعلق ساتي .
**خاصیت :** کوم څوک چي دغه مبارک نوم ډېر ډېر وایي نو هغه به د مخلوق د زړه په خبرو خبردار سي او که د یو چا ښځه یا مینځه داسي عادت لري چي د هغه لپاره د اذیت سبب وي نو هغه ته پکار دي چي د هغه ښځي یا مینځي مخته راسي نو دغه نوم دي ډېر وایي الله تعالی به هغه د صلاحیت پر لاره برابر کړي .
**الحمید** جل جلاله : د خپل ذات او صفاتو تعریف کونکی یا تعریف سوی، ددغه مبلرک نامه څخه د بنده نصیب دادی چي همېشه د حق تعریف کونکی وي په صفات کمالیه سره خپل ذات سمسور کړي یا د خپل اعمال حسنه او اخلاق حمیده په وجه د الله تعالی او د هغه د مخلوق په نظر کي داسي ثابت سي چي د هغه تعریف وکړل سي .
**خاصیت :** څوک چي دغه مبارک نوم ډېر وایي نو د هغه افعال به غوره وي او که پر یو چا باندي فحش ویل او بد ویل غالب وي چي په هغه سره د خپل ځان پر محفوظ ساتلو قادر نه وي نو هغه ته پکار دي چي دغه مبارک نوم پر یو پیاله ولیکي یا د ځیني حضراتو په قول دغه نوم دي پر یو پیالې باندي نیوي واره ووایي او همېشه دي په هغه پیاله کي اوبه څښني انشاء الله تعالی د فحش ویلو او بد ویلو څخه به خوندي سي .
**المحصي** جل جلاله : د هغه علم پر هر شي باندي احاطه سوی او د هغه په نزد د ټولو مخلوقاتو شمېر ظاهر دی، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دادی چي که هغه د حرکت په حال کي وي او که

د سکون په حال کي وي يعني په هيڅ وخت کي په غفلت کي اخته نه وي او د هغه يوه يو ساه د الله تعالى په ياد کي وي ځکه چي په حديث شريف کي راغلي دي چي جنتيان به پر هغه وخت باندي ډېر افسوس کوي کوم چي د الله تعالى د ياد څخه پرته تېر سوی وي.
او ددې هڅه دي کوي چي پر خپل اعمال او باطني احوالو باندي خبر وي او ددغه نامه تقاضا داده چي الله تعالى په کومو نعمتو سره نازولی دی هغه وشمېري چي د هغه په شکر ادا کولو سره د الله تعالى په وړاندي خپل ځان عاجز او محتاج وګڼي او همدارنګه خپل ګناهونه و شمېري او د هغه په وجه شرمنده او معذرت خواه وي او د هغه ورځي او وخت په يادولو سره حسرت او افسوس کوي کوم چي د الله تعالى د اطاعت او د هغه د ياد څخه خالي تېره سوې وي
**خاصيت** : څوک چي د جمعې په شپه دغه مبارک نوم يو زريو واره ووايي نو الله تعالى به هغه د قبر د عذاب او د قيامت د عذاب څخه وساتي.
**المبدي** جل جلاله : په اول وار پيدا کونکی، **المعيد** جل جلاله: بيا پيدا کونکی، ددغه دواړو نومو څخه د بنده نصيب دادی چي هغه په هره معامله او هر شي کي الله تعالى ته اول وار هم او دوهم وار هم رجوع وکړي په نيکۍ پيدا کولو کي هڅه کوي او کوم نيک عمل چي ونه کړل سي يا په کوم عمل کي کمي او کوتاهي سوې وي د هغه اعاده وکړي يعني بيا يې وکړي.
**خاصيت** : کومه ښځه چي حمل داره وي او د حمل د نقصان بېره وي يا په زېږدنه کي ځنډ کيږي نو خاوند ته پکار دي چي دغه مبارک نوم (المبدئ) نيوي واره ووايي او د شهادت ګوته د هغې پر نس څلور خواته وګرځوي انشاء الله تعالى د حمل د نقصان بيره به يې نسي پاته او د ولادت څخه به په اطمينان او بېله ضرره خلاصه سي، او کوم څوک چي پر دغه مبارک نامه باندي همېشتوب کوي نو د هغه د ژبې څخه به هغه خبري راوځي کوم چي صحيح او د ثواب سبب وي.
که د يو چا يو قريب يا بل څوک غائب وي او د هغه د راتګ او خيريت خواهش مند وي نو کله چي د هغه کوروالا بېده وي دغه مبارک نوم دي د کور په څلورو کونجانو کي اويا واره ووايي او د هغه وروسته دي ووايي : يا معيد فلانی سړی ما ته بېرته راولې د هغه خيريت راته معلوم کړې ، اووه ورځي به تېري سوي نه وي چي هغه به بېرته راسي يا د هغه د خيريت معلومات به راسي ، که د يو چا يو شی ورک وي نو هغه دي يا معيد ډېر وايي انشاء الله تعالى هغه شی به تر لاسه کړي.
**المحي** جل جلاله : ژوندی کونکی، **المميت** جل جلاله : وژونکی، يعني الله تعالى د ايمان د نور په ذريعه زړونه ژوندي کوي او په بدن کي ژوند پيدا کوي او هغه بدن ته مرګ ورکوي او زړونه د غفلت

او ناپوهی په وجه مړه کوي، ددغه دواړو مبارکو نومو څخه د بنده نصیب دادی چي هغه د علم څخه په ګټي رسولو او د معرفت الهي په شمع ځلانده کولو سره زړونو ته د ژوند او تازګی دولت وبخښي او نفساني خواهشات او شیطاني خطرات او وسوسې ختمي کړي چي نه د ژوند ارزو کوي او نه د مرګ ارزو کوي بلکه د قضا او قدر تابعدار سي، او دغه دعاء د رسول الله ﷺ څخه نقل سوې ده:

اللهم احييني ما كان الحيوة خيرا لي وتوفني اذا كانت الوفاة خيرا لي واجعل الحيوة زيادة في كل خير واجعل الموت راحة من كل شر

اې الله! ما ته ژوند راکړې تر څو چي ژوند زما لپاره غوره وي او ما ته مرګ راکړې کله چي مرګ زما لپاره غوره وي او زما ژوند په خېر او ښېګڼي کي د زیاتوب سبب او مرګ د هري بدی څخه د راحت باعث وګرځوې.

**خاصیت**: که یو څوک د درد، ناروغی، تکلیف او یو اندام د ضائع کېدو په بېره کي وي نو هغه دي دغه مبارک نوم (المحي ﷻ) اووه واره ووايي الله تعالی به د هغه څخه خلاصون ورکړي، که یو څوک ددغه مبارک نامه پر ویلو همېشتوب اختیار کړي نو د هغه زړه ته به ژوند او بدن ته به قوت تر لاسه سي او څوک چي پر خپل نفس باندي قادر نه وي او د شریعت د پیروی په اړه د هغه نفس پر هغه غالب وي یعني هغه د شریعت د پیروی څخه منع نه کوي نو هغه ته پکار دي چي د بېده کېدو پر وخت پر سینه لاس کښېږدي او دغه مبارک نوم (الممیت ﷻ) دي دومره ووايي چي په ویلو ویلو کي بېده سي نو الله تعالی به د هغه نفس فرمانبرداره وګرځوي.

**الحي** ﷻ: د ازل څخه تر ابد پوري ژوندی، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دادی چي د الله تعالی د یاد په ذریعه ژوندی وي او خپل ځان د هغه په لار کي قربان کړي یعني د الله تعالی په لار کي په شهیدو سره ابدي حیات تر لاسه کړي.

**خاصیت**: که یو څوک ناروغ وي نو دغه مبارک نوم دي ډېر وايي نو انشاء الله تعالی روغتیا به تر لاسه کړي او څوک چي هره ورځ اوویا واره دغه مبارک نوم وايي نو د هغه عمر به اوږد وي او د هغه په روحاني قوت کي به زیاتوب وي.

**القیوم** ﷻ: خپله هم قائم او د مخلوقاتو هم قائمونکی او خبر اخیستونکی، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دادی چي هغه د الله تعالی څخه پرته د نورو ټولو څخه بې پروا سي.

قشیري رحمه الله وايي څوک چي په دې پوه سي چي الله تعالی قیوم دی نو هغه د ناروغی او فکر څخه خلاصون تر لاسه کړی او په راحت سره به ژوند تېروي اوس هغه ته پکار ده چي نه بخل

وکړي او نه د دنیا شیانو ته اړ رښت ورکړي.
**خاصیت** : کوم څوک چي سهار دغه مبارک نوم ډېر ډېر وايي نو د خلکو په زړو کي به د هغه تصرف ظاهر وي یعني ټول خلک به هغه محبوب او دوست کړي او څوک چي دغه مبارک نوم ډېر ډېر وايي نو د هغه ټول کارونه به د هغه د غوښتني سره سم پوره کیږي.
**الواجد** ﷻ : غني چي په هیڅ شي کي د چا محتاج نه وي، د دغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دادی چي د عالیه کمالاتو په تر لاسه کولو کي هڅه وکړي چي د الله تعالی د فضل په وجه د غیر الله څخه مستغني او بې پروا سي.
**خاصیت** : که یو څوک د ډوډۍ خوړلو پر وخت د هري ګولۍ سره دغه مبارک نوم وایي نو هغه د خوراک به د هغه په نس کي نور سي او که یو څوک په خلوت (یوازیوالي) کي دغه مبارک نوم ډېر وایي نو شتمن به سي.
**الماجد** ﷻ : بزرګ، د دغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب هغه دی کوم چي د الواجد په اړه ذکر سوی دی،
**خاصیت** : څوک چي دغه مبارک نوم په خلوت کي دومره زیات ووایي چي بې هوشه سي نو د هغه پر زړه به انوار الهي ظاهر سي او که څوک یې ډېر ډېر وایي نو د الله تعالی د مخلوق په نظر کي به د مرتبې خاوند سي.
**الواحد** ﷻ، **الاحد** ﷻ: په ذات او صفاتو کي یوازي، د دغه مبارکو نومو څخه د بنده نصیب دادی چي هغه په عبادت او بندګۍ کي یوازي جوړ سي لکه څرنګه چي د هغه معبود یوازي دی او په داسي فضائلو سره خپل ځان سمسور کړي چي هیڅ شی د هغه په مثل نه وي.
**خاصیت** : که د چا زړه د خلوت څخه په خوف کي وي نو هغه ته پکار دي چي دغه مبارک نوم زر واره ووایي انشاء الله تعالی د هغه د زړه څخه به بېره لیري سي او الله تعالی ته به مقرب او نژدې سي او که د چا د زوی پیدا کېدو خواهش وي نو دغه مبارک نوم دي ولیکي او د ځان سره دي یې وساتي الله تعالی به زوی ورکړي.
**الصمد** ﷻ : بې پروا، بې نیازه چي د چا محتاج نه وي او ټول د هغه محتاج وي، د دغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دادی چي په خپل هر حاجت کي الله تعالی ته رجوع وکړي د خپل رزق څخه بې فکره سي او د الله تعالی پر ذات توکل وکړي د دنیا د حرامو شیانو څخه ځان وساتي د مخلوق څخه خپل ځان بې پروا ساتي او د مخلوق د اړتیاوو پوره کولو هڅه کوي.
**خاصیت** : کوم څوک چي سهار یا په نیمه شپه کي سجده وکړي او دغه مبارک نوم یو سل او

پنځلس ۱۱۵ واره ووايي نو الله تعالى به هغه صادق الحال او صادق القول کړي او د چا په ظلم کي به نه راګېر کيږي او څوک چي دغه مبارک نوم ډېر وايي نو هغه به وړی نه پاته کيږي او که د او داسه په حالت کي يې ووايي نو د مخلوق څخه به بې پروا سي .

**القادر** ﷻ، **المقتدر** ﷻ : قدرت والا او قدرت ظاهرونکی، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصيب دادی چي هغه خپل نفس د خواهشاتو او خوندو څخه پر منع کېدو باندي قادر وي .

**خاصيت** : که څوک په اوداسه کي پر هر اندام باندي دغه مبارک نوم وايي نو د چا په ظلم کي به اخته نه سي او هيڅ دښمن به پر کامياب نه سي او که يو مشکل کار ورته پېش سي نو يو څلوېښت واره دي دغه مبارک نوم ووايي انشاء الله تعالى په اسانی به سرته ورسيږي.

که يو څوک په پابندي سره دغه مبارک نوم وايي نو غفلت به يې په هوښياری بدل سي او څوک چي د خوب څخه د پورته کېدو پر وخت دغه مبارک نوم شل واره وايي نو د هغه ټول کارونه به الله تعالى ته راجع سي .

**المقدم** ﷻ: دوستانو ته د خپل دربار څخه د عزت په ورکولو سره رامخته کونکی.

**المؤخر** ﷻ: دښمنان د خپل لطف او کرم څخه په ليري ساتلو وروسته کونکی.

ددغه دواړو نومو څخه د بنده نصيب دادی چي هغه په نيکی کي د پرمختګ په اختيارولو سره خپل ځان مخکي کړي يعني د نورو په مقابله کي خپل ځان غوره جوړ کړي او هغه خلک مخکي کړي کوم چي د الله تعالى د مقربينو څخه دي او نفس او شيطان او هغه خلک چي د الله تعالى د دربار څخه شړل سوي دي شاته وغورځوي او خپل ټول کارونه د ضابطې او قاعدې سره سم سرته ورسوي مثلا مخکي هغه کار وکړي کوم چي تر ټولو زيات ضرورت وي او الله تعالى تر ټولو مقدم کړی وي او تر ټولو وروسته هغه عمل اختيار کړي کوم چي تر ټولو وروسته ضروري وي.

**خاصيت** : که يو څوک د جنګ په مېدان کي دغه مبارک نوم (المقدم ﷻ) وايي يا يې په ليکلو سره د ځان سره وساتي نو هغه ته به هيڅ تاوان نه رسيږي او څوک چي دغه مبارک نوم ډېر وايي نو د هغه نفس به د الله تعالى د اطاعت لپاره فرمانبرداره او مطيع سي .

کوم څوک چي دغه مبارک نوم (المؤخر ﷻ) سل واره وايي نو د هغه ټول کارونه به په خير سرته ورسيږي او څوک چي يې يو څلوېښت واره وايي نو د هغه نفس به فرمانبردار سي .

**الاول** ﷻ: تر ټولو مخکي، **الاخر** ﷻ: تر ټولو وروسته، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصيب دادی چي د الله تعالى د عبادت او د هغه د احکامو پر ځای کولو کي تلوار وکړي او د الله تعالى لپاره خپل ځان قربان کړي تر څو حيات ابدي يې په برخه سي .

**خاصیت**: که د یو چا نارینه اولاد نه وي نو دغه مبارک نوم (الاول ﷻ) دي تر څلوېښت ورځو پوري هره ورځ څلوېښت واره وایي انشاء الله تعالی مراد به یې پوره سي. ځیني حضرات فرمایي که چیري د چا د زوی یا بل حاجت وي نو د څلوېښت جمعو په شپو کي دي هره شپه دغه مبارک نوم زر واره وایي انشاء الله تعالی حاجت به یې پوره سي.
کوم څوک چي د خپل عمر په آخري شیبو کي وي او د هغه ټول ژوند په بدو کارو او ګناهو کي تېر سوی وي نو دغه مبارک نوم (الاخر ﷻ) دي خپل وظیفه وګرځوي انشاء الله تعالی خاتمه به یې په خیر وي.
**الظاهر ﷻ**: د خپل مصنوعاتو او مخلوقاتو په اعتبار چي د هغه د کمال صفاتو دلیل دی ښکاره.
**الباطن ﷻ**: د خپل ذات د حقیقت په لحاظ د وهم او ګمان څخه مخفي.
**خاصیت**: څوک چي د اشراق د لمانځه وروسته دغه مبارک نوم (الظاهر ﷻ) پنځه سوه واره وایي نو الله تعالی به د هغه سترګي ځلانده او منوري کړي، او که چیري د طوفان او باد او باران بېره وي نو دغه مبارک نوم دي ډېر وایي انشاء الله تعالی امن او عافیت به تر لاسه کړي، که یو څوک دغه مبارک نوم د خپل کور پر څلورو دیوالو دم کړي نو د هغه دیوالونه به محفوظ او سلامت پاته سي.
څوک چي هره ورځ (الباطن ﷻ) درو ډېرش ۳۳ واره وایي نو الله تعالی به هغه د اسرارو خاوند جوړ کړي او که یو څوک یې همېشه وایي نو پر چا چي یې نظر سي هغه به یې دوست سي.
**الوالي ﷻ**: کارساز او مالک، د دغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب هغه دی کوم چي د الوکیل ﷻ په تفصیل کي تېر سوی دی.
**خاصیت**: که څوک غواړي چي د هغه کور یا د بل چا کور آباد وي او د باران او نورو آفتو څخه خوندي وي نو هغه ته پکار دي چي په کوزه کي (چي اوبه نه وي ور لوېدلي) دغه مبارک نوم ولیکي او په هغه کوزه کي اوبه واچوي او هغه اوبه د کور پر دیوالو توی کړي نو انشاء الله تعالی د هغه کور به محفوظ او سلامت پاته سي.
ځیني حضراتو لیکلي دي چي د دغه مبارک نامه (الوالي ﷻ) په دري سوه واره ویلو سره هم دغه مقصد تر لاسه کیږي، او که یو څوک د تسخیر په نیت دغه مبارک نوم یوولس واره ووایي نو هغه سړی به یې مطیع او فرمانبرداره سي.

**المتعالي** ﷻ : د ډيري لوړي مرتبې والا، ددې نامه څخه د بنده نصيب هغه دی کوم چې په (العلي) کي ذکر سو .
**خاصيت** : که چيري يو کس دغه نوم مبارک ډير وايي نو د هغه چي کوم مشکلات راتلونکي وي هغه ټوله حل کيږي او ځيني حضرات وايي چي کومه ښځه د حمل په ورځو کي دغه نوم مبارک وايي نو هغه د حمل د ټولو تکليفو څخه به وژغورل سي .
**البر** ﷻ : ډېر احسان کوونکی: ددې نامه څخه د بنده نصيب دادی چي هغه د خپل مور او پلار، استاد، قريبانو او د ټولو متعقلينو سره ښه معامله وکړي .
**خاصيت** : د طوفان، باد او باران او يو بل آفت په وخت کي دغه مبارک نوم ويل پکار دي انشاء الله تعالی د هر ډول تاوان څخه به خوندي وي، که چيري دغه مبارک نوم په اووه واره ويلو سره پر يو کوچني باندي دم کړل سي نو هغه د الله تعالی په امن کي ورکړل سو او هغه کوچنی به تر بالغ کېدو پوري د هر آفت او مصيبت څخه خوندي سي ،. ځيني حضرات وايي که يو څوک په شراب څښلو يا زنا کي اخته وي نو هغه دي هره ورځ اووه واره دغه مبارک نوم وايي انشاء الله تعالی د هغه زړه به د دغه ګناهو څخه راوګرځي .
**التواب** ﷻ: توبه قبلونکی، د توبې اصلي معنی رجوع کول يعني ګرځېدل دي، کله چي د دغه لفظ نسبت بنده ته کيږي نو ددې څخه مراد ګناه نه کول دي يعني پر خپله ګناه باندي په شرمنده کېدو سره الله تعالی ته رجوع کول او کله چي د دغه لفظ نسبت الله تعالی ته کيږي نو ددې لفظ څخه مراد دا وي چي د رحمت او توفيق سره ګرځېدل يعني بنده ته د رحمت او توفيق په نظر متوجه کېدل، د دغه تفصيل وروسته په دې پوه سئ چي کله يو بنده په ګناه کي اخته کيږي نو الله تعالی د هغه د توبې اسباب ميسر کوي او هغه ته د توبې توفيق ورکوي او هغه د ګناهونو د عواقبو څخه په بېرولو سره د عذاب په خوف ورکولو سره او د آخرت د سزا په احساس ورکولو سره هغه د غفلت د خوب څخه بېداره کوي او د هغه په زړه او شعور کي د خپل جرم احساس او پر ګناه باندي د شرمندګۍ توفيق ورکوي ، ددې وروسته هغه بنده په توبې او ندامت سره الله تعالی ته رجوع کوي او بيا الله تعالی په خپل فضل او رحمت سره هغه بنده ته متوجه کيږي يعني هغه بخښي، نو په حقيقت کي د الله تعالی توبه يعني د هغه توجه او د بنده پر توبه يعني د هغه پر رجوع مقدم کيږي که د الله تعالی توجه نه وي نو بنده ته د رجوع کولو نوبت نه سي رسيدلای څکه ويل سوي دي چي : تاب عليهم ليتوبوا : الله تعالی هغوئ ته متوجه سو چي هغوئ هغه ته رجوع وکړي يعني توبه وکاږي ، شعر: توبه کنم بشکنم توبه دهي نکشنم .

ځکه نو بنده ته پکار دي چي همېشه د الله تعالی د رحمت امید ولري د توبې د قبولیت امید ولري د نا امیدۍ دروازه بنده کړي په دې توګه چي د رحمت د نازلېدو څخه نا امیده نه سي د نورو خطاوي معافوي او که د یو چا څخه څه کوتاهي وسي نو نه یوازي دا چي هغه معاف کړي بلکه په انعام او اکرام سره هغه ته متوجه سي د الله تعالی څخه توبه طلب کړي پر ګناهو باندي شرمنده او پښیمانه سي د عبرت غوږونه خلاص ولري او په توبه کي تاخیر ونه کړي تر څو دغه حکم : عجلوا التوبة قبل الموت – د مرګ څخه مخکي په توبه کي تلوار وکړئ، پر ځای راورل سي.

دلته یو د عبرت څخه ډک حکایت واورئ، ویل کیږي چي د یو پاچاهي وزیر وو چي د هغه نوم عیسی ابن عیسی وو، یوه ورځ هغه د سپرو د یو ډلي سره روان وو لکه څرنګه چي په عامه توګه کیږي خلکو په خپلو کي پوښتني کولې چي دا څوک دی ؟ دا څوک دی؟ په لاره کي یو سپین سرې هم ناسته وه هغې چي خلک په پوښتني کولو ولیدل چي خلک یو د بل پوښتني کوي چي دا څوک دی؟ او دا څوک دی؟ دا یو بنده چي د حق څخه لویدلی دی او په دې حالت کي اخته دی (یعني د دنیا په شان او شوکت سره مطمئن او بوخت دی)، عیسی ابن عیسی دا خبره واورېدل نو سمدستي خپل ځای ته راغلی او وزارت یې پرېښودی او د توبې په دولت سره مشرف سو همدارنګه د دنیا ټول شان او شوکت یې تر شا کړی او په مکه مکرکه کي مقیم سو او هلته یې هستوګنه کول.

**خاصیت** : که یو څوک د څاښت د لمانځه وروسته درې سوه شپیته واره دغه مبارک نوم وایي نو الله تعالی به هغه په توبه نصوح (یعني داسي پخې توبې چي د هغه وروسته ګناه نه وي) ونازوي، او که یو څوک دغه مبارک نوم ډېر وایي نو د هغه ټول کارونه به په خیر او خیریت تر لاسه سي او نفس به د اطاعت او عبادت څخه پرته سکون او کراري تر لاسه کړي، کوم څوک چي د څاښت د لمانځه وروسته دغه کلمې وایي : اللهم اغفرلي وتب علي انک انت التواب الرحیم. نو الله تعالی به د هغه ګناهونه معاف کړي.

**المنتقم** جل جلاله : د کافرانو او سرکښانو څخه د عذاب په ذریعه بدله اخیستونکی، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دادی چي هغه د خپلو دښمنانو څخه چي نفس او شیطان دی بدله واخلي او تر ټولو لوی دښمن نفس دی او د هغه سزا داده چي کله هم په یو ګناه کي اخته سي یا په عبادت کي کوتاهي وکړي نو د هغه څخه بدله واخلي، په دې توګه چي هغه په عقوبت او سختۍ کي اخته کړي، د بایزید بسطامي رحمه الله په باره کي نقل سوي دي چي هغه وفرمایل: زه د شپې

په اورادو او وظیفه کي بوخت وم چي يوه شپه زما نفس سستي وکړه نو ما هغه ته دا سزا ورکړه چي تر يو کال پوري مي نفس د اوبو څخه محروم کړی.

**خاصيت**: که يو څوک د خپل دښمن پر ظلم باندي صبر او د هغه څخه دفاع نه سي کولای نو هغه دي تر درو جمعو پوري دغه مبارک نوم په پابندۍ سره وايي انشاء الله تعالی د هغه دښمن به دوست سي او د هغه د ظلم څخه به خلاصون تر لاسه کړي.

که د يو مقصد د تر لاسه کېدو لپاره د هغه مقصد په نيت دغه مبارک نوم په نيمه شپه کي وويل سي نو انشاء الله تعالی مقصد به يې تر لاسه سي.

په يو بل روايت کي د يو صحابي څخه منقول دي چي په هغه کي د الله تعالی يو مبارک نوم (المنعم ﷻ) هم نقل سوی دی کوم څوک چي پر دغه نامه باندي همېشتوب کوي نو هيڅکله به د چا محتاج نه سي.

**العفو** ﷻ: د ګناهونو او کوتاهيو څخه عفوه کونکی، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصيب هغه دی کوم چي د الغفور ﷻ په تفصيل کي تېر سوی دی، شيخ عبدالحق رحمه الله د اسماء الحسنی په تشريح کي ليکي چي د العفو معنی د سيئاتو محوه کونکی (يعني د ګناهونو ختمونکی) او ګناهونه معاف کونکی، که څه هم د معنی او مفهوم په اعتبار د غفور سره سم دی مګر عفو تر غفور زيات بليغ دی، ځکه د غفران معنی ده ستر او کتمان او د غفار معنی به دا سي چي ګناهونه پټونکی او حال دا چي د عفو مطلب دادی چي د ګناهونو په کولو سره ختم کونکی، که بنده هرڅومره ګناه کاروي نو د الله تعالی د شان عفو سره سم د هغه له خوا د معافۍ او بخښني امېد لرونکی سي، ځکه ويل کيږي چي په هيڅ ګناه سره دي د تحقير او تذليل سلوک نه کيږي ځکه دا ليري خبره نه ده چي الله تعالی هغه د شريعت د حدود او د دين د احکامو د پابندۍ په وجه و بخښي او د هغه ګناهونه معاف کړي.

رد مکن بدرا چه داني در ازل | نام او در نامه نيکان بود
ور رود برجای نيکان اين ګمان | بر تو روز جزا تاوان بود

ددغه مبارک نامه د بنده څخه تقاضا داده چي د خلکو کوتاهی او خطاوي معاف کړي تر څو د الکاظمين الغيظ والعافين عن الناس په ډله کي داخل سي.

**خاصيت**: که يو څوک ډېر ګناه کاروي نو هغه ته پکار ده چي دغه مبارک نوم خپل وظيفه وګرځوي انشاء الله تعالی ټول ګناهونه به يې معاف سي.

**الرؤف** ﷻ: ډېر مهربان، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصيب هغه دی کوم چي د الرحيم په

تفصيل کي تېر سوی دی، ویل کیږي چي د یو چا همسایه ډېر خراب وو کله چي هغه مړ سو نو د هغه د جنازې لمونځ یې ادا نه کړ، وروسته هغه یو چا په خوب کي ولیدی او پوښتنه یې ځیني وکړه چي الله تعالی ستا سره څه چلن وکړ؟ هغه وویل زه الله تعالی و بخښلم مګر هغه سړي ته چي زما د جنازې لمونځ یې ادا نه کړی دا خامخا وویل چي: لو انتم تملکون خزائن رحمت ربي اذا لا مسکتم خشیه الانفاق، که زما د رب د رحمتونو خزانې ستا په ملک کي وای نو تا به هغه د مصرف کېدو د بیري خامخا پټي کړي وای، یعني دا د هغه د جنازې پر نه کولو باندي طعنه وه چي زما رب خو ډېر مهربان دی هغه زه وبخښلم که ستا وس وای نو معلومه نه وه چي زما سره به دي څه چلن کړی وای.

**خاصیت**: که څوک غواړي چي یو مظلوم د ظالم څخه وساتي نو هغه دي دغه مبارک نوم لس واره ووايي نو ظالم به د هغه شفارش قبول کړي او د خپل ظلم څخه به منع سي، که یو څوک پر دغه مبارک نامه باندي همېشتوب کوي نو د هغه زړه به نرم سي او ټول به د هغه دوستان سي.

**مالک الملک** ﷻ: د ټول جهان مالک، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب هغه دی کوم چي د الملک ﷻ په تفصیل کي تېر سوی دی.

شاذلي رحمة الله عليه فرمایي چي اې انسانه! پر یوه دروازه باندي ودرېږي یعني یوازي د الله تعالی دروازې ته راسه چي ستا لپاره ډېري دروازې خلاصي سي او یوازي د یوه پاچا یعني الله تعالی په حضور کي خپل غاړه کښته کړه چي ستا په مخکي ډېري غاړي کښته سي، د الله تعالی ارشاد دی: وان من شئ الا عندنا خزائنه، داسي هیڅ شی نه سته چي د هغه زموږ سره خزانې نه وي.

**خاصیت**: کوم څوک چي پر دغه نامه باندي همېشتوب وکړي نو شتمن به سي او د هغه د دنیا او آخرت ټول کارونه او نېک مقصدونه به په خیر سي، ددې وروسته د ذوالجلال والاکرام ﷻ هم دغه خاصیت دی.

**ذوالجلال والاکرام** ﷻ: د بزرګۍ او بخښني خاوند، چا چي د الله تعالی جلال و پیژندی نو د هغه په دربار کي دي تامل اختیار کړي او چا چي د هغه اکرام و پیژندی نو د هغه شکر ګزار دي سي نه خو دي د غیر الله پیروي کوي او نه دي د الله تعالی څخه پرته بل چا ته خپل حاجت بیانوي، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب دادی چي د خپل ذات او خپل نفس لپاره دي د بزرګۍ د تر لاسه کولو هڅه وکړي او د الله تعالی د بندګانو سره ښه چلن وکړي.

**المقسط** ﷻ: عدل کونکی، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصیب هغه دی کوم چي د العدل ﷻ په تفصیل کي بیان سوی دی.

**خاصیت** : څوک چي دغه مبارک نوم سل واره ووايي نو هغه به د شيطان د شر او وسوسې څخه خوندي وي او که يو څوک يې اووه سوه ۷۰۰ واره ووايي نو د هغه چي هر څه مقصد وي تر سره به سي.

**الجامع** جل جلاله : په قيامت کي د خلکو جمع کونکی، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصيب دادی چي هغه د علم په تر لاسه کولو او په هغه باندي عمل کولو ، د نفساني او جسماني کمالاتو جامع جوړ سي او د الله تعالى په ذات کي محويت، استغراق او د الله تعالى د ذکر په ذريعه د زړه تسکين او د الله تعالى د صفاتو په ډول د صفات حميدي په سعادتونو ځان منور کړي.

درجمعیت کوش تاهمه ذات شوي ترسم که پراگنده شوي مات شوي

**خاصیت** : د چا چي قريبان منتشر او پاشل سوي وي نو هغه دي د څاښت په وخت کي غسل وکړي او آسمان ته دي مخ پورته کړي او دغه مبارک نوم دي لس واره ووايي چي په هر وار ويلو سره يوه يوه گوته بندوي بيا دي ددې وروسته خپل دواړه لاسونه پر مخ راتېر کړي انشاء الله تعالى په لږ وخت کي به هغوئ ټول سره يو ځای سي.

**الغني** جل جلاله : د هر شي څخه بې پروا.

**خاصیت** : کوم څوک چي د حرص او طمع په مرض اخته وي نو هغه دي د خپل بدن پر هر اندام باندي په لاس اېښودو سره دغه مبارک نوم وايي او لاس دي د هغه اندام د لوړي څخه لاندي ته راولي نو انشاء الله تعالى خلاصون به تر لاسه کړي او څوک چي دغه مبارک نوم هره ورځ اويا واره وايي نو د هغه په مال کي به برکت وي او هيڅکله به محتاج نه سي.

**المغني** جل جلاله : چا ته چي وغواړي د هغه بې پروا کونکی، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصيب دادی چي د الله تعالى پرته د نور هر چا څخه استغناء او بې پرواهي وکړي او د الله تعالى څخه پرته هيڅوک حاجت پوره کونکی ونه گڼي.

**خاصیت** : څوک چي پرله پسې تر لسو جمعو پوري دغه مبارک نوم په پابندي سره وايي په دې توگه چي د هري جمعې په ورځ يې زر واره وايي نو د مخلوق څخه به بې پروا سي.

**المانع** جل جلاله : خپل بندگان د دين او دنيا د هلاکت او تاوان څخه منع کونکی، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصيب دادی چي خپل نفس او طبيعت د نفساني خواهشاتو څخه په منع کولو سره خپل ځان د ديني او دنيوي هلاکت او تاوان څخه وساتي.

**خاصیت** : که د ښځي او خاوند په مينځ کي تعلقات خراب وي نو بسترې د تلو پر وخت دي دغه مبارک نوم شل واره ووايي الله تعالى به يې د غصې او تعلقاتو د خرابۍ څخه وساتي.

شیخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله د اسماء حسنی په تشریح کي د المانع جل جلاله څخه مخکي المعطي جل جلاله هم نقل کړی دی او هغه ددغه دواړو نومو معناوي او وضاحت داسي کړی دی چي چا ته وغواړي ورکوي یې او چا ته چي نه وغواړي نه یې ورکوي، لا مانع لما اعطی ولا معطي لما منع، پوه سئ چا ته چي هغه ورکول وغواړي نو هیڅوک یې منع کولای نه سي او چا ته چي یې نه ورکوي نو هغه ته هیڅوک ورکونکی نه سته، کله چي بنده په دې پوه سي چي الله تعالی ورکونکی او منع کونکی دی نو د هغه د ورکړې امیدلرونکی دي سي او د هغه د منع څخه دي وبیریږي، پر بنده ددغه مبارک نامه تقاضا داده چي هغه د الله تعالی نیک بندګان او ړ کسان په خپل ورکړې سره ونازوي او فاسقانو او ظالمانو ته د ورکولو څخه منع سي، یا دا چي خپل زړه او روح ته د حضور او اطاعت انوار ورکړي او خپل نفس او طبیعت ته د خواهشاتو د هوس څخه منع کړي، د ابوهریره رضی الله عنه په روایت کي چي دلته ذکر سوي دي د المعطي ذکر نه دی راغلی، د ابوهریره رضی الله عنه ددغه روایت سره سم د منع وضاحت د رد او هلاکت کیږي.

ددې وروسته حضرت شیخ رحمه الله ددغه نامه (المعطي جل جلاله) خاصیت دا لیکلی دی چي کوم څوک دغه مبارک نوم خپل وظیفه وګرځوي او یا معطي السائلین ډېر ډېر وایي نو د چا څخه د سوال کولو به نه محتاج کیږي.

**الضار** جل جلاله: چا ته چي وغواړي ضرر رسونکی.

**النافع** جل جلاله: چا ته چي و غواړي ګټه رسونکی.

قشیري رحمه الله وایي چي په دغه مبارکو نومو کي دې ته اشاره ده چي تاوان او ګټه او هر شی د الله تعالی په قضا او قدر سره دی کوم څوک چي د هغه د حکم یعني د هغه د قضا او قدر تابعدار سو نو هغه به د راحت او سکون ژوند تر لاسه کړي او کوم څوک چي د هغه تابعدار نه سو نو هغه به په آفت او مصیبت کي ولویږي، الله تعالی فرمایي:

من استسلم لقضائي وصبر على بلائي وشكر على نعمائي كان عبدي حقا ومن لم يستسلم لقضائي ولم يصبر على بلائي ولم يشكر على نعمائي فليطلب ربا سوائي.

ژباړه: چا چي زما قضا او قدر تسلیم کړ زما پر مصیبت یې صبر وکړ او زما پر نعمتونو یې شکر ادا کړ هغه زما ریښتونی بنده دی او چا چي زما قضا او قدر تسلیم نه کړ زما پر بلا یې صبر ونه کړ او زما د نعمتونو شکر یې ادا نه کړ نو هغه دي زما څخه پرته بل رب ولټوي.

حضرت شیخ رحمه الله د اسماء حسنی په تشریح کي ددغه مبارکو نومانو په تفصیل کي لیکلي دي چي د خیر او شر، ګټي او تاوان یوازي الله تعالی مالک دی او د ګرمی، یخ، درد،

تكليف، ناروغی او پريشاني او شفاء وركونكی هغه دی دا گمان دي هيڅكله نه كيږي چي دواء په خپله فائده رسوي او زهر په خپله څوک هلاكوي خوراک په خپله څوک مړوي او اوبه په خپله څوک اوبه كوي بلكه دا ټول اسباب عادي دي په دې معنی چي دا عادت قائم دی چي الله تعالی دغه اسباب جوړ كړي دي كوم چي پورتني ذكر سوي شيان د هغه په واسطه سره پيدا كيږي كه هغه وغواړي نو دغه شيان د دغه واسطو و اسبابو څخه پرته هم پيدا كولای سي او كه وغواړي نو د دې سربېره چي دغه شيان پيدا نه كړي همداسي د عالم علويات او سفليات ټول شيان او ټول اجزاء محضي د واسطې او اسبابو په درجه كي دي چي د الله تعالی د قدرت كامله په اثر كي دي او دغه ټولو شيانو په نسبت د قدرت اذليه هغه دی كوم چي د ليكونكي په لاس كي د قلم وي نو بنده ته پكار دي چي ټول تاوانونه او ټولي فائدې د الله تعالی د حكم او قضاء فيصلې وګڼي عالم اسباب د هغه د قدرت اثر وګڼي او د حكم او قضاء په تابعدار كېدو سره خپل ټول كارونه هغه ته وسپاري چي د يو داسي ژوند حامل سي چي د مخلوق څخه محفوظ او مطمئن وي.

نقل سوي دي چي حضرت موسی عليه السلام د غاښو د درد څخه په پريشانه كېدو سره د الله تعالی په دربار كي فرياد وكړ نو د هغه ځايه حكم وسو چي فلاني واښه په غاښو پوري ومږه چي ارام درته حاصل سي، موسی عليه السلام هغه واښه په غاښو پوري ومږل نو آرام يې تر لاسه كړ، څه وخت وروسته يې بيا په يو غاښ كي درد پيدا سو نو هغه بيا هغه واښه استعمال كړل دا وار درد كمېدل خو پرېږدي بلكه نور هم زيات سو، د الله تعالی په دربار كي يې عرض وكړ چي اې الله ! دا خو هغه واښه دي د كوم چي د استعمال تا ما ته حكم كړی وو مګر اوس د هغه په استعمال سره درد نور هم زيات سوی دی، د الله تعالی له خوا په عتاب سره ارشاد وسو چي هغه وار تا موږ ته توجه كړې وه او موږ شفاء دركړه او دا واړ تا واښو ته توجه وكړه ځكه موږ درد اضافه كړی چي ته په دې پوه سې چي شفاء وركونكی خو موږ يو نه واښه.

پر بنده باندي د دغه مباركو نومانو تقاضا داده چي د امر الهي او حكم شريعت په ذريعه د دين دښمنانو ته ضرر ورسوي او هغوئ متنبه كړي او د الله تعالی بندګانو ته ګټه ورسوي او د هغوئ مرسته وكړي.

**خاصيت**: كه يو چا ته يو حال او مقام حاصل وي نو هغه دي دغه مبارک نوم (الضار) د جمعې په شپه سل واره وايي نو الله تعالی به يې پر هغه مقام مستقيم كړي او هغه به د اهل قرب مرتبې ته ورسيږي، كه يو څوک په كښتی كي سفر كوي نو هغه دي هره ورځ النافع جل جلاله يو ويشت واره

وايي انشاء الله تعالی هيڅ تاوان به ورته ونه رسيږي او د خپل هر کار په پيل کي دي النافع ﷻ يو څلويښت واره وايي نو د هغه ټول کار به د هغه د غوښتني سره سم سرته ورسيږي .

**النور** ﷻ: آسمان په ستورو سره، مځکه په انبياؤ او علماؤ سره او د مسلمانانو زړونه د معرفت او طاعت د نور په ذريعه روښانه کونکی، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصيب داد يچي هغه د ايمان او عرفان په نور سره خپل ذات روښانه او منور کړي .

**خاصيت** : کوم څوک چي د جمعې په شپه سورة نور اووه واره او دغه مبارک نوم زر واره وايي نو الله تعالی به د هغه په زړه کي نورانيت پيدا کړي .

**الهادي** ﷻ: لارښوونکی، هدايت کونکی، ددغه مبارک نامه څخه د بنده نصيب دادی چي هغه د الله تعالی بندګانو ته د الله تعالی لار وښيي او دا خبره حضرت شيخ رحمة الله عليه د اسماء حسنی په تشريح کي په وضاحت سره داسي بيان کړې ده چي د هدايت مطلب لارښودل او منزل مقصود ته رسول دي، الله تعالی د ټولو کائناتو رهنما دی که څوک د دنيا پر لاره وي بيا هم رهنما دی او که څوک د آخرت پر لاره ځي نو بيا هم د هغه رهبر د هغه ذات الهي دی .

ګر نه چراغ لطف تو راه نمايد از کرم قافلهای شب روان پي نبرد بمنزلی

خلاصه دا چي د الله تعالی د هدايت د انواعو حد او شمېر نه سته ، الذي اعطی کل شئ خلقه ثم هدی، هغه داسي ذات دی چي هر شي ته يې وجود ورکړ او بيا يې د هغه لارښوونه وکړه، نو دا الله تعالی دی چي کوچني ته د نس څخه راوتلو سره د مور د تيانو څخه د شېدو څېښلو لاره ښيي ، چيچي ته د هګۍ څخه د راوتلو او د دانې چڼ کولو لاره ښيي او د شاتو مچۍ ته د عجيب او غريب کور جوړولو لاره ښيي ، خلاصه دا چي د کائناتو يو يو فرد په خپله يوه يوه لمحه او خپل يو يو فعل کي د هغه د رهنمائي محتاج او احسان مند دی .

مګر تر ټولو افضل او عظيم الشان هدايت هغه لارښودل دي چي الله تعالی ته او د هغه ديدار ته يې ورسوي او د خواص په باطن کي د توفيق الهي او اسرار تحقيق هغه نور پيدا کوي چي د هدايت معرفت او د طاعت سبب جوړيږي .

په بندګانو کي د دغه مبارک نوم (الهادي ﷻ) څخه تر ټولو زيات برخمن انبياء ، اولياء او علماء دي چي د الله تعالی مخلوق ته د صراط مستقيم لارښوونکي دي ، سيد الانبياء او ختم رسل سردار دو عالم ﷺ د دغه مبارک نامه حقيقي عکس دی چي په دغه دنيا کي د پوره انسانيت او پوره کائناتو تر ټولو لوی او تر ټولو لوړ مرتبه لارښوونکی او رهبر دی .

اهدنا الصراط المستقيم صراط الذين انعمت عليهم غير المغضوب عليهم ولا الضالين .

ذوالنون مصري رحمة الله عليه فرمايي چي درې شيان داسي دي چي هغه د عارفينو په صفات عاليه کي شمېرل کيږي ۱: د غمجنو خلکو پراخي او فرحت ته راوستل، ۲: غافلينو ته د الله تعالی نعمتونه ور په يادول، ۳: د توحيد په ژبه سره مسلمانانو ته د حق لاره ښودل يعني د هغوئ زړه د دنيا د توجه څخه دين ته او د معاش څخه معاد ته ګرځول دي.

**خاصيت**: کوم څوک چي خپل لاس او مخ آسمان ته پورته کړي او دغه مبارک نوم ډېر ډېر وايي او بيا لاسونه پر خپل سترګو او مخ باندي را تېر کړي نو الله تعالی به هغه ته د اهل معرفت مرتبه ور کړي.

**البديع** جل جلاله: عالم بېله د مثال څخه پيدا کونکی، ځيني حضرات فرمايي کوم څوک چي په قول او فعل کي پر خپل نفس باندي حاکم جوړوي هغه د حکمت خبري کوي يعني د هغه ذهن د هغه فکر د هغه ژبه د حکمت او شريعت په غالب کي ځای کيږي او کوم څوک چي په قول او فعل کي پر خپل نفس باندي خواهش امير جوړوي هغه د بدعت خبري کوي يعني د هغه ذهن، د هغه فکر او د هغه ژبه په بدعت کي وي.

قشيري رحمة الله عليه فرمايي چي زموږ د مذهب درې اصول دي: ۱: په اخلاقو او افعالو کي، په خوراک او څښاک کي چي حلال وي د نبي کريم صلی الله عليه وسلم پيروي کول، ۲: همېشه رښتيا ويل، ۳: په ټولو اعمالو کي نيت خاصول، او دا يې هم فرمايلي دي چي کوم څوک د بدعتي په باره کي نرمي کوي نو الله تعالی د هغه د اعمالو څخه د سنت خوږوالی ليري کوي او کوم څوک چي د بدعتي په لېدو سره خاندي يعني د بدعتي سره د عزت او احترام معامله کوي نو الله تعالی د هغه د زړه څخه د ايمان نور سلبوي.

**خاصيت**: که يو څوک غمجن وي يا يو مشکل کار ورته مخ وي نو هغه دي يا بديع السموات والارض اويا زره واره او د يوه قول سره سم زر واره وايي انشاء الله غم به يې ليري سي او د هغه کار به پوره سي او که يو څوک اودس تازه کړي مخ پر قبله کېدو سره دغه مبارک نوم دومره وايي چي خوب ورسي نو د کوم شي د ليدو چي خواهش لري په خوب کي به يې ويني.

**الباقي** جل جلاله: همېشه باقي پاته کېدونکی.

**خاصيت**: څوک چي دغه مبارک نوم د جمعې په شپه سل واره وايي نو د هغه ټول نيک اعمال به قبول سي او هيڅ ناروغي او غم به يې نه په تکليف کوي.

**الوارث** جل جلاله: د کائناتو د فنا کېدو وروسته باقي پاته کېدونکی او د ټولو مخلوقاتو مالک، لکه څرنګه چي وښودل سوه چي د وارث څخه مراد دادی چي د موجوداتو د فنا کېدو وروسته

پاته چي ټول املاک د خپلو مالکانو د فنا کېدو وروسته به هغه ته رجوع کوي مګر دا مطلب د وارث د ظاهري مفهوم په اعتبار دی کنه نو په حقیقت کي خو د کائناتو د یوه یوه شي علی الاطلاق د ازل څخه تر ابده پوري په ملکیت کي پرته د څه تبدیلۍ او تغیر هغه مالک دی ، ټول ملک او ملکوت بېله شرکته د بل د هغه لپاره دي او هغه د ټولو حقیقي مالک دی نو د بصیرت خاوندان دي همېشه دغه نداء : لمن الملک الیوم لله الواحد القهار ، د هوش په غوږو سره اوري .

بنده ته پکار دي چي هغه د خپل مال او میراث په فکر کي نه ورسیږي بلکه په دې خبره دي پوه سي چي دا ټول په پرېښودو سره د دنیا څخه ځي ځکه ویل سوي دي چي : موتوا قبل ان تموتوا ، د عارفانو شعار دی : دل برین منزل فاني چه نهي رخت به بند .

پر بنده باندي د دغه نامه تقاضا داده چي په دغه اعمالو کي خپل ژوند صرف کړي کوم چي د باقیات صالحات څخه دي لکه تعلیم او تعلم ، صدقه جاریه او داسي نور او ددین علوم او معارف په پوره سعي او هڅه سره زیات تر زیات تر لاسه کړي چي په صحیح معنی کي د انبیاؤ وارث وګرځي .

**خاصیت** : کوم څوک چي د لمر ختلو په وخت کي دغه مبارک نوم سل واره وایي نو هغه ته به هیڅ غم او تکلیف نه رسیږي او کوم څوک چي دغه مبارک نوم ډېر وایي نو د هغه ټول کارونه به په ښه توګه سرته ورسیږي .

**الرشید** جل جلاله : د عالَم لارښوونکی، ځیني حضرات فرمایي خپل بنده ته د الله تعالی لارښوول دادي چي هغه د هغه نفس ته د خپل اطاعت او عبادت لارو ښیي ددې علامه داده چي الله تعالی د هغه په ټولو کارو کي توکل او تفویض الهام فرمایي .

نقل سوي دي چي یوه ورځ ابراهیم بن ادهم رحمة الله علیه وږی سو نو هغه یو سړي ته یو شی ورکړی چي د هغه سره موجود وو او هغه ته یې وویل چي دا د ځان سره کښېږده د خوراک انتظام وکړه هغه سړی چي د هغه شي سره د هغه ځای څخه ووتی نو ناڅاپه یو بل سړی ورسره یو ځای سو چي د یو غاتري سره روان وو او پر هغه غاتري باندي څلوېښت زره دیناره وه، ده د هغه سړي څخه د ابراهیم ابن ادهم رحمة الله علیه په باره کي پوښتنه وکړه او ورته یې وویل چي دا څلوېښت زره دیناره د ابراهیم میراث دی چي هغه ته د هغه د پلار د مال څخه رسیدلی دی ، زه د هغه غلام یم د میراث دغه مال مي د هغه په خدمت کي راوړی دی ، ددې وروسته هغه سړي ابراهیم ته ورسیدی او څلوېښت زره دیناره یې هغه ته حواله کړه هغه ورته وویل که رښتیا وایې چي ته زما غلام یې او دا مال هم زما دی نو زه تا د الله تعالی د رضا لپاره ازادوم او دا څلوېښت زره دیناره

هم د ربخښنم بس او س ته زما څخه ولاړ سه، کله چي هغه سړی د هغه ځای څخه ولاړی نو ابراهیم وویل : اې پروردګاره ! ما خو ستا په مخکي یوازي د دوه ، د خواهش اظهار کړی وو چي تا ما ته دومره دینار راکړه نو قسم دی ستا په ذات او س که ته ما د لوړي څخه وژني نو ستا څخه به هیڅ نه وغواړم.

**خاصیت** : که یو څوک د خپل یو کار په باره کي یو فیصله کولای نه سي نو هغه دي د ماخستن د لمانځه او د خوب په مینځ کي دغه مبارک نوم زر واره وو ایي په هغه کار کي چي کومه صحیح او کټوره خبره وي نو پر هغه به څرګنده سي او څوک چي دغه مبارک نوم همېشه وایي نو د هغه ټول کارونه به ښېله هڅي او کوښښه پوره کیږي .

**الصبور** ﷻ : بردبار چي ګناه کارو ته په عذاب ورکولو کي تلوار نه کوي، په لغت کي د صبر معنی ده تامل کول او صبور هغه چي د ګناه کار په نېولو او هغوئ ته په سزا ورکولو کي تلوار نه کوي، صبور د معنی او مفهوم په اعتبار حلیم ته نژدې دی مګر په دواړو کي فرق دادی چي صبور ددې خبري مشعر دادی چي که څه هم في الوقت بردباري وکړي مګر په آخرت کي یې نیسي او عذاب ورکوي، کله چي حلیم د بردبارۍ په مفهوم کي مطلق دی ، ځیني حضرات وایي چي د صبور معنی ده بنده ته د هغه مصیبت او بلاء کي صبر ورکونکی ، د شهواتو او خواهشاتو پر مخالفت کولو باندي صبر ورکونکی او د عبادت په ادا کولو کي پر مشقت باندي صبر ورکونکی هغه الله تعالی دی ، ځکه هر بنده ته پکار دي چي هغه په هر مصیبت او آفت کي د الله تعالی څخه صبر وغواړي او د هغه د نافرمانۍ څخه لیري اوسي او د دغه مبارک نامه څخه د بنده تقاضا داده چي هغه په یو کار کي تلوار ونه کړي بلکه وقار، طمانیت او تمکین اختیار کړي او د هر تکلیف او مصیبت څخه د الله تعالی پناه طلب کړي، ربنا افرغ علینا صبرا وثبت اقدامنا وانصرنا علی القوم الکافرین، یا ایها الذین آمنوا اصبروا و صابروا ورابطوا واتقوا الله لعلکم تفلحون .

په مشائخو کي د یو چا دا مقوله څومره عارفانه ده چي د صبر جام و څېښه که ووژل سې نو شهید به سې او که ژوندی پاته سې نو سعید به بلل کیږي .

**خاصیت** : که یو څوک په مصیبت، ناروغۍ او تکلیف کي اخته وي نو دغه مبارک نوم دې درې دېرش واره وایي انشاء الله تعالی اطمینان به تر لاسه کړي .

د دښمنانو د ژبي بندولو او ماتولو او د حاکمانو د راضي کولو او د خلکو په زړو کي د مقبولیت لپاره دي په نیمه شپه کي یا د غرمې پر وخت دغه مبارک نوم په پابندي سره ووایي .

په مشکوة شریف کي د ابو هریره ﷺ په روایت کي چي د الله تعالی کوم نهه نیوي نومونه منقول دي د هغو وضاحت ختم سو ، ملا علي قاري رحمه الله فرمایي چي په قرآن کریم او حدیثو کي د دغه نومو څخه پرته یو څو نور نومونه هم منقول دي چي په قرآن کریم کي دغه نومونه هم راغلي دي :
الرب ، الاکرام، الاعلی، الحافظ، الخالق، السائر، الستار، الشاکر، العادل، العلام، الغالب، الناظر، الفالق، القدیر ، القریب، القاهر، الکفیل، الکافي، المنیر، المحیط، الملک، المولی، النصیر، احکم الحاکمین، ارحم الراحمین، احسن الخالقین، ذو الفضل، ذو الطول، ذوالقوة، ذوالمعارج، ذوالعرش، رفیع الدرجات، قابل التواب، الفعال لما یرید، مخرج المحي من المیت.
او په حدیثو کي دغه نومونه هم راغلي دي :
الحنان، المنان، المغیث، او ددې څخه پرته نور نومونه په کتابو کي مثلا په تورات وغیره کي نور هم یو څو نومونه نقل سوي دي .

## اسم اعظم

﴿۲۱۸۱﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعَ رَجُلًا يَقُوْلُ

د حضرت بریدة ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د یو سړي څخه دا دعا کول واوریدل :

اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ بِأَنَّكَ أَنْتَ اللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ الْأَحَدُ الصَّمَدُ الَّذِي لَمْ يَلِدْ

(اې الله زه ستا څخه غواړم په دې وسیلې سره چي ته اې الله ! ستا څخه پرته بل د عبادت وړ نسته او ته یوازي او بې پروا یې نه ته د چا څخه پیدا یې

وَلَمْ يُولَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ فَقَالَ دَعَا اللّٰهَ بِاسْمِهِ الْأَعْظَمِ الَّذِي إِذَا سُئِلَ بِهِ أَعْطَى واذا دُعِيَ بِهِ أَجَابَ . رواه الترمذي و ابوداؤد .

او نه تا څوک زیږولي دي، او نه څوک د هغه سیال سته) د دې په اوریدو سره رسول الله ﷺ وفرمایل : دغه سړي په اسم اعظم سره دعاء غوښتې ده هغه اسم اعظم دی چي د هغه په ذریعه څه وغوښتل سي او کله دعاء وکړل سي نو هغه قبلیږي . ترمذي او ابوداؤد .

**تخریج**: الترمذي في السنن ۴۸۱\۵ ،رقم: ۳۴۷۵، وابوداود في السنن ۱۶۶\۲ ،رقم: ۱۴۹۳.

**تشریح**: صحیح خبره خو داده چي اسم اعظم د الله تعالی مبارکو نومو کي پټ دی او په تعین سره هیچا ته د هغه علم نه سته لکه لیلة القدر، مګر جمهور علماء وایي چي اسم اعظم لفظ د الله

ﷻ دی او د قطب رباني سيد عبدالقادر جيلاني رحمة الله عليه په قول په دې شرط چي په ژبه سره كله لفظ د الله ادا سي نو په زړه كي هم د الله ﷻ څخه پرته بل څه نه وي يعني د دغه مبارک نوم تاثير هغه وخت وي كله چي د الله ﷻ د يادولو پر وخت زړه د غير الله څخه بالكل خالي وي.

د اسم اعظم په اړه د علماؤ نور قولونه هم سته چي د باب په پای كي نقل كيږي چي علماؤ په خپل رايه او تحقيق سره اسم عظم ورته ويلي دي.

علماء كرامو په سوال او دعاء كي دا فرق نقل كړی دی چي د سوال معنی ده طلب كول لكه چي وويل سي: اللهم اعطني، اې الله! ما ته فلانی شی راكړې، او ددې په جواب كي د الله تعالى وركول وي او ددعاء معنی ده بلل لكه چي وويل سي يا الله! او ددې په جواب كي د الله تعالى له خوا اجابت يعني قبلول وي لكه چي د الله تعالى د بنده په بللو وفرمايي: لبيک عبدي.

﴿۲۱۸۲﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ كُنْتُ جَالِسًا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه د رسول الله ﷺ سره ناست وم په

الْمَسْجِدِ وَرَجُلٌ يُصَلِّيْ فَقَالَ اللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ بِاَنَّ لَكَ الْحَمْدُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ

مسجد كي او يو سړي لمونځ كوی او دلمانځه وروسته يې دا دعاء وغوښتل: اې الله زه ستا څخه سوال كوم په دې وسيلې سره چي هر ډول تعريف تا لره دئ، ستا څخه پرته هيڅوک د عبادت وړ نسته ته

الْحَنَّانُ الْمَنَّانُ بَدِيعُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ يَا حَيُّ يَا

ډير مهرباني او احسان كونكی يې او د آسمانو او مځكي پيدا كونكی يې، اې د بخښني او بزرگي خاونده، اې ژونديه اې

قَيُّوْمُ اَسْئَلُكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ دَعَا اللّٰهَ بِاسْمِهِ الْأَعْظَمِ الَّذِي إِذَا دُعِيَ بِهِ

خبر اخيستونكې، زه ستا څخه غواړم، د دې په اوريدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل: دې سړي د الله ﷻ څخه په اسم اعظم سره دعاء غوښتې ده هغه اسم اعظم چي د هغه په ذريعه دعاء وسي

أَجَابَ وَإِذَا سُئِلَ بِهِ أَعْطَى. رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي وابن ماجة.

نو قبوله سي او كه څه وغوښتل سي نو هغه وركړل سي. ترمذي، ابو داؤد، نسائي او ابن ماجة.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\ ۵۱۴، رقم: ۳۵۴۴، وابوداود في السنن ۲\ ۱۶۷، رقم: ۱۴۹۵، والنسائي ۳\ ۵۲، رقم: ۱۳۰۰، وابن ماجه ۲\ ۱۲۶۸، رقم: ۳۸۵۸.

﴿۲۱۸۳﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اسْمُ

د حضرت اسماء بنت يزيد (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

اللّٰهِ الْأَعْظَمُ فِي هَاتَيْنِ الْآيَتَيْنِ { وَإِلٰهُكُمْ إِلٰهٌ وَاحِدٌ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمٰنُ

اسم اعظم په دغه دوو آياتو کي دئ : { وَإِلٰهُكُمْ إِلٰهٌ وَاحِدٌ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيمُ }،

الرَّحِيمُ } وَفَاتِحَةِ آلِ عِمْرَانَ { الم اللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ } . رواه

الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة والدارمي .

او د سورة آل عمران په پيل کي يعني : دغه آيت : { الم اللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ } ، ترمذي ، ابوداؤد ابن ماجه او دارمي .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\ ۴۸۳، رقم: ۳۴۷۸، وابوداود في السنن ۲\ ۱۶۸، رقم: ۱۴۹۶وابن ماجه ۲\ ۱۲۶۷، رقم: ۳۸۵۵.

### د يونس عليه السلام د دعاء برکت او تاثير

﴿۲۱۸۴﴾: وَعَنْ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعْوَةُ ذِي

د حضرت سعد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

النُّونِ إِذْ دَعَا ربه وَهُوَ فِي بَطْنِ الْحُوتِ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنْتُ مِنَ

د حضرت يونس عليه السلام هغه دعاء چي د ماهي په نس کي يې د خپل پروردګار څخه غوښتې وه داده : لااله.... من الظالمين، هيڅ د عبادت وړ نسته پرته ستا څخه پاک يې ته او زه

الظَّالِمِينَ لَمْ يَدْعُ بِهَا رَجُلٌ مُسْلِمٌ فِي شَيْءٍ إِلَّا اسْتَجَابَ لَهُ . رواه احمد والترمذي

د ظالمانو څخه وم، کوم مسلمان چي د يو مطلب لپاره دغه دعاء وغواړي الله هغه قبلوي .

**تخریج**: الامام احمد في المسند ۱\ ۱۷۰، والترمذي في السنن ۵\ ۴۹۵، رقم: ۳۵۰۵.

**تشریح**: د حضرت یونس علیه السلام قصه په لنډه توګه داده چي الله تعالی هغه د نینوی ښار ته د هغوئ د هدایت لپاره راولیږی هغوئ ته یې د ایمان دعوت ورکړی مګر هغوئ قبول نه کړ او د ایمان راوړلو څخه یې انکار وکړ الله تعالی حضرت یونس علیه السلام ته وحي راولیږل چي ته خپل قوم خبردار کړه چي د درو ورځو وروسته به پر تاسو عذاب راځي ، حضرت یونس علیه السلام هغوئ خبردار کړل او خپله د هغه ښار څخه ووتی، پر ټاکل سوي وخت باندي یوه توره وریځ ښکاره سوه او په نژدې کېدو سره پر هغه ښار باندي ودرېدل او د هغه څخه یو ډول دود پورته کول شروع سول. د ښار خلکو چي ولیدل چي عذاب نازلیږي نو هغوئ ټول د خپل ښځو، اولادو او حیوانانو سره ځنګل ته ووتل او هلته د یو بل څخه په جلا کېدو په ژړا او زاری یې خپل اوازونه پورته کړل او پر خپل کفر او ګناهو باندي په توبه کولو سره یې ایمان راوړ او په زاری سره یې دغه کلمې ویلې: لاحي حين لا اله الا انت: یعني اې ژوندی ذاته! د هغه وخت څخه چي هیڅوک ژوندی نه وو ستا څخه پرته بل معبود نه سته، ددې وروسته الله تعالی هغه عذاب چي پر دوئ مسلط وو وګرځوی او څه وخت وروسته حضرت یونس علیه السلام هغه ښار ته راغلی چي وګوري د ښار او د ښار د اوسیدونکو څه حال سوی دی ، هغه چي د لیري څخه ولیدل چي ښار هم هغسي آباد دی لکه څرنګه چي مخکي وو او د ښار اوسیدونکي ژوندي او سلامت دي، ددې په لېدو سره هغه ته ډېر شرم محسوس سو چي ما خو دوئ ته ویلي وه چي درې ورځي وروسته به پر تاسو عذاب نازلیږي مګر د عذاب خو هیڅ نام او نښان نه سته ، هغه ته ددې خبري علم نه وو چي عذاب خو نازل سوی وو مګر بیرته منع سو، په هر ځال په دې سوچ کولو سره چي په داسي صورت کي ښار ته تلل مناسب نه دي د هغه ځای څخه بېرته ولاړی او دریاب ته په رسېدو سره چي تر هغه واوړي یوه کښتۍ تیاره وه په هغه کښتۍ کي کښېنستی ، د هغه ناستي سره داسي محسوسه سوه لکه چي پر خپل ځای ودریږي، ډېر کوښښ وکړل سو مګر کښتۍ د خپل ځای څخه نه ښورېدل.

خلکو وویل چي داسي معلومیږي په دغه کښتۍ کي یو داسي غلام ناست دی چي د خپل مالک څخه تښتېدلی دی ځکه دا کښتۍ نه روانیږي ددې په ویلو سره په کښتۍ کي ناست ټولو خلکو قرعه واچول ، نو قرعه د یونس علیه السلام پر نوم راوختل ،، یونس علیه السلام وویل : بېشکه زه تښتېدلی غلام یم ، ددې وروسته هغه خپل ځان دریاب ته واچوی او یو ماهي د الله تعالی په حکم سره تېر کړ، الله تعالی ماهي ته حکم وکړ چي هغه په نس کي خوندي وساتي، یونس علیه السلام د ماهي په نس کي پروت وو او ماهی د نیل په دریاب، د فارس او د دجله په دریاب کي ګرځوی او

یونس علیہ السلام د الله تعالی په دربار کي دا ویل: لا اله الا انت سبحانک اني کنت من الظالمین، اې الله! ته معبود او حاکم مطلق یې ستا ذات پاک دی او ما پر ځان ظلم کړی دی، په دې توګه چي زه ستا د اجازې څخه پرته د خپل قوم څخه تښتېدلی یم، الله تعالی د هغه دعاء قبوله کړه او ماهي ته یې حکم وکړ چي هغه د نصیبین په ساحل کي چي د شام یو ښار دی د خپل نس څخه وغورځوي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د اسم اعظم تحقیق

﴿۲۱۸۵﴾: عن بریدة قال دخلت مع رسول الله صلی الله علیه وسلم المسجد

د حضرت بریدة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي زه د ماخستن په وخت کي د نبي کریم ﷺ سره مسجد ته ولاړم. (او وه مي لیدل چي)

عشاء فإذا رجل یقرأ ویرفع صوته فقلت: یا رسول الله أتقول هذا مُراء

یو سړی په لوړ آواز سره قرآن مجید وایي، ما عرض وکړ اې د الله رسوله! ایا دا سړی تاسو ریا کاریا منافق ګڼئ؟

قال بل مؤمن منیب قال وأبو موسی الأشعري یقرأ ویرفع صوته فجعل

رسول الله ﷺ وفرمایل: یا، بلکه مؤمن او د غفلت څخه د ذکر الهي په لور رجوع کونکی دئ، بریدة رضی الله عنه وایي چي هغه سړی ابو موسی اشعري رضی الله عنه وو چي په لوړ آواز سره یې تلاوت کاوه،

رسول الله صلی الله علیه وسلم یتسمع لقراءته ثم جلس أبو موسی یدعو

رسول الله ﷺ د هغه قرائت واوریدئ بیا ابو موسی رضی الله عنه د دعاء لپاره کښېنستئ

فقال: اللهم إني أشهدك أنك أنت الله لا إله إلا أنت أحدا صمدا لم یلد

او دا دعاء یې پیل کړه: اللهم اني ... کفوا احد، اې الله! زه تا شاهد کوم یعني ددې عقیده لرم چي ته الله یې ستا څخه پرته بل د عبادت وړ نسته نه د چا څخه پیدا سوی یې

ولم یولد ولم یکن له کفوا أحد فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم لقد

او نه دي څوک زیږولی دئ او نه دي څوک سیال سته، رسول الله ﷺ وفرمایل:

سأل الله باسمه الذي إذا سئل به أعطى وإذا دعي به أجاب قلت يا رسول

ده د الله ﷻ په هغه نامه سره سوال وکړ چي په هغه سره څه وغوښتل سي نو ورکول کيږي او هر کله چي ددې په ذريعه دعاء وغوښتل سي نو قبليږي، ما عرض وکړ اې د الله رسوله!

الله أخبره بما سمعت منك ؟ قال نعم فأخبرته بقول رسول الله صلى الله

دا کومه خبره چي ما ستاسو څخه واوريدل ايا زه په دې ابو موسى رضي الله عنه خبر کړم، رسول الله ﷺ وفرمايل: هو، نو ما ابو موسى رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خبره باندي خبر کړ

عليه وسلم فقال لي: أنت اليوم لي أخ صديق حدثتني بحديث رسول الله صلى الله عليه وسلم. رواه رزين

ابو موسى رضي الله عنه راته وويل: نن ته زما رښتونی وروريې چي تا زه د رسول الله ﷺ د حديث څخه خبر کړم، رزين.

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح**: لکه څرنګه چي مخکي تېر سوي دي چي د اسم اعظم په باره کي د علماؤ مختلف قولونه دي، ځيني حضراتو الله ته اسم اعظم ويلي دي او ځيني علماء وايي چي بسم الله الرحمن الرحيم اسم اعظم دی، ځيني خلک لفظ د هو اسم اعظم بولي او ځيني حضرات: الحي القيوم ته او ځيني حضرات: مالک الملک، ځيني حضرات د توحيد کلمې ته او ځيني: الله الذي لا اله الا هو رب العرش العظيم، ته اسم اعظم ويلي دي.

د امام زين العابدين رحمه الله په باره کي نقل سوي دي چي هغه د الله تعالى په دربار کي عرض وکړ چي ما ته اسم اعظم وښيه، نو هغه ته په خوب کي وښودل سوه چي هغه: لا اله الا الله - دی. ځيني علماء وايي چي اسم اعظم په اسماء حسنی کي پټ دی او ځيني حضرات وايي چي اللهم اسم اعظم دی.

د ځينو سلفو څخه نقل سوي دي چي کوم څوک اللهم ووايي نو هغه لکه د الله تعالى په ټولو نومو چي دعاء وغوښتل. همداسي قول د حسن بصري رحمه الله څخه هم منقول دی. ځيني حضراتو الم اسم اعظم ګرځولی دی او ځينو حضراتو لکه امام جعفر صادق رحمه الله وايي کوم څوک چي د اسماء حسنی څخه په يوه اسم سره الله تعالى په داسي حضور او استغراق ياد

كړي چي هغه وخت د هغه په باطن كي د هغه اسم څخه پرته پل هيچ شی نه وي نو هغه اسم اعظم دی او د هغه په ذريعه دعاء غوښتل دعاء قبليږي .

ابو سليمان دراني رحمه الله وايي چي ما د يو شيخ كامل څخه پوښتنه وكړه چي اسم اعظم كوم يو دی؟ نو هغه پوښتنه را څخه وكړه چي ايا ته خپل زړه پيژنې؟ ما وويل هو ، نو هغه وفرمايل كله چي ته دا وويني چي ستا زړه الله تعالى ته متوجه او نرم سوی دی نو هغه وخت د الله تعالى څخه دعاء وغواړه او همدا اسم اعظم دی .

نقل سوي دي چي ابوالربيع رحمه الله ته يو چا وويل چي ما ته د اسم اعظم په باره كي وښياست؟ نو هغه ورته وفرمايل چي دا وليكه : اطع يعطک، يعني د الله تعالى فرمانبرداري كوه هغه به ستا هر خواست قبلوي ، ددې څخه د هغه مراد دا وو چي د الله تعالى اطاعت او فرمانبرداري اسم اعظم دی ځكه چي ددې په وجه الله تعالى مهربانه وي او دعاء قبلوي او وه يې فرمايل چي د يو عارف : بسم الله الرحمن الرحيم ويل د كن په ډول دی يعني څرنگه چي الله تعالى ته په كُن ويلو سره چي څه وغواړي نو همداسي د بنده لپاره بسم الله ده چي د كوم كار په شروع كي بسم الله وويل سي نو د هغه له بركته د هغه كار پوره كيږي .

ځيني محققين فرمايي چي دعاء د ټولو اقوالو مجموعه ده يعني د دين بزرگان چي كوم كوم نومو ته اسم اعظم ويلي دي هغه ټول په دعاء كي دي : اللهم اني اسئلک بان لک الحمد لا اله الا انت يا حنان يا منان يا بديع السموات والارض يا ذالجلال والاكرام يا خير الوارثين يا ارحم الراحمين يا سميع الدعاء يا الله يا الله يا عالم يا سميع يا عليم يا حليم يا مالک الملک يا مالک يا سلام يا حق يا قديم يا قائم يا غني يا محيط يا حكيم يا علي يا قاهر يا رحمن يا رحيم يا سريع يا كريم يا مخفي يا معطي يا مانع يا محيي يا مقسط يا حي يا قيوم يا احمد يا حمد يا رب يا رب يا رب يا رب يا وهاب يا غفار ياقريب يا لا اله الا انت سبحانک اني كنت من الظالمين انت حسبي ونعم الوكيل .

په پورتنۍ دعاء كي چي كوم اسماء ذكر سوي دي هغه ټول اسم اعظم دي .

===========

# بَابُ ثَوَابِ التَّسْبِيْحِ وَالتَّحْمِيْدِ وَالتَّهْلِيْلِ وَالتَّكْبِيْرِ

## ( د تسبيح، تحميد، تهليل او تكبيرويلو ثواب )

د تسبيح څخه مراد سبحان الله ويل، د تحميد څخه مراد الحمد لله ويل، د تهليل څخه مراد لااله الاالله ويل او د تكبير څخه مراد الله اكبر ويل دي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### تر ټولو غوره كلام

﴿۲۱۸۶﴾: عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سمرة بن جندب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

افضل الْكَلَامِ أَرْبَعٌ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ و في

د انسان غوره خبري څلور دي : (يعني): سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ. او په يوه

رواية أَحَبُّ الْكَلَامِ إِلَى اللّٰهِ أَرْبَعٌ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ لَا يَضُرُّكَ بِأَيِّهِنَّ بَدَأْتَ. رواه مسلم

روايت كي دا الفاظ دي چي د الله په نزد غوره خبري څلور دي : سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ. په دغه خبرو كي چي د كوم يوه څخه پيل كوئ نو پروا نسته . مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۳\۱٦۸۵، رقم: ۱۲- ۲۱۳۷.

**تشريح**: تر ټولو غوره كلام څلور دي، ددې څخه مراد دادی چي د الله تعالی د كلام څخه وروسته د انسان په كلام كي د دغه څلور كلمې تر ټولو غوره دي، په دغه وضاحت او ترجمه كي د انسان قيد ځكه لګول سويدی چي څلورمه كلمه يعني الله اكبر په قرآن كريم كي نه سته او دا ښر كنده خبره ده چي كوم جز په قرآن كريم نه وي هغه د هغه شي څخه غوره نه دی كوم چي په قرآن كريم كي دی يعني په يو بل حديث كي داسي دي : افضل الكلام بعد القرآن وهي من القرآن: يعني د قرآن كريم څخه وروسته غوره كلمې دي او دا كلمې هم د قرآن دي .

ددې څخه معلومیږي چي د كلام څخه په انساني كلام سره كلام الله هم مراد دی یعني دغه څلور كلمې د الله تعالی په ټول كلام كي غوره كلمې دي ، په دې صورت كي به ویل كیږي چي په دې كي اول الذكر درې كلمې خو بعینه په قرآن كریم كي موجود دي او څلورمه كلمه كه څه هم بعینه په قرآن كریم كي موجود نه ده مگر په دغه آیت : وكبره تكبیرا - كي د معنی په لحاظ یقینا موجود ده.

دلته دا خبره په ذهن كي كښېنول پكار دي چي دغه څلور كلمې كه څه هم غوره دي مگر د حدیث څخه چي ذكر د یو حال یا وخت سره متعلق ثابت دی په دې حالت یا وخت كي په ذكر كي بوخت كېدل د تسبیح وغیره څخه غوره دي .

د دوهم روایت د آخري لفظ مطلب دادی چي ددغه څلورو كلمو د ویلو په وخت كي مذكوره ترتیب ضروري نه دی كه مخكي سبحان الله وویل سي او كه الحمد لله مخكي وویل یا لا اله الا الله یا الله اكبر مخكي وویل سي، په دې كي څه پروا نه سته بیا هم طیبي رحمة الله علیه فرمایي چي دغه څلور كلمې په مذكوره ترتیب سره ویل غوره دي او بېله ترتیبه ویل جائز دي .

## د تسبیح، تهلیل او تحمید فضیلت

﴿۲۱۸۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَأَنْ أَقُولَ سُبْحَانَ اللَّهِ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَاللَّهُ أَكْبَرُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ . رواه مسلم

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل : سُبْحَانَ اللَّهِ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَاللَّهُ أَكْبَرُ. ویل زما په نزد د دنیا او د دنیا د ټولو شیانو څخه غوره دي . مسلم

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۴\۲۰۷۲، رقم: ۳۲ - ۲۱۹۵.

﴿۲۱۸۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم مَنْ قَالَ سُبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ فِي يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ حُطَّتْ خَطَايَاهُ وَإِنْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ . متفق علیه

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل : څوک چي سبحان الله وبحمده په ورځ كي سل واره ووایي د هغه گناهونه رژیږي كه څه هم د دریاب د ځگ په اندازه

وي . بخاري او مسلم

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري) ۱۱\۲۰٦، رقم: ٦۴۰۵، ومسلم في الصحيح ۴\۲۰۷۱.

**تشريح** : علامه طيبي رحمه الله فرمايي که سل واره وغواړي نو په څو واره دي يې ووايي که د ورځي په اوله برخه کي وي او که په آخره برخه کي وي دواړه ډوله صحيح ده مګر افضل داده چي د ورځي په لومړنۍ برخه کي په يو وار وويل سي .

﴿۲۱۸۹﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَ حِينَ يُصْبِحُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي سهار

وَحِينَ يُمْسِي سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهِ مِائَةَ مَرَّةٍ لَمْ يَأْتِ أَحَدٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

او ماښام سل سل واره سبحان الله وبحمده ووايي نو د قيامت په ورځ به د هغه تر عمل هيڅ يو

بِأَفْضَلَ مِمَّا جَاءَ بِهِ إِلَّا أَحَدٌ قَالَ مِثْلَ مَا قَالَ أَوْ زَادَ عَلَيْهِ . متفق عليه .

غوره عمل نه وي مګر هغه څوک چي هغه دده په ډول يا تر ده زيات دا کلمات ويلي وي . بخاري او مسلم

**تخريج** : لم نجده عند البخاري ومسلم في الصحيح ۴\۲۰۷۱، رقم: ۲۹- ۲٦۹۲.

**تشريح** : دلته يو اشکال پيدا کيږي چي د حديث د ظاهري عبارت څخه دا مفهوم اخستل کيږي چي کوم څوک د اول سړی په ډول وويل يعني هغه د اول په ډول يې سهار او ماښام سل واره سبحان الله وبحمده وويل نو هغه به د قيامت په ورځ د هغه د عمل څخه غوره راوړي کوم چي دغه اول سړي راوړی دی، حالانکه داسي نه ده بلکه دوهم سړی که د اول سړي په ډول سبحان الله وبحمده سهار او ماښام سل سل واره ووايي نو هغه به د قيامت په ورځ د اول سړي په ډول عمل سره حاضر سي نه دا چي د هغه به افضل عمل راوړي .

ددغه اشکال جواب دادی چي د حديث عبارت د حقيقت او معنی په اعتبار داسي دی که د قيامت په ورځ يو سړی د هغه عمل په اندازه يو عمل نه راوړي کوم چي دغه سړي راوړی دی او نه د هغه د عمل څخه غوره يو عمل راوړي پرته د هغه سړي څخه چي هغه د هغه په ډول سبحان الله و بحمده سهار او ماښام سل سل واره څخه زيات ووايي نو هغه د اول سړي څخه غوره عمل راوړي . يا دا سي ويل کيږي چي مثل ما قال او زاد عليه کي د معنی په اعتبار د (و) پر ځای استعمال سوی دی .

﴿۲۱۹۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلِمَتَانِ خَفِيفَتَانِ عَلَى اللِّسَانِ ثَقِيلَتَانِ فِي الْمِيزَانِ حَبِيبَتَانِ إِلَى الرَّحْمٰنِ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهِ سُبْحَانَ اللّٰهِ الْعَظِيمِ . متفق عليه

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: دوې داسي کلمې دي چي په ژبه ويلو سره اسانه دي مګر د اعمالو په تله کي درنې او د خداى په نزد ډيري خوښي دي او هغه دادي: سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهِ سُبْحَانَ اللّٰهِ الْعَظِيمِ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري) ۱۱\۵۶۶، رقم: ۶۶۸۲، ومسلم في الصحيح ۴\ ۲۰۷۲، رقم: ۳۱ - ۲۶۹۴.

﴿۲۱۹۱﴾: وَعَنْ سَعْدِ ابْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو چي

وَسَلَّمَ فَقَالَ أَيَعْجِزُ أَحَدُكُمْ أَنْ يَكْسِبَ كُلَّ يَوْمٍ أَلْفَ حَسَنَةٍ فَسَأَلَهُ سَائِلٌ

رسول الله ﷺ وفرمايل: ايا په تاسو کي څوک دا توان لري چي هره ورځ زر نيکۍ تر لاسه کړي، کوم خلک چي د رسول الله ﷺ په خدمت کي ناست وه په هغو کي يو کس پوښتنه وکړه

مِنْ جُلَسَائِهِ كَيْفَ يَكْسِبُ أَحَدُنَا أَلْفَ حَسَنَةٍ قَالَ يُسَبِّحُ مِائَةَ تَسْبِيحَةٍ

په موږ يو څوک هره ورځ زر نيکۍ څنګه تر لاسه کولای سي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: سل واره دي سبحان الله وايي

فَيُكْتَبُ لَهُ أَلْفُ حَسَنَةٍ أَوْ يُحَطُّ عَنْهُ أَلْفُ خَطِيئَةٍ . رواه مسلم و في كتابه في

و دده لپاره به زر نيکۍ وليکل سي يا زر ګناهونه به يې څيني ليري سي، مسلم، د مسلم په ټولو

جمع الروايات عن موسى الجهني او يحط قال ابوبكر البرقاني و رواه شعبة و ابوعوانة و يحيى بن سعيد القطان عن موسى فقالوا و يحط بغير الف هكذا في

كتاب الحميدي .

روایاتو کي د موسی جهني څخه (او یحط) لفظ راغلي دئ او برقاني ویلي دي چي شعبه ابو عوانة ، یحیی بن سعید قطان د موسی جهني څخه پرته (الف) روایت کړئ دئ یعني په هغه کي (و یحط) لفظ دئ د حمیدي په کتاب کي هم داسي دي .

**تخریج**: مسلم في الصحيح ۴\۲۰۷۳، رقم: ۳۷ - ۲۶۹۸، ومسند الحميدي ۱\۴۳۱، رقم: ۸۰

**تشریح**: د : او یحط - سره سم خو د حدیث مفهوم دادی چي په دواړو کي یوه خبره وي یا خو زر نیکۍ لیري کیږي حال دا چي د ویحط په صورت کي به معنی دا وي چي زر نیکۍ هم لیکل کیږي او زر ګناهونه هم لیري کیږي .

د ترمذي، نسائي او ابن حبان په روایتو کي هم ددې مفهوم تائید کیږي ځکه چي په دې کي لفظ د ویحط راغلی دی لهذا په ظاهره باندي په دواړو روایاتو کي منافات معلومیږي، مګر که چیري په ذهن کي دا خبره وي چي کله کله و د معنی په اعتبار د او پر ځای هم استعمالیږي نو بیا اختلاف نه معلومیږي او د دواړو روایتو مفهوم یو کیږي په دې صورت کي به ددې معنی دا وي چي کوم چا تسبیح وویل د هغه لپاره زر نیکۍ لیکل کیږي که د هغه پر ذمه یو ګناه نه وي یا د هغه زر ګناوي لیري کیږي که د هغه پر ذمه ګناه وي.

**غوره کلام تسبیح او تحمید...**

﴿۲۱۹۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ ذَرٍ قَالَ سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الْكَلَامِ أَفْضَلُ قَالَ مَا اصْطَفَى اللّٰهُ لِمَلَائِكَتِهِ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهِ . رواه مسلم

د حضرت ابو ذر ﷛ څخه روایت دئ چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول چي کوم کلام غوره دئ ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: هغه کلام چي الله تعالی د خپلو ملائکو لپاره ټاکلی دئ یعني (سبحان الله وبحمده) مسلم

**تخریج**: مسلم في الصحيح ۴\۲۰۹۳، رقم: ۸۴ - ۲۷۳۱.

**تشریح**: چڼ کړي دي، مطلب دا چي الله تعالی د ذکر څخه دغه کلمې د خپلو ملائکو لپاره چڼ کړي دي او د دغه کلمې د زیات فضیلت په وجه هغوئ ته حکم ورکړل سوی دی چي هغوئ دي همېشه وایي : سبحان الله وبحمده، د څلورو کلمو یعني سبحان الله والحمدلله ولا اله الاالله والله اکبر اختیار دی ځکه په تشریح کي د شرک نفي هم کیږي چي د تهلیل حاصل دی او ددې

څخه د الله اکبر یعني الله پاک ډېر لوی کېدل هم ثابتېږي.

**په ذکر کي د کیفیت اعتبار ....**

﴿۲۱۹۳﴾: وَعَنْ جُوَيْرِيَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ مِنْ عِنْدِهَا

د حضرت جويرية (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ زما څخه ولاړئ

بُكْرَةً حِينَ صَلَّى الصُّبْحَ وَهِيَ فِي مَسْجِدِهَا ثُمَّ رَجَعَ بَعْدَ أَنْ أَضْحَى وَهِيَ

د سهار د لمانځه په وخت کي او هغه (بي بي جويرية) پر خپله مصلا ناسته وه، بيا رسول الله ﷺ د څاښت په وخت کي بيرته راغلئ او هغه بي بي

جَالِسَةٌ قَالَ مَا زِلْتِ عَلَى الْحَالِ الَّتِي فَارَقْتُكِ عَلَيْهَا قَالَتْ نَعَمْ قَالَ النَّبِيُّ

پر خپله مصلی ناسته وه، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه ایا په کوم حال کي چي زه در څخه تللی وم د هغه وخت څخه ته ناسته يې؟ هغې وويل هو، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ قُلْتُ بَعْدَكِ أَرْبَعَ كَلِمَاتٍ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ لَوْ وُزِنَتْ بِمَا

ما ستا د تلو وروسته درې واره څلور داسي کلمې ويلي دي که هغه ستا د هغه شي سره چي د وخت د پيل څخه تر اوسه پوري ويل سوي دي وزن کړل سي

قُلْتِ مُنْذُ الْيَوْمِ لَوَزَنَتْهُنَّ سُبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ عَدَدَ خَلْقِهِ وَرِضَا نَفْسِهِ

وَزِنَةَ عَرْشِهِ وَمِدَادَ كَلِمَاتِهِ . رواه مسلم

نو دا څلور کلمې به زياتي درنې سي، (يعني د دې ثواب به ستا د ټوله وخت تر ثواب زيات وي) هغه څلور کلمې دا دي: سبحان الله.. ومداد کلماته، زه د الله پاکي بيانوم، د هغه تعريف کوم د هغه د مخلوقات د شمير په اندازه د هغه د مرضي سره سم او د عرش د وزن سره سم او د هغه د کلماتو د رنګ په شان. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۴/ ۲۰۹۰، رقم: ۷۹ - ۲۷۲۶.

**تشريح**: او د هغه د کلمو په ډول: دلته د کلمو څخه مراد يا خو د هغه کتابونه او د هغه صحيفې دي يا د هغه اسماء دي همدارنګه د هغه صفات يا د هغه اوامر هم مراد کېدای سي.

دا حديث پر دې خبره دلالت كوي چې په ذكر كې د كيفيت اعتبار وي نه د كميت، يعني هغه تسبيحات وغيره چې د هغه مضامين اعلى او ډېر ښه وي او هغه د زړه په حضور او اخلاص سره ويل كيږي كه څه هم كم وي مگر د دغه تسبيحاتو د مضامينو څخه افضل دي كوم چې داسې نه وي او د هغه د ويلو په وخت كې د زړه حضور او اخلاص دولت تر لاسه وي كه څه هم هغه هر څومره زيات وي ، پر دې باندې په قياس كولو سره پوهېداى سو چې غور او فكر او حضور او اخلاص سره د قرآن كريم تلاوت او قرائت كه څه هم يو آيت وي د هغه قرائت او تلاوت څخه غوره دى كوم چې د دغه شيانو څخه خالي وي او كه څه هم هغه ډېر زيات وي .

## د شيطان څخه د پناه طريقه

﴿۲۱۹۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چې

لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ

دا كلمې (لااله الا الله وحده لاشريک له له الملک وله الحمد وهو على كل شئ قدير) د الله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته هغه يو ازې دئ هيڅوک د هغه شريک نسته ، ملک او پاچاهي د هغه ده او هر ډول تعريف هغه لره دئ او هغه په هره خبره خبردار دئ

فِي يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ كَانَتْ لَهُ عَدْلَ عَشْرِ رِقَابٍ وَكُتِبَتْ لَهُ مِائَةُ حَسَنَةٍ وَمُحِيَتْ

په ورځ كې سل واره وو ايي هغه ته به د لسو غلامانو د آزادولو ثواب تر لاسه كيږي او سل نيكى به د هغه په اعمال نامه كې ليكل كيږي او ليرې به سي

عَنْهُ مِائَةُ سَيِّئَةٍ وَكَانَتْ لَهُ حِرْزًا مِنَ الشَّيْطَانِ يَوْمَهُ ذَلِكَ حَتَّى يُمْسِيَ وَلَمْ

د هغه سل گناهونه او هغه به په هغه ورځ تر ماښام پورې د شيطان څخه خوندي وي او (د قيامت په ورځ) به هيڅوک تر هغه د غوره عمل سره نه راځي

يَأْتِ أَحَدٌ بِأَفْضَلَ مِمَّا جَاءَ بِهِ إِلَّا رجل عَمِلَ أَكْثَرَ مِنْهُ. متفق عليه

پرته د هغه سړي څخه چې هغه هم دا كلمات تر ده زيات ويلي وي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ١١\ ٢٠١، رقم: ٦٤٠٣، ومسلم في الصحيح ٤\ ٢٠٧١، رقم: ٢٨- ٢٦٩١.

**تشریح**: په ځرګنده خو دا معلومیږي چي یو څوک دغه کلمې د ماښام په وخت کي ووایي نو هغه ته به تر سهار پوري د شیطان څخه پناه تر لاسه کیږي، نو کېدای سي چي دا خبره راوي د اختصار په توګه پرې ایښې وي یا داچي خپله نبي کریم ﷺ نه وي بیان کړې ځکه چي د حدیث ظاهري مفهوم څخه دا خبره په خپله ځرګندیږي.

امام نووي رحمه الله فرمایي په حدیث کي چي کوم فضیلت او ثواب بیان سوی دی دا په هغه صورت کي دی کله چي یو سړی دغه کلمې سل واره ووایي او کوم څوک چي دغه کلمې څومره زیاتي وایي هغومره زیات اجر او ثواب به تر لاسه کوي، او بیا دا چي دغه کلمې که په مختلفو وختو کي سل واره ووایي او که په یوه وخت کي یې پر یوه ځای سل واره ووایي په دواړو صورتو کي مذکوره ثواب حاصلیږي مګر غوره دادی چي دغه کلمات په یو وار سل واره او د ورځي په شروع کي وویل سي چي پوره ورځ د شیطان څخه پناه حاصله وي.

## لاحول ولاقوة الا بالله د جنت خزانه ده

﴿۲۱۹۵﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو موسی اشعري رضی الله عنه څخه روایت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ سره په سفر کي وو

فِي سَفَرٍ فَجَعَلَ النَّاسُ يَجْهَرُونَ بِالتَّكْبِيرِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

چي خلکو په لوړ آواز سره الله اکبر ویل پیل کړل، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل:

أَيُّهَا النَّاسُ ارْبَعُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ إِنَّكُمْ لَا تَدْعُونَ أَصَمَّ وَلَا غَائِبًا إِنَّكُمْ تَدْعُونَ

خلکو پر ځان رحم وکړئ تاسو یو کوڼ او غائب نه رابولئ، بلکه هغه ذات یادوئ چي

سَمِيعًا بَصِيرًا وَهُوَ مَعَكُمْ وَالَّذِي تَدْعُونَ أَقْرَبُ إِلَى أَحَدِكُمْ مِنْ عُنُقِ

سمیع او بصیر دئ یعني هر شي او خبره اوریدونکی او لیدونکی دئ او هغه هر وخت ستاسو سره دئ او تاسو چي څوک یادوئ هغه د سپرلۍ تر غاړي

رَاحِلَتِهِ قَالَ أَبُو مُوسَى وَأَنَا خَلْفَهُ أَقُولُ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ فِي نَفْسِي

هم نژدې دئ . ابو موسی وایي: زه د رسول الله ﷺ په سپرلۍ پسي روان وم او په زړه کي مي ویل: لاحول ولاقوة الا بالله ، چي رسول الله ﷺ راته وفرمایل:

فَقَالَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ قَيْسٍ أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى كَنْزٍ مِنْ كُنُوزِ الْجَنَّةِ فَقُلْتُ بَلَى يَا

اې ابو موسی ! زه تا ته د جنت د خزانو څخه یوه خزانه ونه ښیم ؟ ما عرض وکړ هو، اې د الله رسوله ! خامخا یې را وښیه،

رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ . متفق عليه .

نو رسول الله ﷺ راته وفرمایل : هغه خزانه : لاحول ولاقوة الا بالله . ده . بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري) ١١\١٨٧، رقم: ٦٣٨٤، ومسلم في الصحيح ٢٠٧٦\٤، رقم: ٤٤ - ٢٧٠٤.

**تشريح**: په زوره تکبير ويل شروع کول: ددې مطلب دادی چي پر يو لوړ ځای باندي په ختلو سره چي کوم تکبير ويل سنت دي هغه به صحابه کرامو په لوړ آواز سره شروع کړل ، او يا د تکبير څخه ذکر هم مراد کېدای سي د هغه مطلب دادی چي دلته صحابه کرامو په لوړ آواز ذکر کول شروع کړي وه .

ددغه حديث په پای کي : لاحول ولاقوة الا بالله– ته خزانه ځکه ويل سوي دي چي د هغه ويونکي ته ډېر زيات ثواب تر لاسه کيږي او هغه ددې په برکتونو داسي نازول کيږي لکه څرنګه چي د دنيوي خزانې څخه بلکه ددغه نعمتونو په مخکي د دنيا لويه خزانه هم هيڅ حيثيت نه لري. د لاحول په باره کي مشائخو ليکلي دي چي په دغه ذکر سره په اعمالو کي څومره زياته مرسته کيږي او په دې سره څومره زيات برکت حاصيږي دومره مرسته او برکت په بل هيڅ ذکر سره نه حاصليږي، دوې کلمې دادي د ګناه څخه د ساتني طاقت او د الله تعالی د عبادت کولو قوت د الله تعالی له خوا ورکول کيږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د تسبيح او تحميد ثمره

﴿۲۱۹۶﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ الْعَظِيمِ وَبِحَمْدِهِ غُرِسَتْ لَهُ نَخْلَةٌ فِي الْجَنَّةِ . رواه الترمذي

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : چا چي سبحان الله و بحمده

وویل د هغه لپاره په جنت کي د خرما یوه درخته لګول کیږي . ترمذي

**تخریج**: الترمذي في السنن ۵\۴۷۷، رقم: ۳۴۶۴.

**تشریح**: د خرما درخته ځکه خاص سوې ده چي نه یوازي دا چي د خرما درخته ډېره ګټه ورکونکې ده بلکه ددې میوه هم ډېره ښه او خوندوره ده.

## هر سهار د ملائکو له خوا د تسبیح اواز

﴿۲۱۹۷﴾: وَعَنِ الزُّبَيْرِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ صَبَاحٍ يُصْبِحُ الْعباد فِيهِ إِلَّا وَمُنَادٍ يُنَادِي سبحو الْمَلِكِ الْقُدُّوسِ. رواه الترمذي

د حضرت زبیر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هره ورځ سهار وختي یو اعلان کونکی اعلان کوي چي د پاچا او پاک ذات پاکي بیان کرئ. ترمذي

**تخریج**: الترمذي في السنن ۵\۵۲٦، رقم: ۳۵۶۹.

**تشریح**: یعني هره ورځ سهار وختي یوه ملائکه په لوړ آواز سره انسانانو ته تاکید کوي چي هغوئ دا ووایي: سبحان الملک القدوس، یاداسي ووایي: سبوح القدوس رب الملائکة والروح. یا ددې معنی داده چي هره ورځ سهار وخت کي یوه ملائکه خلک خبردار کوي چي هغوئ ددې خبري یقین او اعتبار ولري چي د هغوئ رب د ټولو عیبو او نقصاناتو څخه پاک دی

## غوره ذکر لااله الاالله

﴿۲۱۹۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفْضَلُ الذِّكْرِ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَفْضَلُ الدُّعَاءِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ. رواه الترمذي و ابن ماجة.

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: غوره ذکر: لااله الاالله، دئ او غوره دعاء الحمدلله ده. ترمذي او ابن ماجه

**تخریج**: الترمذي في السنن ۵\۴۳۱، رقم: ۳۳۸۳، وابن ماجه في السنن ۲\۱۲۴۹، رقم: ۳۸۰۰.

**تشریح**: لا اله الاالله - داځکه تر ټولو افضل ذکر دی چي د اسلام او ایمان د ټول وجود بنسټ په دې کي دی ددې څخه پرته نه ایمان صحیح کیږي او نه ددې څخه پرته څوک مسلمان کېدای سي، ځیني محققین فرمایي چي په ټولو اذکارو کي دغه کلمه تر ټولو غوره په دې وجه ده چي د ذاکر باطن د خرابو اوصافو څخه چي د انسان د باطن معبود وي پاکولو کي دې کلمې ته ډېر

عجیب او عظیم تاثیر حاصل دی ، د الله تعالی ارشاد دی : افرایت من اتخذ الهه هواه : ایا تاسو هغه سړی ولیدی چي هغه خپل نفساني خواهشات خپل معبود ګرځولي دي، څوک چي د لا اله الاالله ذکر کوي نو د لا اله په ذریعه د ټولو معبودانو څخه نفي کیږي او د الا الله په ذریعه یو ازي د یوه معبود حقیقي یعني الله ﷻ اقرار کیږي بیا چي د ژبي څخه دغه کلمه وځي نو د هغه تاثیر د ظاهري ژبي سره د زړه خوا ته رجوع کوي او د هغه نتیجه دا سي چي د ژبي څخه د ټولو باطلو معبودانو نفي او د یوه حقیقي معبود اقرار او یقین حاصلیږي چي د هغه زړه او باطن ځلانده او منور کولو سره ټول باطني اوصاف پاکوي، او په پای کي دغه تاثیر د هغه پر ظاهري اندامو باندي غالب کیږي او د هغه ظاهري اندامو څخه هغه اعمال او افعال صادریږي کوم چي د هغه اقرار او اعتقاد عین تقاضا ده

الحمدلله - ته ځکه دعاء ویل سوي دي چي د کریم تعریف د دعاء او سوال په ټولی کي راځي او دې ته افضل ځکه ویل سوي دي چي د منعم حقیقي یعني د الله تعالی د حمد او شکر په معنی کي دي او ظاهره ده چي شکر په نعمت او برکت کي د زیاتوب موجب دی لکه څرنګه چي الله تعالی فرمایي : لئن شکرتم لازیدنکم، که تاسو شکر ادا کړي نو زه به زیات نعمت درکړم.

## د الله ﷻ تعریف د الله ﷻ شکر دی

﴿۲۱۹۹﴾ : وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْحَمْدُ رَأْسُ الشُّكْرِ مَا شَكَرَ اللهَ عَبْدٌ لاَّ يَحْمَدُهُ .

حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د الله تعالی تعریف شکر بنسټ دئ او کوم بنده چي د الله تعالی تعریف ونه کړي هغه شکر ادا نه کړي . بیهقي.

**تخریج** : البیهقي في شعب الایمان ۹۶/۴ - ۹۷، رقم: ۴۳۹۵.

**تشریح** : حمد یعني د الله تعالی تعریف په ژبه سره کیږي او شکر په ژبي، زړه او اندامو سره کیږي نو د الله تعالی تعریف د الله تعالی د شکر یو ښاخ دی ، حمد د شکر سره ځکه ذکر سوی دی چي هغه دژبي فعل دی او د الله تعالی نعمت او د هغه تعریف په ژبه سره ښه بیانیږي او بیا دا چي ژبه د ټولو اندامو نائب ده ځکه حمد هم لکه چي اجمالا شکر دی او د مفصل شکر جزاء اعظم دی ځکه ویل سوي دي چي کوم بنده د الله تعالی حمد ونه کړي هغه د الله تعالی شکر هم

ادا نه کړ په دې خبره کي دې ته اشاره ده چي سړي ته پکار دي چي د خپل باطن په پاکۍ سره د خپل ظاهري احوالو ساتنه هم وکړي.

## په خوشحالي او مصيبت دواړو وختو کي د الله ﷻ تعريف

﴿۲۲۰۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَّلُ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تر ټولو وړاندي

مَنْ يُّدْعٰى إِلَى الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الَّذِيْنَ يَحْمَدُوْنَ اللّٰهَ فِي السَّرَّاءِ وَالضَّرَّاءِ.

رواهما البيهقي في شعب الإيمان

د قيامت په ورځ چي کوم خلک د جنت په لور بلل کيږي هغه به هغه خلک وي چي هغوئ په خوشحالي راحت او تکليف و غم دواړو حالاتو کي د الله تعالى تعريف کړی وي. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان: ۴\۱۱۵، رقم: ۴۴۸۳.

## د لا اله الا الله عظمت

﴿۲۲۰۱﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

قَالَ مُوْسٰى عَلَيْهِ السَّلَامُ يَا رَبِّ عَلِّمْنِيْ شَيْئًا أَذْكُرُكَ بِهِ وَأَدْعُوْكَ بِهِ فَقَالَ يَا

حضرت موسى عليه السلام الله تعالى ته عرض وکړ: اې زما پروردګاره! ما ته يو داسي شى وښيه چي زه د هغه په ذريعه تا ياد وم، يا د هغه په ذريعه ستا څخه دعاء غواړم، الله تعالى وفرمايل:

مُوْسٰى قُلْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ فَقَالَ يَا رَبِّ كُلُّ عِبَادِكَ يَقُوْلُ هٰذَا إِنَّمَا أُرِيْدُ شَيْئًا

اې موسى! ته دا وايه: لا اله الا الله، حضرت موسى عليه السلام عرض وکړ اې پروردګاره! دا خو ستا هر بنده وايي زه خو يو خاص شى غواړم چي زما لپاره خاص وي،

تَخُصُّنِيْ بِهِ قَالَ يَا مُوْسٰى لَوْ أَنَّ السَّمَاوَاتِ السَّبْعَ وَعَامِرَهُنَّ غَيْرِيْ وَالْأَرَضِيْنَ

الله تعالى ورته وفرمايل: اې موسى! که اووه آسمانونه او د هغو ټوله ابادي پرته زما څخه، او

او وه مځکه په يوه پله کي کښېښنودل سي

السَّبْعَ وُضِعْنَ فِيْ كَفَّةٍ وَلاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ فِيْ كَفَّةٍ لَمَالَتْ بِهِنَّ لاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ. رواه في شرح السنة

او په بله پله کي لااله الاالله کښېښنودل سي نو د لااله الاالله پله به تر دې ټولو شيانو درنه سي. شرح السنة.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۵\ ۵۴- ۵۵، رقم: ۱۲۷۳.

**تشريح**: که دا اشکال پيدا سي چي حضرت موسی عليه السلام خو د داسي ذکر يا دعاء طلب کړی وه کوم چي د هغه لپاره مخصوص وو او د هغه په ذريعه د نورو څخه فائق يم، نو د سوال سره د جواب څه مطابقت پيدا سو، چي هغه ته وفرمايل سول چي لا اله الاالله وايه، ددې مطلب دا سو چي الله تعالی هغه ته د لا اله الاالله په تعليم ورکولو سره دې ته اشاره ده چي تا د يو محال شی طلب کړی دی ځکه چي داسي هيڅ دعاء او داسي هيڅ ذکر نه سته چي تر دې کلمې افضل وي.

په هر حال د حضرت موسی عليه السلام د عادت بشري سره سم د يو مخصوص دعاء او ذکر طلب وکړ ځکه چي د انسان دا فطرت دی چي هغه ته هغه وخت ډېره زياته خوشحالي حاصليږي او کله چي د يو شي سره مختص کړل سي چي د هغه څخه پرته د چا سره نه وي مثلاً د چا سره يو داسي جواهر وي چي د هغه څخه پرته د بل چا سره نه وي نو هغه ته د هغه قيمتي شي په موجودتيا سر زيات په دې احساس خوشحالي وي چي هغه د يو داسي شي مالک دی چي د هغه څخه پرته ه د بل چا سره نسي تر لاسه کېدای، دا حال د اسماء، دعاګانو علوم او هنر دی چي په هغه کي يو شي د چا سره وي نو هغه د بل سره نه وي نو هغه ته زياته خوشحالي تر لاسه کيږي حالانکه د الله تعالی رحمت د هغه د قدرت نظام داسي دی چي کوم شی د کائنات انساني لپاره تر ټولو قيمتي او تر ټولو عزيز دی هغه تر ټولو زيات تر لاسه کولای سي مثلاً ژوند، اوبه او مالګه چي دا شيان تر ټولو زيات قيمتي او غوره دي خو دا شيان زيات تر لاسه کيږي پر خلاف د زمرود، ياقوت او زعفران او داسي نور چي دغه شيان قيمتي او غوره نه دی مګر کم دي همداسي په مصحف شريف يعني قرآن کريم کي تر ټولو کتابو افضل دی مګر نه يوازي دا چي ډېر تر لاسه کيږي بلکه ډېر ارزانه هم تر لاسه کيږي ددې په مقابله کي د کيميا علم وغيره څه حقيقت دی مګر ددې سربېره خالي معلوميږي دا ښېله خبره ده چي د جاهل او بې عقل خلکو په

نظر کي ددې د تر لاسه کولو ځومره خواهش او په دې سره ځومره زياته خوشحالي تر لاسه کيږي د هغه عشر عشير هم د قرآن او حديث په علم سره نه خوشحاله کيږي يا همدا رنګه کلمه طيبه او کلمه شهادت دا په ټولو کلمو کي اشرف او په ټولو عباداتو او په ټولو اذکارو کي غوره او په ټولو حسناتو کي کامل دي مګر د خپل وجود په اعتبار اکثر او د تر لاسه کولو په اعتبار اسان دي بيا هم عوامو دا ترک کړي دي او هغه اذکار او دعاوي يې خپل معمول ګرځولي دي چي په قرآن کريم او حديث کي د هغو د اکثرو برخو حقيقت هم نسته.

په هر حال ددغه مثالو د بيانولو مقصد دادی چي اکثره خيرونه د خپل حقيقت په اعتبار ډېر اعلی دي مګر د کثرت په سبب خلک د هغه قدر نه پيژني او کوم شيان چي په دغه درجه غوره نه وي خلک هغه د کيميايي په وجه غوره ګڼي.

په پای کي په دې خبره پوه سئ چي الله تعالی حضرت موسی عليه السلام ته الهام وکړ چي هغه ددغه جواب خواست وکړي او رب العزت هغه ته دا جواب ورکړي چي ددغه عظيم کلمې عظمت او فضيلت د عوامو او خواصو په نظر کي ظاهر سي او هغه هر وخت په هر حال کي خپل وظيفه وګرځوي.

﴿۲۲۰۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ وَّ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه او ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

وَسَلَّمَ مَنْ قَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ صَدَّقَهُ رَبُّهُ قَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنَا وَأَنَا أَكْبَرُ

څوک چي لااله الاالله والله اکبر، ووايي نو د هغه پروردګار ددې الفاظو تصديق کوي، الله جل جلاله فرمايي: لااله الاانا وانا اکبر،

وَإِذَا قَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَاشَرِيْكَ لَهُ يَقُوْلُ اللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنَا وَحْدِيْ

او هر کله چي هغه ووايي: لااله الاالله وحده لا شريک له، نو الله تعالی فرمايي: لااله الا انا وحدي

لَاشَرِيْكَ لِيْ وَإِذَا قَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ قَالَ اللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنَا

لاشريک لي، او هر کله چي هغه وايي: لااله الاالله له الملک وله الحمد، نو الله تعالی فرمايي: لااله الا انا

لِيَ الْمُلْكُ وَلِيَ الْحَمْدُ وَإِذَا قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ قَالَ لَا

لي الملك ولي الحمد، او هر كله چي بنده وايي لااله الاالله ولاحول ولاقوة الا بالله، نو الله تعالى فرمايي: لا

إِلَهَ إِلَّا أَنَا وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِي وَكَانَ يَقُولُ مَنْ قَالَهَا فِي مَرَضِهِ ثُمَّ مَاتَ لَمْ تَطْعَمْهُ النَّارُ. رواه الترمذي و ابن ماجة.

اله الاانا لاحول ولاقوة الا بي، رسول الله ﷺ فرمايي: څوک چي دا كلمات په خپله ناروغي كي وايي او بيا مړ سي نو اور هغه نه سي سوځلای. ترمذي او ابن ماجه.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۳۴۸، رقم: ۳۴۳۰، وابن ماجه في السنن ۲\۱۲۴۶، رقم: ۳۷۹۴.

## د تسبيح او تحميد فضيلت

﴿۲۲۰۳﴾: وَعَنْ سَعْدِ ابْنِ أَبِي وَقَّاصٍ أَنَّهُ دَخَلَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت سعد ابن ابي وقاص ﷺ څخه روايت دئ چي هغه د نبي كريم ﷺ سره

وَسَلَّمَ عَلَى امْرَأَةٍ وَبَيْنَ يَدَيْهَا نَوًى أَوْ حَصًى تُسَبِّحُ بِهِ فَقَالَ أَلَا أُخْبِرُكِ بِمَا هُوَ

يوې ښځي ته ورغلی چي د هغې په وړاندي د خرماوو هډوكي پراته وه، او هغې به شميرل او سبحان الله به يې ويل، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ايا زه تا ته هغه شی و نښيم چي

أَيْسَرُ عَلَيْكِ مِنْ هَذَا أَوْ أَفْضَلُ سُبْحَانَ اللَّهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ فِي السَّمَاءِ وَسُبْحَانَ

تر دې اسان وي او غوره هم وي، او هغه دا دي چي سبحان الله عدد ما خلق..... زه پاكي بيانوم د الله جل جلاله د هغه د مخلوق د شمير سره سم چي په آسمان كي دي او زه پاكي بيانوم

اللَّهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ فِي الْأَرْضِ وَسُبْحَانَ اللَّهِ عَدَدَ مَا بَيْنَ ذَلِكَ وَسُبْحَانَ اللَّهِ

د الله جل جلاله د هغه د مخلوق د شمير سره سم چي په ځمكه كي دي او زه پاكي بيانوم د هغه د مخلوق د شمير سره سم چي د آسمانو او ځمكو په منځ كي دي او زه پاكي بيانوم

عَدَدَ مَا هُوَ خَالِقٌ وَاللَّهُ أَكْبَرُ مِثْلَ ذَلِكَ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ مِثْلَ ذَلِكَ وَلَا حَوْلَ وَلَا

د هغه د مخلوق د شمير سره سم چي تر ابده پوري پيدا كيدونكي دي او الله اكبر هم داسي او الحمد لله هم داسي او لااله الاالله هم داسي او لاحول ولا

قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ مِثْلَ ذَلِكَ . رواه الترمذي و ابوداؤد و قال الترمذي هذا حديث غريب .

قوة الا بالله هم داسي . ترمذي ، ابوداؤد ، ترمذي ويلي دا حديث غريب دئ .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\ ۵۲۵، رقم: ۳۵۶۸، ابوداود في السنن ۲\ ۱۶۹، رقم: ۱۵۰۰.

**تشريح**: په ځينو رواياتو كي دي چي هغه ښځه چي نبي كريم ﷺ او حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه هغې ته تشريف وړی وو د رسول الله ﷺ د بي بيانو مباركانو څخه وه يا خو ام المؤمنين بي بي جويريه رضي الله عنها وه او يا بله بي بي مباركه وه ، د خرما منديكي يا ډبري دا جمله د راوي شک څرګندوي ، راوي ته په يقين سره ياد نه دي چي هغه ښځي پر څه شي تسبيح ويل د خرما پر مندكو او كه پر ډبرو ځكه هغه د دواړو ذكر وكړ .

## د رواجي تسبيح بيان

كوم تسبيح چي نن سبا رواج دي هغه د رسول الله ﷺ په زمانه كي نه وه بلكه ځينو خلكو به پر هډوكو يا ډبرو باندي ويل او ځينو به تارونو ته غوټې وركولې او د هغو په ذريعه به يې شمېرل مګر دغه حديث څرنګه چي پر هډوكو يا ډبرو باندي د ويلو د جواز دليل دی رسول الله ﷺ هغه ښځه د هغه څخه منع نه كړه همدارنګه د رواجي تسبيح د جائز كېدو هم صحيح اصل ، بنياد او دليل دی ځكه چي د شمېر په اړه په پېولو يا بېله پيولو كي څه فرق نسته لكه څرنګه چي د ناپېولو هډوكو يا ډبرو باندي د ويونكي شی شمېر به مقصود وو همداسي د پيول سوو دانو تسبيح هم مقصد وي ځكه په دواړو كي فرق نه سته كه يو څوک دا ووايي چي د تسبيح هغه شكل چي نن سبا رواج دی بدعت دی نو پر دې باندي اعتماد كول نه دي پكار . مشائخ نه يوازي دا چي دې ته جائز وايي بلكه دا هم وايي چي دا د شيطان دُورې دي .

د سيد الطائفه حضرت جنيد بغدادي رحمه الله په باره منقول دي چي يو وار هغه د ټولو مدارجو په قطع كولو سره د انتهايي حالت ته رسيدلی وو د هغه په لاسو كي د تسبيح په لېدو سره يو چا پوښتنه وكړه نو هغه ورته وفرمايل چي دا څه شي دی چي ددې په ذريعه موږ الله تعالی ته رسيدلي يو نو زه دا څرنګه پرېښودلای سم .

والله اکبر مثل ذالک: او الله اکبر همداسي دی، ددغه جملې په اړه دوه احتماله دي یا خو د راوي الفاظ دي چي نبي کریم ﷺ څرنګه چي تسبیح یعني سبحان الله عدد وماخلق په پوره توګه بیان کړ همداسي رسول الله ﷺ تکبیر په پوره توګه بیان کړ یعني داسي یې بیان کړ: الله اکبر عدد ما خلق، نو راوي ددغه اختصار سره سم د وروستنیو کلمو تعلیم هم داسي وفرمایه یا دا چي دا د راوي د الفاظو څخه وي بلکه خپله نبي کریم ﷺ د اختصار په توګه: عدد ما خلق في السماء، په ویلو سره پر ځای د مثل ذالک باندي اکتفاء وکړه همداسي رسول الله ﷺ و ښودل چي کوم الفاظ یعني عدد ماخلق..الخ سره تسبیح وویل سي نو په هغه الفاظو سره دي تکبیر هم وویل سي همدارنګه وروسته جمله یعني والحمدلله مثل ذالک او داسي نورو کي دغه دواړه احتماله دي.

## د تسبیح، تحمید، تهلیل او تکبیر ثواب

﴿۲۲۰۴﴾: عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

عمرو بن شعیب د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَبَّحَ اللّٰهَ مِائَةً بِالْغَدَاةِ وَمِائَةً بِالْعَشِيِّ كَانَ كَمَنْ حَجَّ

څوک چي سبحان الله سل واره د سهار په وخت کي او سل واره د ماښام په وخت کي ووایي هغه ته د هغه چا په اندازه ثواب ورکول کیږي چي

مِائَةَ مَرَّةٍ وَمَنْ حَمِدَ اللّٰهَ مِائَةً بِالْغَدَاةِ وَمِائَةً بِالْعَشِيِّ كَانَ كَمَنْ حَمَلَ عَلَى

سل حجونه یې کړي وي او څوک چي د سهار په وخت کي الحمدلله سل واره او سل واره د ماښام په وخت کي ووایي هغه ته د هغه چا په اندازه ثواب ورکول کیږي چي هغه سل خلک

مِائَةِ فَرَسٍ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَمَنْ هَلَّلَ اللّٰهَ مِائَةً بِالْغَدَاةِ وَمِائَةً بِالْعَشِيِّ كَانَ

د الله ﷻ په لار کي پر اسانو سپاره کړي وي او څوک چي سل واره لااله الاالله د سهار په وخت کي او سل واره د ماښام په وخت کي ووایي هغه ته د هغه چا په اندازه ثواب ورکول کیږي چي

كَمَنْ أَعْتَقَ مِائَةَ رَقَبَةٍ مِنْ وَلَدِ إِسْمٰعِيلَ وَمَنْ كَبَّرَ اللّٰهَ مِائَةً بِالْغَدَاةِ وَمِائَةً

هغه سل غلامان د حضرت اسماعیل علیه السلام د اولاد څخه ازاد کړي وي او څوک چي سل

واره الله اکبر د سهار په وخت کي او سل واره د ماښام په وخت کي ووايي

بِالْعَشِيِّ لَمْ يَأْتِ فِي ذَلِكَ الْيَوْمِ أَحَدٌ بِأَكْثَرَ مِمَّا أَتَى بِهِ إِلَّا مَنْ قَالَ مِثْلَ ذالك

نو د قيامت په ورځ به د هغه څخه زيات ثواب هيڅوک نه راوړي مګر هغه څوک چي هغه هم دا کلمات دومره واره

أَوْ زَادَ عَلَى مَا قَالَ . رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن غريب .

يا ددې څخه زيات ويلي وي . ترمذي ويلي دا حديث حسن غريب دئ .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\ ۴۸۰، رقم: ۳۴۷۱.

**تشريح**: د هغه چا په ډول دی چي هغه سل حجونه کړي وي، ددې څخه دا خبره څرګندېږي چي آسانه ذکر په شرط ددې چي په هغه کي د الله تعالی سره د حضور کيفيت حاصل وي د هغه عبادات شاقه څخه افضل دی چي په هغه کي زړه د حضور او اخلاص څخه محروم او په غفلت کي اخته وي، مګر دا هم امکان دی چي څرنګه د يو کمي درجې د عمل فضيلت د مبالغې په توګه د بيانولو سره سم هغه عمل د هغه څخه د غوره درجې عمل په مثل ګرځول سوی دی همدارنګه د سبحان الله عظمت او فضيلت د مبالغې په توګه د بيانولو لپاره يې فرمايلي دي چي کوم څوک سهار او ماښام سل سل واره دا تسبيح وايي نو هغه به د نفل حج کونکی په مثل وي.

ځيني حضرات دا فرمايي چي د تسبيح (سبحان الله) په ويلو کي ډېر فضيلت دی ځکه ددې د ثواب په زياتوب سره د نفلي حج د ثواب برابر سو.

د الله تعالی په لاره کي پر سلو آسونو باندي د سپرېدو مطلب دادی چي هغه د جهاد لپاره سل آسونه ورکړي وي يا عاريتا يې ورکړي وي په دې خبره سره په ذکر الله کي د بوختيا ترغيب ورکول کيږي چي کوم څوک دنيا ته توجه نه کوي بلکه هغه د الله تعالی د حضور سره د سعادت عظمی په تر لاسه کولو کي خپل پوره کوښښ او هڅه کوي ځکه که عبادت بدني وي يا ماليه د داړو مجموعه د ټولو مقصد او خلاصه د الله ذکر دی او بيا دا خبره په فکر کي ساتل پکار دي چي مطلب په هر صورت د وسيلې څخه اعلی دی.

چا چي د اسماعيل عليه السلام د اولادې څخه سل غلامان ازاد کړي وي، ددې حقيقت د ذکر کونکو لپاره تسلي او ترغيب ورکول دي چي محتاج او د کم توانی په وجه د عبادت ماليه څخه عاجزه وي کوم چي شتمن خلک يې ادا کوي.

د اسماعيل علیہ السلام د اولاد څخه مراد اهل عرب دي کوم چي د نبي کريم ﷺ د قريب کېدو په وجه غوره او افضل دي ، د حديث د آخري خبرو څخه دا مفهوم اخيستل کيږي چي الله اکبر په هغه ټولو تسبيحاتو کي کوم چي په حديث کي ذکر سوي دي افضل دی حالانکه ډېر صحيح حديثونه پر دې دلالت کوي چي په دغه تسبيحاتو کي تر ټولو غوره لا اله الاالله دی بيا الحمد لله او بيا الله اکبر او بيا سبحان الله، نو ددې تاويل به دا وسي چي د حديث د آخري خبري مطلب دادی چي کوم څوک الله اکبر هر سهار او ماښام سل واره وايي نو د قيامت په ورځ به د لا اله الاالله د ويونکي او الحمدلله د ويونکي څخه پرته هيڅوک به تر دې زيات ثواب تر لاسه نه کړي کوم چي دغه سړی يې تر لاسه کوي .

﴿۲۲۰۵﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمرو رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

التَّسْبِيحُ نِصْفُ الْمِيزَانِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ يَمْلَؤُهُ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ لَيْسَ لَهَا حِجَابٌ

سبحان الله ويل د ترازو نيمه پله ډکوي او الحمدلله ويل ټوله پله ډکوي او لااله الاالله ويل د هغه لپاره الله تعالی ته په رسيدو کي څه پرده نه ده

دُونَ اللّٰهِ حَتّٰى تَخْلُصَ إِلَيْهِ . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب و ليس اسناده بالقوي .

او سيده الله تعالی ته رسيږي ، ترمذي ويلي دا حديث غريب دئ او ددې اسناد قوي نه دي .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۵۰۱، رقم: ۳۵۱۸.

**تشريح**: د الحمدلله ويل ميزان ډکوي: ددې مطلب دادی چي د الحمدلله ثواب د پوره ميزان ډکول دي او دا چي الحمدلله د سبحان الله څخه غوره دی يا دا مراد دی چي الحمدلله د سبحان الله برابر دی چي نيم ميزان خو د سبحان الله ثواب ډکوي او نيم ميزان د الحمدلله ثواب ډکوي همداسي د دواړو په يو ځای کېدو سره پوره ميزان ډکيږي .

د حديث د آخري الفاظو مطلب دادی چي لا اله الاالله د الله تعالی په دربا رکي ډېر ژر قبليږي او ددې ويونکی ډېر ثواب تر لاسه کوي همدارنګه د حديث د آخري برخي وضاحت ددې خبري دليل دی چي سبحان الله او الحمد لله څخه لا اله الاالله غوره دی .

﴿۲۲۰۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا قَالَ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي

عَبْدٌ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ مُخْلِصًا قَطُّ إِلَّا فُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ حَتَّى تُفْضِيَ إِلَى

په رښتوني زړه سره لااله الاالله ووايي نو دهغه لپاره د آسمان دروازې خلاصي سي او د هغه کلمه رسيږي تر

الْعَرْشِ مَا اجْتَنَبَ الْكَبَائِرَ . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب .

عرش پوري تر څو پوري چي هغه د لويو ګناهو څخه ځان وساتي . ترمذي ويلي دا حديث غريب دئ .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۵۳٦، رقم: ۳۵۹۰.

**تشريح**: د لويو ګناهونو څخه ځان ساتل د ژر قبليدو شرط دی او د اصلي ثواب لپاره شرط نه دی يعني دغه کلمه د الله تعالى په دربار کي هغه وخت ژر قبليږي کله چي د دغه کلمې ويونکی د لويو ګناهونو څخه ځان وساتي او اصل ثواب هغه ته په هر حال تر لاسه کيږي که څه هم د ګناهو څخه ځان ونه ساتي .

## تسبيحات د جنت درختي دي

﴿۲۲۰۷﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقِيتُ

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ما ملاقات وکړ

إِبْرَاهِيمَ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِي فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ أَقْرِئْ أُمَّتَكَ مِنِّي السَّلَامَ وَأَخْبِرْهُمْ

د ابراهيم عليه السلام سره د معراج په شپه (په اووم آسمان) کي، هغه وفرمايل : اې محمد ﷺ ! ته خپل امت ته زما سلام ورسوه او ورته ووايه چي

أَنَّ الْجَنَّةَ طَيِّبَةُ التُّرْبَةِ عَذْبَةُ الْمَاءِ وَأَنَّهَا قِيعَانٌ وَأَنَّ غِرَاسَهَا سُبْحَانَ اللّٰهِ

د جنت خاوره پاکه ده او د جنت اوبه خوږې دي او ددې ميدان د درختو څخه خالي دي او ددې درختي سبحان الله

وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ . رواه الترمذي و قال هذا حديث

حسن غريب اسنادا.

والحمد لله ولا اله الا الله والله اكبر دي. ترمذي ويلي دي دا حديث حسن د اسناد په اعتبار ضعيف دئ.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۴۷۶، رقم: ۳۴۶۲.

**تشريح**: د دغه امت مرحومه د شان او عظمت له کبله حضرت ابراهيم عليه السلام د نبي کريم ﷺ په واسطه پر دغه امت سلام راوليږی او همدارنګه د دغه امت سره يې د خپل تعلق اظهار وکړ ځکه د دې امت يو يو فرد ته پکار دي چي د دغه حديث په ذريعه کله هم د حضرت ابراهيم عليه السلام سلام واورېدل سي يا وويل سي نو دا دي وويل سي چي: وعليه السلام ورحمة الله وبركاته.

وان غراسها سبحان الله: او د دې درختې سبحان الله دي، د دې مطلب دادی چي ته خپل امت خبردار کړه چي د دغه کلمو په ذريعه سړی په جنت کي داخليږي او په جنت کي ډېري درختي لګيږي په دې توګه چي د کلمې په ويلو سره يوه درخته لګيږي ځکه دغه کلمه چي کوم څوک څومره زيات وايي د هغه له خوا په جنت کي هغومره زياتي درختي لګيږي. دا لکه چي دې ته اشاره ده چي د دغه کلمې ويونکی به د جنت په آرام او د سکون څخه ډک ځای کي په اطمينان او آرام سره وي او هلته به دغه کلمې د درختو په شکل کي د لازوال سکون ژوند ضامن وي.

## اذکار او اوراد پر ګوتو باندي ويل غوره دي

﴿۲۲۰۸﴾: وَعَنْ يُسَيْرَةَ وَكَانَتْ مِنَ الْمُهَاجِرَاتِ قَالَتْ قَالَ لَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

د حضرت يسيرة (رض) څخه روايت دئ چي موږ ته رسول الله ﷺ وفرمايل:

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْكُنَّ بِالتَّسْبِيحِ وَالتَّهْلِيلِ وَالتَّقْدِيسِ وَاعْقِدْنَ بِالْأَنَامِلِ

تاسو سبحان الله او لا اله الا الله، سبحان الملك القدوس يا سبوح قدوس ربنا و رب الملائكة ويل پر ځان لازم کړئ او پر خپلو ګوتو يې شميرئ

فَإِنَّهُنَّ مَسْئُولَاتٌ مُسْتَنْطَقَاتٌ وَلَا تَغْفُلْنَ فَتَنْسَيْنَ الرَّحْمَةَ. رواه الترمذي وابوداؤد

ځکه چي د ګوتو څخه به پوښتنه کيږي او دا به جواب ورکوي او په دې کي غفلت مه کوئ کنه نو د الله رحمت به تاسو هير کړي. ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۵۳۳، رقم: ۳۵۸۳، وابوداود في السنن ۲\۱۷۰، رقم: ۱۵۰۱.

**تشريح**: په دې خو ټول پوهيږي چي د قيامت په ورځ به د انسان د بدن يو يو اندام د خپل مالک د اعمالو شاهد وي، د الله تعالى ارشاد دى: يوم تشهد عليهم السنتهم وايديهم وارجلهم بما كانوا يعملون، هغه ورځ په ياد كړه چي د هغوئ ژبه، لاسونه او پښې به د هغه شيانو شاهدي وركوي كوم چي هغوئ كړي دي.

د الله تعالى په ارشاد كي پوښتنه كيږي په دې كي دې ته اشاره ده چي د قيامت په ورځ به الله تعالى د ګوتو څخه پوښتنه كوي چي وښيه تاسو په دنيا كي څه كړي دي ؟ او بيا د جواب وركولو لپاره به هغه ګوتو ته وينا وركړل سي نو هغه ګوتي به د خپل مالک ښه او بد اعمالو باندي شاهدي وركوي كوم چي هغه د ګوتو په ذريعه كړي وي، ځكه رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي تسبيحات پر خپلو ګوتو شمېرئ چيځ سبا به د قيامت په ورځ ستاسو پر دغه نيک عمل شاهدي وركوي.

ددې څخه دا خبره معلومه سوه چي اذكار او تسبيحات پر ګوتو شمېرل غوره دي كه څه هم پر نورو شيانو باندي ويل هم جائز دي او په دې كي ددې خبري ترغيب هم دى چي د بنده د عقل و شعور تقاضا دا كېدل پكار دي چي هغه خپل د بدن اندامونه په هغه كارو كي بوخت وساتي كوم چي د الله تعالى د رضا او خوښۍ باعث وي او خپل يو يو اندام د ګناه څخه وساتي چي د قيامت په ورځ هيڅ يو اندام د ګناهو په شاهدي وركولو سره د الله تعالى په عذاب كي اخته نه كړل سي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### غوره ورد او غوره دعاء

﴿۲۲۰۹﴾: عَنْ سَعْدِ ابْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو صحرايي رسول الله ﷺ ته راغلى

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عَلِّمْنِي كَلَامًا أَقُولُهُ قَالَ قُلْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ

او ويې ويل: ما ته يوه داسي كلمه وښيه چي زه يې وايم، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: دا كلمه وايه: لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ

لَهُ اللّٰهُ أَكْبَرُ كَبِيرًا وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ كَثِيرًا سُبْحَانَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ لَا حَوْلَ وَلَا

لَهُ اللّٰهُ أَكْبَرُ كَبِيرًا وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ كَثِيرًا سُبْحَانَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ لَا حَوْلَ وَلَا

قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ فَقَالَ فَهَؤُلَاءِ لِرَبِّي فَمَا لِي قَالَ قُلْ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ

قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ .هغه وويل : دا خو د الله ﷻ لپاره سو اوس زما لپاره يې راوښيه : رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : دا كلمات وايه : اللّٰهُمَّ اغْفِرْ

لِي وَارْحَمْنِي وَاهْدِنِي وَارْزُقْنِي وَعَافِنِي وَ شَكَّ الرَّاوِي فِي عَافِنِي . رواه مسلم

لِي وَارْحَمْنِي وَاهْدِنِي وَارْزُقْنِي وَعَافِنِي. ددې حديث راوي په عافني كي شک كړی دئ . مسلم.

**تخريج** : صحيح مسلم ۴\ ۲۰۷۲، رقم: ۳۳- ۲۶۹۶.

**تشريح** : د بزاز په روايت کي په (لاحول ولاقوة الا بالله العزيز الحكيم) كي د العزيز الحكيم پر ځای العلي العظيم راغلی دی او په عامه توګه خلک العلي العظيم هم وايي كه څه هم په صحيح مسلم كي العزيز الحكيم نقل سوي نه دي .

## په تسبيح سره د ګناهو سقوط

﴿۲۲۱۰﴾ : وَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مر على بِشَجَرَةٍ

د حضرت انس ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د يوې درختي سره تير سو چي

يَابِسَةِ الْوَرَقِ فَضَرَبَهَا بِعَصَاهُ فَتَنَاثَرَ الْوَرَقُ فَقَالَ إِنَّ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَسُبْحَانَ

د هغې پاڼي وچي وي ، رسول الله ﷺ د هغه ښاخ په لکړه ووهئ نو پاڼي ځيني شوه سوې پر مځكه ولوېدې، رسول الله ﷺ و فرمايل : الحمد لله، سبحان الله

اللّٰهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ لَتُسَاقِطُ مِنْ ذُنُوبِ الْعَبْدِ كَمَا تَسَاقَطَ وَرَقُ

هَذِهِ الشَّجَرَةِ . رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب .

او لااله الاالله او الله اكبر ويلو سره د بنده ګناهو نه داسي رژيږي لكه څرنګه چي ددې درختي پاڼي ورژېدلې . ترمذي ويلي دا حديث غريب دئ .

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۵۰۸، رقم: ۳۵۳۳.

## د لاحول ولاقوة فضیلت

﴿۲۲۱۱﴾: وَعَنْ مَكْحُولٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

حضرت محکول د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت کوي چي ما ته رسول الله ﷺ وفرمایل:

وَسَلَّمَ أَكْثِرْ مِنْ قَوْلِ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ فَإِنَّهَا مِنْ كَنْزِ الْجَنَّةِ قَالَ

لاحول ولاقوة الا بالله ډیر وایه ځکه چي دا د جنت یوه خزانه ده ، محکول وایي

مَكْحُولٌ فَمَنْ قَالَ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ وَلَا مَنْجَأَ مِنَ اللهِ إِلَّا إِلَيْهِ كَشَفَ

څوک چي لاحول ولاقوة الا بالله و لامنجا من الله الا الیه ، ووایي نو لیري کوي

اللهُ عَنْهُ سَبْعِينَ بَابًا مِنَ الضُّرِّ أَدْنَاهُنَّ الْفَقْرُ . رواه الترمذي و قال هذا

حديث ليس اسناده بمتصل ومكحول لم يسمع عن ابي هريرة .

الله تعالی د هغه څخه د تاوان اویا ډولونه او مفلسي ددې ډولو څخه یو کم ډول دئ، ترمذي ویلي دي ددې سند متصل نه دئ او د مکحول اوریدل د ابو هریرة څخه ثابت نه دي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۵۴۱، رقم: ۳۶۰۱.

**تشریح**: د جنت خزانه ده : ددې مطلب دادی چي لاحول ولاقوة الا بالله– د جنت یوه ذخیره ده چي ددې ویونکي به د قیامت په ورځ ور څخه ګټه تر لاسه کړي په کومه ورځ چي د دنیا مال او خزانه په کار نه راځي او نه به اولاد او نور قریبان ګټه رسولای سي.

د فقر څخه مراد د زړه فقر او د زړه تنګي ده چي د هغه په اړه یو حدیث دی : کاد الفقر ان یکون کفرا – فقر کفر ته نژدې رسوي.

کوم څوک چي دغه کلمې وایي نو ددې په برکت به د هغه د زړه محتاجي لیري کیږي کله چي هغه پر ژبه باندي دغه کلمې ادا کوي او بیا ددغه کلمو په معنی او مفهوم کي فکر کوي نو د هغه په زړه کي دا یقین او عقیده پیدا کیږي چي هر امر د الله تعالی له خوا دی هر شی د هغه په قبضه کي دی چا ته ګټه او فائده رسول د هغه په لاس کي دي او چا ته تکلیف او ضرر رسول د

هغه له خوا دي کوم څوک چي پر مصيبت او آفت باندي صبر کوي او پر نعمت او راحت باندي شکر کوي خپل ټول کارونه الله تعالى ته سپاري او همدارنګه د الله تعالى پر قضا باندي په راضي کېدو سره د الله تعالى محبوب بنده او دوست جوړيږي.

شيخ ابو الحسن شاذلي رحمه الله فرمايي چي د خپل سياحت په دوران کي د کوم چا ملګرتيا او صحبت ما ته تر لاسه سو هغه ما ته د نيکۍ او خبر د وصيت په کولو سره وفرمايل چي په بنده ډول يوه سه او د نيکو اعمالو لپاره په اقوالو او کلمو کي د لاحول ولاقوة الابالله برابر هيڅ شی او د الله تعالى کلمې ته د کښنته کېدو او د هغه د فضل د لاري د اختيارولو برابر هيڅ عمل معاون نه سته.

ومن يعتصم بالله فقد هدي الى صراط مستقيم: کوم څوک چي د الله تعالى بنودل سوې لاره اختيار کړي نو بېشکه هغه د ټينګي لاري هدايت تر لاسه کړ.

د امام ترمذي د قول سره سم که څه هم د دغه حديث سند متصل نه دی او دا حديث منقطع دی مګر دا حديث د موسى عليه السلام د هغه روايت څخه مرفوع کيږي چي هغه نسائي او بزاز نقل کړی دی چي لاحول ولاقوة الا بالله فانها کنز من کنوز الجنة، همداسي د حديث توثيق د حضرت ابو هريره رضي الله عنه د روايت مرفوع څخه هم کيږي لکه څرنګه چي نسائي او بزاز هم نقل کړي دي چي لا حول ولاقوة الا بالله او په دې کي لامنجا من الله الا اليه کنز من کنوز الجنة هم دی نو د مکحول دغه حديث که څه هم د اسناد په اعتبار منقطع دی مګر د مفهوم او معنی په اعتبار د اعتماد وړ دی.

﴿۲۲۱۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللّٰهِ دَوَاءٌ مِّنْ تِسْعَةٍ وَّتِسْعِيْنَ دَاءً اَيْسَرُهَا الْهَمُّ "

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: لاحول ولاقوة الا بالله، د يو کم سلو ناروغيو دوا ده چي په هغه کي معمولي ناروغي غم دئ. بيهقي

**تخريج**: رواه البيهقي في الدعوات الكبير.

﴿۲۲۱۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلاَ اَدُلُّكَ عَلٰى كَلِمَةٍ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ايا زه تا ته يوه کلمه ونه ښيم

مِّنْ تَحْتِ الْعَرْشِ مِنْ كَنْزِ الْجَنَّةِ لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللهِ يَقُوْلُ اللهُ تَعَالٰى

چي د عرش د لاندي څخه او د جنت د خزانو څخه نازله سوې ده او هغه : لاحول ولاقوة الا باالله، ده هر كله چي بنده دا ووايي نو الله تعالى فرمايي :

أَسْلَمَ عَبْدِيْ وَاسْتَسْلَمَ . رواهما البيهقي في الدعوات الكبير

زما بنده فرمانبردار سو يا زما بنده خلاصون تر لاسه كړ او فرمانبردار سو، يا هغه ټول كارونه الله ته وسپارل، بيهقي.

**تخريج** : رواه البيهقي في الدعوات الكبير.

﴿۲۲۱۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ قَالَ سُبْحَانَ اللهِ هِيَ صَلاَةُ الْخَلاَئِقِ وَالْحَمْدُ للهِ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي سبحان الله د مخلوقاتو عبادت دئ او الحمد لله

كَلِمَةُ الشُّكْرِ وَلاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ كَلِمَةُ الْإِخْلاَصِ وَاللهُ أَكْبَرُ تَمْلأُ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ

د شكر كلمه ده او لااله الاالله د اخلاص كلمه ده او الله اكبر د آسمان او مځكي منځ ډكوي

وَالْأَرْضِ وَإِذَا قَالَ الْعَبْدُ لاَحَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللهِ قَالَ اللهُ تَعَالٰى أَسْلَمَ وَاسْتَسْلَمَ . رواه رزين

او هر كله چي بنده لاحول ولاقوة الا باالله ووايي نو الله تعالى د هغه په جواب كي وايي زما بنده فرمانبردار سو او ډير فرمانبردار سو . رزين.

**تشريح** : سبحان الله د مخلوقاتو عبادت دى، مطلب دادى چي د الله تعالى په دغه ارشاد : وان من شئ الا يسبح بحمده، او په مخلوقاتو كي هيڅ شى داسي نه سته چي د الله تعالى پاكي د هغه په تعريف سره نه بيانوي، ټول مخلوقات د الله تعالى پاكي بيانوي ځكه دا د هغوئ عبادت دى.

=========

# بَابُ الْاِسْتِغْفَارِ وَالتَّوْبَةِ

## د استغفار او توبې بیان

د استغفار معنی ده د الله تعالی څخه بخښنه غوښتل او د استغفار په ضمن لکه څرنګه چي توبه راځي همدارنګه توبه د استغفار په ضمن کي هم راځي ځکه نو د باب د عنوان په تاکلو سره په خاصه توګه د التوبة ذکر سوی دی یا والتوبة ځکه ذکر سوی دی چي استغفار خو د ژبي سره تعلق لري چي بنده د خپل ژبي په ذریعه د الله تعالی څخه بخښنه او مغفرت غواړي او د توبې تعلق د زړه سره دی ځکه چي پر ګناه باندي پښېماني او شرمندګي او بیا الله تعالی ته رجوع کول او په راتلونکي کي د ګناهونو څخه ځان ساتل په زړه سره کیږي .

د توبې معنی ده د ګناهو څخه طاعت ته رجوع کول ، د غفلت څخه ذکر ته ، د غیبت څخه حضور ته . د الله تعالی له خوا د بنده د بخښني مطلب دادی چي الله تعالی د هغه بنده ګناهونه په دنیا کي هم پټوي په دې توګه چي چا ته د هغه د ګناه علم ونه سي او په آخرت کي د هغه ګناهونه پټ سي په دې توګه چي د هغه د ګناهو په وجه هغه په عذاب کي اخته نه سي .

سید الطائفة جنید بغدادي رحمة الله علیه څخه پوښتنه وسوه چي د توبې څه مطلب دی؟ هغه وفرمایل : ګناه هېرول یعني د توبې کولو وروسته د ګناه د خوند احساس د زړه څخه داسي ختم سي لکه هغه چي یې نه پیژني چي ګناه څه شي ده .

د سهیل تستري رحمة الله علیه څخه پوښتنه وسوه چي د توبې څه مفهوم دی؟ هغه وفرمایل چي ته ګناه مه هېروه چي د الله تعالی د عذاب د بیري څخه په راتلونکي کي د یو ګناه جرائت نه وي.

د الله تعالی ددغه حکم : توبوا الي الله جمیعا - تاسو ټول الله تعالی ته رجوع وکړئ، مطابق استغفار یعني د بخښني طلب او توبه کول پر هر بنده باندي واجب دي ځکه چي هیڅوک د خپل حال او مرتبې په لحاظ د ګناه او هیري څخه خالي نه دی نو پر هر چا باندي لازم ده چي د خپلو تېرو ګناهو څخه توبه وباسي د بخښني او مغفرت طلب وکړي او په راتلونکي کي د ټولو ګناهونو څخه ځان وساتي او سهار او ماښام توبه او استغفار د خپل ځان معمول وګرځوي چي د ټولو کوچنیو او لویو ګناهونو کفاره سي که هغه ګناه یې په قصد سره کړې وي او که په خطا یا هېره سره یې کړې وي او د ګناهونو د نحوست په وجه د طاعت د توفیق څخه محروم نه سي او پر ګناهونو باندي همېشتوب یې کفر او دوږخ ته ونه رسوي .

د توبې د صحيح او قبلېدو لپاره څلور خبري ضروري دي او د شرط په درجه کي ۱: يو خو دا چي محض د الله تعالی د عذاب د بيري څخه او د هغه د حکم د تعظيم سره سم توبه وکړي او د توبې څخه بل هيڅ غرض نه وي مثلا د خلکو د تعريف او صفت تر لاسه کولو لپاره او د ضعف او نقر په وجه د توبې دخل نه وي، ۲: دوهم دا چي پر تېرو گناهونو باندي په حقيقت کي شرمندگي او پښيماني وي ۳: دريم دا چي په راتلونکي کي د ظاهري او باطني گناهونو څخه پرهېز وکړي، ۳: او څلورم دا چي پخه اراده وکړي چي په راتلونکي کي به هيڅکله گناه نه کوم.

د توبې کيفيت او اثر او په راتلونکي کي د گناهونو نه کولو اراده صحيح کېدل دا دي چي توبه کونکی د خپل بلوغ او امتداد څخه د توبې کولو تر وخت پوري د ټول وخت څارنه وکړي او دا وگوري چي د هغه څخه څه گناهونه سوي دي چي په هغه کي د هري يوې گناه بنديز وکړي که په هغه وخت کي هغه لمونځ، روژه، حج، زکوة او نور فرضونه ترک کړي وي نو د هغه قضا دي وکړي او خپل وخت په نفل يا فرض کفايه عباداتو کي په بوخت کېدو سره د هغه فرضونو په قضا کولو کي دي سستي نه کوي.

همدا رنگه په دغه وخت کي که منع او حرام کارونه يې کړي وي مثلا شراب يې څښلي وي يا يو بل ممنوع او غير شرعي کار يې کړی وي نو د الله تعالی په دربار کي دي د هغه څخه توبه و استغفار وکړي او ددې سره سره دي د الله تعالی پر نامه باندي د غريبانو او مسکينانو مرسته کوي او صدقه او خيرات دي کوي چي د هغه توبه قبوليت ته ورسيږي او د الله تعالی له وري هغه په بخښني او مغفرت سره ونازول سي او بيا د الله تعالی پر فضل او رحمت باندي دي يقين ولري چي انشاء الله تعالی د هغه توبه به قبوله سي او بخښنه به يې وسي خپله الله تعالی وعده کړې ده : هو الذي يقبل التوبة عن عباده ويعفو عن السيئات، هغه داسي رحيم او کريم ی چي د خپلو بندگانو توبه قبلوي او د هغوئ خطاوي معافوي.

دا خو د هغه توبې خبره ده چي هغه د گناهونو څخه وسي يعني د هغه تعلق يوازي د حق الله سره وي او که پر خپل ځان باندي داسي گناه وي چي د هغه تعلق د حقوق العباد يعني د بندگانو حقوق يې تلف کړي وي يا د هغوئ تاوان وي نو په دغه صورت کي دي د الله تعالی بخښنه او مغفرت وغواړي ځکه چي د هغه نافرماني يې وکړه او د هغه بندگانو څخه دي هم تدارک ولري کومو چي حق تلف سوی دی.

که چيري د حق تلف کېدل په مال سره وي نو د حق خاوند ته دي هغه مال ورکړي يا د هغه څخه دي معافي وغواړي او که د هغه تعلق د مال سره نه وي بلکه غيبت يا بل يو ذهني او بدني

تكليف يې ور رسولی وي نو د هغه څخه دي معافي وغواړي او که د حق تلف کېدل په يو داسي کوتاهي او قصور سره وي که چيري د معاف کولو په وخت کي د هغه ذکر نه کيږي او د فساد سبب جوړيږي نو په داسي صورت کي د هغه کوتاهۍ ذکر کولو پرته دي د هغه سړي څخه معافي وغواړي مثلا هغه ته دي داسي ووايي چي زما څخه کومه کوتاهي سوې وي هغه راته معاف کړه او که په داسي معافۍ غوښتنه کي هم د فتنې او فساد بېره وي نو بيا دي الله تعالی ته رجوع وکړي او د هغه په دربار کي دي زارۍ وکړي ، نېک او ښه کارونه دي وکړي صدقه او خيرات دي وکړي چي الله تعالی د هغه څخه راضي وي او هغه سړی چي د هغه حق تلف سوی دی د خپل فضل او کرم سره سم خپل ځان ته د اجر په ورکولو سره هغه راضي کړي که چيري د حق خاوند مړ سوی وي نو د هغه وارث څخه دي معافي وغواړي او د هغوئ سره دي ښه چلن وکړي او د مړي له خوا دي هم صدقه او خيرات وکړي .

د يو مؤمن مسلمان شان داسي کېدل پکار دي که چيري د هغه څخه يو ګناه وسي نو د هغه څخه په توبه کولو کي دي بالکل سستي او ځنډ نه کوي او د نفس په مکر او د شيطان په وسوسه کي د اخته کېدو سره دي دا سوچ نه کوي چي زه خو پر توبه قائم نه سم پاته کېدای نو توبه څرنګه وکړم، ځکه کله چي يو بنده توبه کوي نو د هغه وروستني ګناهونه بخښل کيږي ځکه نو د بشريت د تقاضا سره سم د توبې کولو وروسته که بيا ګناه وسي نو بيا دي توبه وکړي که څه هم ورځ کي څو واره داسي وسي په شرط د دې چي د توبې پر وخت په زړه کي دا خيال نه وي چي زه به بيا هغه ګناه کوم او توبه به وکړم بلکه د توبې کولو پر وخت دي دا احساس وي چي کېدای سي د بيا ګناه کولو څخه مخکي مړ سم او دا توبه زما آخري توبه وي .

کله چي يو څوک توبه کول غواړي نو مخکي دي غسل وکړي ، پاکي جامې دي واغوندي او دوه رکعته لمونځ دي د زړه په حضور سره وکړي په سجده کي په پرېوتلو سره دي ډېري زارۍ او تضرع سره خپل ځان ملامت کړي او د خپل تېرو ګناهونو په يادولو سره دي د الله تعالی د عذاب د بيري څخه خپل زړه په بېره کي کړي او د شرمندګۍ او پښيماني په پوره احساس سره دي توبه او استغفار وکړي او دي د لاس په پورته کولو سره د الله تعالی په دربار کي دا ووايي چي : اې زما پروردګاره! ستا د دربار څخه تښتېدلې دغه ګناه کار غلام د خپلو ګناهو څخه په توبې کولو سره ستا په دربار کي حاضر سوی دی ، په ډېره پښيماني او شرمندګۍ سره د خپلو ګناهونو بخښني ته راغلی دی ستا ذات رحيم او کريم دی ته ستار او غفار يې د خپل کرم په صدقه زما ګناه و بخښې او په خپل فضل سره زما معذرت قبول کړې او د رحمت په نظر ماته

وګورې نه يوازې دا چې زما تېر ګناهونه و بخښې بلکه په راتلونکي کي ما د هري ګناه څخه وساتې خبر ستا په قدرت کي دی او د خپلو ګناه کارو بندګانو ته بخښونکی يې ، ددې څخه وروسته دي درود شريف ووايي او د ټولو مسلمانانو لپاره دي بخښنه او مغفرت وغواړي.

دا خو د عامو خلکو توبه ده چې د هغوئ د ژوند او ګناه په مينځ کي څه فاصله نه وي او هغوئ په ګناه او معصيت کي اخته کيږي او د هغوئ دغه توبه د هغوئ د زيري مستحق ګرځول چي : ان الله يحب التوابين ويحب المتطهرين، مګر خاص کسان چي د الله تعالی فرمانبردار بندګان دي د هغوئ ژوند د معصيت او ګناه څخه ليري او د شريعت تابع وي د هغوئ توبه داده چي هغوئ د بدو اخلاقو څخه چي د هغه څخه د زړه پاکول واجب دي توبه وکړي همدارنګه د الله تعالی د عاشقانو توبه داده چي د بشريت د تقاضا سره سم که د هغوئ څخه د الله تعالی د ذکر او يا دا چي په الوهيت کي غفلت وسي او په غير الله کي بوخت سي نو سمدستي دي الله تعالی ته رجوع وکړي او د خپل کوتاهۍ څخه دي توبه وکړي.

په دې خبره پوهېدل پکار دي چي د لويو ګناهونو کول د ايمان څخه نه خارجوي مګر فاسق او ګناه کار يې کوي ، د ګناه صغيره او کبيره په اړه په باب الکبائر وعلامات النفاق کي په تفصيل سره بحث سوی دی هلته د ګناه دغه دواړه ډولونه په ښه ډول کتل کيدای سي.

او کوم چي د کوچنۍ ګناه تعلق دی نو هغه دومره زياتي وي چي په عام ژوند کي د هغه څخه پرهيز کول مشکل دي د مختار مذهب سره سم په کوچنيو ګناهونو سره په تقوا کي خلل نه واقع کيږي په شرط ددې چي پر کوچنيو ګناهو باندي دوام نه وي ځکه چي پر کوچنيو ګناهو باندي دوام کول د لويو ګناهو په درجه کي کيږي نو پر هر مسلمان باندي واجب دي چي هغه د کبيره ګناهو څخه او تر خپله وسه د صغيره ګناهو څخه ځان وساتي او پوه سي چي ګناه يې د ايمان څخه ونه باسي مګر ددې خبري بېره بايد وي چي د ګناه کرار کرار ژوند يې د کفر او دوږخ حد ته رسوي.

## د ګناهونو څخه د ځان ساتني علاج

د ګناهونو څخه د ځان ساتني يو اسانه علاج دادی چي په هر شي کي پر حد ضرورت باندي قناعت وکړل سي يعني کوم شيان چي د انساني ژوند د بقاء او تکميل لپاره بنيادي درجه لري په هغه کي يوازي تر هغه حده پوري قناعت وکړل سي چي ضروري وي او د ضرورت حد دادی چي دومره غذا چي د لوږي ختمولو لپاره ضروري وي دومره جامه چي ستر په پټ کړل سي او دومره ځای چي د ګرمۍ او يخ څخه په وساتل سي او دومره لوښي چي ضروري وي او يوه ښځه.

نو په دې پوهېدل پکار دي چې د ضرورت د حد څخه تجاوز کول او په مباح کار کي د وسعت اختيارولو په وجه انسان په هغه شيانو کي اخته کيږي چې مشتبه او مکروه وي او کله چې په مکروهاتو کي اخته سي نو بيا کرار کرار د حرامو شيانو کول هم شروع سي او دا هغه نکته ده چې د اسلام حد خو ختم سي او ددې څخه وروسته د کفر او اور مېدان شروع کيږي. نعوذبالله منه.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د رسول الله ﷺ توبه او استغفار

﴿۲۲۱۵﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللّٰهِ إِنِّي لَأَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ وَأَتُوْبُ إِلَيْهِ فِي الْيَوْمِ أَكْثَرَ مِنْ سَبْعِينَ مَرَّةً. رواه البخاري

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: په الله دي مي قسم وي زه په ورځ کي تر اويا واره زيات استغفار وايم او الله ته توبه کاږم. بخاري

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري) ۱۱\۱۰۱، رقم: ۶۳۰۷.

**تشريح**: رسول الله ﷺ په کثرت سره استغفار او توبه په دې وجه نه کول چې نعوذبالله د رسول الله ﷺ څخه يو گناه سوې وي بلکه ددې وجه دا وه چې رسول الله ﷺ د عبديت تر ټولو پر لوړ مقام باندي د فائز کېدو په وجه يې دا گڼل چې کېدای سي زما څخه د الله تعالى په بندگۍ او عبادت کي څه قصور سوی وي او ما بندگۍ داسي نه وي کړې کوم چې د الله تعالى د شان وړ وي او زما څخه مقصد امت ته د استغفار او توبې ترغيب ورکول وه چې رسول الله ﷺ سره ددې چې معصوم او خير المخلوقات وو نو کله چې رسول الله ﷺ په ورځ کي اويا واره توبه او استغفار کوي نو گناه کاري بايد په طريقه اولى تر دې زيات وکړي.

حضرت علي رضي الله عنه به فرمايل چې د مځکي پر مخ د الله تعالى له لوري دوې پناوي وي يوه خو پورته سوه او دوهمه پاته ده نو دغه دوهمه پناه اختيار کړي کومه پناه چې پورته سوه هغه خو د رسول الله ﷺ مبارک ذات وو او کومه پناه چې پاته ده هغه استغفار دی، د الله تعالى ارشاد دی: وماكان الله ليعذبهم وانت فيهم وما كان الله معذبهم وهم يستغفرون. او الله تعالى تر هغه وخته پوري څوک په عذاب کي نه اخته کوي تر څو چې ته (محمد ﷺ) په دوئ کي موجود يې او الله تعالى دوئ تر هغه وخته په عذاب کي نه اخته کوي تر څو چې دوئ استغفار کوي.

﴿۲۲۱۶﴾: وَعَنِ الْاَغَرِّ الْمَزَنِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّهُ لَيُغَانُ عَلَى قَلْبِي وَإِنِّي لَأَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ فِي الْيَوْمِ مِائَةَ مَرَّةٍ. رواه مسلم

د حضرت اغر مزني رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زما په زړه كي يو ډول راځي او زه په ورځ كي سل واره استغفار كوم. مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۴\۲۰۷۵، رقم: ۴۱- ۲۷۰۲.

**د لغاتو حل**: لِيُغان: اى يطبق ويغشى او يستر.

﴿۲۲۱۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ تُوبُوا إِلَى اللّٰهِ فَإِنِّي أَتُوبُ إِلَيْهِ فِي الْيَوْمِ مِائَةَ مَرَّةٍ. رواه مسلم

د حضرت اغر مزني رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: اي خلكو! الله ته توبه كاږئ زه هم الله ته د ورځي سل واره توبه كاږم. مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۴\۲۰۷۵، رقم: ۴۲- ۲۷۰۲.

**تشريح**: د دغه حديث په معنى او مفهوم كي د علماؤ ډېر قولونه دي چي په هغو كي يو قول دا دى چي رسول الله ﷺ دا خبره خوښول چي د رسول الله ﷺ زړه مبارك د الله تعالى سره هر وخت حاضر وي هيڅ يو وخت د هغه څخه غافل نه وي مګر كله چي مباح شيان مثلا خوراك، څښاك او د خپلو بيبيانو سره يو ځاى والى يا دا ډول نور كارو كي بوخت كيدى چي د هغه په وجه به د الله تعالى څخه غفلت كيدى نو دغه بوختيا به يې په خپل توګه يوه پرده او ګناه ګڼل او رسول الله ﷺ مبارك زړه به لړزان وو نو رسول الله ﷺ به ددې په وجه استغفار كوى، ددغه حديث په اړه تر ټولو ښه خبره هغه ده كوم چي ځينو عارفينو ويلې ده چي دغه حديث د متشابهاتو څخه دى ددې د اصل معنى علم الله تعالى ته او د هغه رسول ته دى د امت كار خو ازي دادى چي پر دغه حديث باندي ايمان راوړي او ددې د معنى په پوهېدو پسي ونه لګيږي.

### د رجوع الى الله حكم

﴿۲۲۱۸﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا رَوَى

حضرت ابو ذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د هغه حديثونو لړۍ چي

عَنِ اللهِ تَبَارَكَ وَتَعَالَى أَنَّهُ قَالَ يَا عِبَادِي إِنِّي حَرَّمْتُ الظُّلْمَ عَلَى نَفْسِي

رسول الله ﷺ به د لوى الله تعالى څخه روايت كول چي الله تعالى فرمايي : اې زما بندګانو ! ما پر خپل ځان ظلم حرام كړئ دئ

وَجَعَلْتُهُ بَيْنَكُمْ مُحَرَّمًا فَلَا تَظَالَمُوا يَا عِبَادِي كُلُّكُمْ ضَالٌّ إِلَّا مَنْ هَدَيْتُهُ

او ستاسو په منځ كي مي هم ظلم حرام كړئ دئ، نو تاسو په خپل منځ كي ظلم مه كوئ اې زما بندګانو تاسو ټول ګمراهان ياست خو هغه سړى پر سيده لاره دئ چي هغه ته ما هدايت وكړ

فَاسْتَهْدُونِي أَهْدِكُمْ يَا عِبَادِي كُلُّكُمْ جَائِعٌ إِلَّا مَنْ أَطْعَمْتُهُ فَاسْتَطْعِمُونِي

نو تاسو زما څخه هدايت غواړئ زه به هدايت دركوم ، اې زما بندګانو تاسو ټول وږي ياست خو نه هغه څوک چي هغه ته زه خوراک وركړم ، نو تاسو زما څخه خوراک وغواړئ

أُطْعِمْكُمْ يَا عِبَادِي كُلُّكُمْ عَارٍ إِلَّا مَنْ كَسَوْتُهُ فَاسْتَكْسُونِي أَكْسُكُمْ يَا عِبَادِي

زه به يې دركړم، اې زما بندګانو ! تاسو ټول لوڅ ياست خو نه هغه څوک چي هغه ته ما د اغوستلو لپاره وركړل، نو زما څخه جامې وغواړئ زه به يې دركړم، اې زما بندګانو !

إِنَّكُمْ تُخْطِئُونَ بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَأَنَا أَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا فَاسْتَغْفِرُونِي أَغْفِرْ

تاسو په شپه او ورځ كي خطاوي كوئ او زه ستاسو ټول ګناهونه بخښم نو تاسو زما څخه بخښنه وغواړئ نو زه به مو وبخښم،

لَكُمْ يَا عِبَادِي إِنَّكُمْ لَنْ تَبْلُغُوا ضَرِّي فَتَضُرُّونِي وَلَنْ تَبْلُغُوا نَفْعِي فَتَنْفَعُونِي

اې زما بندګانو ! كه تاسو په ګناه كولو سره ما ته ضرر رسول و غواړئ نو هيڅكله ضرر راته نه سئ رسولاى او كه په نيكو كارونو سره ګټه رسول راته وغواړئ نو په هيڅ شي راته ګټه نه رسيږي ، يعني ستاسو ګناه كولو او فرمانبرداري كولو سره ما ته هيڅ ګټه او تاوان نه رسيږي،

يَا عِبَادِي لَوْ أَنَّ أَوَّلَكُمْ وَآخِرَكُمْ وَإِنْسَكُمْ وَجِنَّكُمْ كَانُوا عَلَى أَتْقَى قَلْبِ رَجُلٍ

اې زما بندګانو ! كه ستاسو مخكني او وروستني ستاسو انسانان او پيرياناں ستاسو د يو ډير

پرهيزگاره كس په ډول جوړ سي

واحد مِنْكُمْ مَا زَادَ ذَلِكَ فِي مُلْكِي شَيْئًا يَا عِبَادِي لَوْ أَنَّ أَوَّلَكُمْ وَآخِرَكُمْ

نو زما په ملكيت كي په دې سره هيڅ زياتي نه كيږي ،اې زما بندګانو !كه ستاسو مخكني او وروستني

وَإِنْسَكُمْ وَجِنَّكُمْ كَانُوا عَلَى أَفْجَرِ قَلْبِ رَجُلٍ وَاحِدٍ مَا نَقَصَ ذَلِكَ مِنْ مُلْكِي

او ستاسو ټول انسانان او پيريانان د يو ډير بدتر او فاجر سړي په ډول سي نو په دې سره زما په ملكيت كي هيڅ كمي نه راځي ،

شَيْئًا يَا عِبَادِي لَوْ أَنَّ أَوَّلَكُمْ وَآخِرَكُمْ وَإِنْسَكُمْ وَجِنَّكُمْ قَامُوا فِي صَعِيدٍ

اې زما بندګانو !كه ستاسو مخكني او وروستني او انسانان او پيريانان يو ځاى ودريږي

وَاحِدٍ فَسَأَلُونِي فَأَعْطَيْتُ كُلَّ إِنْسَانٍ مَسْأَلَتَهُ مَا نَقَصَ ذَلِكَ مِمَّا عِنْدِي إِلَّا

بيا زما څخه وغواړي نو زه به هر انسان ته د هغوئ د غوښتلو سره سم ورکړم نو زما دا ورکول به د دې شي څخه چي زما سره دي دومره هم كم نه كړي

كَمَا يَنْقُصُ الْمِخْيَطُ إِذَا أُدْخِلَ الْبَحْرَ يَا عِبَادِي إِنَّمَا هِيَ أَعْمَالُكُمْ أُحْصِيهَا

څومره چي يوه ستن په درياب كي ننه ايستلو سره د هغه او به كموي، اې زما بندګانو ! زه ستاسو اعمال په ياد لرم

عليكم ثُمَّ أُوَفِّيكُمْ إِيَّاهَا فَمَنْ وَجَدَ خَيْرًا فَلْيَحْمَدِ اللَّهَ وَمَنْ وَجَدَ غَيْرَ ذَلِكَ

فَلَا يَلُومَنَّ إِلَّا نَفْسَهُ. رواه مسلم

او ليكم يې، او زه به تاسو ته د هغه پوره بدله دركوم، نو څوك چي خير تر لاسه كړي هغه ته د الله تعالى تعريف كول پكار دي او څوك چي د خير څخه پرته بل څه تر لاسه كړي يعني بدي، نو خپل ځان دي ملامت كړي چي دا د هغه كار دئ. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۴\ ۱۹۹۴، رقم: ۵۵- ۲۵۷۷.

**د لغاتو حل**: المَخيط: بسكر الميم وسكون الخاء اى الابرة (ستن).

**تشریح**: کلکم ضال : که تاسو ټول ګمراهان سئ، په دې اعتبار يې وفرمايل چې د دنيا هيڅ سړی داسي نه سته چې په هغه کي د دنيا او دين د هر کمال او هر سعادت او ټولي نيمګړتياوي وي په هر سړي کي څه نا څه کمي او کوتاهي خامخا وي او که څوک په دنيوي او اخروي اعتبار په خپل ځان کي څه کمي او کوږوالی ولري نو په چا کي چې د دنيوي کارو په اعتبار څه کمي او کوږوالی وي ځکه يې وفرمايل چې تاسو ټول ګمراهان ياست يعني د دين او دنيا دواړو په اعتبار د کمال درجه نه لرئ.

الا من هديته : پرته د هغه چا څخه چې هغه ته زه هدايت وکړم، د الله تعالی د دغه ارشاد مراد دادی چې خلک يې د هغوئ پر هغه حالت او کيفيت باندي پرېښودل کوم چې د هغوئ طبيعت او د هغوئ د نفس بنياد دی نو هغوئ د درختي په ډول څرنګه چې غواړي زياتيږي او کومي خوا ته چې غواړي ځي چې د هغه نتيجه ګمراهي او بې لاري ده ځکه زه چې چا ته وغواړم هغه ته فکر او ذهن او د نيک اعمالو هدايت کوم دهغه نتيجه به دا وي چې د هغه نفس به پر صحيح لاره باندي وي او د هغه طبيعت به نيکي ته ځي دا خبره نبي کريم ﷺ په دې توګه بيان کړه : ان الله خلق الخلق في ظلمة ثم رش عليهم من نوره

الله تعالی مخلوقات په تياره کي پيدا کړه او بيا خپل نور پر واچوی، دلته دا تشويش پيدا کېدل نه دي پکار چې دا خبره د دغه حديث : کل مولود يولد علی فطرة : هر کوچنی د اسلام پر فطرت باندي پيدا کيږي- خلاف ده ځکه چې د فطرت څخه مراد توحيد دی او د ضلالت باعظمت څخه مراد د ايمان احکام تفصيل او د اسلام حدود او شرطونه پيژندل دي.

وانا اغفر الذنوب جميعا : زه ستاسو ګناهونه بخښم، ددې مطلب دادی که تاسو شپه او ورځ په خطا کي سئ او په ګناهو کي اخته ياست مګر پر خپلو ګناهو باندي په پښيمانۍ سره توبه او استغفار کوئ نو زه ستاسو ټول ګناهونه بخښم.

يا دا مراد دی چې يو خو داسي ګناه ده چې د هغه څخه د توبې کولو پرته بخښنه ممکن نه ده هو ددې څخه پرته نوري ټولي ګناوي که زه وغواړم نو پرته د توبې او استغفار په خپل فضل او کرم او خپل رحمت په خاطر يې بخښم.

لکه څومره چې ستن کميږي : په دې باره کي علامه طيبي رحمه الله فرمايي چې د ستني په درياب لوېدو سره د هغه او به کمول يو نه محسوس کېدونکی شی دی او نه د عقل او شعور په رڼا کي دا خبره راتلونکې ده بلکه هغه کالعدم دی ځکه په دې سره مشابهت ورکړل سوی دی کنه نو د الله تعالی په خزانه کي د اولی څخه تر اولی درجې او د کمۍ څه سوال پيدا کيږي يعني

هیڅ یو سوال نه پیدا کیږي .

ابن ملک رحمه الله وايي په دې باره کي به دا ويل کيږي چي دغه جمله د بالفرض والتقدير د قسم څخه ده يعني که د الله تعالی په خزانه کي کمي فرض کړل سي نو هغه دومره کېدای سي .

## توبه او د الهي رحمت وسعت

﴿۲۲۱۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل :

كَانَ فِيْ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ رَجُلٌ قَتَلَ تِسْعَةً وَتِسْعِيْنَ إِنْسَانًا ثُمَّ خَرَجَ يَسْأَلُ فَأَتَى

په بني اسرائيلو کي يو سړی وو چي هغه يو کم سل وژني کړي وې ، بيا هغه په بني اسرائيلو کي د پوښتني کولو لپاره ګرځېدی چي د هغه توبه قبليدای سي که نه ؟

رَاهِبًا فَسَأَلَهُ فَقَالَ لَهُ تَوْبَةٌ قَالَ لَا فَقَتَلَهُ فَجَعَلَ يَسْأَلُ فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ ائْتِ

هغه يو عابد ته ورغلی د هغه څخه يې پوښتنه وکړه چي ايا زما توبه قبليدای سي ؟ هغه عابد ورته وويل :نه، نو هغه عابد يې هم ووژئ ، او بيا همداسي ګرځيدی د خلکو څخه يې پوښتنه کول بيا يو سړي هغه ته وويل ته فلاني ځای ته ولاړ سه

قَرْيَةَ كَذَا وَكَذَا فَأَدْرَكَهُ الْمَوْتُ فَنَاءَ بِصَدْرِهِ نَحْوَهَا فَاخْتَصَمَتْ فِيْهِ مَلَائِكَةُ

او نوم او پته يې ورکړه (نو هلته ورغلئ) په لاره کي ورته څرګنده سوه چي مرګ يې نژدې دئ (يعني هغه مرګ ته په نژدې کېدو سره نيمه لاره وهلې وه) نو خپل سينه يې د هغه آبادۍ په لور وروړاندي کړه (يعني کله چي هغه مړ سو نو هغه پريوتئ او په ځکېدو سره يې خپله سينه د هغه ابادۍ په لور کړه هغه تر نيمي لاري ډير مصافه، هلې وه) د مرګ ملائکي

الرَّحْمَةِ وَمَلَائِكَةُ الْعَذَابِ فَأَوْحَى اللّٰهُ إِلَى هٰذِهِ أَنْ تَقَرَّبِيْ إِلَى هٰذِهِ أَنْ تَبَاعَدِيْ

چي په هغو کي د رحمت ملائکي او د عذاب ملائکي دواړي وې د هغه د روح قبض کولو لپاره راغلې او د دواړو په منځ کي جګړه سوه چي څوک د هغه روح قبض کړي ، الله تعالی هغه آبادۍ ته حکم ورکړ چي هغه مړی ځان ته نژدې کړي يا مړي ته نژدې سي او د کومي ابادۍ څخه چي هغه تللی وو هغه ته يې حکم ورکړ چي ته د مړي څخه ليري سه ،

فَقَالَ قِيسُوا مَا بَيْنَهُمَا فَوُجِدَ إِلَى هَذِهِ أَقْرَبَ بِشِبْرٍ فَغُفِرَ لَهُ . متفق عليه

بيا الله تعالى جګړه کونکو ملائکو ته وویل تاسو د دواړو فاصله اندازه کړئ د اندازې څخه څرګنده سوه چي هغه په کوم تلئ د هغه اندازه یوه لوېشت کمه ده یعني دی هغې ته یوه لوېشت زیات نژدې وو نو الله تعالی هغه و بخښی . بخاري او مسلم

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري) ٦ \ ٥١٢، رقم: ٣٤٧٠، ومسلم في الصحيح ۴ \ ٢١١٩، رقم: ٤٧ - ٢٧٦٦.

**د لغاتو حل**: فَناء: ای نهض ومال بصدره: (کړول).

**تشريح**: ابن ملک رحمة الله عليه وايي چي کله ملک الموت د هغه سړي روح قبض کړل نو د رحمت ملائکي او د عذاب ملائکي دواړي د ملک الموت څخه د هغه سړي د روح اخیستلو لپاره په جګړه سوې ، د رحمت ملائکو وویل چي دا سړی د توبې لپاره دغه کلي ته راغلی وو ځکه نو دی مور د الله تعالی رحمت ته بیایو او د عذاب ملائکو وویل چي دغه سړی سل ناحقه قتلونه کړي دي او تر اوسه یې توبه نه وه کړې ځکه نو مور دی د عذاب الهي په لور بیایو نو الله تعالی د هغه فیصله داسي وکړه لکه څرنګه چي پورته ذکر سوې ده .

دا حدیث پر دې خبره دلالت کوي چي د توبې کونکي لپاره د الله تعالی د رحمت وسعت د یو قید او حد پابند نه دی ځکه د هغه بې پایه رحمت او د زړه په خلوص سره خپل طرف ته متوجه کېدونکی لوی تر لوی سرکښ او ګناه کار هم په خپل لمن کي پټوي .

علامه طیبي رحمة الله عليه فرمایي کله چي بنده د زړه او نیت په اخلاص سره الله تعالی ته متوجه کیږي او الله تعالی د هغه څخه راضي کیږي نو الله تعالی د هغه دښمان هم د هغه څخه راضي کوي.

دا حدیث دې خبري ته ترغیب ورکوي چي د توبې او استغفار په ذریعه خپل لمن په ګناهونو د چټل کېدو څخه پاکه وساتي او د الله تعالی د رحمت څخه مایوسي او نا امیدي ځانته نه پرېږدي

﴿٢٢٢٠﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : زما دې په هغه ذات قسم وي

نَفْسِي بِيَدِهِ لَوْ لَمْ تُذْنِبُوا لَذَهَبَ اللهُ بِكُمْ وَلَجَاءَ بِقَوْمٍ يُذْنِبُونَ

فَيَسْتَغْفِرُونَ اللّٰهَ فَيَغْفِرُ لَهُمْ . رواه مسلم .

چې: هغه په لاس کې زما روح دہ کہ تاسو گناه نه کوئ نو الله تعالی به ستاسو د ختمولو څخه وروسته ستاسو پر ځای یو داسې قوم راولي چې گناه به کوي او د الله څخه به بخښنه غواړي بیا به الله تعالی د هغوئ گناهونه بخښي . مسلم.

**تخريج:** مسلم في الصحيح ۴\۲۱۰٦، رقم: ۱۱- ۲۷۴۹.

**تشريح:** د دغه ارشاد مقصد مغفرت او د الله تعالی وسعت بیانول دي او دا ښودل دي چې الله تعالی د خپل مبارک نامه غفور د شان څرګندولو لپاره دومره زیات بخښونکی دی ځکه نو خلکو ته پکار دي چې هغوئ د خپلو گناهونو څخه په توبه کولو کې کوتاهي ونه کړي خدای مه کړه دې حدیث په ذریعه د گناه ترغیب مقصد نه دی ځکه چې د گناه څخه د ځان ساتنې حکم خپله الله تعالی ورکړی دی او رسول الله ﷺ یې دنیا ته ځکه رالیږلی دی چې رسول الله ﷺ خلک د گناه او معصیت د ژوند څخه په ایستلو سره د طاعت او عبادت پر لاره بوځي .

﴿۲۲۲۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ

د حضرت ابو موسی رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل : الله تعالی

عَزَّ وَجَلَّ يَبْسُطُ يَدَهُ بِاللَّيْلِ لِيَتُوْبَ مُسِيْءُ النَّهَارِ وَيَبْسُطُ يَدَهُ بِالنَّهَارِ

خپل لاس د شپې اوږد کړي چې د ورځې گناهګار توبه وکاړي او د ورځې خپل لاس خپور کړي

لِيَتُوْبَ مُسِيْءُ اللَّيْلِ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا. رواه مسلم

چې د شپې گناه کونکي توبه وکاړي او هغه یې توبه قبوله کړي او دا لړۍ تر هغه وخته روانه وي تر څو پورې چې لمر د لوېدیځ څخه راوخیژي یعني قیامت سي . مسلم.

**تخريج:** مسلم في الصحيح ۴\ ۲۱۱۳، رقم: ۳۱- ۲۷۵۹.

**تشريح:** لاس غزول: دا په اصل کې کنایه ده د طلب کولو څخه ، کله چې یو څوک د یو چا څخه یو څه غواړي نو د هغه په مخکې لاس غزوي نو الله تعالی په شپه کې لاس غزوي...الخ، ددې معنی داده چې الله تعالی گناه کار توبې ته را بولي ، ځینې حضرات وایي چې د الله تعالی لاس غزول د هغه د رحمت او مغفرت کنایه ده .

د حديث آخري الفاظ : تر دې چي لمر د لويديځ څخه راوځي، ددې مطلب دادی چي د الله تعالی له خوا بندګانو څخه د توبې کولو دغه لړی به تر هغه وخته پوري روانه وي تر څو چي په قيامت کي لمر د ختيځ پر ځای د لويديځ څخه راوخيژي ځکه چي لمر د لويديځ څخه نه راخيژي نو د توبې دروازه به بنده سي او د هغه څخه وروسته به د هيچا توبه نه قبليږي .

## الله ﷻ توبه قبلوي

﴿۲۲۲۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا اعْتَرَفَ ثُمَّ تَابَ تَابَ اللّٰهُ عَلَيْهِ. متفق عليه

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي بنده د خپلي ګناه اقرار وکړي او بيا توبه وکاږي نو الله تعالی د هغه توبه قبلوي . بخاري او مسلم

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري) ۷\ ۴۳۱، رقم: ۴۱۴۱، ومسلم في الصحيح ۴\ ۲۱۲۹، رقم: ۵۶- ۲۷۷۰.

﴿۲۲۲۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَابَ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا تَابَ اللّٰهُ عَلَيْهِ . رواه مسلم .

حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د لمر د لوېديځ څخه د راختلو وړاندي توبه وکاږي الله تعالی دهغه توبه قبلوي . مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۴\ ۲۹۷۶، رقم: ۴۳- ۲۷۰۳.

**تشريح**: علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي چي دا د توبې د قبلېدو حد دی چي د لويديځ له خوا د لمر راختلو څخه مخکي پوري د توبې دروازه خلاصه وي نو تر هغه وخته پوري چي څوک توبه وکړي نو د هغه توبه قبليږي مګر ددې وروسته توبه نه قبليږي همدارنګه د توبې قبلېدو يو حد وي چي د هغه تعلق د هر فرد سره وي او هغه د زکندن حالت څخه مخکي وخت دی يعني کوم څوک چي د زکندن د حالت څخه مخکي توبه وکړي د هغه توبه قبليږي او د زکندن په وخت کي توبه نه قبليږي .

## الله ﷻ په توبه سره ډېر خوشحاله کیږي

﴿۲۲۲۴﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَلّٰهُ أَشَدُّ فَرَحًا

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چې یو بنده الله تعالی

بِتَوْبَةِ عَبْدِهِ حِينَ يَتُوبُ إِلَيْهِ مِنْ أَحَدِكُمْ كَانَ عَلَى رَاحِلَتِهِ بِأَرْضِ فَلَاةٍ

ته توبه وکاږي نو هغه د خپل بنده په توبې سره ډېر خوشحاله سي دومره زیات په خوشحاله سي چې هغومره خوشحاله به په تاسو کي هیڅوک هم نه وي چې پر خپله سپرلۍ په یو میدان کي

فَانْفَلَتَتْ مِنْهُ وَعَلَيْهَا طَعَامُهُ وَشَرَابُهُ فَأَيِسَ مِنْهَا فَأَتَى شَجَرَةً فَاضْطَجَعَ فِي

روان وي بیا هغه سپرلۍ ځیني ورکه سي او پر هغه د خوراک او څښاک شیان هم وي او هغه د پیدا کېدو څخه نا امیده سي د یوې درختي په لور راغلئ او دهغې په سایه کي ناست وي او په

ظِلِّهَا قَدْ أَيِسَ مِنْ رَاحِلَتِهِ فَبَيْنَا هُوَ كَذَلِكَ إِذَا هُوَ بِهَا قَائِمَةً عِنْدَهُ فَأَخَذَ

هغه نا امیدي کي پټه خوله او غم ځپلی پروت وي چې ناڅاپه هغه سپرلۍ راسي او د هغه سره

بِخِطَامِهَا ثُمَّ قَالَ مِنْ شِدَّةِ الْفَرَحِ اللَّهُمَّ أَنْتَ عَبْدِي وَأَنَا رَبُّكَ أَخْطَأَ مِنْ

شِدَّةِ الْفَرَحِ. رواه مسلم

ودریږي. هغه یې رسۍ نیولي وي او د زیاتي خوشحالۍ په سبب د هغه د خولې څخه (دا غلط الفاظ) وتلي وي چې اې الله ته زما بنده یې او زه ستا پروردګاریم. مسلم.

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۴\۲۱۰۴، رقم: ۷- ۲۷۴۷.

**تشریح**: یعني دغه سړي په اصل کي دا ویل چې اې الله! ته زما رب یې او زه ستا بنده یم مګر د ډېري خوشحالۍ په وجه د جذباتو د شدت څخه مغلوب سو او ددې ویلو پر ځای یې دا وویل چې اې الله! ته زما بنده یې او زه ستا رب یم.

ددې ارشاد مطلب دا خبره بیانول دي چې الله تعالی د بنده د توبې څخه زیات خوشحاله کیږي او د هغه د توبې په قبلولو سره یې په خپل رحمت یې نازوي او د الله تعالی دغه خوشحالی ته یې د هغه سړي د خوشحالي سره مشابهت ورکړ چې د هغه سپرلۍ په ځنګل کي ورکه سوې وي او بیا ناڅاپه پیدا سي.

## الله ﷻ په وار وار توبه قبلوي

﴿۲۲۲۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ عَبْدًا

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : يو بنده

أَذْنَبَ ذَنْبًا فَقَالَ رَبِّ أَذْنَبْتُ فَاغْفِرْهُ فَقَالَ رَبُّهُ أَعَلِمَ عَبْدِي أَنَّ لَهُ رَبًّا يَغْفِرُ

يو ګناه وكړي بيا ووايي اې پروردګاره ! ما ګناه كړې ده ته يې رامعاف كړې ، ددې په اورېدو سره الله تعالى ملائكو ته وايي زما بنده ته ددې علم دئ چي د هغه يو پروردګار سته چي

الذُّنُوبَ وَيَأْخُذُ بِهِ غَفَرْتُ لِعَبْدِي ثُمَّ مَكَثَ مَا شَاءَ اللّٰهُ ثُمَّ أَذْنَبَ ذَنْبًا فَقَالَ

ګناهونه بخښي هم او نيول هم په كوي، نو ما د خپل بنده ګناه و بخښل، بيا څو ورځي بنده د ګناه څخه منع وي ددې وروسته يې بيا ګناه وكړه او وه يې ويل :

رَبِّ أَذْنَبْتُ ذَنْبًا فَاغْفِرْهُ فَقَالَ أَعَلِمَ عَبْدِي أَنَّ لَهُ رَبًّا يَغْفِرُ الذَّنْبَ وَيَأْخُذُ

اې پروردګاره ! ما ګناه كړې ده ته يې رامعاف كړې ، الله تعالى ملائكو ته وايي ايا زما بنده پوهيږي چي د هغه يو پروردګار دئ چي ګناه بخښي هم او په ګناه نيول هم كوي،

بِهِ غَفَرْتُ لِعَبْدِي ثُمَّ مَكَثَ مَا شَاءَ اللّٰهُ ثُمَّ أَذْنَبَ ذَنْبًا قَالَ رَبِّ أَذْنَبْتُ آخَرَ

ما هغه و بخښئ، بيا بنده د ګناه څخه منع وي تر څو پوري چي الله تعالى غواړي او ددې وروسته بيا بنده ګناه كوي او وايي اې ربه ! ما يوه بله ګناه كړې ده

فَاغْفِرْهُ لِي فَقَالَ أَعَلِمَ عَبْدِي أَنَّ لَهُ رَبًّا يَغْفِرُ الذَّنْبَ وَيَأْخُذُ بِهِ غَفَرْتُ لِعَبْدِي فَلْيَعْمَلْ مَا شَاءَ . متفق عليه

هغه را وبخښې ، الله تعالى ملائكو ته وايي ايا زما بنده ته دا معلومه ده چي دده يو رب دئ چي ګناهونه معاف كوي او په ګناهو نيول هم كوي، ما هغه و بخښئ، اوس چي يې څه خوښه وي كوي دي يې . بخاري او مسلم.(څه چي يې خوښه وي ، مطلب په دې كي رغبت وركول دي توبې او استغفار ته نه د ګناه). امام نووي.

**تخریج:** البخاري في الصحيح (فتح الباري) ۱۳\ ٤٦٦، رقم: ۷۵۰۷، ومسلم في الصحيح ۴\ ۲۱۱۲، رقم: ۲۹- ۲۷۵۸.

**تشريح:** د حديث آخري الفاظ : څه چي غواړي کوي يې ، ددې مطلب دادی چي بنده تر څو پوري ګناوي کوي او استغفار کوي نو دده ګناه به بخښم ، د جملې مقصد خدای مه کړه ګناه ته رغبت ورکول نه دي بلکه د استغفار فضيلت او د ګناهونو په بخښنه کي د استغفار تاثير بيانول مقصد دي .

## ګناه کار ته دوږخي مه وایاست

﴿۲۲۲٦﴾: وَعَنْ جُنْدُبٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَ أَنَّ رَجُلًا قَالَ

د حضرت جندب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ يو حديث بيان کړ چي يو سړي دا وويل

وَاللّٰهِ لَا يَغْفِرُ اللّٰهُ لِفُلَانٍ وَإِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى قَالَ مَنْ ذَا الَّذِي يَتَأَلَّى عَلَيَّ أَنْ لَا أَغْفِرَ

په الله دي مي قسم وي فلانی الله نه بخښي، او الله تعالی وفرمايل : څوک دئ چي په ما قسم خوري چي زه به فلانی نه بخښم،

لِفُلَانٍ فَإِنِّي قَدْ غَفَرْتُ لِفُلَانٍ وَأَحْبَطْتُ عَمَلَكَ أَوْ كَمَا قَالَ . رواه مسلم

نو ما هغه فلانی سړی و بخښئ او ستا عمل مي ضائع کړ ، يا داسي نور الفاظ يې ويلي وه . مسلم .

**تخریج:** مسلم في الصحيح ۴\ ۲۰۲۳، رقم: ۱۳۷- ۲٦۲۱.

**د لغاتو حل:** يتالی: ای يتحكم علي ويحلف باسمي.

**تشريح:** يو سړي زياتي ګناوي کولې د هغه په باره کي يو بل چا وويل چي الله تعالی هغه نه بخښي ، هغه دا خبره د تکبر په وجه هغه ته ډېر ګناه کار او ځان تر هغه ښه ګڼلو سره وويل، لکه څرنګه چي ځيني جاهل صوفيان د ګناه کارو په باره کي ښه ګمان نه لري حالانکه داسي خلک په دې نه پوهيږي چي د الله تعالی رحمت ډېر پراخ او عام دی د هغه ګناه کار بندګان هم د هغه د رحمت په لمن کي پناه تر لاسه کوي او هغوئ بخښي، خلاصه دا چي هغه قسم اخيستونکي د هغه د نه بخښلو چي کوم يقين کړی وو پر هغه عتاب وسو په دې توګه چي د هغه قسم يې درواغ کړ او هغه سړی يې وبخښی نو د هيچا په باره کي په قطعي توګه سره دا ويل چي هغه جنتي دی يا دوږخي دی جائز نه دي هو د قرآن کريم او حديث په وضاحت سره چي کومو خلکو ته جنتي يا دوږخي ويل سوي دي هغوئ ته په قطعي توګه باندي جنتي يا دوږخي ويلو کي څه پروا نه سته.

## دعاء او استغفار

﴿۲۲۲۷﴾: وَعَنْ شَدَّادِ ابْنِ اَوْسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضر شداد بن اوس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

سَيِّدُ الِاسْتِغْفَارِ أَنْ تَقُولَ اللّٰهُمَّ أَنْتَ رَبِّي لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ خَلَقْتَنِي وَأَنَا عَبْدُكَ

سيد الاستغفار دادئ چي ته په دې الفاظو سره استغفار وكړې : اللهم انت ....، اې الله! ته زما رب يې ستا څخه پرته هيڅوک د عبادت وړ نسته تا زه پيدا كړم او زه ستا بنده يم

وَأَنَا عَلَى عَهْدِكَ وَوَعْدِكَ مَا اسْتَطَعْتُ أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ أَبُوءُ لَكَ

او ستا په عهد كي يم ، او ستا پر وعده يم د خپل توان سره سم ستا په ذريعه پناه غواړم د هغه بدي څخه چي ما كړې ده زه ستا د نعمتونو اقرار كوم

بِنِعْمَتِكَ عَلَيَّ وَأَبُوءُ بِذَنْبِي فَاغْفِرْ لِي فَإِنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ قَالَ وَمَنْ

چي تا پر ما پيرزو كړي دي او د خپلو ګناهو هم اعتراف كوم ته ما و بخښې ځكه چي ستا څخه پرته بل څوک بخښونكى نه سته ، رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي

قَالَهَا مِنَ النَّهَارِ مُوقِنًا بِهَا فَمَاتَ مِنْ يَوْمِهِ قَبْلَ أَنْ يُمْسِيَ فَهُوَ مِنْ أَهْلِ

دې كلماتو په مفهوم يقين ولري د ورځي يې ووايي او په هغه ورځ تر ماښام وړاندي مړ سي نو

الْجَنَّةِ وَمَنْ قَالَهَا مِنَ اللَّيْلِ وَهُوَ مُوقِنٌ بِهَا فَمَاتَ قَبْلَ أَنْ يُصْبِحَ فَهُوَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ . رواه البخاري

هغه جنتي دئ او څوک چي دا كلمې د شپې ووايي او د دې پر معنى يقين ولري او تر سهار كېدو وړاندي مړ سي نو هغه جنتي دئ .. بخاري.

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري) ۱۱\۹۷، رقم: ۶۳۰۶.

**د لغاتو حل** : أبوء: اى التزم و اقر (لازموم او اقرار كوم.)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د الله ﷻ د بخښنې هيڅ انتهاء نشته

﴿۲۲۲۸﴾: عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللّٰهُ تَبَارَكَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى فرمايي :

وَتَعَالَى يَا ابْنَ آدَمَ إِنَّكَ مَا دَعَوْتَنِي وَرَجَوْتَنِي غَفَرْتُ لَكَ عَلَى مَا كَانَ فِيكَ وَلَا

اې انسانه ! تر څو پوري چي ته زما څخه دعاء غواړې او زما څخه اميد لرې زه به تا بخښم که څه هم تا هر څو مره بد کار کړی وي

أُبَالِي يَا ابْنَ آدَمَ لَوْ بَلَغَتْ ذُنُوبُكَ عَنَانَ السَّمَاءِ ثُمَّ اسْتَغْفَرْتَنِي غَفَرْتُ لَكَ

او زما ته ددې پروا نشته ، اې انسانه که ستا ګناه آسمان ته هم ورسيږي او بيا هم ته زما څخه عفوه او بخښنه وغواړې نو زه به تا و بخښم

وَلَا أُبَالِي يَا ابْنَ آدَمَ إِنَّكَ لَوْ الْقِيتَنِي بِقُرَابِ الْأَرْضِ خَطَايَا ثُمَّ لَقِيتَنِي لَا

او زما په دې هيڅ پروا نشته ، اې انسانه که ته زما سره په داسي حال کي يو ځای سې چي ستا د ګناهونو څخه مځکه ډکه وي

تُشْرِكُ بِي شَيْئًا لَأَتَيْتُكَ بِقُرَابِهَا مَغْفِرَةً . رواه الترمذي و رواه احمد

والدارمي عن ابي ذر وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب .

او زما سره دې هيڅ شی نه وي شريک کړی نو زه تاته ډکي مځکي د بخښني سره راځم ، ترمذي او احمد او دارمي ، داحديث د حضرت ابوذر څخه روايت کړئ دئ ترمذي ويلي دي دا حديث حسن غريب دئ .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۵۱۲، رقم: ۳۵۴۰.

### د مغفرت يقين وساتئ

﴿۲۲۲۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : الله تعالی فرمایي :

الله تَعَالٰی مَنْ عَلِمَ أَنِّيْ ذُوْ قُدْرَةٍ عَلٰی مَغْفِرَةِ الذُّنُوْبِ غَفَرْتُ لَهُ وَلَا أُبَالِيْ مَالَمْ يُشْرِكْ بِيْ شَيْئًا. رواه في شرح السنة

څوک چي په دې خبره پوه سي چي زه په ګناهو بخښلو پوره اختیار لرم نو زه يې بخښم خو په دې شرط چي زما سره هیڅوک شریک نه کړي . شرح السنة

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۴\۳۸۸، رقم: ۴۱۹۱.

**تشريح**: دا حدیث پر دې خبره دلالت کوي چي بنده باید په دې خبره پوه سي چي الله تعالی د ګناهونو پر مغفرت باندي قادر دی د هغه څخه امید ولري او کوم څوک چي د کریم ذات څخه امید ولري نو کریم ذات هغه نه محروم کوي ، حدیث قدسي دی : انا عند ظن عبدي بي: زه د خپل بنده د ګمان نژدې یم چي هغه يې زما په اړه لري .

نقل سوي دي چي سفیان ثوري رحمه الله ناروغ سو نو حماد ابن سلمه رحمه الله د هغه د پوښتني لپاره راغلی، سفیان ثوري رحمه الله حضرت حماد رحمه الله ته وویل چي ایا تاسو ددې خبري ګمان لرئ چي الله تعالی به ما په څه ډول و بخښي ، حماد جواب ورکړ که ما ته ددې اختیار راکړل سي چي د حساب لپاره که څه هم زه خپل پلار ته وړاندي سم یا الله تعالی ته نو زه به د الله تعالی په وړاندي پېښس کېدو ته ترجیح ورکړم ځکه الله تعالی تر پلار هم زیات پر ما رحم کوي ، یعني د حماد رحمه الله د دغه جواب مقصد دا وو چي د الله تعالی څخه د مغفرت او بخښني امید ولره د هغه پر رحمت باور وکړه چي ارحم الراحمين دی .

## د استغفار فضیلت او اثر

﴿۲۲۲۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَزِمَ الْاِسْتِغْفَارَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي استغفار پر

جَعَلَ اللّٰهُ لَهُ مِنْ كُلِّ ضِيْقٍ مَّخْرَجًا وَّمِنْ كُلِّ هَمٍّ فَرَجًا وَّرَزَقَهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ. رواه أحمد وأبو داود وابن ماجه

ځان لازم کړي نو الله تعالی د هري تنګی څخه د راوتلو لاره د هغه لپاره جوړه کړي او د هر غم او

فکر څخه هغه ته خلاصون ورکوي او دداسي ځای څخه هغه ته رزق ورکوي چي د هغه ځای څخه د هغه گمان هم نه وي . احمد، ابوداؤد او ابن ماجه .

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۱\ ۲۴۸، وابوداود في السنن ۲\ ۱۷۸، رقم: ۱۵۱۸، وابن ماجه في السنن ۲\ ۱۲۵۴، رقم: ۳۸۱۹.

**تشريح**: د استغفار پر ځان لازمولو مطلب دادی چي کله هم يو گناه وسي يا يو آفت او مصيبت راسي نو استغفار کوي يا ددې دا معنی ده چي پر استغفار باندي همېشتوب اختيار کړي ځکه چي د ژوند هيڅ لمحه هم داسي نه ده چي په هغه کي انسان د استغفار محتاج نه وي ځکه د رسول الله ﷺ دغه ارشاد چي (طوبی لمن وجد في صحيفته اسغفارا کثيرا) : خوشبختي ده هغه چا ته چي هغه په خپل عمل نامه کي د استغفار کثرت تر لاسه کړی ، الله پاک دي زموږ د ټولو د استغفار فيضونه او برکات په برخه کړي ، اللهم آمين،

په حديث شريف کي د ذکر سوي فضيلت بنسټ دادی چي کوم څوک استغفار پر ځان لازم کړي نو د الله تعالی سره د هغه د زړه تعلق او د الله تعالی پر ذات د هغه اعتماد محکم او قوي سي او د هغه گناه بخښل کيږي، د هغه په نتيجه کي د هغه شمېر د الله تعالی څخه د بېرېدونکو او د الله تعالی پر ذات باندي په باور کونکو کي کيږي چي د هغوئ په اړه د الله تعالی دغه ارشاد دی کوم چي د پورتني حديث بنسټ هم دی: ومن يتق الله يجعل له مخرجا ويرزقه من حيث لا يحتسب ومن يتوکل علی الله فهو حسبه: کوم څوک چي د الله تعالی څخه بيريږي نو الله تعالی د هغه لپاره (د هري تنگۍ څخه) د وتلو لاره باسي او هغه ته د داسي ځای څخه روزي ورکوي چي د هغه گمان هم نه کيږي او کوم څوک چي پر الله تعالی باندي باور کوي نو الله تعالی د هغه لپاره کافي دی .

د استغفار فضيلت او گټه د دغه آيت څخه هم ثابتيږي :

فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُم مِّدْرَارًا وَيُمْدِدْكُمْ بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ وَيَجْعَل لَّكُمْ جَنَّاتٍ وَيَجْعَل لَّكُمْ أَنْهَارًا،

نو ما وويل چي تاسو د خپل رب څخه بخښنه وغواړئ ځکه چي هغه ډېر بخښونکی دی هغه به پر تاسو باندي ډېر باران و اوروي او تاسو ته به مال او اولاد درکړي او ستاسو لپاره به باغونه جوړ کړي او ستاسو لپاره به ويالې جاري کړي .

د حسن بصري رحمة الله عليه په باره کي نقل سوي دي چي يو سړي هغه ته د وچ کالی شکايت وکړ

نو هغه ورته وويل چي د الله تعالى څخه استغفار وغواړئ، بيا يو بل سړي د محتاجۍ شكايت وكړ او يو بل د اولاد نه پيدا كېدو او يو بل د مځكي په حاصلاتو كي د كمۍ شكايت وكړ، نو هغه ټولو ته وويل چي استغفار كوئ، خلكو وويل تاسو ته څو كسان راغلل او ټولو بېل بېل خپله پريشاني څرګنده كړه او تاسو ټولو ته د استغفار حكم وكړ ددې څه وجه ده؟ هغه په جواب كي پورتنۍ آيت: فقلت استغفروا...الخ. ووايه او همدارنګه هغوئ ته يې وښودل چي ما د كومو كومو خبرو لپاره د استغفار حكم وركړى دى نو ددغه آيت څخه هغه ټول ثابت دي.

﴿۲۲۳۱﴾: وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَصَرَّ مَنِ اسْتَغْفَرَ وَإِنْ عَادَ فِي الْيَوْمِ سَبْعِينَ مَرَّةً. رواه الترمذي وأبو داود

د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چي په ورځ كي اويا واره په ګناه كولو سره استغفار وكړ، هغه لكه په ګناه كولو چي اصرار ونه كړي (يعني هميشه يې هغ ګناه نه وكړل) ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\ ۵۲۱، رقم: ۳۵۵۹، وابوداود في السنن ۲\ ۱۷۷، رقم: ۱۵۱۴.

**تشريح**: پر ګناه باندي د همېشتوب مطلب دادى چي پر ګناه باندي دوام وسي يعني په وار وار هغه ګناه كوي هسي خو ګناه په خپله خرابه خبره ده او پر هغه باندي اصرار كول ډېره بده خبره ده ځكه چي پر كوچنيو ګناهو باندي اصرار كول د لويو ګناهو ارتكاب ته رسيږي او پر لويو ګناهو باندي اصرار كول د كفر حد ته رسيږي.

ددغه ارشاد خلاصه داده چي كوم څوك پر خپل يو ګناه باندي شرمنده سي او الله تعالى ته استغفار وكړي كه هغه كوچنۍ ګناه وي او كه لويه ګناه وي نو هغه د اصرار د حد څخه خارجيږي كه څه هم د هغه ګناه كېدل څو واره وسي ځكه پر ګناه باندي ارتكاب كونكى هغه ته وايي چي په وار وار ګناه كوي مګر هغه د ګناه څخه شرمنده او پښيمانه نه وي او نه استغفار كوي.

## د توبه كوونكي فضيلت

﴿۲۲۳۲﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ بَنِي آدَمَ خَطَّاءٌ وَخَيْرُ الْخَطَّائِينَ التَّوَّابُونَ. رواه الترمذي وابن ماجه والدارمي

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر انسان خطا كونكى دئ او

غوره خطا كونكی هغه دئ چي توبه كونكی وي . ترمذي ، ابن ماجه او دارمي

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\ ۵٦۸، رقم: ۲۴۹۹، وابن ماجه ۲\ ۱۴۲۰، رقم: ۲۴۵۱، والدارمي ۲\ ۳۹۲، رقم: ۲۷۲۷.

## د ګناهو په زياتوب سره پر زړه زنګ لګيږي

﴿۲۲۲۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَسَلَّمَ إِنَّ المؤمن اذا اذنب كانت نكتة سوداء في قلبه فان تاب واستغفر

هر كله چي مؤمن ګناه كوي نو د هغه پر زړه يو تور ټكی پيدا سي بيا چي كله هغه توبه وكاږي

صُقِلَ قلبه وان زادت حتى تعلو قلبه فذلكم الران الذي ذكر الله تعالى كلا

نو د هغه زړه صاف سي او هر كله چي هغه زياته ګناه كوي نو هغه ټكی زياتيږي تر دې چي ټول زړه تور سي نو دا هغه زنګ دئ چي الله تعالى په دې الفاظو سره ذكر كړئ دئ : كلا

بل ران على قلوبهم ماكانوا يكسبون. رواه احمد و الترمذي وابن ماجه

وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح .

بل ران على قلوبهم .... ، هيڅكله نه بلكه دا د هغوئ پر زړو د هغه شي زنګ دئ چي هغوئ به كوئ (يعني ګناه) احمد ، ترمذي، او ابن ماجه، ترمذي ويلي دا حديث حسن صحيح دئ .

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۲\ ۲۹۷، والترمذي ۵\ ۴۰۴، رقم: ۳۳۳۴، وابن ماجه ۲\ ۱۴۱۸، رقم: ۴۲۴۴.

**تشريح**: تر دې چي د هغه پر زړه خپور سي: ددې مطلب دادی چي څومره په ګناه كي زياتوب كيږي هغومره هغه تور ټكی زياتيږي تر دې چي هغه ټول پر زړه باندي حاوي سي او د زړه نور پټ كړي د هغه اثر دا سي چي هغه مؤمن د زړه د بينائي څخه محروم سي نه خو د منع كونكي علوم او ګټه رسونكي نېک اعمال څه اهميت د هغه په نظر كي پاته سي او نه د ګټور عقل او حكمت د خبرو پر هغه څه اثر وي همدا رنګه هغه د شفقت او رحمت د حيات او صفت څخه خالي كيږي چي نه پر خپل ځان باندي رحم كوي او نه د نورو سره د رحم او كرم معامله كوي او آخر د

هغه په زړه کي د ظلم او جهل او شر او فتنې تیاره تسلط وکړي د هغه تتیجه دده څخه پرته بل هیڅ نه وي چي پر گناه باندي د هغه جرات زیات سي او د گناه څخه دک ژوند پر هغه خپور سي.

## د توبې د قبلېدو اخري وخت

﴿۲۲۳۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ يَقْبَلُ تَوْبَةَ الْعَبْدِ مَا لَمْ يُغَرْغِرْ . رواه الترمذي و ابن ماجة .

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی د بنده توبه تر هغه وخته پوري قبلوي تر څو پوري چي غرغرې نه وي کړې (یعني مرگ ورته رانه سي) ترمذي.

**تخریج**: الترمذي في السنن ۵\۵۱۱، رقم: ۳۵۳، وابن ماجه ۳\۱۴۲۰، رقم: ۳۳۴۳،

**تشریح**: غرغره د انساني ژوند هغه آخري درجه ده کله چي د بدن او روح تعلق د خپل قطع کېدو آخري نقطې ته بالکل نژدې سي روح د ټول بدن څخه په راکښلو حلق ته راسي د ساه په ختلو سره یوازې د غرغر په ډول آواز خیژي او د ژوند آخري امید هم د نا امیدۍ د یقین درجې ته ورسیږي

په دغه ارشاد کي تر څو پوري چي د غرغرې کیفیت شروع سي ددې مطلب دادی چي تر څو پوري د مرگ یقین نه کیږي تر هغه وخته پوري توبه په قبولیت سره نازول کیږي مگر کله چي د مرگ یقین سي یعني پورتنی کیفیت شروع سي نو هغه وخت توبه نه قبلیږي .

ددغه حدیث ظاهري او واضح مفهوم څخه دا خبره ثابتیږي چي د مرگ پر وخت توبه نه صحیح کیږي که د کفر څخه توبه وي او که د گناهونو څخه ، دا وخت نه خو د کافر ایمان راوړل صحیح دي او نه د مسلمان د گناهونو څخه توبه کول صحیح کیږي، د قرآن کریم د آیت : ولیست التوبة- څخه هم دا خبره معلومیږي مگر ځیني علماء ددې خبري قائل دي چي د گناهونو څخه توبه خو صحیح کیږي مگر د کفر څخه توبه نه صحیح کیږي ، یعني ددغه حضراتو په نزد د نا امیده ایمان غیر مقبول دی او د امید لرونکي توبه مقبول ده .

علامه طیبي رحمة الله علیه فرمایي چي د پورتني حدیث سره سم چي کوم حکم بیان سوی دی د هغه تعلق د گناهونو څخه د توبې سره دی چي د غرغرې په حالت کي توبه نه قبلیږي مگر په داسي حالت کي که د یو چا حق معافول وي او صاحب د حق یې معاف کړي نو دا صحیح دي.

## د الله جل جلاله د مغفرت وسعت

﴿۲۲۳۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الشَّيْطَانَ

د حضرت ابو سعید ﷜ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : شیطان

قَالَ وَعِزَّتِكَ يَا رَبِّ لَا أَبْرَحُ أُغْوِي عِبَادَكَ مَا دَامَتْ أَرْوَاحُهُمْ فِي أَجْسَادِهِمْ

خپل پروردګار ته عرض وکړ چي اې ربه ! ستا په عزت دي مي قسم وي زه به همیشه ستا بندګان ګمراه کوم تر څو پوري چي د هغوئ روحونه د هغوئ په بدنو کي وي ،

فقَالَ الرَّبُّ وَعِزَّتِي وَجَلَالِي وارتفاع مكاني لَا أَزَالُ أَغْفِرُ لَهُمْ مَا اسْتَغْفَرُونِي . رواه احمد

الله تعالی ورته وفرمایل : او زما دي په خپل عزت او جلال او لوړي مرتبې قسم وي تر څو پوري چي زما بندګاه زما څخه بخښنه غواړي نو زه به یې همیشه بخښم . احمد .

**تخریج**: الامام احمد في المسند ۳\۲۹،۴۱.

## د توبې دروازه

﴿۲۲۳۶﴾: وَعَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت صفوان بن عسال ﷜ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

أَنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ جَعَلَ بِالْمَغْرِبِ بَابًا عَرْضُهُ مَسِيرَةُ سَبْعِينَ عَامًا لِلتَّوْبَةِ لَا

الله تعالی د لویدیځ په لور د توبې یوه دروازه خلاصه کړې ده چي د هغې عرض د اویا کاله مسافت دئ او دا دروازه به

يُغْلَقُ مَا لَمْ تَطْلُعْ الشَّمْسُ مِنْ قِبَلِهِ وَذَلِكَ قَوْلُ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ: يَوْمَ يَأْتِي

تر هغه وخته پوري نه بندیږي تر څو پوري چي لمر د لویدیځ څخه را ونه خیژي (یعني قیامت نه سي) . او دا د الله ﷻ دغه قول دئ: (یوم یاتي

بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لم تكن امنت من قبل . رواه الترمذي و ابن ماجة .

بعض آيات ربک لاينفع نفسا ايمانها.....) ترمذي او ابن ماجه.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵/۵۱۰، رقم: ۳۵۳۶، وابن ماجه ۲/۱۳۵۳، رقم: ۴۰۷۰.

**تشريح**: چي د توبې لپاره دي: ددې مطلب دادی چي د توبه کونکو لپاره خلاصه ده يا دا چي هغه د توبې د صحيح کېدو او د توبې د قبلېدو علامه ده، خلاصه دا چي تر څو پوري لمر د قبلې څخه را ونه خيژي د خلکو لپاره دروازه خلاصه ده د چا چي زړه وغواړي د خپل شرک او کفر څخه دي توبه وکړي او د چا چي زړه وغواړي د خپلو ګناهو څخه دي د توبې کولو سره دي د دروازې په ذريعه د آخرت د ابدي ژوند او راحتونو مستحق سي، کله چي د مغرب څخه لمر راوخيژي نو د توبې دروازه بنديږي.

په حديث کي چي د کوم آيت کريمه ذکر سوی دی هغه پوره آيت داسي دی:

يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ لاَ يَنفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِن قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا،

يعني قيامت ته نژدې به د پرودرګار ځيني نښي ظاهري سي د هغو څخه يوه نښه داده چي يوه ورځ به لمر د مشرق پر ځای د مغرب څخه راوخيژي په هغه ورځ به ايمان راوړل داسي کس ته ګټه ور نه کړي کوم چي مخکي يې ايمان نه وي راوړی او هغه کس چي د ايمان په حالت کي نيکي نه وي کړې په هغه ورځ به توبه هيڅ ګټه ور نه کړي، ددغه آيت کريمه خلاصه داده چي په کومه ورځ لمر د مغرب له خوا راوخيژي نو کوم چا چي تر دې مخکي ايمان نه وي راوړی يا پر ايمان باندي خو وي مګر توبه يې کړې نه وي او س به نه د هغه ايمان ګټه ورکوي او نه به د هغه توبه څه ګټه ورته ورسوي.

## د توبې د قبلېدو انقطاع

﴿۲۲۳۷﴾: وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَنْقَطِعُ

د حضرت معاويه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ و فرمايل: هجرت به بند نه سي

الْهِجْرَةُ حَتَّى تَنْقَطِعَ التَّوْبَةُ وَلَا تَنْقَطِعُ التَّوْبَةُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا. رواه احمد و ابوداؤد والدارمي

(يعني د ګناهو څخه د توبې په لور رجوع کول) تر څو پوري چي توبه بنده نه سي او توبه به تر هغه وخته پوري نه بنديږي تر څو چي لمر د لويديځ څخه راونه خيژي. احمد، ابوداؤد او دارمي

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۴\۹۹، وابوداود ۳\۷-۸، رقم: ۲۴۷۹، والدارمي ۲\۳۱۲، رقم: ۲۵۱۳

**تشريح**: تر څو چي توبه موقوف نه وي: يعني تر څو پوري چي توبه قبليږي هر سړی د ګناهو څخه پاكيدای سي او كله چي توبه موقوف سي نو هيڅوک به د ګناهو څخه پاک نه سي او توبه به تر هغه وخته موقوف وي كله چي لمر د مغرب څخه راوخيژي.

خلاصه دا چي تر څو پوري لمر د مغرب له خوا را ونه خيژي تر هغه وخته پوري د هر چا توبه قبليږي او د خپلو ګناهو څخه پاكېدای سي بيا ددې څخه وروسته د هيچا توبه نه قبليږي.

## ګناه كار د الله ﷻ د رحمت څخه مه مايوسه كوئ

﴿۲۲۳۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ رَجُلَيْنِ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: دوه كسان وه

كَانَا فِيْ بَنِيْ إِسْرَائِيلَ مُتَحَابَّيْنِ أَحَدُهُمَا مُجْتَهِد فِي الْعِبَادَةِ وَ الْآخَرِيَقُوْلُ

په بني اسرائيلو كي چي په خپل منځ كي يې ډيره مينه درلودل، په هغوئ كي يو ډير عبادت كونكی وو او دويم به ويل

مُذْنِبٌ فَجَعَلَ يَقُوْلُ أَقْصِرْ عَمَّا اَنْتَ فِيْهِ فَيَقُوْلُ خَلِّنِيْ وَرَبِّيْ حَتّٰى وَجَدَهُ يَوْمًا

زه ګناه كار او خطاكار يم، عبادت كوونكی ملګري به ورته ويل په كوم شي چي ته اخته يې هغه پرېږده، هغه به ددې په جواب كي ويل زما پروردګار پوه سو او زه، يوه ورځ عبادت ګزاره

عَلَى ذَنْبٍ اسْتَعْظَمَهُ فَقَالَ اَقْصِرْ قَالَ خَلِّنِيْ وَرَبِّيْ أَبُعِثْتَ عَلَيَّ رَقِيبًا فَقَالَ

ملګري هغه ګناه كاره ملګري په يو ګناه كي اخته وليدئ چي د هغه په نظر لويه ګناه وه او هغه ته يې وويل چي ته ددې څخه منع سه، هغه ورته وويل: زما معامله زما پروردګار ته پرېږده، ايا ته زما ساتونكی جوړ سوی يې، عابد ملګري ورته وويل:

وَاللّٰهِ لَا يَغْفِرُ اللّٰهُ لَكَ أَوْ لَا يُدْخِلُكَ الْجَنَّةَ فَبَعَثَ اللّٰهُ إِلَيْهِمَا مَلَكًا فَقَبَضَ

قسم په خدای الله به تا هيڅكله ونه و بخښي او نه به دي جنت ته داخل كړي، نو الله تعالى د مرګ ملائكه د هغوئ د روحو قبض كولو لپاره راوليږل كله چي د هغوئ روحونه د

اَرْوَاحَهُمَا فَاجْتَمَعَا عِنْدَهُ فَقَالَ لِلْمُذْنِبِ ادْخُلِ الْجَنَّةَ بِرَحْمَتِيْ وَقَالَ لِلْآخَرِ

خدای په حضور کي حاضر کړل سول نو الله تعالی د هغه ګناه کار روح ته وویل: ته زما د رحمت په ذريعه جنت کي داخل سه او د عابد روح ته يې وفرمايل:

اَتَسْتَطِيْعُ اَنْ تَحْظُرَ عَلٰى عَبْدِيْ رَحْمَتِيْ فَقَالَ لاَ يَا رَبِّ قَالَ اذْهَبُوا بِهِ إِلَى النَّارِ. رواه احمد

ايا ته دومره توان لرې چي زما بنده زما د رحمت څخه محروم کړې ؟ هغه عرض وکړ اې زما پروردګاره ! په ما کي دومره توان نسته نو الله تعالى ملائکو ته حکم وکړ چي دی دوږخ ته بوزئ. احمد.

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۲\۳۲۳.

**تشريح**: عبادت کونکي پر خپل عبادت او نيکو اعمالو باندي د غرور او تکبر اعتماد وکړ او هغه ګناه کار يې تر خپل ځان سپک وګڼی او هغه ته يې وويل چي الله تعالى به تا نه بخښي ځکه هغه د عذاب مستحق سو، د يو بزرګ قول دی کومه ګناه چي د ځان سپک ګڼلو باعث وي هغه د هغه طاعت او عبادت څخه غوره دی کوم چي يو څوک په غرور او تکبر کي اخته کړي.

﴿۲۲۳۹﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت اسماء بنت يزيد (رض) روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دغه آيت واوريدئ:

يَقْرَأُ { يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا مِنْ رَحْمَةِ اللَّهِ إِنَّ

ياعبادي الذين ....، اې زما هغه بندګانو چي په ګناه کولو سره يې پر خپل ځان زياتي کړي دي تاسو د الله د رحمت څخه مه نا اميده کيږئ ځکه چي الله تعالى

اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا }وَلَا يُبَالِي . رواه احمد والترمذي و قال هذا حديث حسن غريب . و في شرح السنة يقول بدل يقرا .

ټول ګناهونه معاف کونکی دئ، او رسول الله ﷺ په پای کي وفرمايل: چي هغه پروا نه لري. احمد. ترمذي ويلي دي دا حديث حسن غريب دئ او په شرح السنة تر يقول بدا يقرا پوري راغلی دئ.

**تخريج**: الامام احمد في المسند ٦\ ٤٥٩، والترمذي ٥\ ٣٤٥، رقم: ٣٢٣٧، وشرح السنة ١٤\ ٣٨٤، رقم: ٤١٨٦.

**تشريح**: الله تعالى ټول ګناهونه بخښي: ددې مطلب دادی چې کافر خو په توبه سره بخښي که يو کافر د خپل کفر او شرک څخه په توبه کولو سره د ايمان دولت قبول کړي نو الله تعالی يې د همېشه خلاصون او بخښنې مستحق ګرځوي، او مؤمنان په توبه سره هم بخښي او د خپل بې پايه فضل او کرم په وجه که وغواړي نو بېله توبې يې هم بخښي.

《۲۲۴۰》: وَعَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ فِيْ قَوْلِ اللهِ تَعَالٰى إِلَّا اللَّمَمَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د الله تعالى د دې قول (الا اللمم) په تفسير کي فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ تَغْفِرْ اللّٰهُمَّ تَغْفِرْ جَمًّا وَأَيُّ عَبْدٍ لَكَ لَا أَلَمَّا. رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن صحيح غريب.

اې الله! که يې ته بخښې نو د بندګانو لوی ګناهونه و بخښه ځکه چې ستا کوم بنده دئ چې هغه به کوچني ګناهونه نه وي کړي. ترمذي دا حديث حسن صحيح غريب دئ.

**تخريج**: الترمذي في السنن ٥\ ٣٧٠، رقم: ٣٢٨٤.

**تشريح**: إِلاَّ اللَّمَمَ: دا د يو آيت ټوټه چې پوره آيت يې دادی:

الَّذِينَ يَجْتَنِبُونَ كَبَائِرَ الإِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ إِلاَّ اللَّمَمَ إِنَّ رَبَّكَ وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ،

ژباړه: او د (کومو نيکو کارو چې مخکي ذکر وسو) دا هغه خلک دي چې د لويو ګناهو څخه ځان ساتي او د بې حيايي د خبرو څخه پرته د کوچنيو ګناهو څخه ځان ساتل ممکن نه دي او بېشکه ستا رب د مغفرت پراخونکی دی.

په دغه آيت کي د کوچنيو ګناهو استثناء سوې ده د هغه د دليل په توګه رسول الله ﷺ پورتنی شعر ووايه چې د هغه څخه دا معلومېږي چې هيڅ مؤمن د کوچنيو ګناهو څخه خالي نه دی. د شعر خلاصه دا ده چې پروردګاره! ستا شان او رحمت داسي دی او ستا د وسعت دا عالم دی که ته وغواړې نو لوی ګناهونه به هم و بخښې د کوچنيو ګناهو خو حقيقت څه دی او بيا ستا کوم بنده داسي دی چې کوچني ګناهونه نه کوي او ته هغه نه بخښې بلکه ته هغه کوچني

ګناهونه د نیکو په ذریعه رژوي او همدا رنګه د غه بندګان د کوچنیو ګناهو د بار څخه ساتي.

دا شعر چي رسول الله ﷺ ووایه د اُمیه بن صلت دی چي د جاهلیت په زمانه کي د مشهورو شاعرانو څخه وو، امیه هغه وخت هم ډېر زیات عبادت کوی او پر قیامت یې عقیده درلودل که چیري هغه د اسلام زمانه تر لاسه کړې مګر د مسلمانېدو د سعادت څخه محروم سو، امیه به د حکمت څخه ډک شعرونه ویل ځکه رسول الله ﷺ نه یوازي دا چي د هغه شعرونه یې اورېدل بلکه کله ناکله به یې خپله هم ویل.

## د بنده په عبادت او معصیت سره د الله ﷻ په خدایي کي هیڅ تاثیر نه راځي

﴿۲۲۴۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ ذَرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اللّٰهُ

د حضرت ابو ذر ؓ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی فرمایي:

تَعَالٰى يَا عِبَادِي كُلُّكُمْ ضَالٌّ إِلَّا مَنْ هَدَيْتُهُ فَسَلُونِي الْهُدٰى أَهْدِكُمْ وَكُلُّكُمْ

اې زما بندګانو! تاسو ټول ګمراه یاست پرته د هغه چا څخه چا ته چي ما هدایت کړی وي نو زما څخه هدایت غواړئ زه به هدایت درکوم، تاسو ټول

فَقِيرٌ إِلَّا مَنْ أَغْنَيْتُ فَسَلُونِي أَرْزُقْكُمْ وَكُلُّكُمْ مُذْنِبٌ إِلَّا مَنْ عَافَيْتُ فَمَنْ

فقیران او اړیاست پرته د هغه چا څخه چي ما شتمن کړ نو تاسو زما څخه رزق غواړئ زه به یې درکوم، تاسو ټول ګناه کار یاست پرته د هغه چا څخه چي ما د ګناه څخه وساتئ

عَلِمَ مِنْكُمْ أَنِّي ذُو قُدْرَةٍ عَلَى الْمَغْفِرَةِ فَاسْتَغْفَرَنِي غَفَرْتُ لَهُ وَلَا أُبَالِي وَلَوْ أَنَّ

له دې کبله څوک چي په تاسو کي په دې خبره پوه سي چي زه د معافي ورکولو پوره توان لرم او بیا زما څخه د معافی غوښتونکي سي نو زه به هغه و بخښم او زما پر دې هیڅ پروا نسته،

أَوَّلَكُمْ وَآخِرَكُمْ وَحَيَّكُمْ وَمَيِّتَكُمْ وَرَطْبَكُمْ وَيَابِسَكُمْ اجْتَمَعُوا عَلَى أَتْقَى

او که ستاسو ژوندي او ستاسو مړي او ستاسو لانده او ستاسو وچ (یعني ځوانان او سپین ږیري) ټول مخلوقات زما د یو پرهیز ګار بنده په ډول سي

قَلْبِ عَبْدٍ مِنْ عِبَادِي مَا زَادَ ذٰلِكَ فِي مُلْكِي جَنَاحَ بَعُوضَةٍ وَلَوْ أَنَّ أَوَّلَكُمْ

نو په دې سره زما په ملكيت كې د غوماشې د وزر په اندازه هم څه زياتې نه راځي او كه ستاسو

وَآخِرَكُمْ وَحَيَّكُمْ وَمَيِّتَكُمْ وَرَطْبَكُمْ وَيَابِسَكُمْ اجْتَمَعُوا عَلَى أَشْقَى قَلْبِ

مخكني او وروستني او ستاسو ژوندي او ستاسو مړي او ستاسو لانده او ستاسو وچ يعني ټول مخلوقات زما د يو بدبخت بنده په ډول سي

عَبْدٍ مِنْ عِبَادِي مَا نَقَصَ ذَلِكَ مِنْ مُلْكِي جَنَاحَ بَعُوضَةٍ وَلَوْ أَنَّ أَوَّلَكُمْ

نو زما په ملكيت كې د غوماشې د وزر په اندازه كمې نه راځي ، او كه ستاسو مخكني

وَآخِرَكُمْ وَحَيَّكُمْ وَمَيِّتَكُمْ وَرَطْبَكُمْ وَيَابِسَكُمْ اجْتَمَعُوا فِي صَعِيدٍ وَاحِدٍ

او وروستني ستاسو ژوندي او مړي او ستاسو لانده او وچ ټول يو ځای سي

فَسَأَلَ كُلُّ إِنْسَانٍ مِنْكُمْ مَا بَلَغَتْ أُمْنِيَّتُهُ فَأَعْطَيْتُ كُلَّ سَائِلٍ مِنْكُمْ مَا

او په تاسو كې هر يو زما څخه وغواړي او زه هر چا ته د هغه د غوښتني سره سم وركړم

نَقَصَ ذَلِكَ مِنْ مُلْكِي إِلَّا كَمَا لَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ مَرَّ بِالْبَحْرِ فَغَمَسَ فِيهِ إِبْرَةً ثُمَّ

نو په دې زما په ملكيت كې دومره هم كمې نه راځي څومره چې ستن په اوبو كې د ډوبېدو سره د درياب څخه اوبه راپورته كوي .

رَفَعَهَا إِلَيْهِ ذَلِكَ بِأَنِّي جَوَادٌ مَاجِدٌ أَفْعَلُ مَا أُرِيدُ عَطَائِي كَلَامٌ وَعَذَابِي كَلَامٌ

د دې سبب دا دئ چې زه ډېر سخي يم څه چې غواړم هغه كوم ، زما وركول يوازې حكم كول دي او زما عذاب يوازې زما حكم كول دي

إِنَّمَا أَمْرِي لِشَيْءٍ إِذَا أَرَدْتُهُ أَنْ أَقُولَ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ . رواه احمد والترمذي و ابن ماجة .

كله چې زه د يو شي اراده وكړم نو يوازې دومره وايم چې سه ، نو هغه و سي . احمد ، ترمذي او ابن ماجه

**تخريج** : الامام احمد في المسند ۵\ ۱۵۴ ، والترمذي ۴\ ۵۶۶ ، رقم : ۲۴۹۵ ، وابن ماجه ۲\ ۱۴۲۲ ، رقم : ۴۲۵۷ .

## د شرک څخه ساتونکي ته د بخښني زیری

﴿۲۲۴۲﴾: وَعَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَرَاَ { هُوَ أَهْلُ التَّقْوَى

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ څخه یې نقل کوي چي رسول الله ﷺ دغه آیت تلاوت کړ: (هو اهل التقوی....): (دی خاوند د تقوا دی

وَأَهْلُ الْمَغْفِرَةِ } قَالَ قَالَ رَبُّكُمْ اَنَا أَهْلٌ أَنْ أُتَّقَى فَمَنِ اتَّقَانِي فَأَنَا أَهْلٌ أَنْ أَغْفِرَ لَهُ. رواه الترمذي وابن ماجة والدارمي.

او خاوند د بخښني دی)، وویل رسول الله ﷺ چي ویلي دي رب ستاسو: زه لائق یم چي وبیریږي خلک زما څخه نو څوک چي وبیریږي زما څخه نو زه لایق ددې یم چي بخښنه وکړم ده ته. ترمذي، ابن ماجه او دارمي.

**تخریج**: الترمذي في السنن ۵\۴۰۰، رقم: ۳۳۲۸، و ابن ماجه ۲\۱۴۳۷، رقم: ۴۲۹۹، والدارمي ۲\۳۹۲، رقم: ۲۷۲۴.

**تشریح**: إِنَّ اللهَ لاَ يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَن يَشَاء، الله تعالی دا خبره نه بښني چي د هغه سره شریک ونیول سي او د شرک څخه پرته چي چا ته وغواړي بخښي یې.

## د رسول الله ﷺ توبه او استغفار

﴿۲۲۴۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ إِنْ كُنَّا لَنَعُدُّ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به کوم ځای تشریف فرما وو

فِي الْمَجْلِسِ يَقُولُ رَبِّ اغْفِرْ لِي وَتُبْ عَلَيَّ إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الْغَفُورُ مِائَةَ مَرَّةٍ. رواه احمد والترمذي و ابوداؤد وابن ماجة.

نو موږ به د رسول الله ﷺ استغفار ویل شمیرل، رسول الله ﷺ به په یوه ناسته کي سل واره دا کلمات فرمایل: رب اغفرلي و تب علي انک انت التواب الغفور، احمد، ترمذي، ابوداؤد او ابن ماجه

**تخریج**: الامام احمد في المسند ۲\۲۱، والترمذي ۵\۴۶۱، رقم: ۳۴۳۴، وابوداود ۲\۱۷۸، رقم: ۱۵۱۶، وابن ماجه ۲\۱۲۵۳، رقم: ۳۸۱۴.

## د زړه په صدق سره استغفار کوئ

﴿۲۲۴۴﴾: وَعَنْ بِلَالِ بْنَ يَسَارِ بْنِ زَيْدٍ مَوْلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

حضرت بلال بن يسار بن يزيد ﷺ د نبي كريمﷺ ازاد كړي غلام وايي چي

حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ جَدِّي أَنَّهُ سَمِعَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ

زما پلار ما ته روايت وكړ او هغه د خپل پلار څخه چي هغه د رسول اللهﷺ څخه واوريدل:

قَالَ أَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ الْعَظِيمَ الَّذِي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيَّ الْقَيُّومَ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ غُفِرَ

څوک چي أَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ الْعَظِيمَ الَّذِي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيَّ الْقَيُّومَ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ، وايي د هغه ګناهونه بخښل

لَهُ وَإِنْ كَانَ قَدْ فَرَّ مِنَ الزَّحْفِ. رواه الترمذي و ابوداؤد لكنه عند ابي داؤد

هلال بن يسار و قال الترمذي هذا حديث غريب.

كيږي كه څه هم د جهاد څخه تښتېدلى وي. ترمذي، او ابوداؤد، مګر ابوداؤد وايي چي راوي بلال بن يسار نه دئ بلكه هلال بن يسار دئ ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۵۳۱، رقم: ۳۵۷۷، وابوداود ۲\۱۷۸، رقم: ۱۵۱۷.

**تشريح**: هره دعاء چي وي هر ذكر چي وي او هر عمل او وظيفه چي وي تر څو پوري چي د نيت او مقصد او زړه اخلاص د ژبې همنوا نه وي نو د هغه دعاء اثر نه وي او نه د هغه ذكر او عمل ګټه وي. ځكه علماء ليكي چي كله استغفار وويل سي نو د زړه صدق او نيت سره دي وويل سي ځكه دا فرمايل سوي دي چي د ګناه څخه استغفار كونكى په داسي حالت كي چي هغه پر ګناه قائم وي د خپل پروردګاره سره مخسري كوي (نعوذ بالله).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

## د خپلو مړو لپاره استغفار کوئ

﴿۲۲۴۵﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول اللهﷺ وفرمايل: په جنت كي الله تعالى د

عَزَّ وَجَلَّ لَيَرْفَعُ الدَّرَجَةَ لِلْعَبْدِ الصَّالِحِ فِي الْجَنَّةِ فَيَقُولُ يَا رَبِّ أَنَّى لِي هَذِهِ

فَيَقُولُ بِاسْتِغْفَارِ وَلَدِكَ لَكَ . رواه احمد .

خپل يو نيک بنده درجه لوړوي نو هغه بنده په جنتنه کوي اې پروردګاره ! ما ته دا درجه څنګه راکړل سول؟ نو الله تعالى ورته فرمايي : ستا د زوی د استغفار په برکت. احمد .

**تخريج**: الامام احمد في سمنده ۲\۵۰۹:

## د مړو لپاره غوره تحفه استغفار دی

﴿۲۲۴۶﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

ما الميت في القبر إلا كالغريق المتغوث ينتظر دعوة تلحقه من أب أو أم أو

په قبر کي د مړي حالت داسي وي څرنګه چي د ډوبېدونکي سړي وي ، هغه هر وخت د خپلو قريبانو يعني مور، پلار،

أخ أو صديق فإذا لحقته كان أحب إليه من الدنيا وما فيها وإن الله تعالى

ورور يا ملګري د لوري د دعاء په انتظار وي او کوم وخت چي هغه دعاء ورته ورسوي نو د هغه په نزد د دنيا او د دنيا د ټولو شيانو څخه زيات عزيز وي او الله تعالى

ليدخل على أهل القبور من دعاء أهل الأرض أمثال الجبال وإن هدية

قبر والا ته د دنيا والا ددعاء دومره لوی ثواب رسوي لکه غر ، او

الأحياء إلى الأموات الاستغفار لهم . رواه البيهقي في شعب الإيمان

د ژوندو د لوري د مړو لپاره غوره هديه استغفار دئ ، بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۶\۲۰۳، رقم: ۷۹۰۵.

## د استغفار فضيلت

﴿۲۲۴۷﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ بُسْرٍ قَالَ قَالَ رسول الله ﷺ طُوبَى لِمَنْ وَجَدَ فِي صَحِيفَتِهِ اسْتِغْفَارًا كَثِيرًا . رواه ابن ماجة و روي النسائي في عمل يوم والليلة .

د حضرت عبدالله بن بسر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د هغه چا لپاره خوشخبري ده چي د هغه په عمل نامه کي ډير استغفار تر لاسه سي ، ابن ماجه او نسائي په خپل كتاب عمل يوم وليلة كي نقل كړى دئ.

**تخريج** : سنن ابن ماجه ۲\ ۱۲۵۴، رقم: ۳۸۱۸، النسائي في عمل اليوم والليلة.

**تشريح**: د استغفار د فضيلت په اړه دا حديث هم ډېر خوشحاله كونكى دى چي بزاز رحمة الله عليه د حضرت انس رضي الله عنه څخه مرفوع نقل كړى دى چي كله اعمال ليكونكي دواړي ملائكي هره ورځ د بنده عمل نامه پورته كوي .

د استغفار د فضيلت په اړه دغه حديث ته هم پاملرنه وكړئ چي بزاز رحمة الله عليه د حضرت انس رضي الله عنه څخه مرفوع روايت كړى دى چي اعمال ليكونكي دواړي ملائكي د بنده اعمال پورته كوي نو الله تعالى د هغه عمل نامه په اول او آخر كي د استغفار په لېدو سره فرمايي چي ما د خپل بنده هغه ټول ګناهونه و بخښل كوم چي ددغه عمل نامې په مينځ كي دي ، ددغه حديث خلاصه داده چي كوم څوک سهار او ماښام استغفار كوي نو هغه ته دغه فضيلت او سعادت تر لاسه كيږي.

## د رسول الله ﷺ يوه دعاء

﴿۲۲۴۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ اللَّهُمَّ اجْعَلْنِي مِنَ الَّذِينَ إِذَا أَحْسَنُوا اسْتَبْشَرُوا وَإِذَا أَسَاءُوا اسْتَغْفَرُوا . رواه ابن ماجة والبيهقي في الدعوات الكبير .

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به دا فرمايل : (اللهم اجعلني... استغفرو .) اې الله ! ما د هغه خلكو څخه وګرځوې چي كله هغوئ نيكي وكړي نو خوشحال سي او كله چي بدي وكړي نو معافي وغواړي . ابن ماجة او بيهقي.

**تخريج** : سنن ابن ماجه ۲\ ۱۲۵۵، رقم: ۳۸۲۰.

## الله ﷻ د خپل بنده په توبه سره خوشحاله كيږي

﴿۲۲۴۹﴾: وَعَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ حَدِيْثَيْنِ

د حضرت حارث بن سويد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي مو ږته عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه دوه حديثونه

أَحَدُهُمَا عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْآخَرُ عَنْ نَفْسِهِ قَالَ إِنَّ

بيان كړل يو د رسول الله ﷺ څخه او دويم د خپل ځانه ، هغه وويل :

الْمُؤْمِنَ يَرٰى ذُنُوْبَهُ كَأَنَّهُ قَاعِدٌ تَحْتَ جَبَلٍ يَخَافُ أَنْ يَقَعَ عَلَيْهِ وَإِنَّ الْفَاجِرَ

مؤمن خپل گناهونه داسي گڼي لكه هغه چي تر يو غره لاندي ناست وي او په بيره كي وي چي غرور باندي را ونه لويږي ، او فاجر او بد كار سړى

ذُنُوْبَهُ كَذُبَابٍ مَرَّ عَلٰى أَنْفِهِ فَقَالَ بِهِ هٰكَذَا أَيْ بِيَدِهِ فَذَبَّهُ عَنْهُ ثُمَّ قَالَ

خپل گناهونه داسي گڼي لكه يو مچ چي د هغه پر پزه الوځي نو په لاس سره يې اشاره وكړي او مچ والوزوئ ، ددې وروسته عبد الله بن مسعود رضي الله عنه وويل :

سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اَللهُ أَفْرَحُ بِتَوْبَةِ عَبْدِهِ الْمُؤْمِنِ

ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي الله تعالى د خپل مؤمن بنده په توبې سره ډير خوشحاله كيږي

مِنْ رَجُلٍ نزل فِي أَرْضٍ دَوِيَّةٍ مَهْلِكَةٍ مَعَهُ رَاحِلَتُهُ عَلَيْهَا طَعَامُهُ وَشَرَابُهُ

يعني تر هغه چا هم زيات كوم چي په يو بې اوبو او بې وښو وچ دښت كي روان وي د هغه سره سپرلى هم وي او پر سپرلى باندي اوبه او خوراک هم وي

فوضع راسه فَنَامَ نومة فَاسْتَيْقَظَ وَقَدْ ذَهَبَتْ راحتله فَطَلَبَهَا حَتّٰى اذا

هغه په يو ځاى كي پريوزي او بيده سي بيا چي راويښ سي نو ويني چي د هغه سپرلى وركه ده ، هغه د سپرلى په لټه كي ووتئ

اشتد عليه الحر و العطش او ماشاء الله قَالَ أَرْجِعُ إِلٰى مَكَانِيَ الَّذِي كُنْتُ

او هر کله چي سختي گرمي او تندي کي راگیر سو هغه چي اراده وي د خدای ﷻ نو هغه وویل ، هغه ځای ته بیرته ځم په کوم ځای کي چي مخکي وم

فِيهِ فَأَنَامُ حَتَّى أَمُوتَ فَوَضَعَ رَأْسَهُ عَلَى سَاعِدِهِ لِيَمُوتَ فَاسْتَيْقَظَ فاذا

او هلته به بیده سم تر څو چي مړ سم ، نو هغه پر خپل لاس سر کښېښنودئ او د مرگ په انتظار کي پریوتئ بیا چي سترگي یې ولغړېدلې نو ویني چي

رَاحِلَتُهُ عِنْدَهُ وَعَلَيْهَا زَادُهُ وَشَرَابُهُ فَاللَّهُ أَشَدُّ فَرَحًا بِتَوْبَةِ الْعَبْدِ الْمُؤْمِنِ

خپله سپرلۍ یې ورسره ولاړه ده او خوراک او چېښاک هم پر هغه وه هغه سړي ته چي د سپرلۍ، خوراک او چېښاک په تر لاسه کولو سره څومره خوشحالي ورسیده الله تعالی تر هغه زیات

مِنْ هَذَا بِرَاحِلَتِهِ وَزَادِهِ. روی مسلم المرفوع الی رسول الله صلی الله علیه وسلم منه فحسب و روی البخاري الموقوف علی ابن مسعود ایضاً .

د مؤمن بنده په توبه خوشحاله کیږي ، مسلم په مرفوع طریقه سره روایت کړئ دئ او بخاري موقوف بیان کړئ دئ .

**تخریج** : صحیح مسلم ۴\۲۱۰۳، رقم: ۳- ۲۷۴۴، وصحیح البخاري ۱۱\۱۰۲، رقم: ۶۳۰۸.

**د لغاتو حل** : دَوِیة: نسبة للدو ای الهلاک. (هلاکت).

**تشریح** : په اول فصل کي هم دا ډول حدیثونه تېر سوي دي ، هلته هم ښودل سوي دي چي د بنده په توبه کولو سره د الله تعالی د زیات خوشحاله کېدو مطلب دادی چي الله تعالی د هغه په توبې سره راضي کیږي او د هغه توبه قبلوي لکه دغه حدیث څخه چي دغه آیت کریمه ته اشاره وي: ان الله یحب التوابین: الله تعالی توبه کونکي خوښوي .

امام غزالي رحمة الله علیه فرمایي چي د یو لوی عالم او باعمله استاذ ابي اسحاق سفرائني رحمة الله علیه په اړه نقل سوي دي چي هغه وفرمایل : ما د الله تعالی څخه پرله پسې دیرش کاله دغه دعاء وغوښتل چي ما د توبې په سعادت ونازوې مگر زما دعاء قبوله نه سوه ما په خپل زړه کي ډېر تعجب وکړ چي د الله تعالی ذات څومره پاک او مستغني دی چي ما تر دېرش کاله پوري د خپل یوه خواهش تکمیل وکړ او دعاء مي وکړه مگر هغه د الله تعالی په دربار کي په قبولیت سره ونه

نازول سو نو ما په خوب کي وليدل چي يو څوک ما ته وايي چي تا ته پر دې خبره تعجب دی ايا ته په دې هم پوهيږې چي ته څه غواړې ستا د دعاء حقيقي مقصد خو دادی چي الله تعالی تا محبوب ولري نو که تا د الله تعالی دغه زيری نه دی اوريدلی چي : ان الله يحب التوابين ويحب المتطهرين ، نو ددې خواهش تکميل نه يوازي دا چي ډېر اسان دی بلکه ددې زيری هم ورکړل سوی دی .

﴿۲۲۵۰﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْعَبْدَ الْمُؤْمِنَ الْمُفَتَّنَ التَّوَّابَ . رواه احمد

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالی خپل مؤمن بنده ډېر خوښوي چي په ګناهو کي اخته کيږي مګر ډيره توبه کاږي . احمد

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۱\۸۰.

**د لغاتو حل**: المفتن: ای المبتلي كثيرا بالسيئات او بالغفلات. (ډېر ګناهګار).

**تشريح**: دا منشاء نه ده چي الله تعالی په ګناهو کي د اخته کېدو په وجه هغه خوښوي هيڅکله نه بلکه پر ګناهو باندي په شرمنده کېدو او توبه کولو په وجه يې خوښوي .

## د آيت (لاتقنطوا...) فضيلت

﴿۲۲۵۱﴾: وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَا

د حضرت ثوبان رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه واوريدلي دي چي فرمايل يې :

أُحِبُّ أَنَّ لِي الدُّنْيَا بِهٰذِهِ الْاٰيَةِ { يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ لَا

زه تر دې دنيا دغه آيت خوښوم{ يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا ....}.

تَقْنَطُوا ... } فَقَالَ رَجُلٌ فَمَنْ أَشْرَكَ فَسَكَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ اَلَا وَمَنْ أَشْرَكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ . رواه احمد

نويو سړي پوښتنه وکړه چا چي شرک وکړ ؟ (نو ايا هغه به هم ددې آيت سره سم و بخښل سي) رسول الله ﷺ ددې جواب نه ورکړ، بيا لږ وروسته يې وفرمايل :خبر دار اوسه هغه څوک هم چي

هغه شرک کړی وي ، دري واره رسول الله ﷺ دا الفاظ وفرمايل. احمد .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\ ۲۷۵.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ ددغه مبارک قول مطلب دادی چي ددغه آيت کريمه په مقابله کي که ما ته دنيا او ددنيا ټول شيان راکړل سي او زه دغه ټول شيان د الله تعالی په لار کي صدقه کړم او د کومو شيانو څخه چي خوند تر لاسه کيږي د هغه څخه خوند تر لاسه کړم نو بيا هم زه دا نه خوښوم ځکه چي په دغه آيت کريمه کي د ګناهونو څخه د مغفرت او بخښني تر ټولو عظيم سعادت زيری ورکړل سوی دی چي ددغه يوې دنيا څخه نه بلکه د داسي سوونو دنياګانو په مقابله کي ډېر قيمتي دی ، پوره آيت دادی :

يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنفُسِهِمْ لاَ تَقْنَطُوا مِن رَّحْمَةِ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ،

ژباړه: اې زما هغه بندګانو چي هغوئ (د ګناهو په ذريعه) پر خپل ځانو زياتي کړې ده د الله تعالی د رحمت څخه مه نا اميده کيږئ بېشکه الله تعالی ګناهونه بخښي او هغه ډېر بخښونکی او مهربان ذات دی .

دغه مضمون حضرت علي ﷺ ددغه شعرو په ذريعه بيان کړی دی :

ايا صاحب الذنب لا تقنطن     فــــان الاله رؤف رؤف

ولاترحـــــلن بلا عـدة     فان الطريق مخوف مخوف

اې ګناه کاره ! مه نااميده کيږه ځکه الله تعالی مهربان او ډېر مهربان دی .

بېله د لاري د توښې سفر مه کوه ځکه چي لاره ډېره خوفناکه او خوفناکه ده .

او يو بل شاعر داسي ويلي دي :

غافل مرد که مرکب مردان مرد را     در سنگ لاخ باد يه پيها بريده اند

نوميد هم مباش که رندان باده نوش     ناګه بيک خـروش بمنزل رسيده اند

## شرک د الله ﷻ د رحمت او د بنده په مينځ کي پر ده ده

﴿۲۲۵۲﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى

حضرت ابوذر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالی

يَغْفِرُ لِعَبْدِهٖ مَا لَمْ يَقَعِ الْحِجَابُ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَمَا الْحِجَابُ ؟ قَالَ أَنْ

خپل بندګان بخښي تر څو پوري چي د بنده او د حق د رحمت په منځ کي پرده حائل نه وي، صحابه کرامو پوښتنه وکړه اې دالله رسوله! هغه پرده څه ده؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل:

تَمُوتَ النَّفْسُ وَهِيَ مُشْرِكَةٌ. روى الأحاديث الثلاثة أحمد وروى البيهقي الأخير في كتاب البعث والنشور

دا چي د شرک په حالت کي څوک مړ سي، دری ذکر سوي حديثونه احمد بيان کړي دي، او آخري حديث بيهقي.

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\ ۱۷۴.

## د الله ﷻ په دربار کي د شرک څخه پرته هره ګناه د عفو قابل ده

﴿۲۲۵۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَقِيَ اللَّهُ لاَ يَعْدِلُ

د حضرت ابوذر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي د الله تعالى سره په

بِهِ شَيْئًا فِي الدُّنْيَا ثُمَّ كَانَ عَلَيْهِ مِثْلَ جِبَالٍ ذُنُوبٌ غَفَرَ اللَّهُ لَهُ. رواه البيهقي في كتاب البعث والنشور

داسي حال کي يو ځای سي چي هيڅوک د هغه شريک نه وګڼي نو که پر هغه د غره په اندازه ګناه هم وي الله به يې و بخښي. بيهقي

**تخريج**: رواه البيهقي في كتاب البعث والنشور.

## توبه کونکی د ګناه نه کونکی په ډول دی

﴿۲۲۵۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

اَلتَّائِبُ مِنَ الذَّنْبِ كَمَنْ لاَّ ذَنْبَ لَهُ. رواه ابن ماجه والبيهقي في شعب الإيمان وقال تفرد به النهراني وهو مجهول. وفي (شرح السنة) روي

عنه موقوفا قال الندم توبة والتائب كمن لا ذنب له .

د گناه څخه توبه کونکی انسان داسي (پاک دئ) لکه هغه چي گناه کړې هم نه وي، ابن ماجه او بیهقي

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\ ۱۴۱۹، رقم: ۴۲۵۰، البيهقي في شعب الايمان ۵\ ۳۸۸، رقم: ۷۰۴۰، وشرح السنة ۵\ ۹۱- ۹۲، رقم: ۱۳۰۷.

**تشريح**: په دې پوهېدل پکار دي چي کله يو گناه د زړه په صدق سره پر خپلو گناهو باندي شرمنده او پښيمانه سي او په معتبرو شرائطو سره توبه وکړي نو د هغه د توبې په قبلېدو کي هيڅ شک او شبه نه ستهٔ ځکه چي الله تعالی په خپله دغه وعده فرمايلې ده چي : وهو الذي يقبل التوبة عن عباده: او الله تعالی داسي ذات دی چي د خپل بنده توبه قبلوي .

او استغفار چي د توبې پرته وي او د هغه تعلق د الله تعالی په مخکي خپل عجز او انکساري او د نفس ماتولو اظهار وي کله خو گناهونه رژوي او کله يې نه رژوي مگر پر دې باندي ثواب په هر صورت کي تر لاسه کيږي ، يعني د دغه انحصار مشيت پر دې باندي دی چي الله تعالی کله وغواړي په خپل فضل او کرم سره د اسغفار په ذريعه گناه ليري کوي او کله چي وغواړي نو نه يې ليري کوي مگر ثواب په دواړو صورتو کي ورکوي .

=========

# بَابُ فِيْ سَعَةِ رَحْمَتِهٖ

## د الله ﷻ د رحمت پراخوالی

د مشکوة شريف په اکثرو نسخو کي دلته يوازي باب ليکل سوی دی او د هغه مطلب دادی چي په دغه باب کي هغه حديثونه ذکر کيږي چي د هغو تعلق د تېرو بابو سره دی او په ځينو نسخو کي دلته دا عنوان قائم سوی دی : باب في سعة رحمة، يعني د الله تعالی د رحمت د وسعت بيان .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د الله ﷻ رحمت د هغه پر غضب غالب دی

﴿۲۲۵۵﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ لَمَّا

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کله چي الله تعالی

قَضَى اللّٰه الْخَلْقَ كَتَبَ كتاباً فهو عِنْدَهُ فَوْقَ عَرْشِهِ إِنَّ رَحْمَتِي سَبَقَتْ غَضَبِي و في رواية غلبت غضبي . متفق عليه

د خپل مخلوق د پيدا کولو اراده وکړه نو يو کتاب يې وليکئ چې هغه په عرش کي شتون لري په دې کتاب کي دا الفاظ دي (ان رحمتي سبقت غضبي) زما رحمت زما تر غضب وړاندي والی تر لاسه کړ، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چې زما رحمت زما پر غصه غالب سو، بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢٨٧، رقم: ٣١٤٩، ومسلم ٤\٢١٠٨، رقم: ١٦- ٢٧٥١.

**تشريح**: په کوم کتاب کي چې د الله تعالی له خوا دغه عظيم زيری ليکل سوی دی چې د الله تعالی رحمت د هغه پر غضب غالب دی د هغه کتاب د عظمت او بزرګۍ هيڅ اندازه هم نه سي کېدلای، د دغه کتاب دغه عظمت او بزرګۍ سره سم الله تعالی دغه د ځان سره د عرش سربېره ښبی دی.

د الله تعالی د رحمت د سبقت او د هغه د غالب کېدو مطلب دادی چې د الله تعالی رحمت د هغه بخښنه او کرم او د هغه د نعمتونو نښې او د هغه مظاهري غالبي دي چې هغه ټول مخلوقات راګير کړي دي او بې شمېره دي ددې په مقابله کي د هغه د غضب نښې او د هغه ځرګندېدل کم دي لکه څرنګه چې په خپله الله تعالی فرمايي : ان تعدوا نعمت الله لاتحصوها: که تاسو د الله تعالی نعمتونه شمېرل وغواړئ نو شمېر به يې نه کړای سئ.

او فرمايي :

عَذَابِي أُصِيبُ بِهِ مَنْ أَشَاء وَرَحْمَتِي وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ

ژباړه: په عذاب کي چې زه چا ته وغواړم اخته کوم مګر زما رحمت پر هر شي باندي خپور دی.

خلاصه دا چې د الله تعالی د رحمت دائره او د هغه د نعمتونو په اړه دومره وسيع او پراخ دی چې د کائناتو هيڅ فرد د هغه څخه وتلی نه دی او د دوئ د دنيوي ژوند هره لمحه په يو شکل کي د الله تعالی د رحمت يوه برخه ده مګر ددې په مقابله کي د بندګانو له خوا د الله تعالی د رحيم او کريم ذات د نعمتونو د شکر په ادا کولو کي چې څومره کوتاهي کيږي د هغه هيڅ يو حد او پای نه سته لکه چې الله تعالی فرمايي :

وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللّٰهُ النَّاسَ بِظُلْمِهِم مَّا تَرَكَ عَلَيْهَا مِن دَآبَّةٍ،

ژباړه: که چيري الله تعالی د هغوئ د ظلم په سبب د هغوئ سره مؤاخذه شروع کړي نو د (هغه

په نتيجه كي به) يو ساه لرونكى هم د مځكي پر مخ پرې نه ږدي.

دا هم د الله تعالى د رحمت ظهور دى چي د بندګانو د ټولو ګناهو او كوتاهيو سربېره په دغه دنيا كي هغوئ پاته لري هغوئ ته روزي وركوي پر هغوئ د خپلو نعمتو باران كوي او په دغه دنيا كي هغوئ ته عذاب او مؤاخذه نه ورسره كوي دا خو ددې دنيا معامله ده چي دلته د الله تعالى د رحمت ظهور څرنګه او په كوم صورت كي مخته راځي مګر په آخرت كي د رحمت ظهور خو ددې دنيا د ظهور څخه هم زيات دى لكه څرنګه چي د راتلونكي حديث څخه معلوميږي.

### د الله ﷻ د رحمت وسعت

﴿۲۲۵۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِلّٰهِ مِائَةَ رَحْمَةٍ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د الله تعالى سل رحمتونه دي

أَنْزَلَ مِنْهَا رَحْمَةً وَاحِدَةً بَيْنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ وَالْبَهَائِمِ وَالْهَوَامِّ فَبِهَا

چي په هغو كي يې يو رحمت پر پيريانانو، انسانانو، حيوانانو او زهرجنو حيوانانو باندي نازل كړئ دئ، ددې رحمت په سبب

يَتَعَاطَفُونَ وَبِهَا يَتَرَاحَمُونَ وَبِهَا تَعْطِفُ الْوَحْشُ عَلَى وَلَدِهَا وَأَخَّرَ اللّٰهُ تِسْعًا

هغوئ په خپل منځ كي رحم كوي، او ددې په سبب وحشي حيوانان پر خپل اولاد رحم كوي، او نهه نيوي رحمتونه الله تعالى

وَتِسْعِينَ رَحْمَةً يَرْحَمُ بِهَا عِبَادَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. متفق عليه و في رواية لمسلم

د قيامت لپاره ساتلي دي چي په هغو به پر خپلو بندګانو رحم كوي. بخاري او مسلم، او د مسلم

عن سلمان نحوه وفي اخره قال فاذا كان يوم القيامة اكملها بهذه الرحمة.

په يوه روايت كي دا الفاظ دي هر كله چي د قيامت ورځ سي نو الله تعالى به دا نهه نيوي رحمتونه د دغه يوه رحمت سره پوره كړي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري)، ۱۰\۴۳۱، رقم: ۶۰۰۰، ومسلم ۴\۲۱۰۸، رقم: ۱۹– ۲۷۵۲.

**تشريح**: د مسلم شريف د دغه دوهم روايت څخه دا خبره ثابتيږي چي د قيامت په ورځ به هغه يو

رحمت هم د بندګانو د حال شاهد سي کوم چي په دنيا کي نازل سوی دی ، همدارنګه يو رحمت خو ددغه دنيا والا وي او نهه نيوي رحمتونه چي د قيامت په ورځ الله تعالی خاص کړي دي دا ټول په يو ځای کولو سره پوره سل سي چي پر مسلمانانو او مؤمنانو باندي به نازل سي.

## بنده ته په بين الخوف والرجاء کي اوسيدل پکار دي

﴿۲۲۵۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ يَعْلَمُ الْمُؤْمِنُ

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : که مؤمن بنده ته څرګنده سي

مَا عِنْدَ اللّٰهِ مِنَ الْعُقُوبَةِ مَا طَمِعَ بِجَنَّتِهِ أَحَدٌ وَلَوْ يَعْلَمُ الْكَافِرُ مَا عِنْدَ اللّٰهِ

چي د الله تعالی سره څومره سخت عذابونه دي نو بيا به هيڅوک د جنت آرزو ونه کړي، او که کافر ته دا څرګنده سي چي د الله تعالی سره

مِنَ الرَّحْمَةِ مَا قَنَطَ مِنْ جَنَّتِهِ أَحَدٌ . متفق عليه

څومره رحمتونه دي نو بيا به هيڅوک د جنت څخه نا اميده نه سي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳۰۱\۱۱، رقم: ٦٤٦٩، ومسلم ۲۱۰۹\۱۴، رقم: ۲۳– ۲۷۵۵.

**تشريح**: ددغه حديث مقصد په حقيقت کي د الله تعالی د رحمت او د هغه د عذاب ظاهرول دي چي مؤمن د هغه پر رحمت باندي په باور سره کښيني او د هغه د عذاب څخه بالکل بې خوفه نه سي او کافر د هغه د رحمت څخه نااميدي اختيار نه کړي او نه توبه کول پرېږدي .

خلاصه دا چي بنده ته پکار دي چي هغه بين الخوف والرجاء يعني د بيري او اميد په مينځ کي اوسي يعني د الله تعالی پر رحمت باندي اميد هم ولري او د هغه د عذاب څخه وېرېږي ، د حضرت عمر ﷺ په باره کي نقل سوي دي چي هغه وفرمايل : که د قيامت په ورځ دا اعلان وکړل سي چي يو سړی به په جنت کي داخلېږي نو زه اميد لرم چي هغه سړی به زه يم او همدارنګه که اعلان وسي چي يو سړی به په دوږخ کي داخلېږي نو زه به ګمان کوم چي هغه سړی به زه يم .

## جنت او دوږخ هر چا ته نژدې دي

﴿۲۲۵۸﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجَنَّةُ أَقْرَبُ إِلَى أَحَدِكُمْ مِنْ شِرَاكِ نَعْلِهِ وَالنَّارُ مِثْلُ ذٰلِكَ . رواه البخاري.

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: جنت ستاسو د څپلی د تسمي څخه هم زيات نژدې دئ او همداسي دوږخ هم. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۳۲۱، رقم: ۶۴۸۸.

**تشريح**: خلاصه دا چي د انسان، جنت او دوږخ په مينځ کي فاصله نه سته نو هر چا ته پکار دي چي هغه خپل ژوند په ښو کارو او نيکو اعمالو سره سمسور کړي تر څو هغه د جنت اميدلرونکی سي او د خرابو کارو څخه ځان وساتي او د دوږخ څخه وبيرېږي.

## د الله تعالی د بخښي مثال

﴿۲۲۵۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَجُلٌ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: يو سړي چي هغه هيڅکله

لَمْ يَعْمَلْ خَيْرًا قَطُّ لِاَهْلِهِ وَ فِيْ رِوَايَةٍ اَسْرَفَ رَجُلٌ عَلٰى نَفْسِهِ فَلَمَّا حَضَرَهُ

نيک کار نه وو کړئ خپل کورنی ته وويل: او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي يو سړي پر خپل ځان ظلم کړی وو (يعني ډير ګناه کار وو) کله چي د هغه مرګ رانژدې سو

الْمَوْتُ اَوْصٰى بَنِيْهِ إِذَا مَاتَ فَحَرِّقُوْهُ وَاذْرُوْا نِصْفَهُ فِي الْبَرِّ وَنِصْفَهُ فِي الْبَحْرِ

نو خپلو زامنو ته يې وصيت وکړ چي کله مړ سم نو وه دي سوځل سي او نيمه ايره دي په صحراء کي وغورزول سي او نيمه دي په درياب کي واچول سي،

فَوَاللّٰهِ لَئِنْ قَدَرَ اللّٰهُ عَلَيْهِ لَيُعَذِّبَنَّهُ عَذَابًا لَا يُعَذِّبُهُ أَحَدًا مِنَ الْعَالَمِيْنَ فَلَمَّا

په الله دي مي قسم وي که الله جل جلاله هغه تر لاسه کړ نو داسي عذاب به ورکړي چي په دنيا کي به يې چا ته داسي عذاب نه وي ورکړی، کله چي

مَاتَ فَعَلُوْا مَا اَمَرَهُمْ فَأَمَرَ اللّٰهُ الْبَحْرَ فَجَمَعَ مَا فِيْهِ وَأَمَرَ الْبَرَّ فَجَمَعَ مَا فِيْهِ

هغه مړ سو نو د هغه زامنو د هغه وصيت پر ځای کړ، بيا الله تعالی درياب ته حکم ورکړ نو هغه ايرې يو ځای سوې او صحراء ته يې حکم ورکړ نو کومه ايره چي په هغه کي ګډه وه سوې وه هغه يو ځای سول،

ثُمَّ قَالَ لَهُ لِمَ فَعَلْتَ هٰذَا قَالَ مِنْ خَشْيَتِكَ يَا رَبِّ وَأَنْتَ أَعْلَمُ فَغَفَرَ لَهُ.

## متفق عليه

بیا اللہ تعالی د هغه څخه پوښتنه وکړه تا داسي ولي وکړل؟ هغه عرض وکړ اې پروردګاره! ستا د بيري څخه مي داسي وکړل او ته ښه پوهيږې، نو الله پاک هغه و بخښئ. مسلم او بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱۱\۳۱۲، رقم: ٦۴۸۱، ومسلم ۴\۲۱۰۹۱، رقم: ۲۴- ۲۷۵٦.

**تشريح**: هغه سړي دا ګڼلې وه چي عذاب يوازي هغه چا ته وي کوم چي ښخيږي نو د خپل بدعمله ژوند او ګناهو د زياتوب په لېدو سره هغه د ډيري بيري څخه دا وصيت وکړ چي ما وسوځئ زما ايرې په هواء کي ابله کړئ نو دالله تعالی دا خبره خوښه سوه او هغه يې وبخښي.

لئن قدر الله: ددې معنی خو هغه ده کوم چي په ژباړه کي بيان سوې ده يعني که الله تعالی د هغه څخه مؤاخذه وکړي او په حساب کي سختي وکړي، په دې صورت کي هيڅ اشكال نه پيدا کيږي مګر که دا وويل سي چي د هغه سړي مراد ددې لفظي معنی وي يعني که الله تعالی پر ما باندي قادر سي نو بيا به دا اشكال پيدا كيږي چي هغه د الله تعالی په قدرت کي د شک او شبهې اظهار وکړ چي ظاهره ده دا بالكل كفر دی.

ددغه اشكال علماء كرامو څو جوابونه ورکړي دي چي د هغو څخه يو جواب دادی چي دا د ښځو د فترت خبره ده، هغه وخت يو نبي نه وو او همدارنګه يوازي پر توحيد باندي ايمان او عقيده پر خلاصون باندي څه اثر لويږي.

ځيني علماء وايي چي هغه سړي دا خبره د بيري او خوف د غلبې په وجه کړې وه او په داسي صورت کي انسان د منع او مغلوب العقل په حكم کي وي او هغه ماخوذ نه سي ګرځېدای لکه څرنګه چي په تېر باب کي يو حديث کي د هغه سړي په باره کي نقل سوي دي چي هغه ورکه سوې سپرلی پيدا کړه او بيا هغه د خوشحالی د غلبې په وجه د هغه د ژبې څخه دا الفاظ ووتل چي: انت عبدي وانا ربک، ته زما بنده يې او زه ستا رب يم.

### د الله ﷻ د رحمت وسعت

﴿۲۲٦۰﴾: وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ قَدِمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ته بنديان راغلل چي

سَبْيٌ فَإِذَا امْرَأَةٌ مِنَ السَّبْيِ قَدْ تَحْلُبُ ثَدْيَهَا تَسْقِي إِذَا وَجَدَتْ صَبِيًّا فِي

په هغو بنديانو كي يوه ښځه هم وه چي د هغې د تيانو څخه شيدې بهېدلې هغه آخوا دېخوا په بيره كي وه (يعني د خپل كوچني لټه يې كول چي د هغې سره نه وو) هغې چي به يو كوچني د

السَّبْيِ أَخَذَتْهُ فَأَلْصَقَتْهُ بِبَطْنِهَا وَأَرْضَعَتْهُ فَقَالَ لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

بنديانو سره وليدئ نو هغه به يې په غيږ كي واخيستئ او د خپلي سينې سره به يې ومښلوئ او شېدې به يې وركولې، نو نبي كريم ﷺ موږ ته وفرمايل:

وَسَلَّمَ أَتُرَوْنَ هَذِهِ طَارِحَةً وَلَدَهَا فِي النَّارِ قُلْنَا لَا وَهِيَ تَقْدِرُ عَلَى أَنْ لَا

ايا ستاسو په خيال دا ښځه به خپل كوچنى په اور كي واچوي؟ موږ عرض وكړ اې د الله رسوله! نه، په شرط د دې چي هغه په نه غورزولو توان لري،

تَطْرَحَهُ فَقَالَ لَلّٰهُ أَرْحَمُ بِعِبَادِهِ مِنْ هَذِهِ بِوَلَدِهَا. متفق عليه

رسول الله ﷺ وفرمايل: الله تعالى پر خپلو بندګانو تر دې هم زيات رحم كوونكى دئ څومره چي دا ښځه پر خپل كوچني مهربانه ده. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۲۶، رقم: ۵۹۹۹، ومسلم ۴\۲۱۰۹، رقم: ۲۲- ۲۷۵۴.

## د ميانه روي اختيارولو حكم

﴿۲۲۶۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنْ يُنَجِّيَ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: نجات نه سي وركولاى

أَحَدًا مِنْكُمْ عَمَلُهُ قَالُوا وَلَا أَنْتَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ وَلَا أَنَا إِلَّا أَنْ يَتَغَمَّدَنِي اللّٰهُ

هيچا ته د هغه عمل، صحابه كرامو پوښتنه وكړه اې د الله رسوله! تاسو ته هم نه، رسول الله ﷺ وفرمايل هو، ما ته هم نه، پرته د دې څخه چي د الله جل جلاله رحمت ما په غيږ كي واخلي،

منه بِرَحْمَةٍ فَسَدِّدُوا وَقَارِبُوا وَاغْدُوا وَرُوحُوا وَشَيْءٌ مِنَ الدُّلْجَةِ وَالْقَصْدَ

الْقَصْدَ تَبْلُغُوا. متفق عليه

له دې كبله تاسو ته پكار ده چي خپل اعمال سم كړئ او ميانه روي غوره كړئ او سهار مابنام او

څه برخه د شپې په تیریدو کي عبادت کوئ او په هر کار کي میانه روي غوره کړئ نو خپل مقصد به تر لاسه کړئ. بخاري او مسلم..

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۲۹۴، رقم: ۶۴۶۳، ومسلم ۴\ ۲۱۶۹، رقم: ۷۱- ۲۸۱۶.

**د لغاتو حل**: الدلجة: السیر اول اللیل (د شپې په لومړۍ برخه کي تلل).

## د رحمت الهي څخه پرته یوازي عمل د جنت ضامن نه دی

﴿۲۲۶۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُدْخِلُ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په تاسو کي هیڅوک د هغه

أَحَدًا مِنْكُمْ عَمَلُهُ الْجَنَّةَ وَلَا يُجِيرُهُ مِنَ النَّارِ وَلَا أَنَا إِلَّا بِرَحْمَةٍ مِنَ اللَّهِ.

رواه مسلم

عمل جنت ته نه سي داخلولای او د الله د رحمت څخه پرته هیڅوک د دوږخ څخه نه سي خلاصیدلای او زه هم مګر د الله په رحمت سره. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\ ۲۱۷۱، رقم: ۷۷- ۲۸۱۷.

**تشریح**: د حدیث د آخري الفاظو مطلب دادی چي په جنت کي د داخلېدو او د دوږخ څخه د خلاصون د سعادت باعث به هغه عمل کوي چي د هغه سره د الله تعالی رحمت هم شامل وي نو په جنت کي داخلېدل خو یوازي د الله تعالی د فضل او کرم او د هغه د رحمت په وجه دي البته په جنت کي چي کومي درجې تر لاسه کیږي هغه به د اعمالو مطابق تر لاسه کیږي یعني د چا عمل چي د کومي درجې وي هغه ته به هغه درجه تر لاسه کیږي.

## په جزا او سزا کي د رحمت الهي ظهور

﴿۲۲۶۳﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَسْلَمَ

د حضرت ابو سعید رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چي یو بنده اسلام

الْعَبْدُ فَحَسُنَ إِسْلَامُهُ يُكَفِّرُ اللَّهُ عَنْهُ كُلَّ سَيِّئَةٍ كَانَ زَلَفَهَا وَكَانَ بَعْدَ

قبول کړي او د هغه اسلام ښه وي نو الله تعالی د هغه وړاندي ګناهونه بخښي او د هغه وروسته د هغه د اعمالو بدله ورکړي

صاصُ الْحَسَنَةُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا إِلَى سَبْعِ مِائَةِ ضِعْفٍ الى اضعاف كثيرة

هغه چي کومه نیکي کوي هغه لس برابر لیکل کیږي بلکه تر اوو سوو پوري او تر دې هم زیات

وَالسَّيِّئَةُ بِمِثْلِهَا إِلَّا أَنْ يَتَجَاوَزَ اللَّهُ عَنْهَا . رواه البخاري

د بدۍ بدله به د بدۍ سره سم ورکول کیږي مګر دا چي الله یې معاف کړي . بخاري.

**یج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۹۸، رقم: ۴۱.

**اتو حل:** زلفها: بتشديد اللام اى قدمها. (وړاندي یې کړي وي).

**یح:** دا محض د الله تعالی د رحمت ظهور دی او د هغه د فضل او کرم اثر دی چي هغه پر نیکۍ د لسو څخه تر اووه سوه پوري جزاء ورکوي بلکه چا ته چي غواړي د هغه د مشقت او ق او اخلاص موافق تر دې هم زیات ورکوي مګر د بدۍ سزا د هغه د بدۍ په اندازه ورکوي کومره بدي چي وي هغه ته یوازي د هغه بدۍ سزا ورکول کیږي بلکه چا ته چي وغواړي د بدي به ور معاف کړي او د هغو مره سزا څخه به یې هم وساتي.

۲۲۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللَّهَ

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی ملائکو ته د

تَبَ الْحَسَنَاتِ وَالسَّيِّئَاتِ فَمَنْ هَمَّ بِحَسَنَةٍ فَلَمْ يَعْمَلْهَا كَتَبَهَا اللَّهُ لَهُ

نیکو او بدو لیکلو حکم وکړ په داسي ډول چي څوک د نیکۍ اراده وکړي او پر هغه عمل ونه کړي نو الله تعالی پوره یوه نیکي ورکوي

عِنْدَهُ حَسَنَةً كَامِلَةً فَإِنْ هَمَّ بِهَا فَعَمِلَهَا كَتَبَهَا اللَّهُ لَهُ عِنْدَهُ عَشْرَ حَسَنَاتٍ

و څوک چي د نیکۍ اراده وکړي او په هغه عمل وکړي نو د هغه په حساب کي د یوې نیکۍ په بدله کي لس نیکۍ

ى سَبْعِ مِائَةِ ضِعْفٍ إِلَى أَضْعَافٍ كَثِيرَةٍ وَمَنْ هَمَّ بِسَيِّئَةٍ فَلَمْ يَعْمَلْهَا كَتَبَهَا

لکه اووه سوه نیکۍ او تر دې هم زیات لیکل کیږي او څوک چي د بدۍ اراده وکړي او بدي ونه کړي نو الله تعالی

اللّٰهُ لَهُ عِنْدَهُ حَسَنَةً كَامِلَةً فَإِنْ هُوَ هَمَّ بِهَا فَعَمِلَهَا كَتَبَهَا اللّٰهُ لَهُ سَيِّئَةً وَاحِدَةً. متفق عليه

د هغه په حساب کي يوه نيکي ليکي او څوک چي د بدي اراده وکړي او په هغه عمل هم وکړي نو يوازي يوه بدي د هغه په عمل نامه کي ليکل کيږي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۳۲۳، رقم: ٦۴۹۱، ومسلم: ۱۱\ ۱۱۸، رقم: ۲۰۷- ۱۳۱.

**تشريح**: د نيکيو څخه مراد هغه عملونه دي چي د هغو په کولو سره ثواب تر لاسه کيږي او د بديو څخه مراد هغه عملونه دي چي د هغو په کولو سره د عذاب وړ گرځي.
کوم څوک چي د يو نيکۍ اراده وکړي او هغه نيکي په يو وجه ونه کړلای سي نو د هغه لپاره هم يوه نيکي ځکه ليکل کيږي چي د عمل ثواب پر نيت موقوف دی او د مؤمن نيت د هغه د عمل څخه غوره او افضل وي بلکه داسي ووايي چي اصل خو نيت دی د عمل درجه د هغه څخه وروسته ده ځکه د عمل څخه پرته يوازي پر نيت باندي ثواب ورکول کيږي مگر د نيت څخه پرته پر عمل باندي چي کوم ثواب تر لاسه کيږي هغه دوه برابر نه کيږي پر نيکي باندي د ثواب د دوه برابر کېدو اندازه اووه سوه بيانيږي دده وروسته الله تعالى په ثواب کي څومره زياتوب کوي د هغه آخري حد چا ته معلوم نه دی ځکه چي د اووه سوه څخه وروسته اندازه الله تعالى مبهم کړې ده او دده وجه داده چي يو شي ته د شوق ورکولو لپاره د هغه په ټاکني سره د ذکر کولو پر ځای مبهم ذکر کول زيات مؤثر وي ځکه ويل سوي دي چي: فلا تعلم نفس ما اخفي لهم من قرة اعين

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د بدۍ پر پښېدونکی او د نيکۍ کونکي مثال

﴿۲۲٦۵﴾: عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ

د حضرت عقبة بن عامر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَثَلَ الَّذِيْ يَعْمَلُ السَّيِّئَاتِ ثُمَّ يَعْمَلُ الْحَسَنَاتِ كَمَثَلِ رَجُلٍ كَانَتْ عَلَيْهِ

د هغه چا حال چي بدي کوي او بيا نيکي کول پيل کړي د هغه چا په ډول دئ چي د هغه په بدن کي

دِرْعٌ ضَيِّقَةٌ قَدْ خَنَقَتْهُ ثُمَّ عَمِلَ حَسَنَةً فَانْفَكَّتْ حَلْقَةٌ ثُمَّ عَمِلَ أُخْرٰى فَانْفَكَّتْ أُخْرٰى حَتّٰى تَخْرُجَ إِلَى الْأَرْضِ . رواه في شرح السنة

يوه تنگه زغره وي چي د هغو کړيو د هغه بدن تهنگ کړی وي ، بيا هغه نيکي کول پيل کړي او د هغه د زغزي يوه کړۍ خلاصه سي او بيا دويمه نيکي وکړي او دويمه کړۍ خلاصه سي تر څو چي د کړيو خلاصېدلو سره زغره په سست کېدو سره پر مځکه ايله سي . شرح السنة.

**تخريج**: شرح السنة ۱۴\۳۳۹، رقم: ۴۱۴۹.

**تشريح**: د حديث شريف خلاصه داده چي د بدۍ په کولو سره سينه تنگه او تياره کيږي او بدۍ کونکی نه يوازي دا چي په ټولو کارو کي د ضمير صحيح لارښووني څخه محروم کيږي چي د هغه په نتيجه کي د هغه ټول فکري او عملي لارو باندي د يقين او اعتماد او سکون د نور پر ځای خوف ، اضطرار او د عدم استقلال توره سايه سي بلکه هغه د خلکو په نظر کي کم سي او ټول نيکۍ خوښونکي انسانان هغه ته د غصې او سپکوالي په نظر گوري ددې برعکس په نيکي کولو سره سينه پراخه کيږي او نيکۍ کونکی په خپل هر کار کي اساني او د يقين او اعتماد د سکون څخه ډک اثرات محسوسوي او دا چي هغه د خلکو په نظر محبوب او خوښ وي . په پورتني حديث کي تنگۍ ته په زغري سره تشبيه ورکړل سوې ده چي د تنگي زغري په اغوستلو سره بدن تنگ او بې ارامه کيږي او د هغه زغري د بدن څخه په خلاصېدو سره پراخي او د زړه خوشحالي تر لاسه کيږي .

## د قيامت په ورځ د الله ﷻ څخه د بېرېدونکي مثال

﴿۲۲۶۶﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَقُصُّ

د حضرت ابو درداء رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل

عَلَى الْمِنْبَرِ وَهُوَ يَقُوْلُ {وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ} قُلْتُ وَإِنْ زَنٰى وَإِنْ

يې پر منبر باندي : (و لمن خاف مقام ربه جنتان) او څوک چي د پروردگاره د پېښي څخه يعني د قيامت د ورځي څخه بيرېږي هغه ته به دوه جنتونه ورکړل سي ، ما عرض وکړ اې د الله رسوله ! که څه هم هغه زنا کوونکی وي او

سَرَقَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ الثَّانِيَةَ {وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ} فَقُلْتُ

غل وي ، د دې په اوريدو سره رسول الله ﷺ بيا دا آيت تلاوت کړ {وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ} ، ما بيا پوښتنه وکړه اې د الله رسوله !

اَلثَّانِيَةَ وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اَلثَّالِثَةَ {وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ

که څه هم هغه زنا کار او غل وي ، رسول الله ﷺ په دريم وار بيا دغه آيت تلاوت کړ {وَلِمَنْ خَافَ

جَنَّتَانِ} فَقُلْتُ الثَّالِثَةَ وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ وَإِنْ رَغِمَ أَنْفُ أَبِي الدَّرْدَاءِ . رواه احمد

مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ} ، ما په دريم وار بيا پوښتنه وکړه چي اې د الله رسوله ! که څه هم زنا کونکی او غل وي ، رسول الله ﷺ وفرمايل : که څه هم هغه زنا او غلا کړې وي که څه هم د ابودرداء پزه په خاورو ولړل سي . احمد .

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۲\۳۵۷.

**تشريح**: د هغه لپاره دوه جنتونه دي: د دوو جنتو په باره کي په ځينو حديثو کي راغلي دي چي يو جنت خو داسي وي چي په هغه کي مکان ، محل ، لوښي او زيورات وغيره ټول د سرو زرو دي او يو جنت داسي دی چي په هغه کي ټول سامان د سپينو زرو وي .

حضرت ابودرداء رضي الله عنه پر دغه زيري باندي تعجب وکړ او هغه ته دا خبره ليري معلومه سوه ځکه رسول الله ﷺ وفرمايل که څه هم د ابودرداء رضي الله عنه پزه په خاورو لړلې وي يعني که څه هم دا خبره ابودرداء رضي الله عنه ته عجيبه معلوميږي او ابودرداء رضي الله عنه دا ډيره ليري ګڼي مګر خبره همداسي ده لکه څرنګه چي ما ويلي دي .

## الله تعالی پر بنده باندي تر مور زيات مهربان دی

﴿۲۲٦۷﴾ : وَعَنْ عَامِرِ الرَّامِي قَالَ بَيْنَا نَحْنُ عِنْدَهُ يَعْنِي عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عامر رامي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو چي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ أَقْبَلَ رَجُلٌ عَلَيْهِ كِسَاءٌ وَفِي يَدِهِ شَيْءٌ قَدِ الْتَفَّ عَلَيْهِ فَقَالَ يَا

يو سړی راغلئ چي کمبل يې اچولې وه او د هغه په لاس کي يو شی وو چي پر هغه يې کمبل را

تاو کړې وه، هغه عرض وکړ

رَسُولَ اللّٰهِ مَرَرْتُ بِغَيْضَةِ شَجَرٍ فَسَمِعْتُ فِيهَا أَصْوَاتَ فِرَاخِ طَائِرٍ فَأَخَذْتُهُنَّ

اې د الله رسوله ! زه د درختو د يو ځالگۍ سره تيريدم په هغه کې ما د مرغانو آواز واوريدئ ما هغه ونيول

فَوَضَعْتُهُنَّ فِي كِسَائِي فَجَاءَتْ أُمُّهُنَّ فَاسْتَدَارَتْ عَلَى رَأْسِي فَكَشَفْتُ لَهَا

او په خپل كمبل کې مې کښېښنودل، بيا د هغوئ مور راغلل او زما پر سر گرځېدل ما د هغې په

عَنْهُنَّ فَوَقَعَتْ عَلَيْهِنَّ مَعَهُنَّ فَلَفَفْتُهُنَّ بِكِسَائِي فَهُنَّ أُولَاءِ مَعِي قَالَ

وړاندې د هغې کوچنيان خلاص کړل او هغه پر هغوئ را ولويدل نو ما ټول ونيول چې هغه اوس هم زما سره دي، رسول الله ﷺ وفرمايل :

ضَعْهُنَّ فَوَضَعْتُهُنَّ وَأَبَتْ أُمُّهُنَّ إِلَّا لُزُومَهُنَّ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

دوئ کښېږده نو ما ټول کښېښنودل د بچو مور د څه پروا کولو پرته پر خپلو کوچنيانو را پريوتل ، رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَسَلَّمَ لِأَصْحَابِهِ أَتَعْجَبُونَ لِرُحْمِ أُمِّ الْأَفْرَاخِ فِرَاخَهَا فَوَالَّذِي بَعَثَنِي

ايا تاسو په دې خبره تعجب كوئ چې مور پر خپلو بچيانو رحم كوي په هغه ذات دې مې قسم وي چې هغه زه په حق سره راليږلی يم ،

بِالْحَقِّ لَلّٰهُ أَرْحَمُ بِعِبَادِهِ مِنْ أُمِّ الْأَفْرَاخِ بِفِرَاخِهَا ارْجِعْ بِهِنَّ حَتّٰى تَضَعَهُنَّ

الله جل جلاله پر خپلو بندگانو باندې تر دې هم زيات مهربان دئ ، اوس ته دا يوسه او د كوم ځای څخه چې دې راوړي دي

مِنْ حَيْثُ أَخَذْتَهُنَّ وَأُمُّهُنَّ مَعَهُنَّ فَرَجَعَ بِهِنَّ. رواه ابوداؤد .

د هغوئ د مور په وړاندې يې هم هلته كښېږده نو هغه سړي هغه مرغان هلته كښېښنودل . ابوداؤد .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۳\۴۶۸، رقم: ۳۰۸۹.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

﴿۲۲۶۸﴾ : عَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنَّا مَعَ النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي

د حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي په يوه غزا كي موږ د رسول الله ﷺ سره وو،

بَعْضِ غَزَوَاتِهِ فَمَرَّ بِقَوْمٍ فَقَالَ مَنِ الْقَوْمُ قَالُوا نَحْنُ الْمُسْلِمُونَ وَامْرَأَةٌ

رسول الله ﷺ د يو مسجد سره تير سو او پوښتنه يې وكړه تاسو كوم خلك ياست؟ هغوئ وويل موږ مسلمانان يو،

تَحْضِبُ بِقِدْرِهَا وَمَعَهَا ابْنٌ لَهَا فَإِذَا ارْتَفَعَ وَهَجُ التَّنُّورِ تَنَحَّتْ بِهِ فَأَتَتْ

په هغه مسجد كي يوې ښځي كټو پخول او د هغې زوی ورسره وو، د اور لمبه چي به پورته سوه نو هغې ښځي به خپل كوچني ايسته كړئ، بيا هغه ښځه د

النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ أَنْتَ رَسُولُ اللهِ قَالَ نَعَمْ قَالَتْ بِأَبِي أَنْتَ

نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سوه او عرض يې وكړ ايا تاسو د الله ﷻ رسول ياست؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: هو، هغې ښځي پوښتنه وكړه

وَأُمِّي أَلَيْسَ اللهُ أَرْحَمَ الرَّاحِمِينَ قَالَ بَلَى قَالَتْ أَلَيْسَ اللهُ أَرْحَمَ بِعِبَادِهِ

زما مور او پلار دي پر تاسو قربان وي ايا الله ډير مهربان نه دئ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هو دئ، هغې ښځي وويل: ايا الله ﷻ پر خپلو بندګانو تر دې هم زيات مهربان دئ څومره چي

مِنَ الْأُمِّ بِوَلَدِهَا قَالَ بَلَى قَالَتْ فَإِنَّ الْأُمَّ لَا تُلْقِي وَلَدَهَا فِي النَّارِ فَأَكَبَّ

يوه مور پر خپلو كوچنيانو مهربانه وي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هو، هغې ښځي وويل: مور خو خپل كوچنيان په اور كي نه اچوي؟ نو رسول الله ﷺ سر مبارك كښته كړ

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَبْكِي ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ إِلَيْهَا فَقَالَ إِنَّ اللهَ لَا

او په ژړا سو، بيا يې سر مبارك را پورته كړ او وه يې فرمايل: الله تعالى خپلو بندګانو ته

يُعَذِّبُ مِنْ عِبَادِهِ إِلَّا الْمَارِدَ الْمُتَمَرِّدَ الَّذِي يَتَمَرَّدُ عَلَى اللّٰهِ وَأَبَى أَنْ يَقُولَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ . رواه ابن ماجه .

عذاب نه ورکوي مګر يوازي هغه خلکو ته عذاب ورکوي چي سرکښ وي (يعني د الله تعالى نافرماني کوي) او د هغه حکم منلو او لااله الاالله ويلو څخه انکار کوي . ابن ماجه.

**تخريج** : سنن ابن ماجه ۲\۱۴۳۶، رقم: ۴۲۹۷.

**د لغاتو حل** : تحضب: اى توقد : (بلوي).

## پر بنده د الله ﷻ رحمت

﴿۲۲۶۹﴾ : وَعَنْ ثَوْبَانَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْعَبْدَ لَيَلْتَمِسُ

د حضرت ثوبان رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : نيک بنده د الله تعالى د رضا

مَرْضَاةَ اللّٰهِ وَلَا يَزَالُ بِذٰلِكَ فَيَقُولُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ لِجِبْرِيلَ إِنَّ فُلَانًا عَبْدِي

په لټه کي وي او هميشه په دې حال کي وي ، الله تعالى جبرائيل عليه السلام ته فرمايي زما

يَلْتَمِسُ أَنْ يُرْضِيَنِي أَلَا وَإِنَّ رَحْمَتِي عَلَيْهِ فَيَقُولُ جِبْرِيلُ رَحْمَةُ اللّٰهِ عَلَى

فلانى بنده زما د رضا په لټه کي دئ خبردار سه چي زما رحمت پر هغه دئ، بيا جبرائيل عليه السلام فرمايي : د الله رحمت پر فلاني سړي دئ

فُلَانٍ وَيَقُولُهَا حَمَلَةُ الْعَرْشِ وَيَقُولُهَا مَنْ حَوْلَهُمْ حَتَّى يَقُولَهَا أَهْلُ السَّمٰوَاتِ السَّبْعِ ثُمَّ تَهْبِطُ لَهُ إِلَى الْأَرْضِ . رواه احمد

بيا دا خبره عرش پورته کونکي ملائکي وايي او هغه ملائکي هم وايي کومي چي هغوئ ته نژدې وي ، تر څو چي د اووم آسمان ملائکي هم دا وايي بيا رحمت د هغه سړي لپاره پر مځکه را نازليږي . احمد.

**تخريج** : الامام احمد في مسنده ۵\۲۷۹.

**تشريح** : پر هغه سړي باندي د رحمت نازلېدو مطلب دادى چي الله تعالى هغه بنده خپل دوست او غوره بنده ګرځوي او د مځکي پر مخ د هغه لپاره د عام قبوليت فضا پيدا کوي او هغه نتيجه

دا سي چي دنيا وال هغه غوره گڼي او د هغوئ په زړو کي د هغه لپاره د ميني او احترام جذبات پيدا کوي .

دا حديث د مفهوم او معنی په اعتبار د دغه ارشاد په ډول دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کله چي الله تعالی يو بنده دوست جوړ کړي نو جبرائيل عليه السلام خبر کړي چي زه فلانی بنده خپل دوست گرځوم ته هم هغه دوست کړه نو جبرائيل عليه السلام هغه بنده دوست کړي بيا په اسمانو کي اعلان کوي چي الله تعالی فلانی بنده دوست کړی نو تاسو ټول هم هغه دوست کړئ نو آسمان والا هم هغه دوست کړي بيا د هغه بنده لپاره د مځکي پر مخ د قبوليت عامه فضا پيدا کړل سي (د هغه نتيجه دا سي چي خلک هغه خوښوي) او کله چي الله تعالی يو بنده خپل دښمن کړي نو جبرائيل عليه السلام خبر کړي چي فلانی سړی زه خپل دښمن گڼم ته يې هم خپل دښمن وگڼه نو جبرائيل عليه السلام يې هم خپل دښمن کړي بيا جبرائيل عليه السلام آسمان والا خبر کړي چي فلانی سړی الله تعالی خپل دښمن کړئ او تاسو ټول يې هم دښمن کړئ نو آسمان والا يې هم دښمن کړي بيا د هغه لپاره د مځکي پر مخ د عامي دښمنۍ فضا پيدا کړي (چي د هغه په نتيجه کي خلک ټول د هغه دښمنان سي) . د دغه ارشاد څخه دا خبره واضحه سوه چي د اولياء الله عام شهرت او قبوليت او د عوامو په زړو کي د هغوئ بې پناه محبت او عقيد يوازيني سبب دادی چي خپله الله تعالی هغه خپل دوست کړي ، هو کوم خلک چي د مکر او فريب پر طريقه خپل مال او زر مصرف کولو سره د عوامو زړونه خپل طرف ته مائل کوي نو هغوئ د دغه ډلي څخه خارج دي ځکه چي د داسي خلکو هيڅ باور نه سته .

## مؤمن په هر صورت کي جنتي دی

﴿۲۲۷۰﴾: وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ قَوْلِ اللهِ

د حضرت اسامة بن زيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د دې آيت

عَزَّ وَجَلَّ فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ وَمِنْهُمْ مُّقْتَصِدٌ وَمِنْهُمْ سَابِقٌ بِالْخَيْرَاتِ قَالَ كُلُّهُمْ فِي الْجَنَّةِ . رواه البيهقي في كتاب البعث والنشور

فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ وَمِنْهُمْ مُّقْتَصِدٌ وَمِنْهُمْ سَابِقٌ بِالْخَيْرَاتِ ، په تفسير کي فرمايلي دي چي دا ټول جنتيان

**تخريج**: رواه البيهقي في كتاب البعث والنشور.

**تشريح**: په دغه حديث كي چي كوم آيت كريمه د تفسير په ضمن كي ذكر سوى دى هغه پوره آيت داسي دى :

ثُمَّ أَوْرَثْنَا الْكِتَابَ الَّذِينَ اصْطَفَيْنَا مِنْ عِبَادِنَا فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ وَمِنْهُم مُّقْتَصِدٌ وَمِنْهُمْ سَابِقٌ بِالْخَيْرَاتِ،

ژباړه: بيا موږ هغه كسانو ته كتاب او شريعت وركړ چي موږ په خپلو بندګانو كي (د ايمان او اسلام په ذريعه) غوره كړل نو په دغه غوره خلكو (يعني مسلمانانو) كي ځيني د خپل نفس په حق كي ظالمان دي (په دې توګه چي هغوئ د منع شيانو ارتكاب كوي او خپل ځان په ګناهو كي اخته كوي) او په هغو كي ځيني ميانه رو دي (په دې توګه چي هغوئ نيكي هم كوي) او په هغوئ كي ځيني په نيكيو كي سبقت كونكي دي (په دې توګه چي هغوئ د علم په تر لاسه كولو او عمل كولو كي ډېره هيڅه او كوښښ كوي) او خپل علم او عمل سره هغوئ نور خلك هم د خپل علم، تذكير او نصيحت په ذريعه د هدايت پر لاره روانوي.

حسن بصري رحمة الله عليه فرمايي چي د سبقت كونكي څخه ځوک مراد دی چي د هغه نيكي پر بديو غالب وي يعني نيكي زياته كوي او په بديو كي لږ اخته كيږي او ميانه رو هغه سړى دى چي د هغه نيكي او بدي برابر وي او د ظالم څخه مراد هغه ځوک دى چي د هغه په ژوند كي بدى پر نيكى غالبي وي.

د پورتني حديث خلاصه داده چي دغه درې ډوله خلك د غوره بندګانو يعني مؤمنانو څخه دي او دا ټول جنتيان دي او دا بېله خبره ده چي هغوئ ته به په جنت كي د خپلو خپلو حالاتو او كارو په اعتبار درجې تر لاسه كيږي ددې څخه معلومه سوه چي د الله تعالى رحمت ځومره پراخ او عام دى او څرنګه چي د هغه نيكانو بندګانو د هغه په رحمت سره نازول كيږي همدا رنګه ګناه كار بندګان هم د هغه د رحمت په سايه كي په ابدي سعادتونو سره نازول كيږي.

========

# بَابُ مَا يَقُوْلُ عِنْدَ الصَّبَاحِ وَالْمَسَاءِ وَالْمَنَامِ

## د سهار، ماښام او بېده کېدو په وخت کي دعاوي

د سهار څخه مراد دادی چي د لمر ختلو تر وخت پوري د ورځي اولنی برخه، د ماښام څخه مراد دادی چي د لمر لوېدو څخه د شفق تر لوېدو پوري وخت او د ورځي بالکل آخري وخت، نو کومي دعاوي چي د سهار لپاره نقل سوي دي پکار دي چي د سهار د لمانځه څخه مخکي وويل سي مګر د سهار د لمانځه وروسته په دواړو صورتو کي څه فرق نه سته همدارنګه د ماښام لپاره چي کومي دعاوي ويل نقل سوي دي نو پکار دي چي د ماښام د لمانځه څخه مخکي وويل سي او يا د ماښام د لمانځه څخه وروسته.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### په سهار او ماښام کي د رسول الله ﷺ دعاء

﴿۲۲۷۱﴾: عَنْ عَبْدِاللهِ قَالَ كَانَ رسول اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَمْسَى

د حضرت عبد الله رضي الله عنه څخه روايت دئ چي کله به ماښام سو نو رسول الله ﷺ به دا دعاء کول:

قَالَ أَمْسَيْنَا وَأَمْسَى الْمُلْكُ لِلّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ و لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ

(امسينا ..... وعذاب القبر) اې الله! اوس ماښام سو او پر ټول هيواد باندي ماښام خپور سوی دئ او هغه د الله جل جلاله ملک دئ هر ډول تعريف الله لره دئ د الله جل جلاله څخه پرته بل څوک د عبادت

لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ اللهم اني أَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِ ما في

وړ نسته هغه يوازي دئ هيڅوک د هغه شريک نسته پاچاهي د هغه ده او هغه لره تعريف دئ هغه په هر شي توانا دئ اې الله! زه ستا څخه

هَذِهِ اللَّيْلَةِ وَخَيْرَ مَا فيها وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهَا وشر ما فيها اللهم إني أعوذ

د دې شپې خير غواړم او د هغه شي خير چي په دې شپه کي دئ او ستا په ذريعه د دې شپې د بدۍ څخه پناه غواړم او د هغه شي د بدۍ څخه چي په دې شپه کي دئ، اې الله! زه ستا په ذريعه د

بك من الكسل والهرم وسوء الكبر وفتنة الدنيا وعذاب القبر وإذا أصبح

سستی، کهالئ، سپين ږيرتوب او د سپين ږيرتوب د بدئ څخه پناه غواړم او د دنيا د فتنې او د قبر د عذاب څخه پناه غواړم، او کله چې به سهار سو نو رسول الله ﷺ به داسي فرمايل:

قال ذالك أيضا أصبحنا وأصبح الملك لله. وفي رواية رب إني أعوذ بك من عذاب في النار وعذاب في القبر. رواه مسلم

(اصبحنا و اصبح الملک لله) او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي (رب اعوذبک من عذاب في النار و عذاب في القبر) اې الله! زه ستا په ذريعه د هغه عذاب څخه چي په دوږخ کي دئ او د هغه عذاب څخه چي په قبر کي دئ ستا پناه غواړم. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۴\۲۰۸۹، رقم: ۷۵، ۷۶- ۷۷- ۲۷۲۳.

**تشريح**: کله چي دغه دعاء په سهار کي ويل کيږي نو د ليلة پر ځای دي اليوم وويل سي يعني داسي دي ووايي: اللهم اني اسئلک من خير هذا اليوم، او چيري چي د ليلة په ويلو سره د مؤنث ضميرونه استعماليږي نو هلته دي د اليوم په رعايت کولو سره د مذکر ضميرونه استعمال سي، يعني د ها پر ځای دي ه وويل سي.

### د بيده کېدو او کښېنستو دعاء

﴿۲۲۷۲﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَخَذَ مَضْجَعَهُ

د حضرت حذيفة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي کله به رسول الله ﷺ د شپې بسترې ته تلئ نو تر خپل

مِنَ اللَّيْلِ وَضَعَ يَدَهُ تَحْتَ خَدِّهِ ثُمَّ يَقُولُ اللَّهُمَّ بِاسْمِكَ أَمُوتُ وَأَحْيَا وَإِذَا

مړوند لاندي به يې لاس مبارک اېښودئ او فرمايل به يې: (اللهم باسمک اموت واحيى) اې الله! زه ستا په نامه سره مرم او ستا په نامه ژوندی کيږم، او کله چي به

اسْتَيْقَظَ قَالَ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَإِلَيْهِ النُّشُورُ. رواه البخاري و مسلم عن البراء.

زموږ د مرګ څخه وروسته ژوندي کړو او د هغه په لور رجوع ده. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۱۱۵، رقم: ۶۳۱۴.

**تشريح**: او هغه ته نشور دی يعني رجوع ده: د دې مطلب ځينو عالمانو داسې ليکلي دي چې د مرګ څخه وروسته د حساب، جزاء او سزا لپاره د الله تعالى ذات ته رجوع ده مګر غوره داده چې وويل سي چې دلته د رجوع څخه د بېده کېدو وروسته په پورته کېدو سره د معاش طلب او په خپل کاروبار کي د بوختيا لپاره د ژوند په چارو کي بوخت کېدل دي. همدا رنګه د بېده کېدو پر وخت او د کښېښتو پر وخت د ذکر او دعاء کولو حکمت او وجه داده چې د اعمالو خاتمه هم پر عبادت او طاعت وي او د افعالو ابتداء هم د عبادت څخه وي.

## د بېده کېدو پر وخت د بسترې څنډل

﴿۲۲۷۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَوَى

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چې په تاسو کي يو

أَحَدُكُمْ إِلَى فِرَاشِهِ فَلْيَنْفُضْ فِرَاشَهُ بِدَاخِلَةِ إِزَارِهِ فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي مَا خَلَفَهُ

څوک خپلي بسترې ته د تللو اراده وکړي نو هغه ته پکار ده چې لومړی خپله بستره و څنډي ځکه چې هغه ته نه ده څرګنده چې د دې وروسته د هغه په بستره کي يو شی ننوتلی دئ،

عَلَيْهِ ثُمَّ يَقُولُ بِاسْمِكَ رَبِّ وَضَعْتُ جَنْبِي وَبِكَ أَرْفَعُهُ إِنْ أَمْسَكْتَ نَفْسِي

بيا چې پرېوځي نو وايي دي: (باسمک ربي .... عبادک الصالحين) اې زما پروردګاره! ستا په نامه سره زه پرېوتم او ستا په مرسته سره به کښېنم او که ته زما روح قبض کړې

فَارْحَمْهَا وَإِنْ أَرْسَلْتَهَا فَاحْفَظْهَا بِمَا تَحْفَظُ بِهِ عِبَادَكَ الصَّالِحِينَ، و في رواية

نو رحم پر وکړې او که ته زما روح پرېږدې نو د دې روح ساتنه وکړې، د هغه شي په ذريعه د کوم په ذريعه چې ته د خپل نيک بندګانو ساتنه کوې، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چې

ثم ليضطجع على شقه الايمن ثم ليقل باسمك . متفق عليه و في رواية

فلينفضه بصنفة ثوبه ثلث مرات وان امسكت نفسي فاغفر لها.

هر كله بسترې ته ولاړ سي نو پر راسته بغل دي پريوځي او دا دعاء دي وکړي : (باسمک ....)
بخاري او مسلم ، او په يوه روايت کي دي چي خپله بستره دي درې واره په خپله څادر سره
وڅنډي او په يوه روايت کي (وان امسكت نفسي فاغفر لها) راغلي دي .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۳۷۸، رقم: ۷۳۹۳، ومسلم ۴\۲۰۸۴، رقم: ۶۴- ۲۷۱۴.

**د لغاتو حل**: بصَنِفَة: اى بطرفه. (څونډه).

**تشريح**: د لونګ د ننه جامې څخه مراد د جامې هغه برخه ده چي د ننه او د بدن سره لګېدلې وي که هغه لونګ وي يا بله جامه وي، او د لونګ په څوکه سره د څنډلو لپاره يې ځکه وفرمايل چي په د باندي برخه څنډلو سره سره به د باندي برخه خېرنه سي چي په هغه سره به بدنمائي پيدا سي، او دا چي بستره به د لنګ په څنډلو سره د بسترې څه برخه خلاصه هم نه سي ، خلاصه دا چي کله يو څوک بسترې ته راسي نو مخکي دي بستره په يو جامې وغيره وڅنډي که پر بستره باندي يو تاوان رسونکى شى وي نو هغه به د بسترې څخه ليري سي او که چيري د بسترې څنډلو لپاره جامه وغيره نه وي نو بيا د خپل لونګ ،قميص يا بل شي په څوکه سره دي هغه وڅنډي ، کله چي انسان بېده کيږي نو هغه د مړي په حکم کي سي چي الله تعالى د هغه روح په عارضي توګه قبض کوي بيا د دې څخه وروسته د هغه روح د هغه بدن ته استوي يعني هغه د خوب څخه بيداره کوي يا د هغه روح ودروي يعني په مستقله توګه يې قبض کړي او پر هغه سړي مرګ خپور کړي ، د دغه شيانو په باره کي په پورتني دعاء کي خواست دى چي پروردګاره! که تا د خوب په حالت کي زما روح ودرول او پر ما دي مرګ راوستى نو په دغه صورت کي ما و بخښې او که زما روح بيرته راکوې او ما ژوندى ساتې نو بيا زما داسي ساتنه وکړې لکه څرنګه چي ته د خپلو نيکو بندګانو ساتنه کوې يعني د نيکى توفيق راکړې چي د ګناهونو څخه ځان وساتم او زما په هر کار کي زما مرسته کونکى سې .

د نيکو بندګانو څخه مراد هغه بندګان دي چي د الله تعالى او د هغه د رسول اطاعت او فرمانبرداري او عبادت او طاعت په ذريعه د الله تعالى حق هم ادا کوي او د بندګانو حقوق هم چي د هغه پر ذمه وي ادا کوي .

پر راسته طرف باندي په بېده کېدو کي حکمت دادى چي زړه په چپه خوا کي وي ځکه پر راسته خوا باندي د بېده کېدو په صورت کي زړه لاندي وي چي د هغه په وجه په خوب کي استراحت او غفلت زيات نه وي او د تهجد د لمانځه وغيره لپاره پورته کېدل اسان وي او پر چپه خوا د بېده کېدو په صورت کي زړه پر خپل ځاى ولاړ وي چي د هغه په وجه په خوب کي غفلت او

استراحت ډېر زيات وي.

﴿۲۲۷۴﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا

د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به كله خپل بسترې ته تلئ

أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ نَامَ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ ثُمَّ قَالَ اللّٰهُمَّ أَسْلَمْتُ نَفْسِي إِلَيْكَ

نو پر راسته بغل به پريوتئ او فرمايل به يې (اللهم اسلمت ....) اې الله! ما خپل ځان ستا په لور

وَوَجَّهْتُ وَجْهِي إِلَيْكَ وَفَوَّضْتُ أَمْرِي إِلَيْكَ وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِي إِلَيْكَ رَغْبَةً

متوجه كړ او خپل مخ مي ستا په لور متوجه كړ، او ما خپل كار تا ته حواله كړ او ما خپله شا ستا لوري ته ولګول، او ستا څخه د ثواب اميد لرم

وَرَهْبَةً إِلَيْكَ لَا مَلْجَأَ وَلَا مَنْجَا مِنْكَ إِلَّا إِلَيْكَ آمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِي أَنْزَلْتَ

او ستا د عذاب د بيري څخه د پناه غوښتونكى يم، او ستا د عذاب څخه پرته ستا د رحمت نه څه پناه سته او نه څه خلاصون، ما ستا پر دې كتاب چي تا نازل كړى دي ايمان راوړئ دئ

بِنَبِيِّكَ الَّذِي أَرْسَلْتَ وَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَهُنَّ ثُمَّ

او پر هغه نبي مي ايمان راوړئ دئ چي تا راليږلى دئ.، رسول الله ﷺ وفرمايل چا چي دا دعاء

مَاتَ تَحْتَ لَيْلَتِهِ مَاتَ عَلَى الْفِطْرَةِ، و في رواية قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

وويل او په هغه شپه كي مړ سو نو هغه پر دين اسلام باندي مړ سو، او په يوه روايت كي داسي دي چي رسول الله ﷺ يو سړي ته وفرمايل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِرَجُلٍ يَا فُلَانُ إِذَا أَوَيْتَ إِلَى فِرَاشِكَ فَتَوَضَّأْ وَضُوءَكَ لِلصَّلَاةِ ثُمَّ

اې فلانى سړيه! هر كله چي ته بسترې ته د تلو اراده وكړې نو دلمانځه د او داسه په ډول اودس

اضْطَجِعْ عَلَى شِقِّكَ الْأَيْمَنِ ثُمَّ قُلِ اللّٰهُمَّ أَسْلَمْتُ نَفْسِي إِلَيْكَ وَوَجَّهْتُ

وكړه او بيا پر راسته بغل پريوزه بيا دا دعاء ووايه: (اللهم اسلمت نفسي اليک ووجهت

وَجْهِي إِلَيْكَ وَفَوَّضْتُ أَمْرِي إِلَيْكَ وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِي إِلَيْكَ رَغْبَةً وَرَهْبَةً إِلَيْكَ

وَجْهِي إِلَيْكَ وَفَوَّضْتُ أَمْرِي إِلَيْكَ وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِي إِلَيْكَ رَغْبَةً وَرَهْبَةً إِلَيْكَ

لَا مَلْجَأَ وَلَا مَنْجَا مِنْكَ إِلَّا إِلَيْكَ آمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِي أَنْزَلْتَ وَبِنَبِيِّكَ الَّذِي

لَا مَلْجَأَ وَلَا مَنْجَا مِنْكَ إِلَّا إِلَيْكَ آمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِي أَنْزَلْتَ وَبِنَبِيِّكَ الَّذِي

أَرْسَلْتَ وَ قَالَ فَإِنْ مُتَّ فِي لَيْلَتِكَ مُتَّ عَلَى الْفِطْرَةِ وَإِنْ أَصْبَحْتَ أَصَبْتَ

خَيْرًا. متفق عليه

أَرْسَلْتَ) او بيا يې وفرمايل: كه ته په دغه شپه مړ سوې نو پر اسلام باندې به مړ سې او كه تر سهاره ورسيدې نو خير به تر لاسه كړې. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۴۶۲، رقم: ۷۴۸۸، ومسلم ۴\۲۰۸۱، رقم: ۵۶، ۵۸- ۲۷۱۰

**د لغاتو حل**: ليلته: اى تحت حادثة فيها.

﴿۲۲۷۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَوَى إِلَى

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چې كله به رسول الله ﷺ بسترې ته تلئ نو فرمايل به يې

فِرَاشِهِ قَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَطْعَمَنَا وَسَقَانَا وَكَفَانَا وَآوَانَا فَكَمْ مِمَّنْ لَا كَافِيَ

لَهُ وَلَا مُؤْوِيَ. رواه مسلم

(الحمد لله ....) ټول تعريفونه الله لره دي چې په موږ يې وخوړل او وچښل او ټولې اړتياوې يې را پوره كړې او موږ ته يې استوګن ځاى راكړ. په دوئ كې ډير خلک دي چې اړتياوې يې پوره نه سوې او نه ورته استوګن ځاى تر لاسه سوى دئ. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۲۰۸۵، رقم: ۶۴- ۲۷۱۵.

**تشريح**: د دعاء د آخري الفاظو مطلب دادى چې په دغه وسيع او عريض دنيا كې د داسې خلكو شمېر هم ډېر زيات دى چې په دومره تكليفو او پريشانيو كې اخته وي او الله تعالى هغوئ

د هغه تكليفو او پريشانيو څخه خوندي نه ساتي بلكه پر هغوئ غالب وي نه يوازي دا چي خلک د خپل ورځني ضروورياتو كي د رحمت الهي د التفات څخه محروم وي بلكه د قضاء او قدر سره سم هغوئ ته د سر پټولو څه ځاى هم نه تر لاسه كيږي بلكه هغوئ په كوڅو او بازارونو كي د سخت ژوند وختونه تيروي ، نه يې د ګرمۍ څخه د ساتني راحت په برخه وي او نه يې د يخ څخه د خلاصون پناه په برخه وي .

﴿۲۲۷۶﴾ : وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّ فَاطِمَةَ عَلَيْهِمَا السَّلَام أَتَتْ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي بي بي فاطمة (رض) د رسول الله ﷺ په خدمت كي د

تَشْكُو إِلَيْهِ مَا تَلْقَى فِي يَدِهَا مِنْ الرَّحَى وَبَلَغَهَا أَنَّهُ جَاءَهُ رَقِيقٌ فَلَمْ تُصَادِفْهُ

ميچني د اوړه كولو اود لاسونو د تكليف د شكايت لپاره حاضره سوه ، ځكه چي هغې ته دا څرګنده سوې وه چي رسول الله ﷺ ته غلامان راغلي دي، نو رسول الله ﷺ په كور كي نه وو،

فَذَكَرَتْ ذَلِكَ لِعَائِشَةَ فَلَمَّا جَاءَ أَخْبَرَتْهُ عَائِشَةُ قَالَ فَجَاءَنَا وَقَدْ أَخَذْنَا

نو بي بي فاطمې د خپل ضرورت ذكر بي بي عائشې رضي الله عنها ته وكړ ، كله چي رسول الله ﷺ تشريف راوړ نو بي بي عائشې رضي الله عنها د بي بي فاطمې عليها السلام خبره ورته بيان كړل ، حضرت علي رضي الله عنه وايي رسول الله ﷺ زموږ كور ته تشريف راوړ

مَضَاجِعَنَا فَذَهَبْنَا نَقُومُ فَقَالَ عَلَى مَكَانِكُمَا فَجَاءَ فَقَعَدَ بَيْنِي وَبَيْنَهَا حَتَّى

چي موږ په بستره كي پراته وو كله چي موږ د پورته كېدو اراده وكړه نو رسول الله ﷺ وفرمايل : بس بس پراته اوسئ ، بيا رسول الله ﷺ زما او د بي بي فاطمې په منځ كي كښېنستئ تر دې چي

وَجَدْتُ بَرْدَ قَدَمَيْهِ عَلَى بَطْنِي فَقَالَ أَلَا أَدُلُّكُمَا عَلَى خَيْرٍ مِمَّا سَأَلْتُمَا إِذَا

ما د رسول الله ﷺ د قدم مبارک يخوالي پر خپل نس حس كړئ ، رسول الله ﷺ وفرمايل ايا زه تاسو ته دا شى ونه ښيم چي تر هغه شي غوره وي كوم چي تاسو غوښتى دئ (يعني غلام)

أَخَذْتُمَا مَضَاجِعَكُمَا فَسَبِّحَا ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ وَاحْمَدَا ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ وَكَبِّرَا

او هغه دا چي كله تاسو بسترو ته ځئ نو (۳۳) واره سبحان الله ، (۳۳) واره الحمد لله

أَرْبَعًا وَثَلَاثِينَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكُمَا مِنْ خَادِمٍ. متفق عليه

او (۳۴) واره الله اكبر وايا ست نو دا ستاسو لپاره تر خادم غوره دئ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۵۰۶۱، رقم: ۵۳۶۱، ومسلم ۴\۲۰۹۱، رقم: ۸۰- ۲۷۲۷.

**تشريح**: رسول الله ﷺ د بي بي فاطمې رضي الله عنها او حضرت علي رضي الله عنه سره ډېره مينه درلودل او د رسول الله ﷺ بې پايه شفقت يو تكليف نه ګمراه كوى ځكه رسول الله ﷺ چې راغلى نو د پوره ميني او شفقت په وجه د دواړو په مينځ كي كښينستى ځكه چې مينه او شفقت د يو تكلف پابند نه وي ځكه ويل سوي دي چې: اذا جاءت الالفة رفعت الكلفة، يعني كله چې مينه راسي نو تكلف پورته سي.

د پورتنيو الفاظو په اړه جزري رحمه الله د مصابيح په تشريح كي ويلي دي چې د تكبير څخه مخكي به ابن كثير رحمه الله فرمايل چې د لمانځه وروسته خو تر مخه سبحان الله ويل پكار دي او د هغه وروسته الحمد لله او بيا الله اكبر، مګر د بېده كېدو پر وخت مخكي الله اكبر ويل پكار دي، په دې اړه علماء ليكي چې صحيح خبره داده چې الله اكبر دي كله مخكي وويل سي او كله وروسته چې په دې باره كي پر نقل سوو دواړو روايتو باندي عمل وسي همدا غوره او اولى ده.

د دغه ارشاد په ذريعه چې ستاسو لپاره دغه شى تر خادم زيات غوره دى بي بي فاطمې ته د دنيا د سختيو او تكليفونو او د نيوي ژوند باندي د ناخوښه شيانو مثلا مرض او فقر باندي د صبر ترغيب وركړل سوى دى، دلته دې ته هم اشاره ده چې د شكر كونكى شتمنو په نسبت صبر كونكى مفلس زيات غوره دى.

﴿۲۲۷۷﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ جَاءَتْ فَاطِمَةُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې بي بي فاطمة (رض) د رسول الله ﷺ په خدمت د يو

تَسْأَلُهُ خَادِمًا فَقَالَ أَلَا أَدُلُّكِ عَلَى مَا هُوَ خَيْرٌ لَكِ مِنْ خَادِمٍ تُسَبِّحِينَ ثَلَاثًا

خادم غوښتلو لپاره حاضره سوه، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ايا زه تا ته هغه شى ونه ښيم

وَثَلَاثِينَ وَتَحْمَدِينَ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ وَتُكَبِّرِينَ أَرْبَعًا وَثَلَاثِينَ عِنْدَ كُلِّ صَلٰوةٍ وَ

عِنْدَ مَنَامِكَ. رواه مسلم

چي تر خادم غوره وي (او هغه دا چي) د هر لمانځه وروسته او د ېده کېدو په وخت کي (۳۳) واره سبحان الله، (۳۳) واره الحمد لله او (۳۴) واره الله اکبر وايه. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۲۰۹۲، رقم: ۸۱- ۲۷۲۸.

**تشريح**: د ېده کېدو پر وخت دد غه تسبيحاتو ويل د ټولي ورځي مشقت او محنت او هر ډول ناروغۍ او پريشانۍ دفع کوي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د سهار او ماښام دعاء

﴿۲۲۷۸﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَصْبَحَ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به د سهار په وخت کي دغه دعاء

قَالَ اللّٰهُمَّ بِكَ أَصْبَحْنَا وَبِكَ أَمْسَيْنَا وَبِكَ نَحْيَا وَبِكَ نَمُوتُ وَإِلَيْكَ الْمصير

فرمايل: (اللهم بک اصبحنا ....) اي الله! ستا په قدرت سره پر موږ سهار سو او ستا په قدرت سره پر موږ ماښام سو او ستا په نامه سره ژوندي کيږي او مړه کيږي او ستا په لور زموږ رجوع

وَإِذَا أَمْسَى قَالَ اللّٰهُمَّ بِكَ أَمْسَيْنَا وَبِكَ اصبحنا و بك نحيا وَبِكَ نَمُوتُ وَإِلَيْكَ النُّشُورُ. رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة.

دہ، او د ماښام په وخت کي به يې دا ويل: (اللّٰهُمَّ بِكَ أَمْسَيْنَا وَبِكَ نَحْيَا وَبِكَ نَمُوتُ وَإِلَيْكَ النُّشُورُ). ترمذي، ابوداود او ابن ماجه.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۴۳۵، رقم: ۳۳۹۱، وابوداود ۵\۳۱۱، رقم: ۵۰۶۸، وابن ماجه ۲\۱۲۷۲، رقم: ۳۸۶۸.

﴿۲۲۷۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ أَبُو بَكْرٍ يَا رَسُولَ اللّٰهِ مُرْنِي بِشَيْءٍ أَقُولُهُ إِذَا أَصْبَحْتُ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د ابوبکر رضي الله عنه بيان دئ چي ما نبي کريم ﷺ ته عرض وکړ اي د الله رسوله: يو دعاء راته وښيه چي زه يې سهار او ماښام وايم،

وَإِذَا أَمْسَيْتُ قَالَ قُلْ اللّٰهُمَّ عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَاطِرَ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ

نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : دا دعاء وايه : (اللهم عالم...) اي الله ! په پټ او ښکاره پوهيدونکې، د آسمانو او مځکې پيداکونکې ،

رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ وَمَلِيكَهُ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ نَفْسِي وَمِنْ

د هر شي پروردګاره او مالکه، زه اقرار کوم چي ستا څخه پرته بل د عبادت وړ نسته زه د خپل

شَرِّ الشَّيْطَانِ وَشِرْكِهِ قُلْهُ إِذَا أَصْبَحْتَ وَإِذَا أَمْسَيْتَ وَإِذَا أَخَذْتَ مَضْجَعَكَ .

رواه الترمذي و ابوداؤد والدارمي

نفس د بدو څخه او د شيطان د شرارتو څخه او د شرک کولو څخه د شيطان څخه ستا په ذريعه پناه غواړم، دا دعاء سهار او ماښام د بېده کېدو پر وخت وايه . ترمذي، ابوداؤد او دارمي .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\ ۴۳۵، رقم: ۳۳۹۲، وابوداود ۵\ ۳۱۰، رقم: ۵۰۶۷، والدارمي ۲\ ۳۷۸، رقم: ۲۶۸۹.

﴿۲۲۸۰﴾ : وَعَنْ اَبَانِ بْنِ عُثْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى

د حضرت ابان بن عثمان رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د خپل پلار څخه اوريدلي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ عَبْدٍ يَقُوْلُ فِي صَبَاحِ كُلِّ يَوْمٍ وَمَسَاءِ كُلِّ لَيْلَةٍ بِسْمِ

کوم بنده چي هره ورځ سهار او ماښام درې واره دا دعاء وايي : (بسم الله.....) د هغه الله په نامه

اللّٰهِ الَّذِي لَا يَضُرُّ مَعَ اسْمِهِ شَيْءٌ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ وَهُوَ السَّمِيعُ

سره ما سهار کړ چي د هغه په نامه سره د آسمان او مځکي هيڅ شی تاوان نه سي رسولای، او هغه اورېدونکی

الْعَلِيمُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ لَمْ يَضُرَّهُ شَيْءٌ فَكَانَ أَبَانُ قَدْ أَصَابَهُ طَرَفُ فَالِجٍ فَجَعَلَ

او پوهېدونکی دئ . نو هيڅ شی به هغه ته تاوان نه سي رسولای ، ويل کيږي چي ابان د فلج په

ناروغی اخته وو

الرَّجُلُ يَنْظُرُ إِلَيْهِ فَقَالَ لَهُ أَبَانُ مَا تَنْظُرُ أَمَا إِنَّ الْحَدِيثَ كَمَا حَدَّثْتُكَ وَلٰكِنِّي

كوم سړی چي دا بان څخه دا روايت بيان كړی دئ هغه په تعجب سره هغه ته وكتل، ابان وويل: ته زما په لور ګوري حديث خو همداسي دئ څرنګه چي ما بيان كړ، (يعني صحيح دئ) مګر په

لَمْ أَقُلْهُ يَوْمَئِذٍ لِيُمْضِيَ اللّٰهُ عَلَيَّ قَدَرَهُ، رواه الترمذي و ابن ماجة و ابوداؤد

دغه ورځ (چي ما ته دا ناروغي پېښه سوه) ما دا دعاء نه وه ويلې چي الله تعالى زما لپاره څه ليكلي وي هغه پوره سي. ترمذي، ابن ماجه او ابوداؤد،

و في رواية لَمْ تُصِبْهُ فَجْأَةُ بَلَاءٍ حَتَّى يُصْبِحَ وَمَنْ قَالَهَا حِينَ يُصْبِحُ لَمْ تُصِبْهُ فَجْأَةُ بَلَاءٍ حَتَّى يُمْسِيَ.

او په يوه روايت كي دا الفاظ دي څوک چي دا دعاء د ماښام په وخت كي وواييي نو تر سهار پوري او څوک چي يې د سهار په وخت كي وواييي نو تر ماښام پوري هغه ته ناڅاپه آفت نه رسيږي.

**تخريج:** الترمذي في السنن ۵\ ۴۳۴، رقم: ۳۳۸۸، وابن ماجه ۲\ ۱۲۷۳، رقم: ۳۸۶۹، وابوداود ۵\ ۳۲۴، رقم: ۵۰۸۸.

﴿۲۲۸۱﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ إِذَا أَمْسَى

د حضرت عبدالله ﷛ څخه روايت دئ چي كله به ماښام سو نو رسول الله ﷺ به دا دعاء ويل:

أَمْسَيْنَا وَأَمْسَى الْمُلْكُ لِلّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ

اَمْسَيْنَا وَأَمْسَى الْمُلْكُ لِلّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ

الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ رَبِّ أَسْأَلُكَ خَيْرَ مَا فِي هٰذِهِ اللَّيْلَةِ

الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ رَبِّ اَسْأَلُكَ خَيْرَ مَا فِي هٰذِهِ اللَّيْلَةِ

وَخَيْرَ مَا بَعْدَهَا وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ هٰذِهِ اللَّيْلَةِ وَشَرِّ مَا بَعْدَهَا رَبِّ أَعُوذُ بِكَ

وَخَيْرَ مَا بَعْدَهَا وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ هَذِهِ اللَّيْلَةِ وَشَرِّ مَا بَعْدَهَا رَبِّ أَعُوذُ بِكَ

مِنَ الْكَسَلِ وَمن سُوءِ الْكِبَرِ اَوِ الْكُفْرِ و في رواية مِنْ سُوْءِ الْكِبَرِ وَالْكِبَرِ رَبِّ

مِنَ الْكَسَلِ وَسُوءِ الْكِبَرِ اَوِ الْكُفْرِ. او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي: مِنْ سُوْءِ الْكِبَرِ وَالْكِبَرِ رَبِّ

أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ النَّارِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ وَإِذَا أَصْبَحَ قَالَ ذٰلِكَ أَيْضًا أَصْبَحْنَا

أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ النَّارِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ. او كله چي به سهار سو نو دا دعاء به يې ويل: أَصْبَحْنَا

وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلّٰهِ. رواه ابوداؤد والترمذي و في روايته لم يذكر من سوء الكفر

وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلّٰهِ.... ، ابوداؤد او د ترمذي په روايت كي تر من سوء الكفر لفظ نه دئ راغلئ.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۵\ ۳۱۳، رقم: ۵۰۷۱، والترمذي ۵\ ۴۳۴، رقم: ۳۳۹۰.

﴿۲۲۸۲﴾: وَعَنْ بَعْضِ بَنَاتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ

د رسول الله ﷺ د ځينو لوڼو مباركو څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُعَلِّمُهَا فَيَقُولُ قُولِي حِينَ تُصْبِحِينَ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهِ

هغوى ته دا دعاء ښودل چي كله سهار سي نو تاسو دا واياست: (سبحان الله .....) الله لره پاكي

لَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ مَا شَاءَ اللّٰهُ كَانَ وَمَا لَمْ يَشَأْ لَمْ يَكُنْ أعلم أن الله على كل

ده او هر ډول تعريف هغه لره ښايي د الله د مرستي پرته د حمد او تسبيح قوت نسته څه چي الله
وغواړي هغه وسول او څه چي يې نه غوښتل هغه نه وسول زه پوهيږم الله پر هر شي قادر دئ

شيء قدير وأن الله قد أحاط بكل شيء علما فَإِنَّهُ مَنْ قَالَهَا حِينَ يُصْبِحُ ان

او د الله علم پر هر شي خپور دئ. نو څوك چي دا كلمات سهار ووايي تر ماښام پوري به خوندي

الله قد احاط بكل شيئ علما قَالَهَا حِينَ يُمْسِي حُفِظَ حَتَّى يُصْبِحَ. رواه ابوداؤد

وي او څوك چي يې ماښام ووايي نو تر سهاره پوري به خوندي وي. ابوداؤد.

﴿۲۲۸۳﴾: وَعَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت ابن عباس ﷜ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي

قَالَ حِينَ يُصْبِحُ { فَسُبْحَانَ اللّٰهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ وَلَهُ الْحَمْدُ

سهار دا دعاء ووايي فَسُبْحَانَ اللّٰهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ وَلَهُ الْحَمْدُ

فِي السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ وَعَشِيًّا وَحِينَ تُظْهِرُونَ إِلَى قوله وَكَذٰلِكَ تُخْرَجُونَ }

فِي السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ وَعَشِيًّا وَحِينَ تُظْهِرُونَ... وَكَذٰلِكَ تُخْرَجُونَ.

أَدْرَكَ مَا فَاتَهُ فِي يَوْمِهِ ذٰلِكَ وَمَنْ قَالَهُنَّ حِينَ يُمْسِي أَدْرَكَ مَا فَاتَهُ فِي لَيْلَتِهِ.

رواه ابوداؤد.

نو هغه شی به تر لاسه کړي کوم چي په هغه ورځي ځيني پاته سوی وي او څوک چي دا دعاء ماښام ووايي نو کوم شی چي په شپه کي ځيني پاته سوی وي هغه به تر لاسه کړي . ابو داؤد

**تخريج**: ابوداود ۵\۳۱۶، رقم: ۵۰۷۶.

**تشريح**: وحين تظهرون: ددې پوره آيت داسي دی :

يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَيُحْيِي الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَكَذٰلِكَ تُخْرَجُونَ،

ژباړه: په پاکی سره الله تعالی یادوئ (یعني لمونځ کوئ) هغه وخت چي تاسو ماښام کړئ (یعني د ماښام او ماخستن وختونه) او هغه وخت چي تاسو سهار کړئ او په مځکي او آسمانو کي ټول تعریفونه د هغه لپاره دي او په پاکی سره الله تعالی یادوئ د مازدیګر په وخت کي او د ماپښين په وخت کي، الله تعالی ژوندي د مړو څخه راباسي (یعني کوچنی د مني او هګی څخه پیدا کوي) او مړي د ژوندي څخه راباسي (یعني مني او هګی د ساه لرونکي څخه راباسي) او مځکه د مړې کېدو یعني وچېدو وروسته ژوندی کوي (یعني مځکه د وچېدو وروسته شنه کوي) او همدارنګه به تاسو هم د قبر څخه راپورته کړل سئ.

ددغه حدیث مطلب دادی چي څوک دغه آیت د سهار په وخت کي وايي نو کوم نیک کار چي د ورځي ځيني فوت سي د هغه ثواب به ورته تر لاسه کیږي همدارنګه دغه آیت د ماښام په

وخت ويلو سره په هغه شپه کي د فوت کېدونکي نيک کار او وظيفه وغيره ثواب تر لاسه کېږي.

په معالم التنزيل کي نقل سوي دي چي د نافع څخه ابن ارزق د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چي تاسو په قرآن کريم کي د پنځو لمونځو حکم (د وخت د ټاکني سره) تر لاسه کوئ؟ هغه وفرمايل هو: بيا هغه دغه پورتنی آيت ووايه او وه يې فرمايل چي په دعه آياتو کي د پنځه وخته لمونځو او د هغه وختونه جمع سوي دي.

﴿۲۲۸۴﴾: وَعَنْ اَبِي عَيَّاشٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَالَ

د حضرت ابو عياش رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي

إِذَا أَصْبَحَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ

سهار دا دعاء ووايي: لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ

شَيْءٍ قَدِيرٌ كَانَ لَهُ عِدْلَ رَقَبَةٍ مِنْ وَلَدِ إِسْمٰعِيلَ وَكُتِبَ لَهُ عَشْرُ حَسَنَاتٍ

شَيْءٍ قَدِيرٌ. نو هغه ته دومره ثواب ورکول کيږي لکه هغه چي د حضرت اسماعيل عليه السلام په اولاد کي يو غلام آزاد کړ او د هغه لپاره لس نيکۍ ليکل کيږي

وَحُطَّ عَنْهُ عَشْرُ سَيِّئَاتٍ وَرُفِعَ لَهُ عَشْرُ دَرَجَاتٍ وَكَانَ فِي حِرْزٍ مِنَ الشَّيْطَانِ

او لس بدۍ ځيني ليري کيږي او لس درجې يې لوړيږي او تر ماښامه پوري هغه د شيطان څخه

حَتَّى يُمْسِيَ وَإِنْ قَالَهَا إِذَا أَمْسَى كَانَ لَهُ مِثْلُ ذٰلِكَ حَتَّى يُصْبِحَ فَرَأَى رَجُلٌ

په آمان کي وي، او څوک چي دا دعاء ماښام ووايي نو هغه ته هم دغه ثواب ورکول کيږي، دد ې حديث راوي حماد بن مسلمهؒ بيان کوي چي يو سړي

رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا يَرَى النَّائِمُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ أَبَا

رسول الله ﷺ په خوب کي وليدئ او عرض يې وکړ اې دالله رسوله!

عَيَّاشٍ يُحَدِّثُ عَنْكَ بِكَذَا وَكَذَا قَالَ صَدَقَ أَبُو عَيَّاشٍ، رواه ابوداؤد وابن ماجة

ابو عياش ستاسو څخه دا ډول حديث روايت کړئ دئ، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

ابو عياش ربنتيا وايي . ابو داؤد او ابن ماجه .

**تخريج** : ابوداود في السنن ۵\ ۳۱۷، رقم: ۵۰۷۷، وابن ماجه ۲\ ۱۲۷۲، رقم: ۳۸۶۷.

## د ماښام او سهار د لمانځه وروسته دعاء

﴿۲۲۸۵﴾: وَعَنِ الْحَارِثِ بْنِ مُسْلِمِ التَّمِيمِيِّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى

حضرت حارث بن مسلم رضی الله عنهما د خپل پلار څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ هغه ته

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ أَسَرَّ إِلَيْهِ فَقَالَ إِذَا انْصَرَفْتَ مِنْ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ فَقُلْ

پټ وفرمايل : هر كله چي ته د ماښام د لمانځه څخع فارغ سې

قبل ان تكلم احد اَللّٰهُمَّ أَجِرْنِي مِنَ النَّارِ سَبْعَ مَرَّاتٍ فَإِنَّكَ إِذَا قُلْتَ ذٰلِكَ

نو د چا سره تر خبرو كولو مخكي دا دعاء وايه (اللهم اجرني من النار) اې الله ! ما د اور څخه وساتې، كه ته دا دعاء اووه واره ووايي

ثُمَّ مِتَّ فِي لَيْلَتِكَ كُتِبَ لَكَ جِوَارٌ مِنْهَا وَإِذَا صَلَّيْتَ الصُّبْحَ فَقُلْ كَذٰلِكَ فَإِنَّكَ

او په هغه شپه مړ سې نو ستا لپاره به د دوږخ د اور څخه خلاصون وليكل سي ، او هر كله چي ته د سهار لمونځ ادا كړې او دا دعاء ووايې

إِنْ مِتَّ فِي يَوْمِكَ كُتِبَ لَكَ جِوَارٌ مِنْهَا . رواه ابو داؤد.

او په هغه ورځ مړ سې نو ستا لپاره به دا ور څخه نجات وليكل سي . ابو داؤد .

**تخريج** : ابوداود في السنن ۵\ ۳۱۸، رقم: ۵۰۷۹.

**د لغاتو حل** : جَواز : بفتح الجيم اى خلاص. (خلاصون)

## سهار او ماښام د رسول الله ﷺ دعاء

﴿۲۲۸۶﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ لَمْ يَكُنْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَعُ

د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به

هٰؤُلَاءِ الكلمات حِينَ يُمْسِي وَحِينَ يُصْبِحُ اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْعَافِيَةَ فِي

هره ورځ سهار او ماښام دا دعاء ويل او هيڅکله به يې نه قضا کول: (اللهم اني اسئلک ....) اې الله! زه ستا څخه د دنيا او آخرت عافيت غواړم،

الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْعَفْوَ وَالْعَافِيَةَ فِي دِينِي وَدُنْيَايَ وَأَهْلِي

اې الله! زه ستا څخه معافي او د دين او دنيا سلامتي غواړم د خپل کورنۍ

وَمَالِي اللَّهُمَّ اسْتُرْ عَوْرَتِي وَآمِنْ رَوْعَاتِي اللَّهُمَّ احْفَظْنِي مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ وَمِنْ

او د خپل مال، اې الله! زما عيب پټ کړې او ما د هر خوف څخه په امن کړې، اې الله! ته زما ساتنه وکړې د مخکښي څخه

خَلْفِي وَعَنْ يَمِينِي وَعَنْ شِمَالِي وَمِنْ فَوْقِي وَأَعُوذُ بِعَظَمَتِكَ أَنْ أُغْتَالَ مِنْ

تَحْتِي يَعْنِي الْخَسْفَ . رواه ابوداؤد .

او د وروستني څخه د راسته لوري څخه او د چپه لوري څخه د لوړه څخه او ستا د عظمت په ذريعه پناه غواړم د دې څخه چې ناڅاپه دلاندي لوري څخه هلاک کړل سم يعني په مځکه کي د ننخيدو څخه. ابوداؤد.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۵\ ۳۱۵، رقم: ۵۰۷۴.

## د سهار او ماښام دعاوي

﴿۲۲۸۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَ حِينَ

د حضرت انس ﷛ څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چې

يُصْبِحُ اللَّهُمَّ أَصْبَحْنَا نُشْهِدُكَ وَنُشْهِدُ حَمَلَةَ عَرْشِكَ وَمَلَائِكَتَكَ وَجَمِيعَ

دا دعاء د سهار په وخت کي ووايي: (اللهم.....) اې الله! موږ په داسي حال کي سهار کړ چي موږ تا او ستا عرض پورته کونکي ملائکي او ستا ټول

خَلْقِكَ انك انت اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ اللَّهُ وَحْدَكَ لَا شَرِيكَ لَكَ وَأَنَّ مُحَمَّدًا

مخلوقات شاهدان ګرځوو، ته الله يې او ستا څخه پرته بل د عبادت وړ نسته، ته يوازي يو يې

او هیڅوک ستا شریک نسته ، او محمد ﷺ

عَبْدُكَ وَرَسُولُكَ إِلَّا غَفَرَ اللّٰهُ لَهُ مَا أَصَابَ فِي يَوْمِهِ ذٰلِكَ من ذنب وَإِنْ قَالَهَا

ستا بنده او رسول دئ، نو الله تعالی د هغه ګناهونه وربخښي کوم چي ده په دغه ورځ کړي وي او

حِينَ يُمْسِي غَفَرَ اللّٰهُ لَهُ مَا أَصَابَه فِي تِلْكَ اللَّيْلَةِ مِنْ ذَنْبٍ . رواه الترمذي و

ابوداؤد و قال الترمذي هذا حديث غريب .

که دا دعاء ماښام ووايي نو الله تعالی یې هغه ګناهونه بخښي چي د شپې یې کړي وي . ترمذي، ابوداؤد، ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دئ .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۴۹۳، رقم: ۳۵۰۱، وابوداود ۵\۳۱۸، رقم: ۵۰۷۸.

**تشريح**: په : من قال حين يصبح– کي لفظ د من د معنی په اعتبار د نافیه پر ځای استعمال سوی دی او دا ممکن ده چي : الا غفر الله له کي لفظ د الا زائد وي نو د : وان قالها ..الخ: څخه دديې تائيد کیږي چي لفظ د الا زائد دی .

﴿۲۲۸۸﴾ : وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ مُسْلِمٍ

د حضرت ثوبان ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کوم مسلمان چي

يَقُوْلُ إِذَا أَمْسٰى وَ إِذَا أَصْبَحَ ثَلٰثًا رَضِيتُ بِاللّٰهِ رَبًّا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا وَبِمُحَمَّدٍ

دا دعاء سهار او ماښام دري واره ووايي: رَضِيتُ بِاللّٰهِ رَبًّا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا وَبِمُحَمَّدٍ

نَبِيًّا إِلَّا كَانَ حَقًّا عَلَى اللّٰهِ أَنْ يُرْضِيَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . رواه احمد والترمذي .

نَبِيًّا . نو پر الله تعالی دا لازمه ده چي هغه د قیامت په ورځ دا مسلمان بنده راضي کړي : (او هغه دعاء داده : ) احمد او ترمذي

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۴\۳۷۷، والترمذي ۵\۴۳۴، رقم: ۳۳۸۹.

**تشريح**: په ځینو روایتو کي لفظ د نبیا دی او په ځینو کي لفظ د رسولا دی نو مستحب دادي چي دواړه لفظونه وویل سي یعني داسي وویل سي چي : ومحمدا نبیا ورسولا .

## د بيده كيدو پر وخت د رسول الله ﷺ دعاء

﴿۲۲۸۹﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَنَامَ

د حضرت حذيفة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي كله به رسول الله ﷺ د بيده كيدو اراده وكړل

وَضَعَ يَدَهُ تَحْتَ رَأْسِهِ ثُمَّ قَالَ اللّٰهُمَّ قِنِي عَذَابَكَ يَوْمَ تَجْمَعُ عبادك أَوْ

تَبْعَثُ عِبَادَكَ . رواه الترمذي و رواه احمد عن البراء .

نو خپل راسته لاس به يې تر سر لاندي كښېښودئ او بيا به يې ويل : (اللهم قني ...) اې الله ! ته ما د عذاب څخه وژغورې په هغه ورځ چي ته خپل بندګان يو ځاى كړې يا په هغه ورځ چي خپل بندګان به ته د قبرو څخه راپورته كوې . ترمذي او احمد .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\ ۴۳۹، رقم: ۳۳۹۸، وامام احمد في مسنده ۴\ ۲۸۱.

**تشريح**: په دغه روايت كي خو دادي چي رسول الله ﷺ خپل مبارك لاس تر خپل سر لاندي كښېښودى ، او په بل روايت كي نقل سوي دي چي تر تندي لاندي به يې ايښودى مګر په دغه دواړو روايتو كي مطابقت داسي كېداى سي چي رسول الله ﷺ به خپل لاس كله تر سر لاندي ايښودى او كله به يې تر تندي لاندي ايښودى ، راوي چي څه وليدل هغه يې بيان كړي چي رسول الله ﷺ خپل لاس تر سر لاندي كښېښودى او كوم راوي چي د لاس يو برخه تر تندي لاندي وليدل نو هغه تر تندي لاندي ايښودل ذكر وكړ .

﴿۲۲۹۰﴾: وَعَنْ حَفْصَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ أَنْ

د حضرت حفصة (رض) څخه روايت دئ چي كله به رسول الله ﷺ د خوب اراده وكړه

يَرْقُدَ وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى تَحْتَ خَدِّهِ ثُمَّ يَقُولُ اللّٰهُمَّ قِنِي عَذَابَكَ يَوْمَ تَبْعَثُ

عِبَادَكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ . رواه ابوداؤد .

نو خپل راسته لاس به يې تر خپل راسته وړې لاندي كښېښودئ او درې واره به يې ويل : (اللّٰهُمَّ قِنِي عَذَابَكَ يَوْمَ تَبْعَثُ عِبَادَكَ) ابوداؤد .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۵\ ۲۹۸، رقم: ۵۰۴۵.

﴿۲۲۹۱﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ عِنْدَ مَضْجَعِهِ

د حضرت علي ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به د خوب پر وخت دغه دعاء ويل:

اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِوَجْهِكَ الْكَرِيمِ وَكَلِمَاتِكَ التَّامَّةِ مِنْ شَرِّ مَا أَنْتَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهِ

(اللهم اني ....) اې الله! زه ستا د بزرگ او برتر ذات او ستا د پوره كلمو په ذريعه د هغه شي د بدی څخه پناه غواړم چي د هغه تندی تا نيولي دي،

اللّٰهُمَّ أَنْتَ تَكْشِفُ الْمَغْرَمَ وَالْمَأْثَمَ اللّٰهُمَّ لَا يُهْزَمُ جُنْدُكَ وَلَا يُخْلَفُ

اې الله! پور او گناهونه ته ليري كوې اې الله! ستا لښكر ماته نه خوري او ستا وعده خلافه نه

وَعْدُكَ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ سُبْحَانَكَ وَبِحَمْدِكَ . رواه ابوداؤد.

وي او هيڅ شتمن د هغه شتمني ستا د عذاب څخه نه سي خلاصولای ته پاک يې او زه ستا پاكي، او ستا تعريف بيانوم. ابوداؤد.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۵\۳۰۱-۳۰۲،رقم: ۵۰۵۲.

﴿۲۲۹۲﴾: وَعَنْ اَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَ

د حضرت ابو سعيد ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي

حِينَ يَأْوِي إِلَى فِرَاشِهِ أَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ الَّذِي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيَّ الْقَيُّومَ وَأَتُوبُ

د بېده كېدو په وخت كي درې واره دغه دعاء ووايي (استغفرالله ...واتوب اليه)

إِلَيْهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ غَفَرَ اللّٰهُ لَهُ ذُنُوبَهُ وَإِنْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ اَوْ عَدَدَ رَمْلِ

نو الله تعالی د هغه گناهونه بخښي كه څه هم د سمندر د ځګ په اندازه وي يا

عَالِجٍ اَوْ عَدَدَ وَرَقِ الشَّجَرِ اَوْ عَدَدَ اَيَّامِ الدُّنْيَا . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب .

د عالج د شگو په اندازه وي (عالج د يو صحراء نوم دئ هلته شگي ډيري دي) يا د درختو د پاڼو په اندازه يا د دنيا د ورځو په اندازه. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۴۳۸-۴۳۹، رقم: ۳۳۹۸.

**د لغاتو حل**: عَالج: موضع بالبادية فيه رمل كثيرة (هغه سيمه چي ريګ پکښې ډېر وي).

**تشريح**: عالِج د لام په زېر سره ويل كيږي او په زور سره هم په مغربي سيمه كي د يو ځنګل نوم دی چي هلته ريګ ډېر زيات دي، په دغه حديث كي هغه ټول شيان د مثال په توګه د بيانولو مقصد دا ښودل دي چي ګناهونه هر څومره زيات وي بيا هم بخښل كيږي.

## د خوب په وخت كي د قران كريم يو سورت ويلو بركت

﴿۲۲۹۳﴾: وَعَنْ شَدَّادِ بْنَ أَوْسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا

د حضرت شداد بن اوس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: كوم

مِنْ مُسْلِمٍ يَأْخُذُ مَضْجَعَهُ بِقِرَاْةِ سُوْرَةً مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ إِلَّا وَكَّلَ اللّٰهُ بِهِ مَلَكًا

مسلمان چي د بيده كېدو په وخت كي د قرآن مجيد يو سورت ووايي نو الله تعالى پر هغه يوه ملائكه وټاكي چي د هغه

فَلَا يَقْرَبُهُ شَيْءٌ يُؤْذِيهِ حَتَّى يَهُبَّ مَتَى هَبَّ. رواه الترمذي

ساتنه كوي او هيڅ تكليف وركونكى شى هغه ته نه پرېږدي تر څو چي هغه راوېښ سي. ترمذي

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۴۴۳، رقم: ۳۴۰۷.

**د لغاتو حل**: حتى يَهُب متى هب: اى يستيقظ متى استيقظ (تر څو چي راويښ سي).

**تشريح**: د حضرت انس رضي الله عنه مرفوع روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: كله چي تاسو خپلي بستري ته ځئ يعني بيده كيږئ نو هغه وخت سورة فاتحه او سورة قل هو الله احد وايا ست تر څو پوري چي بيده ياست نو د مرګ څخه علاوه د هر شي څخه به خوندي ياست.

## د هر لمانځه وروسته او د بيده كېدو پر وخت د تسبيح، تحميد او تكبير فضيلت

﴿۲۲۹۴﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ ابْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَلَّتَانِ لَا يُحْصِيهِمَا رَجُلٌ مُسْلِمٌ إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ أَلَا وَهُمَا يَسِيرٌ

دوه عادتونه دي که هغه مسلمان خپل کړي نو جنت ته به ځي خبر دار اوسئ هغه دوه شيان ډير اسانه دي

وَمَنْ يَعْمَلُ بِهِمَا قَلِيلٌ يُسَبِّحُ اللّٰهَ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ عَشْرًا وَيَحْمَدُهُ عَشْرًا

مګر پر هغه عمل کونکي ډير لږ دي يعني د هر لمانځه وروسته لس واره سبحان الله وايا ست او لس واره الحمد لله وايا ست

وَيُكَبِّرُهُ عَشْرًا قَالَ فَأَنَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْقِدُهَا بِيَدِهِ

او لس واره الله اکبر واياست ، ابن عمر رضي الله عنه وايي ما وليدل چي رسول الله ﷺ دا کلمات پر ګوتو

قَالَ فَتِلْكَ خَمْسُونَ وَمِائَةٌ بِاللِّسَانِ وَأَلْفٌ وَخَمْسُ مِائَةٍ فِي الْمِيزَانِ وَإِذَا

شميرل بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : دا ټول يو نيم سل دي مګر د اعمالو په تله کي يو نيم زر اېښودل سوي دي (او دويم شی دادئ) هر کله چي

أَخَذْتَ مَضْجَعَكَ يُسَبِّحُهُ وَيُكَبِّرُهُ وَيَحْمَدُهُ مِائَةً فَتِلْكَ مِائَةٌ بِاللِّسَانِ وَأَلْفٌ

ک د بېده کېدو اراده وکړي نو تسبيح، تکبير او تحميد به سل واره وايي نو دا پر ژبه ويل سل

فِي الْمِيزَانِ فَأَيُّكُمْ يَعْمَلُ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ أَلْفَيْنِ وَخَمْسَ مِائَةِ سَيِّئَةٍ قَالُوا

واره دي مګر په تله کي زر واره شميرل کيږي ، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : په تاسو کي څوک سته چي په شپه او ورځ کي دوه نيم زره بدی کوي (يعني په دوه نيم زره نيکيو تر لاسه کولو څخه وروسته دومره بدی کله پاته کيږي ) صحابه کرامو عرض وکړ :

وَكَيْفَ لَا يُحْصِيهَا قَالَ يَأْتِي أَحَدَكُمُ الشَّيْطَانُ وَهُوَ فِي صَلَاتِهِ فَيَقُولُ اذْكُرْ

موږ به دا دي څنګه پاملرنه ونه کړو .. رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي تاسو لمونځ کوئ نو

كَذَا اذْكُرْ كَذَا حَتَّى يَنْفَتِلَ فَلَعَلَّهُ ان لَا يَفْعَلُ وَيَأْتِيهِ فِي مَضْجَعِهِ فَلَا يَزَالُ

شيطان تا سو ته راسي او وايي فلانی شی په ياد کړه او فلانی خبره په ياد کړه . تر څو چي هغه د لمانځه څخه وګرځوي او ستون سي نو ډيره ممکنه ده چي هغه دا کار ونه کړي وي، او همداسي

شيطان د خوب ځای ته راځي

نَوِّمُهُ حَتَّى يَنَامَ . رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي و في رواية ابي داؤد قَالَ

و هغه بيده كوي تر څو چي هغه بيده سي . ابو داؤد، نسائي، ترمذي، د ابوداؤد په يوه روايت

خَصْلَتَانِ أَوْ خَلَّتَانِ لَا يُحَافِظُ عَلَيْهِمَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ، و كذا في روايته بعد

كي دي چي وه يې فرمايل : خصلتان او خلتان لا يحافظ عليهما عبد مسلم، او نور همداسي تر

قوله بعد قوله وَأَلْفٌ وَخَمْسُ مِائَةٍ فِي الْمِيزَانِ قَالَ وَيُكَبِّرُ أَرْبَعًا وَثَلَاثِينَ إِذَا

په يه روايت كي دي مګر د الف وخمس مائة في الميزان لفظ څخه وروسته : و يكبر اربعا و

أَخَذَ مَضْجَعَهُ وَيَحْمَدُ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ وَيُسَبِّحُ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ . و في اكثر نسخ

المصابيح عن عبدالله ابن عمر .

ثلثين اذا اخذ مضجعهم و يحمد ثلثا و ثلثين و يسبح ثلثا وثلثين . الفاظ هم دي . او د مصابيح په اكثره كتابو كي د عبدالله ابن عمر څخه روايت دئ .

**تخريج:** الترمذي في السنن ۵\ ۴۴۵، رقم: ۲۴۱۰، وابوداود ۵\ ۳۰۹، رقم: ۵۰۶۵، والنسائي ۳\ ۷۴، رقم: ۱۳۴۸.

**تشريح:** نو په تاسو كي څوک دی: دا د شرط محذوف جواب دی او ددې په استفهام كي يو ډول انكار دی يعني ددغه استفهاميه جملې خلاصه داده چي كله پر دواړو شيانو باندي ساتنه او د هغه په بدله كي په ورځ كي دوه نيم زره نيكۍ ترلاسه سوې نو په هغه كي د هري نيكۍ په بدله كي بدي ليري كيږي لكه څرنګه چي الله تعالی وفرمايل: ان الحسنات يذهبن السيئات: بېشكه نيكۍ بدۍ له منځه وړي .

نو په تاسو كي داسي څوک دی چي په ورځ او شپه كي ددغه نيكو څخه زياتي بدۍ كوي او څومره بدۍ چي كوي هغه ددغه نيكيو په وجه نه معاف كيږي ؟ ځكه په داسي صورت كي ستاسو لپاره دا خبره څرنګه غوره كېدای سي چي تاسو پر دغه دواړو شيانو باندي ساتنه ونه كړلای سئ ، خلاصه دا چي پر دغه دواړو شيانو باندي په عمل كولو سره نيكۍ د بديو څخه زياتيږي او بيا نه يوازي دا چي هغه بدۍ د نيكيو په وجه ليري كيږي بلكه د نيكيو د زياتوب په

وجه د رجې هم لوړيږي نو تاسو ته پكار دي چي تاسو په پابندي سره پر دغه دواړو شيانو باندي عمل وكړي ، بيا كله چي صحابه كرامو ددغه دواړو شيانو دومره زيات فضيلت او ثواب واوريدى نو هغوئ وويل كله چي دا خبره ده نو بيا زموږ لپاره داسي هيڅ مانع نه سته چي موږ ددغه دواړو شيانو پابندي ونه كړو لكه هغوئ چي دا شيان پرېښودل ليري وګڼل مګر رسول الله ﷺ د هغوئ د ليري ګڼلو ترديد وفرمايه چي شيطان د انسان د نيكۍ ازلي دښمن دى په خپل كمين كي ناست دى هغه دا نه زغمي چي يو سړى دي دومره لوى سعادت تر لاسه كړي ځكه هغه په لمانځه كي وسوسه پيدا كوي تردې چي د لمانځه وروسته اوراد او وظيفو څخه يې غافل كوي همدارنګه هغه د بېده كېدو پر وخت د ذكر څخه په غافله كولو سره بېده كوي .

## په شپه او ورځ كي د حاصل سوو نعمتو شكر

﴿۲۲۹۵﴾ : وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ غَنَّامٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن غنام رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

مَنْ قَالَ حِينَ يُصْبِحُ اللَّهُمَّ مَا أَصْبَحَ بِي مِنْ نِعْمَةٍ أَوْ بِأَحَدٍ مِّنْ خَلْقِكَ

چا چي سهار دغه دعاء وويل : (اللهم ما اصبح ...) اې الله ! كوم شى چي ما ته د سهار په وخت كي ستا د نعمتونو يا بل چا ته ستا د مخلوقاتو څخه تر لاسه سو

فَمِنْكَ وَحْدَكَ لَا شَرِيكَ لَكَ فَلَكَ الْحَمْدُ وَلَكَ الشُّكْرُ فَقَدْ أَدَّى شُكْرَ يَوْمِهِ

نو هغه يوازي ستا د لوري دئ هيڅوک ستا شريک نسته هر ډول تعريف تا لره دئ او تا لره شكر دئ، نو هغه د هغې ورځي شكر ادا كړ

وَمَنْ قَالَ مِثْلَ ذَلِكَ حِينَ يُمْسِي فَقَدْ أَدَّى شُكْرَ لَيْلَتِهِ . رواه ابوداؤد.

او چا چي ماښام دا دعاء وويل هغه د شپې شكر ادا كړ . ابو داؤد

**تخريج** : ابوداود في السنن ۵\ ۳۱۴، رقم: ۵۰۷۳.

**تشريح** : نقل سوي دي چي يوه ورځ حضرت داؤد عليه السلام وويل: اې الله ! ستا ډېر زيات نعمتونه ما ته تر لاسه دي د هغو شكر څرنګه ادا كړم؟ الله تعالى ورته وفرمايل : اې داؤد ! عليه السلام كه ته په دې پوه سې چي تا ته كوم نعمتونه تر لاسه دي او هغه ټول زما له طرفه دي نو پوه سه چي تا د هغه نعمتو شكر ادا كړ .

## د خوب دعاء

﴿۲۲۹۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ كَانَ يَقُولُ إِذَا

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي کله به رسول الله ﷺ خپلي بستري ته تلئ نو دغه

أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ اللّٰهُمَّ رَبَّ السَّمٰوَاتِ وَرَبَّ الْأَرْضِ وَرَبَّ كُلِّ شَيْءٍ فَالِقَ الْحَبِّ

دعاء به یې ویل: (اللهم رب .....) اې الله! اې د آسمانو او مځکي پروردګاره! اې د دانې او

وَالنَّوَى مُنَزِّلَ التَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيلِ وَالْقُرْآنِ أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ كُلِّ ذِي شَرٍّ أَنْتَ

زړو چونکې، اې د تورات، انجيل او قرآن نازلونکې! ستا په ذريعه د هر هغه شر والا شي څخه

آخِذٌ بِنَاصِيَتِهِ أَنْتَ الْأَوَّلُ فَلَيْسَ قَبْلَكَ شَيْءٌ وَأَنْتَ الْآخِرُ فَلَيْسَ بَعْدَكَ

چي د هغه د تندي وربښتان ستا په لاس کي دي پناه غواړم ته تر ټولو لومړی یې، هیڅ شی ستا
وړاندي نسته ته تر ټولو اخري یې ستا وروسته هیڅ شی نسته

شَيْءٌ وَأَنْتَ الظَّاهِرُ فَلَيْسَ فَوْقَكَ شَيْءٌ وَأَنْتَ الْبَاطِنُ فَلَيْسَ دُونَكَ شَيْءٌ

ته ښکاره یې، ستا د ظهور سربېره هیڅ نسته ته باطن یې تر تا زیات باطن هیڅ شی نسته، پر ما

اقْضِ عَنِّي الدَّيْنَ وَأَغْنِنِي مِنَ الْفَقْرِ. رواه ابوداؤد والترمذي و ابن ماجة و
رواه مسلم مع اختلاف يسير.

چي کوم پور دئ هغه ادا کړې او ما د مفلسې څخه بې نیازه او بې فکره کړې. ابوداؤد، ترمذي، ابن ماجه او مسلم هم دا حديث د لږ اختلاف سره نقل کړئ دئ.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۵\ ۳۰۱، رقم: ۵۰۵۱، والترمذي ۵\ ۴۴۰، رقم: ۳۴۰۰، وابن ماجه ۲\ ۱۲۷۴، رقم: ۳۸۷۳، ومسلم ۴\ ۲۰۸۴، رقم: ۶۱ - ۲۷۱۳.

﴿۲۲۹۷﴾: وَعَنْ أَبِي الْأَزْهَرِ الْأَنْمَارِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ

د حضرت ابو الازهر انماري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي کله به رسول الله ﷺ بستري ته تلئ نو دغه

إِذَا أَخَذَ مَضْجَعَهُ مِنَ اللَّيْلِ قَالَ بِسْمِ اللَّهِ وَضَعْتُ جَنْبِي الله اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي

دعاء به يې فرمايل: (بسم الله... في الندي الاعلي) د الله په نامه سره خپل اړخ پر بستره ايږدم.، اې الله زما ګناه و بخښې

ذَنْبِي وَأَخْسِئْ شَيْطَانِي وَفُكَّ رِهَانِي وَاجْعَلْنِي فِي النَّدِيِّ الْأَعْلَى. رواه ابوداؤد.

او زما څخه شيطان ليري کړې او زما نفس آزاد کړې او په لوړ مجلس کي ما داخل کړې. ابوداؤد

**تخريج**: ابوداود في السنن ۵\۳۰۲، رقم: ۵۰۵۴.

**د لغاتو حل**: الندي: هو المجلس المجتمع (لوړ مجلس).

**تشريح**: د ګرو څخه مراد نفس دی مطلب دا چي زما نفس د بندګانو د حق څخه ازاد او بري الذمه کړې او زما خطاوي معاف کړې او د خپل عذاب څخه ما ته خلاصون راکړې.

﴿۲۲۹۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَخَذَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي کله به رسول الله ﷺ خپل بسترې ته تلئ

مَضْجَعَهُ من الليل قَالَ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي كَفَانِي وَآوَانِي وَأَطْعَمَنِي وَسَقَانِي

نو دغه دعاء به يې ويل: (الحمد لله..... من النار) ټول تعريفونه هغه الله لره دي چي زما بس دئ او چي ما ته يې ځای راکړی دئ او چي هغه په ما وخوړل او وچښل

وَالَّذِي مَنَّ عَلَيَّ فَأَفْضَلَ وَالَّذِي أَعْطَانِي فَأَجْزَلَ الْحَمْدُ لِلَّهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ

او هغه خدای چي پر ما يې احسان وکړ او زيات يې راکړل او هغه خدای ﷻ چي هغه ما ته راکړل او ډير يې راکړل، ټول تعريف په هر حال کي الله لره دئ،

اللَّهُمَّ رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ وَمَلِيكَهُ وَإِلَهَ كُلِّ شَيْءٍ أَعُوذُ بِكَ مِنَ النَّارِ. رواه ابوداؤد.

اې الله! د هر شي پروردګاره د هر شی مالکه او د هر شي معبوده، زه ستا په ذريعه د دوږخ د اور څخه پناه غواړم. ابوداؤد.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۵\۳۰۴، رقم: ۵۰۵۸.

## د بدخوابۍ لیرې کولو دعاء

﴿۲۲۹۹﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ شَكَا خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت بریدة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي خالد بن ولید رسول الله ﷺ ته شکایت وکړ چي

فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا أَنَامُ اللَّيْلَ مِنَ الْأَرَقِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

اې دالله رسوله ! ما ته د شپې خوب نه راځي ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :

إِذَا أَوَيْتَ إِلَى فِرَاشِكَ فَقُلْ اللَّهُمَّ رَبَّ السَّمَوَاتِ السَّبْعِ وَمَا أَظَلَّتْ وَرَبَّ

هر کله چي ته خپلي بستري ته ځې نو دغه دعاء وایه : (اللهم رب السموات ..... لااله الا انت)
اې د اوو آسمانو پروردګاره ! او د هغه شي چي پر اوو آسمانو باندي يې سايه کړې ده

الْأَرَضِينَ وَمَا أَقَلَّتْ وَرَبَّ الشَّيَاطِينِ وَمَا أَضَلَّتْ كُنْ لِي جَارًا مِنْ شَرِّ خَلْقِكَ

او اې د ځمکو پروردګاره ! او د هغه شیانو چي ځمکه يې پورته کړې ده او اې د شیطانانو پروردګاره ! او د هغه خلکو چي شیطانانو ګمراه کړي دي ته ما د خپل ټول مخلوق د شر څخه

كُلِّهِمْ جَمِيعًا أَنْ يَفْرُطَ عَلَيَّ أَحَدٌ مِنْهُمْ أَوْ أَنْ يَبْغِيَ عَزَّ جَارُكَ وَجَلَّ ثَنَاؤُكَ

پناه راکونکی جوړ سې یعني ته ما د هغه کار څخه وساتې چي ستا په مخلوق کي څوک پر ما ظلم وکړي ، ستا پناه غوښتونکی غالب دئ او ستا تعریف د قدر وړ دئ

وَلَا إِلَهَ غَيْرُكَ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ. رواه الترمذي وَقَالَ هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ وَالْحَكَمُ بْنُ ظُهَيْرٍ قَدْ تَرَكَ حَدِيثَهُ بَعْضُ أَهْلِ الْحَدِيثِ.

او ستا څخه پرته هیڅوک د عبادت وړ نسته . ترمذي ویلي دي ددې اسناد قوي نه دئ ، د حکیم بن ظهیر حدیثونه ځینو محدثینو پرې ایښي دي .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۵۰۳، رقم: ۳۵۲۳.

**د لغاتو حل**: ان یفرط : ای یسبق، عز جارک : ای غلب مستجیرک وصار عزیزا.

**تشريح**: په حصن حصین کي لیکلي دي چي دا روایت طبراني په اوسط کي ابن ابي شیبه نقل کړی دی مګر د هغه په روایت کي د جمیعا لفظ پر ځای اجمعین دی او د یبغي لفظ پر ځای

يطغی دی او همدارنگه د وجل ثناءک څخه تر پایه پوري الفاظ د هغه په روایت کي نه سته بلکه د عزجارک څخه وروسته د وتبارک اسمک دی او پر دغه جمله باندي روایت ختم سوی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د سهار او ماښام دعاوي

﴿۲۳۰۰﴾: عَنْ اَبِيْ مَالِكٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا أَصْبَحَ

د حضرت ابو مالک رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چي سهار سي

أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلْ أَصْبَحْنَا وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ

نو په تاسو کي دي هر څوک د غه دعاء وايي: (اصبحنا .... و شرما بعده) موږ سهار کړ او هیواد سهار کړ يوازي د الله لپاره چي د دواړو جهانو پروردګار دئ، اې الله!

خَيْرَ هٰذَا الْيَوْمِ فَتْحَهُ وَنَصْرَهُ وَنُورَهُ وَبَرَكَتَهُ وَهُدَاهُ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا

زه ستا څخه ددې ورځي پناه غواړم يعني ددې ورځي پراخي ددې ورځي مرسته، ددې ورځي نور، ددې ورځي برکت، او ددې ورځي هدايت غواړم، او ستا په ذريعه د هغه شي د بدۍ څخه

فِيهِ وَشَرِّ مَا بَعْدَهُ ثُمَّ إِذَا أَمْسَى فَلْيَقُلْ مِثْلَ ذٰلِكَ. رواه ابوداؤد.

پناه غواړم چي په دې ورځ کي دئ او د هغه شي د بدۍ څخه چي ددې وروسته دئ او همدا دول دي ماښام وايي. ابوداؤد

**تخريج:** ابوداود ۵\۳۲۲، رقم: ۵۰۸۴

**تشريح:** په دغه حديث شريف کي دې ته اشاره ده چي دعاء او د اعمالو اصل مقصد د رسول الله ﷺ د حکم پر ځای راوړل او د سنت پيروي کول دي نه د جزاء او قبوليت دعاء.

### د سهار دعاء

﴿۲۳۰۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي أَوْفٰى قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن ابي اوفى رضي الله عنه څخه روايت چي رسول الله ﷺ به

إِذَا أَصْبَحَ قَالَ أَصْبَحْنَا وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَالْكِبْرِيَاءُ وَالْعَظَمَةُ لِلّٰهِ

د سهار په وخت كي دغه دعاء ويل : (اصبحنا .... ارحم الراحمين) موږ سهار كړ او هيواد سهار كړ د الله لپاره او ټول تعريفونه د الله لره دي او د ذات او صفاتو بزرگي يوازي الله لره ده او

وَالْخَلْقُ وَالْأَمْرُ وَاللَّيْلُ وَالنَّهَارُ وَمَا سَكَنَ فِيهِمَا لِلّٰهِ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ أَوَّلَ هٰذَا

خلك، حكم، شپه، ورځ او كوم شيان چي په شپه او ورځ كي آرام تر لاسه كوي ټول الله لره دي، اې الله دد ې ورځي پيل د نيكۍ سبب كړې

النَّهَارِ صَلَاحًا وَأَوْسَطَهُ نَجَاحًا وَّآخِرَهُ فَلَاحًا يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِينَ . ذكره النووي في كتاب الأذكار برواية ابن السني

او دد ې ورځي درميان د برياليتوب ذريعه وگرځوې او دد ې ورځي آخر د خلاصون وسيله جوړه كړې اې لوى رحم كوونكې . نووي په كتاب الاذكار كي په روايت د ابن سني.

**تخريج** : عمل اليوم والليلة لابي بكر بن السني ص ۱۴، رقم: ۳۸.

**تشريح** : لكه څرنگه چي په يو حديث كي راغلي دي چي كومه دعاء په ارحم الراحمين سره وكړل سي نو هغه ژر قبليږي ځكه رسول الله ﷺ دغه دعاء پر دغه الفاظو ختم كړه ، حاكم په مستدرك كي د ابو امامه رضي الله عنه څخه مرفوع روايت دى چي پر يا ارحم الراحمين باندي الله تعالى ملائكه ټاكي كوم څوك چي دغه جمله درې واره ووايي نو هغه ملائكه ورته وايي چي ارحم الراحمين تا ته متوجه دى څه چي غواړې وه يې غواړه.

﴿۲۳۰۳﴾ : وَعَنْ عَبْدِالرَّحْمٰنِ ابْنِ اَبْزٰى قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالرحمن ابن ابزى رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به

يَقُوْلُ اِذَا اَصْبَحَ أَصْبَحْنَا عَلٰى فِطْرَةِ الْإِسْلَامِ وَعَلٰى كَلِمَةِ الْإِخْلَاصِ وَعَلٰى دِيْنِ

سهار دغه دعاء ويل : ( اصبحنا ...تر .... المشركين پوري) موږ سهار كړ پر دين اسلام او پر كلمه توحيد ، د نبي كريم ﷺ پر دين

نَبِيِّنَا مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلٰى مِلَّةِ أَبِينَا إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ . رواه احمد والدارمي

او د خپل پلار ابراهيم عليه السلام پر دين چي د باطل څخه بېزاره وو او حق دين ته متوجه او د شرک کونکو څخه نه وو . احمد او دارمي .

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۳\۴۰۶، والدارمي ۲\۳۷۸، رقم: ۲۶۸۸.

**تشريح**: د خپل نبي پر دين دی: د دغه الفاظو څخه په ظاهري توګه دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ څرنګه چي نورو خلکو ته راليږل سوی دی همدارنګه خپله هم د خپل ذات له خوا مبعوث سوی وو ، يا د دې الفاظو په باره کي به دا وويل سي چي رسول الله ﷺ امت ته د ښوونې لپاره وفرمايل چي په دعاء کي داسي ويل کيږي .

==========

# بَابُ الدّعَوَاتِ فِي الْاَوْقَاتِ

## د مختلفو وختو د دعاوو بيان

کومي دعاوي وغيره چي د شارع څخه په يو وخت او يو حالت کي نقل سوي دي د هغو اختيارول او هغه اذکار په خپلو وختو کي پوره کول د هر چا لپاره مسنون دي که دغه اذکار په پابندي سره اختيار کړل سي نو ډېره ښه خبره به وي او که دا ممکن نه وي نو کم از کم يو وار خو ضروري دي چي پوره کړل سي تر څو د رسول الله ﷺ د پيروی سعادت په برخه سي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### اولاد د شيطان څخه محفوظ کول

﴿۲۳۰۴﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ أَنَّ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم څوک چي

أَحَدَهُمْ إِذَا اَرَادَ اَنْ يَّأْتِيَ أَهْلَهُ قَالَ بِسْمِ اللّٰهِ اللّٰهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطَانَ وَجَنِّبْ

د خپلي بي بي سره د صحبت اراده وکړي نو دغه دعاء دي وايي : (بسم الله .... ما رزقتنا) موږ د الله په نامه سره مرسته غواړو ، اي الله ! زموږ څخه شيطان ليري کړې او شيطان د هغه څه څخه

الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا فَإِنَّهُ يُقَدَّر بَيْنَهُمَا وَلَدٌ فِي ذٰلِكَ لَمْ يَضُرَّهُ الشَّيْطَانُ

أَبَدًا . متفق عليه

ليري وساتي كوم چي تا موږ ته راكړي دی، كه چيري د ښځي او سړي لپاره اولاد و ټاكل سو نو په دې عمل كولو سره هغه ته شيطان هيڅكله تاوان نه سي رسولای . بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ٦\١٣٣٥، رقم: ٣٢٧١، ومسلم ٢\١٠٥٨، رقم: ١١٦- ١٤٣٤

**تشريح**: كه دا اشكال پيدا سي چي اكثر خلك دغه دعاء وايي مگر ددې سربېره د هغوئ اولاد دشيطان د تصرف او د هغه د ضرر څخه خوندي نه وي نو ددې جواب به دا وي چي شيطان هيڅكله ضرر نه سي رسولای ، ددې څخه مراد دادی چي شيطان هغوئ د كفر په كندو كي نه سي اچولای نو په دغه حديث كي دې ته اشاره ده چي د صحبت پر وخت د الله تعالى د ذكر په بركت د اولاد خاتمه په ابدي سعادت سره كيږي يا ددې معنى به دا وي چي شيطان د هغه اولاد ته د فلج وغيره ناروغۍ يا دا ډول نورو مصيبتو كي په اخته كولو سره پر تاوان رسولو باندي نه سي قادر كيدای .

د امام جوزي رحمة الله عليه د قول سره سم ددې مطلب دادی چي شيطان د هغه چا د اولاد پر دين او عقيدې باندي اثر نه سي كولای او څرنگه چي شيطان د نورو صحيح عقيدو او ديني رجحاناتو كي نقصان رسوي د هغوئ په نسبت د هغه سړي د اولاد په اړه د هغه تاوان بې اثره وي .

ځيني حضرات وايي چي د ضرر نه رسولو څخه مراد دادی چي شيطان د زېږيدني پر وخت هر كوچنی په تشي كي وهي چي له دې كبله كوچنی په ژړا كولو سره پيدا كيږي او د دغه دعاء په وجه هغه په زور سره په تشي كي نه سي وهلای .

## د غم او فكر په وخت كي د رسول الله ﷺ دعاء

﴿٢٣٠٥﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ عِنْدَ الْكَرْبِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به د ناآرامۍ او غم په وخت كي دغه

لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ الْعَظِيمُ الْحَلِيمُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ لَا إِلٰهَ إِلَّا

دعاء ويل (لااله الاالله.... العرش الكريم) د الله څخه پرته هيڅوك د عبادت وړ نسته چي بزرگ

اللّٰهُ رَبُّ السَّمٰوَاتِ وَرَبُّ الْأَرْضِ وَرَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيمِ . متفق عليه

او بردبار دئ، د عرش عظيم پروردگار دئ. د هغه څخه پرته د عبادت وړ نسته د آسمانو، ځمكو

او عرش کریم پروردگار دئ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۱\۱۴۵، رقم: ۶۳۴۵، ومسلم ۱۴\۲۰۹۳، رقم: ۸۳- ۲۷۳۰

## د غصې ختمولو ترتيب

﴿۲۳۰۶﴾: وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنُ صُرَدٍ قَالَ اسْتَبَّ رَجُلَانِ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

د سليمان بن صرد ﷛ څخه روايت دئ چې موږ د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر سوو

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ عِنْدَهُ جُلُوسٌ وَأَحَدُهُمَا يَسُبُّ صَاحِبَهُ مُغْضَبًا قَدْ احْمَرَّ

چې د دو خلکو په منځ کې ښکنځل کول پيل سول، په هغوئ کې يو د غصې څخه ډک بل ته ښکنځل کول، او د هغه مخ سور وو،

وَجْهُهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي لَأَعْلَمُ كَلِمَةً لَوْ قَالَهَا لَذَهَبَ عَنْهُ

نبي کريم ﷺ هغه ته وفرمايل: ما ته يوه داسي دعاء معلومه ده که دی هغه ووايي نو ټوله غصه به يې ولاړه سي او هغه داده:

مَا يَجِدُ أَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ فَقَالُوا لِلرَّجُلِ أَلَا تَسْمَعُ مَا يَقُولُ

(اعوذ بالله من الشيطان الرجيم) د الله ﷻ په ذريعه د شيطان رټل سوي څخه پناه غواړم، صحابه کرامو هغه سړي ته داسي وويل ايا تا واورېدل

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنِّي لَسْتُ بِمَجْنُونٍ. متفق عليه

چې رسول الله ﷺ څه فرمايي؟ هغه سړي وويل زه ليونی نه يم. (دا سړي به يو صحرائي، منافق او يا په دين کې پوخ نه وو.) بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۰\۵۱۸، رقم: ۶۱۱۵، ومسلم ۱۴\۲۰۱۵، رقم: ۱۰۹- ۲۶۱۰

**تشريح**: د دغه حديث څخه معلومه سوه چې د غصې د دفع کولو لپاره اسانه طريقه داده چې اعوذ بالله وويل سي په دې سره غصه ختميږي، د دغه حديث بنياد دغه آيت دی:

وَإِمَّا يَنزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطَانِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ إِنَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ.

ژباړه: او که شيطان تاسو په غولولو سره په خپل جال کې ونيسي نو د الله تعالی څخه پناه غواړئ بيشکه هغه هر څه اوري او په هر څه پوه دی.

چا ته چي رسول الله ﷺ دغه كلمه وښودل هغه د علم شريعت په زيور سره سمسور نه وو او دين د پوهي څخه بالكل خالي وو د هغه په ذهن كي دا خبره راغلل چي د دغه كلمو د ويلو لپاره هغه سړي ته ويل كيږي چي په ليونتوب كي اخته وي او زه په ليونتوب كي اخته نه يم ځكه نو دا كلمې ولي ووايم ، پر دې باندي صحابه كرامو هغه د رسول الله ﷺ تعليم ته متوجه كړ نو هغه د دغه بدفهمی په وجه چي دغه كلمې خو ليونی وايي دا جواب وركړ چي زه خو ليونی نه يم حالانكه هغه پوه نه سو چي غصه هم د شيطان اثر دی چي اكثر د ليونتوب صورت اختياروي ځكه د غصې په وخت كي هم دغه كلمې ويل كټوري دي ، د رسول الله ﷺ د دغه تعليم ته هغه سړي د بې پرواهي په اړه علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي چي كېداى سي هغه سړی منافق وو يا د هغه ډېر بې علمه او جاهل وو .

## د چرګ او خره د آواز په وخت كي

﴿۲۳۰۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَمِعْتُمْ

حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر كله چي تاسو واورئ

صِيَاحَ الدِّيَكَةِ فَاسْأَلُوا اللّٰهَ مِنْ فَضْلِهِ فَإِنَّهَا رَأَتْ مَلَكًا وَإِذَا سَمِعْتُمْ نَهِيقَ

د چرګ آذان نو د الله تعالی څخه د هغه فضل و غواړئ ځكه چي هغه ملائكهويني نو آذان كوي، او هر كله چي تاسو د خره آواز واورئ

الْحِمَارِ فَتَعَوَّذُوا بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ فَإِنَّهُ رَأَى شَيْطَانًا . متفق عليه

نو د الله تعالی په ذريعه د شيطان څخه پناه غواړئ ځكه چي خر شيطان ويني نو آواز كوي . بخاري او مسلم.

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ٦\٣٥٠، رقم: ٣٣٠٣، ومسلم ۴\۲۰۹۲، رقم: ۸۲– ۲۷۲۹

**تشريح** : د دغه حديث مبارک مطلب دا دی چي چرګ د ملائكو په ليدو سره اذان كوي ځكه نو تاسو په دغه وخت كي د الله تعالی څخه دعاء غواړئ چي هغه آمين ووايي او ستاسو لپاره بخښنه وغواړي او كله چي د خره آواز واورئ نو اعوذ بالله من الشيطان الرجيم وايا ست ځكه چي هغه د شيطان په ليدو سره آواز كوي .

دا حديث پر دې خبره دلالت كوي چي د نيكو كسانو د راتلو پر وخت د الله تعالی رحمت او بركت نازليږي نو هغه وخت دعاء غوښتل مستحب دي ، دلته دې ته هم اشاره ده چي پر كافرانو

باندي د الله تعالى غضب او عذاب نازليږي ځکه د کفارو مخته د تېرېدو پر وخت د الله تعالى پناه غوښتل مستحب دي د دې بيري ځخه چيري د هغه بدبختي او د هغوئ د بدئ اثر درته ونه رسيږي .

## د سفر دعاء

﴿۲۳۰۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا اسْتَوَى

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما ځخه روايت دئ چي کله به رسول الله ﷺ د سفر لپاره پر اوښ سپريدئ نو

عَلَى بَعِيرِهِ خَارِجًا إِلَى سَفَرٍ كَبَّرَ ثَلَاثًا ثُمَّ قَالَ { سُبْحَانَ الَّذِي سَخَّرَ لَنَا هَذَا

درې واره به يې الله اکبر وايه او بيا به يې دغه دعاء کول (سبحان الذي ....) هغه ذات پاک دئ چي دا سپرلی يې زموږ فرمانبرداره کړه

وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ وَإِنَّا إِلَى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُونَ } اللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْأَلُكَ فِي سَفَرِنَا هَذَا

او موږ ته پر هغه توان تر لاسه نه وو، او البته موږ خپل پروردګار ته ګرځېدونکي يو، اې الله موږ ستا ځخه په خپل سفر کي

الْبِرَّ وَالتَّقْوَى وَمِنَ الْعَمَلِ مَا تَرْضَى اللّٰهُمَّ هَوِّنْ عَلَيْنَا سَفَرَنَا هَذَا وَاطْوِ عَنَّا

نيکي او تقوا غواړو او هغه عمل چي په هغه سره ته راضي کيږي اې الله پر موږ باندي زموږ سفر آسان کړې او ته د هغه اوږدوالی زموږ لپاره لنډ کړې ،

بُعْدَهُ اللّٰهُمَّ أَنْتَ الصَّاحِبُ فِي السَّفَرِ وَالْخَلِيفَةُ فِي الْأَهْلِ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ

اې الله ! ته په دې سفر کي زموږ ساتونکی يې او زموږ د کورنۍ خبر اخيستونکی يې ، اې الله ! زه ستا په ذريعه پناه غواړم

مِنْ وَعْثَاءِ السَّفَرِ وَكَآبَةِ الْمَنْظَرِ وَسُوءِ الْمُنْقَلَبِ فِي الْمَالِ وَالْأَهْلِ وَإِذَا رَجَعَ

د سفر د سختۍ ځخه او د خراب حالت يا خرابو شيانو د ليدو ځخه او خپل اهل وعيال کي د بدۍ ځخه او کله چي به رسول الله ﷺ د سفر ځخه راستون سو

قَالَهُنَّ وَزَادَ فِيهِنَّ آيِبُونَ تَائِبُونَ عَابِدُونَ لِرَبِّنَا حَامِدُونَ . رواه مسلم

نو بیا به يې همدغه دعاء ويل او دغه الفاظ به يې زياتول (آئبون ......) بيا راتلونكي يو توبه كونكي يو او د خپل رب عبادت كونكي يو او تعريف او ثناء كونكي يو . مسلم .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۹۷۸، رقم: ۴۲۵- ۱۳۴۲.

**د لغاتو حل**: وَعثاء: اى مشقته وشدته (سختي او ستونزه).

## د سفر په وخت كي د كومو شيانو څخه پناه غوښتل

﴿۲۳۰۹﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَرْجِسَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن سرجس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي كله به رسول الله ﷺ

إِذَا سَافَرَ يَتَعَوَّذُ مِنْ وَعْثَاءِ السَّفَرِ وَكَآبَةِ الْمُنْقَلَبِ وَالْحَوْرِ بَعْدَ الْكَوْرِ وَدَعْوَةِ

د سفر اراده وكړه نو د سفر د تكليف او ستونزو او په خراب حالت كي د ستنېدو څخه به يې پناه غوښتل او د حالت د بدلېدو څخه او د مظلوم د ښيرا څخه

الْمَظْلُومِ وَسُوءِ الْمَنْظَرِ فِي الْأَهْلِ وَالْمَالِ . رواه مسلم

او د كورني په خراب حالت لېدو څخه به يې پناه غوښتل . مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۹۷۹، رقم: ۴۲۶- ۱۳۴۳.

**د لغاتو حل**: الكور: اى النقصان بعد الزيادة والتفرق بعد الاجتماع (تر زياتوب وروسته زيان او تر اتفاق وروسته بې اتفاي).

**تشريح**: د مظلوم د ښېرا څخه د پناه غوښتلو مطلب دادی چي په حقيقت كي به رسول الله ﷺ د ظلم څخه پناه غوښتل چي خدايه! ما ددې څخه وساتې چي زه په پوهېدو يا ناپوهېدو سره پر چا ظلم وكړم چي يو مظلوم ما ته ښېرا ونه كړي .

## په يو نوي ځای كي د تم كېدو دعاء

﴿۲۳۱۰﴾: وَعَنْ خَوْلَةَ بِنْتِ حَكِيمٍ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت خولة بنت حكيم (رض) څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي

يَقُولُ مَنْ نَزَلَ مَنْزِلًا فَقَالَ أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللّٰهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ لَمْ

څوک چي په يو ځای كي تم سي نو دغه دعاء دي وايي : (اعوذ بكلمات ....) د الله تعالى د

پوره کلمو په ذریعه زه د هغه شي د بدي څخه چي پیدا کړي یې دي پناه غواړم،

يَضُرَّهُ شَيْءٌ حَتَّى يَرْتَحِلَ مِنْ مَنْزِلِهِ ذَلِكَ. رواه مسلم

نو هیڅ شی به هغه ته تاوان نه ورسوي تر څو چي د هغه ځای څخه د سفر اراده وکړي. مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۴\۲۰۸۰، رقم: ۵۴- ۲۷۰۸.

## په شپه کي د ضرر او تاوان څخه د ساتني دعاء

﴿۲۳۱۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او

يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا لَقِيتُ مِنْ عَقْرَبٍ لَدَغَتْنِي الْبَارِحَةَ قَالَ أَمَا لَوْ قُلْتَ حِينَ

عرض یې وکړ اې د الله رسوله! ما د یو لړم چیچلو څخه چي پرون شپه یې زه و چیچلم ډیر تکلیف تر لاسه کړ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: که تا ماښام دغه دعاء ویلې وای

أَمْسَيْتَ أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللّٰهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ لَمْ تَضُرَّكَ. رواه مسلم

(أَمْسَيْتَ أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللّٰهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ) نو لړم به تاته تاوان نه وای رسولی. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۴\۲۰۸۱، رقم: ۵۵- ۲۷۰۹.

**تشريح**: د ترمذي شريف په یوه روایت کي دي چي کوم څوک دغه پورتنۍ کلمې ماښام درې واره وایي نو هغه ته په شپه کي د هیڅ شي زهر تاوان نه سي رسولای او په یوه روایت کي دغه کلمې د سهار په وخت کي ویل نقل سوي دي، یعني که څوک دغه کلمې د سهار په وخت کي ووایي نو په هغه ورځ به هیڅ یو زهرجن حیوان هغه ته تاوان نه سي رسولای.

د مفصل ابن يسار رضي الله عنه څخه نقل سوي دي چي کوم څوک دغه کلمې وایي نو د هغه سره اوویا زره ملائکي تاکل کیږي چي د هغه لپاره د بخښني دعاء کوي او که هغه سړی په دغه حالت کي مړ سي نو شهید به مړ سي.

## په سفر کي د سهار دعاء

﴿۲۳۱۲﴾: وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا كَانَ فِي سَفَرٍ وَأَسْحَرَ

د حضرت ابو هريرة ﷜ څخه روايت دئ چي کله به رسول الله ﷺ په سفر کي وو او د سهار وخت

يَقُولُ سَمِعَ سَامِعٌ بِحَمْدِ اللهِ وَحُسْنِ بَلَائِهِ عَلَيْنَا رَبَّنَا صَاحِبْنَا وَأَفْضِلْ عَلَيْنَا عَائِذًا بِاللهِ مِنَ النَّارِ. رواه مسلم

به سو نو دغه دعاء به يې فرمايل: (سمع سامع..... من النار) اوريدونکي زما دا تعريف واوريدئ او د هغه د ازمائښت د ښه والي اقرار دئ اې زموږ پروردګاره! زموږ ساتنه وکړې او پر موږ احسان وکړې د الله تعالى په ذريعه سره د دوږخ د اور څخه پناه غوښتلو سره موږ دا خبره کوو. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۴\۸۶، رقم: ۶۸- ۲۷۱۸.

## د جهاد، حج او عمرې څخه د ستنېدو پر وخت دعاء

﴿۲۲۱۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَفَلَ

د حضرت ابن عمر ﷜ څخه روايت دئ چي کله به رسول الله ﷺ د يوې غزا، حج يا عمرې څخه

مِنْ غَزْوٍ أَوْ حَجٍّ أَوْ عُمْرَةٍ يُكَبِّرُ عَلَى كُلِّ شَرَفٍ مِنَ الْأَرْضِ ثَلَاثَ تَكْبِيرَاتٍ ثُمَّ

راستون سو نو پر هره لوړه مځکه به يې درې واره الله اکبر وايه بيا به يې دغه دعاء فرمايل:

يَقُولُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ

لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ

قَدِيرٌ آيِبُونَ تَائِبُونَ عَابِدُونَ سَاجِدُونَ لِرَبِّنَا حَامِدُونَ صَدَقَ اللهُ وَعْدَهُ

قدير آيِبُونَ تَائِبُونَ عَابِدُونَ سَاجِدُونَ لِرَبِّنَا حَامِدُونَ صَدَقَ اللهُ وَعْدَهُ

وَنَصَرَ عَبْدَهُ وَهَزَمَ الْأَحْزَابَ وَحْدَهُ. متفق عليه

وَنَصَرَ عَبْدَهُ وَهَزَمَ الْأَحْزَابَ وَحْدَهُ. بخاري او مسلم

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۳\۶۱۸، رقم: ۱۷۹۷، ومسلم ۲\۹۸۰، رقم: ۴۲۸-۱۳۴۴

**تشريح**: ونصر عبده وهزم الاحزاب وحده: ددې څخه د خندق د غزا پر موقع تائيد او نصرت ته اشاره ده چې د قريظه او نضير د يهودو څخه پرته تقريبا لس يا دوولس زره كفارو پر مدينې حمله كړې وه او دنبي كريم ﷺ سره يې د جنګ كولو اراده درلودل مګر الله تعالى د هواء او ملائكو يو ډله د كفارو پر لښكر مسلط كړل چې د هغه په وجه د جنګ څخه پرته هغوئ هلاک سول.

## په غزوه احزاب كې د رسول الله ﷺ ښېرا

﴿۲۳۱۴﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ اَبِيْ اَوْفٰى قَالَ دَعَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبد الله بن ابي اوفى رضي الله عنه څخه روايت دئ چې د احزاب په جګړه كې رسول الله ﷺ د

يَوْمَ الْأَحْزَابِ عَلَى الْمُشْرِكِينَ فَقَالَ اللّٰهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ سَرِيعَ الْحِسَابِ

مشركينو لپاره دغه ښيرا وكړه: (اللهم منزل الكتاب ..... و زلزلهم) اې الله! اې د كتاب نازلوونكې! او ژر حساب اخيستونكې

اللّٰهُمَّ اهْزِمِ الْأَحْزَابَ اللّٰهُمَّ اهْزِمْهُمْ وَزَلْزِلْهُمْ. متفق عليه

اې الله! د كافرانو ډلې ته ماته وركړې اې الله! دوئ ته ماته وركړې او د دوئ بيخونه وباسې. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ١٠٦/٦، رقم: ٢٩٣٣، ومسلم ١٣٦٣/٣، رقم: ٢١- ١٧٤٢.

## د ميلمه او كوربه لپاره يو څو سنت خبرې

﴿۲۳۱۵﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ بُسْرٍ قَالَ نَزَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن يسر رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ زما د پلار ميلمه سو،

عَلَى أَبِي فَقَرَّبْنَا إِلَيْهِ طَعَامًا وَطْبَةً فَأَكَلَ مِنْهَا ثُمَّ أُتِيَ بِتَمْرٍ فَكَانَ يَأْكُلُهُ وَيُلْقِي

نو موږ د رسول الله ﷺ په خدمت كې يو ډول خوراک حاضر كړ، رسول الله ﷺ هغه وخوړل او بيا

النَّوَى بَيْنَ إِصْبَعَيْهِ وَيَجْمَعُ السَّبَّابَةَ وَالْوُسْطَى وفي رواية فجعل يلقي النوى

وچې خرماوي راوړل سوې، رسول الله ﷺ به خرماوي خوړلې او مندكې به يې يو ځاى كولې او

دوو ښهو ګوتو په منځ سره به يې غورځولې، او په يوه روايت کې دي چې منډکې به يې د منځ او

على ظهر أصبعيه السبابة والوسطى ثم أتي بشراب فشربه فقَالَ أَبِي وَأَخَذَ

مسواکې ګوتې په شا سره غورځولې بيا يې د څښلو راوړل سوی شی وڅښئ، زما پلار په داسې حال کې ويل چې د هغوئ د سپرلۍ واګې يې نيولې وې

بِلِجَامِ دَابَّتِهِ ادْعُ اللهَ لَنَا فَقَالَ اللَّهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِي مَا رَزَقْتَهُمْ وَاغْفِرْ لَهُمْ وَارْحَمْهُمْ . رواه مسلم

چې زموږ لپاره د الله تعالى څخه دعاء وغواړه، نو رسول الله ﷺ وفرمايل: اې الله! د دوئ په رزق کې برکت واچوې دوئ و بخښې او پر دوئ رحم وکړې. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۱۳\۱٦۱۵، رقم: ۱۴٦- ۲۰۴۲.

**د لغاتو حل**: وطبة: قال النووي وهو الحيس والتمر البرني والاقط المدقوف والسمن.

**تشريح**: د خرما په خوړلو سره به رسول الله ﷺ د هغه منډکي د خپل ښې لاس په ګوتو يو ځای کول، اوس يو روايت خو دا ښيي چې رسول الله ﷺ به منډکي د دواړو ګوتو په مينځ کې ايښودل او بل روايت دا ښيي چې د دواړو ګوتو پر شا به يې اچول، په ظاهره په دې خبره کې اتفاق معلوميږي مګر که چيري په ذهن کي دا خبره وي چې رسول الله ﷺ به منډکي کله د دواړو ګوتو په مينځ کي ايښودل او کله به يې د دواړو ګوتو پر شا ايښودل نو په دغه دواړو روايتو کي تعارض نه معلوميږي او بيا د ګوتو پر شا باندي د منډکو اچولو وجه داوه چې د لاس دننه د منډکو په اوبو وغيره سره چټل نه سي ځکه دننه صفائي تر د باندي صفائي غوره ده، دا حديث څو خبرو ته اشاره کوي چې مېلمه او کوربه لپاره مسنون درجه لري مثلاً د حديث څخه معلومه سوه چې د اکابرو او د مېلمه سپرلۍ د تواضع او ښه راغلاست لپاره نيول مسنون دي همدارنګه د مېلمه رخصتولو لپاره د سرای د دروازې څخه يا د باندي تر يو ځای پوري د هغه سره تلل سنت دي، ددې څخه دا خبره هم معلومه سوه چې د کوربه لپاره دا مسنون دي چې هغه د مېلمه څخه دعاء طلب کړي او د مېلمه لپاره هم دا مسنون دي چې د کوربه لپاره دعاء وکړي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د میاشتي لیدلو دعاء

﴿۲۳۱۶﴾: عَنْ طَلْحَةَ ابْنِ عُبَيْدِاللهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا

د حضرت طلحة بن عبید الله رضي الله عنه څخه روایت دئ چي کله به رسول الله ﷺ میاشت ولیدل نو دغه

رَأَى الْهِلَالَ قَالَ اللّٰهُمَّ أَهِلَّهُ عَلَيْنَا بِالامن وَالْإِيمَانِ وَالسَّلَامَةِ وَالْإِسْلَامِ رَبِّي وَرَبُّكَ اللّٰهُ. رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب

دعاء به یې فرمایل: (اللهم اهله .....) اې الله! دا میاشت د امن، ایمان، سلامتی او اسلام سره پر موږ راوخیژوې اې میاشتي زما او ستا پروردګار الله دئ، ترمذي ویلي دي دا حدیث حسن غریب دئ.

**تخریج**: الترمذي في السنن ۵\ ۴۷۰، رقم: ۳۴۵۱.

**تشریح**: هلال د قمري میاشتي د اولي، دوهمي او دریمي شپې سپوږمی ته وایي، ددې څخه وروسته سپوږمی ته قمر وایي، نو د پورتني حدیث څخه معلومه سوه چي کله به رسول الله ﷺ میاشت ولیدل نو دغه دعاء به یې کول، ددغه دعاء خلاصه داده چي اې الله! په دغه میاشت کي موږ په امن او ایمان سره د هر آفت او مصیبت څخه خوندي او سلامت کړې او د اسلام پر احکامو باندي مو ثابت قدم او مستقیم ولرې، ددې څخه وروسته به یې میاشتي ته په مخاطب کولو سره وفرمایل چي زما او ستا دواړو رب الله جل جلاله دی لکه څرنګه چي زه د هغه یو مخلوق یم همدارنګه ته هم د هغه یو مخلوق یې، په دې سره د هغه خلکو د عقیدو تردید مقصد وو چي د سپوږمی او لمر عبادت کوي او نعوذبالله هغوئ خپل معبود او رب ګڼي.

### د ستونزمن په لیدلو سره دعاء

﴿۲۳۱۷﴾: وَعَنْ عُمَرَبْنِ الْخَطَّابِ وَ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَا قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه او ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ رَجُلٍ رَأَى مُبْتَلًىفَقَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي عَافَانِي مِمَّا

څوک چي يو ستونزمن سړی ويني نو هغه دي دغه دعاء ووايي : (الحمدلله.... تفضيلا) ټول تعريفونه الله تعالی لره دي چي زه يې د هغه څخه ساتلی يم

بْتَلَاكَ بِهِ وَفَضَّلَنِي عَلَى كَثِيرٍ مِمَّنْ خَلَقَ تَفْضِيلًا إِلَّا لَمْ يُصِبْهُ ذَلِكَ الْبَلَاءِ

ه کوم چي يې ته اخته کړی يې او پر خپلو ډيرو مخلوقاتو يې ما ته بښکنه راکړې ده ، نو هغه ته

ائِنًا مَا كَانَ . رواه الترمذي و رواه ابن ماجة عن ابن عمر وقال الترمذي هذا

حديث غريب و عمرو بن دينار الراوي ليس بالقوي

ه دغه ستونزه هيڅکله نه رسيږي . ترمذي او ابن ماجه ، ترمذي ويلي دي د احديث غريب دئ .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۴۵۹، رقم: ۳۴۳۱.

**تشريح**: ددغه ارشاد خلاصه داده چي کوم څوک يو مصيبت وهلی ويني نو دغه دعاء دي وي : الحمدلله الذي عافاني مما ابتلاک به وفضلني على كثير ممن خلق تفضيلا، نو هغه وک به په مصيبت او آفت کي نه اخته کيږي که هغه مصيبت بدني وي لکه د برص (پيس) روغي، ړوندوالی او داسي نور او که هغه مصيبت دنياوي وي لکه د مال او دنيا هوس او سي نور، او که هغه مصيبت ديني وي لکه فسق، ظلم ، شرک ، کفر او داسي نور، خلاصه دا ي د هر ډول مصيبت وهلي په ليدو سره دغه دعاء کول پکار دي مګر علماء دا هم وايي چي يو وک د ناروغی په مصيبت اخته وي نو د هغه په ليدو سره دغه دعاء کرار ويل پکار دي چي نه ناروغ خفه نه سي او که داسي سړی ويني چي په ګناه يا ددنيا په مينه اخته وي نو د هغه په خکي دغه دعاء په لوړ آواز ويل پکار دي چي هغه ته پر خپل حال باندي پښيماني وسي او د ه څخه منع سي، او که چيري ددغه دعاء په لوړ آواز ويلو سره د فتنې او فساد بېره وي نو بيا دغه صورت کي ددغه دعاء کرار ويل پکار دي .

## بازار ته د تلو دعاء او د هغه فضيلت

۲۳۱۸﴾: وَعَنْ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ دَخَلَ السُّوقَ

حضرت عمر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم سړی چي بازار ته ولاړ سي

قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ يُحْيِي وَيُمِيتُ

او دغه دعاء ووايي : لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ يُحْيِي وَيُمِيتُ

وَهُوَ حَيٌّ لَا يَمُوتُ بِيَدِهِ الْخَيْرُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ كَتَبَ اللهُ لَهُ أَلْفَ أَلْفِ

وَهُوَ حَيٌّ لَا يَمُوتُ بِيَدِهِ الْخَيْرُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، نو الله پاک د هغه په عمل نامه کي لس لکه

حَسَنَةٍ وَمَحَا عَنْهُ أَلْفَ أَلْفِ سَيِّئَةٍ وَرَفَعَ لَهُ أَلْفَ أَلْفِ دَرَجَةٍ وَبَنَى لَهُ بَيْتًا فِي

نیکۍ لیکي او د هغه څخه لس لکه بدۍ لیري کوي او د هغه لس لکه درجې لوړوي او د هغه لپاره په جنت کي یو کور جوړوي.

الْجَنَّةِ .رواه الترمذي وابن ماجة و قال الترمذي هذا حديث غريب و في

شرح السنة من قال في سوق جامع يباع فيه بدل من دخل السوق

ترمذي او ابن ماجة ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ او په شرح السنة کي د من دخل السوق پر ځای من قال في السوق جامع يباع فيه، الفاظ دي.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۴۵۷، رقم: ۳۴۲۸، وابن ماجه ۲\ ۷۵۲، رقم: ۲۲۳۵، شرح السنة ۵\۱۳۲، رقم: ۱۳۳۸.

**تشريح**: د دومره زيات ثواب تر لاسه کولو وجه داده چي بازار د غفلت ځای دی او بازار يو داسي ځای دی چي هلته په عامه توګه درواغ، دوکه، چم او فريب زيات وي بيا دا چي بازارو ته د شيطانانو سلطنت ويل سوي دي ځکه نو په داسي ځای کي د الله تعالی يادول ډير ثواب لري.

## د دنيا نعمت پوره نعمت نه دی

﴿۲۳۱۹﴾: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ سَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا

د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ يو سړی وليدئ چي داسي دعاء

يَدْعُو يَقُولُ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ تَمَامَ النِّعْمَةِ فَقَالَ أَيُّ شَيْءٍ تَمَامُ النِّعْمَةِ قَالَ

يې کول (اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ تَمَامَ النِّعْمَةِ) اې الله ! زه ستا څخه پوره نعمت غواړم، رسول الله ﷺ د هغه

دَعْوَةٌ أَرْجُو بِهَا الْخَيْرَ فَقَالَ إِنَّ مِنْ تَمَامِ النِّعْمَةِ دُخُولَ الْجَنَّةِ وَالْفَوْزَ مِنْ

سړي څخه پوښتنه وکړه پوره نعمت څه شي دئ ؟ هغه وويل دا دعاء ده او زه د زيات مال اميد لرم، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : پوره نعمت په جنت کي داخلېدل او د دوږخ څخه خلاصون تر

النَّارِ وَسَمِعَ رَجُلًا وَهُوَ يَقُولُ يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ فَقَالَ قَدِ اسْتُجِيبَ لَكَ

لاسه کول دي، بيا رسول الله ﷺ د يو سړي څخه داسي واوريدل : يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ. اې د بزرګۍ او بخښني خاوند، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : ستا دعاء قبوله سوه

فَسَلْ وَسَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا وَهُوَ يَقُولُ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ

نو ته وغواړه، او رسول الله ﷺ د يو بل سړي څخه واورېدل : اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الصَّبْرَ. اې الله !

الصَّبْرَ فَقَالَ سَأَلْتَ اللَّهَ الْبَلَاءَ فَسَلْهُ الْعَافِيَةَ . رواه الترمذي

زه ستا څخه صبر غواړم، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : تا د الله څخه مصيبت وغوښتئ ته د الله څخه عافيت وغواړه . ترمذي .

**تخريج** : الترمذي في السنن ۵\۵۰۵، رقم: ۳۵۲۷.

**تشريح** :د حديث د اولي برخي خلاصه داده چي هغه سړي د دنيا د نعمت په پوره ګڼلو سره د الله تعالی څخه د هغه د تر لاسه کولو دعاء غوښتل مګر رسول الله ﷺ هغه خبردار کړ چي د دنيا نعمت داسي نعمت نه دی چي هغه داسي وغوښتل سي ځکه چي دا فنا کېدونکی دی پوره نعمت او حقيقي نعمت خو جنت کي داخلېدل او د دوږخ څخه خلاصون دی ځکه نو د دغه نعمت د تر لاسه کولو دعاء کول پکار دي ، د حديث د آخري برخي خلاصه داده چي کوم څوک صبر وغواړي نو څرګنده ده چي صبر د ضرورت ، مصيبت او آفت څخه وروسته وي ځکه نو د صبر غوښتلو مطلب دادی چي بالواسطه بلا غوښتل دي ځکه رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چي صبر مه غواړه ځکه په داسي کولو سره د بلاء او مصيبت غوښتل مفهوم کيږي بلکه د الله تعالی څخه عافيت غواړه چي هغه دي د ټولو آفتو او مصيبتو څخه خوندي وساتي هو که په مصيبت او آفت کي اخته يې نو بيا د صبر طاقت غوښتل او پر مصيبت باندي صبر کول پکار دي.

### د مجلس کفاره

﴿۲۲۲۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي په يو داسي

جَلَسَ فِي مَجْلِسٍ فَكَثُرَ فِيهِ لَغَطُهُ فَقَالَ قَبْلَ أَنْ يَقُومَ سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ

ځای کي کښيني چي هلته بې ګټي خبري زياتي وي او هغه د ولاړېدو څخه وړاندي دغه دعاء ووايي: سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ

وَبِحَمْدِكَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ إِلَّا غُفِرَ لَهُ مَا كَانَ فِي مَجْلِسِهِ ذَلِكَ . رواه الترمذي و البيهقي في الدعوات الكبير .

وَبِحَمْدِكَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ، نو هر څه چي په دغه مجلس کي سوي وي هغه ورته بخښل کيږي . ترمذي او بيهقي

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\ ۴۶۰، ۴۶۱، رقم: ۳۴۳۳.

**تشريح**: د لغط څخه مراد داسي کلام او داسي خبره ده چي د هغه په وجه ګناه کيږي او ځيني حضرات وايي چي د لغط معنی بې فائدې خبري دي، په هر حال په پورتني حديث کي چي کومه دعاء ذکر سوې ده هغه ته کفارة المجلس وايي يعني په کوم مجلس کي چي بې ګټي خبري کيږي يا خندا او مسخرې کيږي نو د دغه دعاء په ويلو سره الله تعالی هغه معافوي، يعني دغه دعاء د غير شرعي او غير ضروري خبرو کفاره کيږي .

## د سپرلۍ دعاء

﴿۲۳۲۱﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّهُ أُتِيَ بِدَابَّةٍ لِيَرْكَبَهَا فَلَمَّا وَضَعَ رِجْلَهُ فِي الرِّكَابِ قَالَ

د حضرت علي ﷺ څخه روايت دئ چي هغه د سپرلۍ لپاره يو حيوان راوستلی وو هغه چي کله

بِسْمِ اللهِ فَلَمَّا اسْتَوَى عَلَى ظَهْرِهَا قَالَ الْحَمْدُ لِلَّهِ ثُمَّ قَالَ { سُبْحَانَ الَّذِي

پر رکاب پښه کښېښودل نو وه يې ويل: بسم الله، او کوم وخت چي پر سپور سو نو وه يې ويل: الحمد لله ، او د هغه وروسته يې دغه دعاء وويل: سُبْحَانَ الَّذِي

سَخَّرَ لَنَا هَذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ وَإِنَّا إِلَى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُونَ } ثُمَّ قَالَ الْحَمْدُ

سَخَّرَ لَنَا هَذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ وَإِنَّا إِلَى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُونَ. بيا يې درې واره الحمدلله وويل ،

لِلَّهِ ثَلَاثًا وَاللَّهُ أَكْبَرُ ثَلَاثًا سُبْحَانَكَ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي فَاغْفِرْ لِي فَإِنَّهُ لَا يَغْفِرُ

درې واره الله اكبر او بيا يې دغه دعاء وويل : سبحانک اني ..... الا انت، اې الله ! ته پاک يې ما پر خپل ځان ظلم کړی دی نو ما و بخښې ځکه چي گناهونه يوازي ته بخښې،

الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ ثُمَّ ضَحِكَ قُلْتُ مِنْ أَيِّ شَيْءٍ ضَحِكْتَ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ

ددې وروسته هغه وخندل، د هغه څخه پوښتنه وسول چي اې اميرالمؤمنين !

قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَنَعَ كَمَا صَنَعْتُ ثُمَّ ضَحِكَ

تاسو ولي وخندل ؟ هغه وويل : ما رسول الله ﷺ په داسي کولو ليدلی دئ څنگه چي ما وکړل او بيا رسول الله ﷺ وخندل،

فَقُلْتُ مِنْ أَيِّ شَيْءٍ ضَحِكْتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ إِنَّ رَبَّكَ لَيَعْجَبُ مِنْ عَبْدِهِ

نو ما پوښتنه وکړل اې د الله رسوله ! په څه شي تاسو وخندل ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالی د خپل بنده څخه خوشحاله سي

إِذَا قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي ذُنُوبِي يقول يعلم انه لا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ غَيْرِيْ. رواه احمد والترمذي و ابوداؤد

هر کله چي هغه دا ووايي اې زما پروردگاره ! زما گناهونه و بخښې او الله تعالی په دې اوربدو سره فرمايي زما بنده پوهيږي چي زما څخه پرته بل څوک گناهونه نه سي بخښلای . احمد، ترمذي او ابوداؤد

**تخريج** : الامام احمد في المسند ۱\۹۷، والترمذي ۵\۴۶۷، رقم: ۳۴۴۶، وابوداود ۳\۷۷، رقم: ۲۶۰۲

**تشريح** :نبي کريم ﷺ د الله تعالی د راضي کېدو په وجه وخندل او د حضرت علي ﷺ خندل د رسول الله ﷺ د اتباع او پيروي په وجه وه .

## د مسافر درخصت کولو دعاء

﴿۲۳۲۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وَدَّعَ

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دئ چي کله به رسول الله ﷺ يو سړی رخصت کوئ

رَجُلًا أَخَذَ بِيَدِهِ فَلَا يَدَعُهَا حَتَّى يَكُونَ الرَّجُلُ هُوَ يَدَعُ يَدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ

نو دهغه لاس به یې په خپل لاس کي نیوئ او تر هغه وخته پوري به یې نه پرېښوئ تر څو پوري چي هغه به په خپله د رسول الله ﷺ مبارک لاس نه وو پرې ایښی

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيَقُولُ اسْتَوْدِعُ اللَّهَ دِينَكَ وَأَمَانَتَكَ وَآخِرَ عَمَلِكَ، و في رواية

او بیا به یې فرمایل: استودع الله.....عملک، ما الله ته ستا دین او ستا امانت او ستا آخري عمل وسپارئ. او په یوه روایت کي

وَخَوَاتِيمَ عَمَلِكَ. رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة. وفي روايتهما لم يذكر: و آخر عملك

(و خواتیم عملک) راغلی دی. ترمذي، د ابوداؤد او ابن ماجه په روایت کي د (آخر عملک) الفاظ نه سته.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۴۶۵، رقم: ۳۴۴۲، وابوداود ۳\۷۶، رقم: ۲۶۰۰، وابن ماجه ۲\۹۴۲، رقم: ۲۸۶۶.

**تشريح**: د امانت څخه مراد هغه مالونه دي چي په هغه سره د خلکو سره راکړه درکړه کیږي او ځیني حضرات وایي چي د امانت څخه مراد اهل او اولاد دی چي مسافر یې په کور کي پرېږدي او سفر ته ولاړ سي.

﴿۲۳۲۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ الْخَطْمِيِّ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله خطمي رضي الله عنه څخه روایت دئ چي کله به رسول الله ﷺ

إِذَا أَرَادَ أَنْ يَّسْتَوْدِعَ الْجَيْشَ قَالَ أَسْتَوْدِعُ اللهَ دِيْنَكُمْ وَأَمَانَتَكُمْ وَخَوَاتِيْمَ أَعْمَالِكُمْ. رواه أبو داود

یو لښکر رخصت کوئ نو دا به یې فرمایل: أَسْتَوْدِعُ اللهَ دِيْنَكُمْ وَأَمَانَتَكُمْ وَخَوَاتِيْمَ أَعْمَالِكُمْ. ابوداؤد

**تخريج**: ابوداود في السنن ۳\۷۶، ۷۷، رقم: ۲۶۰۱.

﴿۲۳۲۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي یو سړی د نبي کریم ﷺ په خدمت کي عرض وکړ چي ای

رَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي أُرِيدُ سَفَرًا فَزَوِّدْنِي فقَالَ زَوَّدَكَ اللّٰهُ التَّقْوٰى قَالَ زِدْنِي قَالَ

د الله رسوله ! زه د سفر اراده لرم ما ته يو تحفه راكړئ (يعني زما لپاره دعاء وكړئ) نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : الله ﷻ دي تا ته د تقوا توښه دركړي ، هغه عرض وكړ څه نور ، رسول الله ﷺ

وَغفَرَ ذَنْبَكَ قَالَ زِدْنِي بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي قَالَ وَيَسَّرَ لَكَ الْخَيْرَ حَيْثُ مَا كُنْتَ .

رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن غريب .

ورته وفرمايل : او الله دي ستا ګناهونه و بخښي ، هغه وويل : زما مور او پلار دي پر تاسو قربان وي څه نور ، رسول الله ﷺ وفرمايل : او الله دي دنيکۍ توفيق درکړي هر چيري چي يې . ترمذي ويلي دي دا حديث حسن غريب دئ .

**تخريج** : سنن الترمذي ٥\٤٦٦، رقم: ٣٤٤٤.

﴿٢٣٢٥﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي أُرِيدُ أَنْ أُسَافِرَ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړي رسول الله ﷺ ته عرض وکړ چي زه د سفر

فَأَوْصِنِي قَالَ عَلَيْكَ بِتَقْوَى اللّٰهِ وَالتَّكْبِيرِ عَلَى كُلِّ شَرَفٍ قال فَلَمَّا وَلَّى

اراده لرم ما ته نصيحت وفرماياست ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : پر خپل ځان د الله ﷻ بيره لازمه کړه او په سفر کي پر هر لوړ ځای باندي الله اکبر وايه ، هر کله چي هغه سړی ولاړئ

الرَّجُلُ قَالَ اللّٰهُمَّ اطْوِ له البعد وَهَوِّنْ عَلَيْهِ السَّفَرَ . رواه الترمذي

نو رسول الله ﷺ وفرمايل : اې الله ! دده د سفر اوږدوالی را کم کړې او دده سفر آسان کړې . ترمذي

**تخريج** : الترمذي في السنن ٥\٤٦٦، ٤٦٧، رقم: ٣٤٤٥.

**د لغاتو حل** : شرف: ای مکان عال (لوړ ځای).

**تشريح** : عليک بتقوی الله: ددې مطلب دادی چي د الله تعالی څخه خوف او بيره اختيار کړه يعني د الله تعالی څخه وبيرېږه ، د شرک او ګناه او د شبهې شيان پرېږده او داسي شيان هم مه اختياروه چي د ضرورت او حاجت څخه زائد وي په عبادت او ذکر کي د غفلت او د الله تعالی څخه پرته د بل چا د خيال څخه ځان وساته او د الله تعالی څخه پرته بل څوک حاجت پوره کونکی

مشکل حل کونکی مه گڼه او مه پر غیر الله باندي اعتماد کوه.

## په سفر کي د شپې دعاء

﴿۲۲۲۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَافَرَ

: حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي کله به رسول الله ﷺ د سفر اراده کول

فَأَقْبَلَ اللَّيْلُ قَالَ يَا أَرْضُ رَبِّي وَرَبُّكِ اللّٰهُ أَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنْ شَرِّكِ وَشَرِّ مَا فِيكِ

او شپه به راغلل نو فرمایل به یې: یا ارض.... وما ولد، اې مځکي ستا او زما پروردګار الله دئ زه د الله جل جلاله په ذریعه ستا د شر څخه او د هغه شي د شر څخه چي په تا کي دي پناه غوارم

وَشَرِّ مَا خُلِقَ فِيكِ وَمِنْ شَرِّ مَا يَدِبُّ عَلَيْكِ وَأَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنْ أَسَدٍ وَأَسْوَدَ وَمِنْ

او د هغه شي د شر څخه چي په تا کي ګرځي راګرځي او زه د الله جل جلاله په ذریعه د زمري څخه د تور مار څخه او د

الْحَيَّةِ وَالْعَقْرَبِ وَمِنْ شر سَاكِنِ الْبَلَدِ وَمِنْ وَالِدٍ وَمَا وَلَدَ . رواه ابوداؤد.

هر ډول نورو مارانو او لړم څخه او د ښار د اوسیدونکو د شر څخه او د پیدا کونکو شیانو د شر څخه او د هغه شي د شر څخه چي پیدا کړل سوي دي پناه غوارم. ابوداؤد.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۳\ ۷۸، رقم: ۲۶۰۳.

**د لغاتو حل**: اسود: وهو الحية الكبيرة التي فيها سواد. (تور غټ مار).

## د جهاد په وخت کي دعاء

﴿۲۲۲۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ إِذَا غَزَا قَالَ اللَّهُمَّ أَنْتَ عَضُدِي وَنَصِيرِي بِكَ أَحُولُ وَبِكَ أَصُولُ وَبِكَ أُقَاتِلُ . رواه الترمذي و ابوداؤد

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي کله به رسول الله ﷺ جهاد کوئ نو فرمایل به یې: اې الله زما پر تا تکیه ده ته زما پروردګار یې ستا په توان سره د دښمن مکر (چم) لیري کوم او حلمه کوم او ستا په توان سره جنګیږي. ترمذي او ابوداؤد

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\ ۵۳۴، رقم: ۳۵۸۴، وابوداود ۳\ ۹۶، رقم: ۲۶۲۳.

**د لغاتو حل**: احول: ای اصرف کید العدو. اصول: ای احمل علی العدو.

## د دښمن د بيري په وخت کي دعاء

﴿۲۳۲۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوْسٰى أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا خَافَ قَوْمًا قَالَ اللّٰهُمَّ إِنَّا نَجْعَلُكَ فِيْ نُحُوْرِهِمْ وَنَعُوْذُبِكَ مِنْ شُرُوْرِهِمْ. رواه احمد و ابوداؤد

د حضرت ابو موسی رضی الله عنه څخه روايت دئ چي کله به رسول الله ﷺ ته د يو قوم څخه بيره وه نو دا به يې فرمايل: اللهم .... من شرورهم، اې الله! موږ گرځوو تا په مقابله د دوئ (کافرانو) کښې او ستا په ذريعه د هغوئ د بديو څخه پناه غواړو. احمد او ابو داؤد

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۴\۴۱۴، وابوداود في السنن ۲\۱۸۷، رقم: ۱۵۳۷.

**تشريح**: په حصن حصين کي ليکلي دي چي کوم څوک د دښمن يا بل چا په بيره کي اخته وي نو د سورة لايلف قريش ويل د هر شر او خوف څخه د امان باعث دی او دا عمل مجرب دی.

## د کور څخه د وتلو دعاء

﴿۲۳۲۹﴾: وَعَنْ اُمِّ سَلْمَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا خَرَجَ مِنْ

د حضرت ام سلمة (رض) څخه روايت دئ چي کله به رسول الله ﷺ د کور څخه وتئ نو دغه دعاء

بَيْتِهِ قَالَ بِسْمِ اللّٰهِ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللّٰهِ اللّٰهُمَّ إِنَّا نَعُوْذُبِكَ مِنْ أَنْ نَزِلَّ أَوْ نَضِلَّ

به يې ويل: بسم الله... او يجهل علي، د الله جل جلاله په نامه د کور څخه وځم ما پر الله جل جلاله باور وکړ موږ ستا په ذريعه پناه غواړو او د دې څخه چي موږ وښوئيږو يا گمراه سو

أَوْ نَظْلِمَ أَوْ نُظْلَمَ أَوْ نَجْهَلَ أَوْ يُجْهَلَ عَلَيْنَا. رواه احمد والترمذي والنسائي

يا ظلم وکړو يا پر موږ باندي ظلم وسي يا موږ جهالت وکړو او يا زموږ سره جهالت وکړل سي، احمد، ترمذي او نسائي،

وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح و في رواية ابي داؤد وابن ماجة

ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دئ او د ابو داؤد او ابن ماجه په روايت کي دا الفاظ

قَالَتْ اُمُّ سَلْمَةَ مَا خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَيْتِي قَطُّ إِلَّا رَفَعَ

دي چي ام سلمة وايي چي کله به رسول الله ﷺ زما د کور څخه ووتئ نو خامخا به يې د آسمان په

طَرْفَهُ إِلَى السَّمَاءِ فَقَالَ اللَّهُمَّ أَعُوذُ بِكَ أَنْ أَضِلَّ أَوْ أُضَلَّ أَوْ أَظْلِمَ أَوْ أُظْلَمَ أَوْ أَجْهَلَ أَوْ يُجْهَلَ عَلَيَّ.

لور کتل او دغه دعاء به يې ويل: اللَّهُمَّ أَعُوذُ بِكَ ...... اې الله! زه پناه غواړم په تا سره ددې څخه چي په خپله بې لاري سم يا بل څوک بې لاري کړم يا پر چا ظلم وکړم او يا بل څوک راباندي ظلم وکړي يا ناپوهي وسي او يا راسره د ناپوهۍ معامله وسي.

**تخريج**: الامام احمد في المسند ٦\٣٠٦، ابوداود في السنن ٥\٣٢٧، رقم: ٥٠٩٤، والترمذي ٥\٤٥٧، رقم: ٣٤٢٧، والنسائي في عمل اليوم والليلة ص ١٧٦، رقم: ٨٧، وابن ماجه ٢\١٢١٨، رقم: ٣٨٨٤.

﴿۲۳۳۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَرَجَ الرَّجُلُ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: سړي چي د کور څخه وځي نو

مِنْ بَيْتِهِ فَقَالَ بِسْمِ اللَّهِ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللَّهِ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ يُقَالُ

دغه دعا دي وايي: بسم الله .... الابالله، کله چي دغه دعاء ووايي نو ملائکه ددې په جواب

حِينَئِذٍ هُدِيتَ وَكُفِيتَ وَوُقِيتَ فَتَتَنَحَّى لَهُ الشَّيَاطِينُ فَيَقُولُ لَهُ شَيْطَانٌ

کي وايي: هديت و کفيت ووقيت، اې د الله بنده! تا ته هدايت درکړل سو، کفايت درکړل سو او خوندي سوې، (د دې په اورېدو سره) شيطان ځيني ليري سي او دويم شيطان هغه ته وايي

آخَرُ كَيْفَ لَكَ بِرَجُلٍ قَدْ هُدِيَ وَكُفِيَ وَوُقِيَ. رواه ابوداؤد و روي الترمذي الى قوله له الشيطان

ته پر دې سړي څنګه توان پيدا کولای سې چي هدايت ورته وسو، کفايت ورته وسو او د بدو څخه خوندي کړل سو. ابوداؤد، او ترمذي تر له الشيطان پوري بيان کړئ دئ.

**تخريج**: ابوداود في السنن ٥\٣٢٨، رقم: ٥٠٩٠، والترمذي ٥\٤٥٦، رقم: ٣٤٢٦.

**تشريح**: تا ته سيده لار وښودل سوه يعني تا د الله تعالى نوم واخيستی د هغه پر ذات دي توکل

او باور وكړ او د لاحول په ويلو سره دي خپل ځان عاجز وګڼي ځكه نو تا سيده لار تر لاسه كړه او سيده لار داده چي بنده الله تعالى ياد كړي او پر هغه اعتماد او باور سره خپل ټول كارونه هغه ته وسپاري : كار خود راه بخدا باگزار كت نمي بينم ازين بهتر كار

د امام نووي رحمة الله عليه د كتاب الاذكار سره سم په كتاب ابن سني كي د حضرت عمر رضي الله عنه دا روايت منقول دی چي نبي كريم ﷺ وفرمايل : كله چي په تاسو كي يو څوك د معاش په تنګۍ اخته وي نو هغه كوم شی ددې څخه منع كوي چي هر كله د كور څخه وځي نو دغه دعاء دي وايي : بسم الله على نفسي ومالي وديني اللهم رضني بقضائك وبارك لي فيما قدرت لي حتى لا احب تعجيل ما اخرت ولا تاخير ماعجلت. ترجمه: زه د الله تعالى په نامه سره د كور څخه ووتلم چي مالك دی زما د ځان زما د مال او زما ددين، اې الله ! ته ما پر خپله فيصله باندي مطمئن كړې او ته ما ته په هغه شي كي بركت راكړې كوم چي تا زما لپاره ټاكلی دی تر دې چي زه په هغه شي كي تلوار خوښ نه كړم كوم چي تا مؤخر كړی دی او په هغه شي كي تاخير خوښ نه كړم په كوم كي چي تا تلوار خوښ كړی دی .

او د ابن ماجه په روايت كي دادي چي رسول الله ﷺ وفرمايل كوم څوك چي د لمانځه لپاره د خپل كور څخه ووځي او دغه دعاء ووايي نو الله تعالى هغه ته بذات خود متوجه كيږي او اوويا زره ملائكي د هغه د مغفرت لپاره دعاء كوي دعاء داده : اللهم اني اسئلك بحق ممشاي هذا فاني لم اخرج ا شرا ولا بطرا ولارياء ولاسمة وخرجت اتقاء سخطك وابتغاء مرضتك فاسئلك ان تعيذني من النار وان تغفرلي ذنوبي فانه لا يغفر الذنوب الا انت: ژباړه: اې الله ! زه تا ته خپل دغه تلو په وسيله خواست كوم ځكه چي زه تكبر، سركښي او رياكارۍ او ځان ښوونې لپاره نه يم وتلی بلكه زه ستا د غضب څخه په بيرېدو سره او ستا د رضا په طلب كي وتلی يم ځكه زه تا ته التجاء كوم چي ته ما د دوږخ څخه داور څخه په خپل پناه كي وساتې او زما ټول ګناهونه و بخښې ځكه چي ستا پرته بل څوك ګناهونه نه سي بخښلای .

### كور ته د ننوتلو دعاء

﴿۲۳۳۱﴾ : وَعَنْ اَبِيْ مَالِكِ الْاَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو مالك اشعري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِذَا وَلَجَ الرَّجُلُ بَيْتَهُ فَلْيَقُلِ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَ الْمَوْلَجِ وَخَيْرَ الْمَخْرَجِ

کله چي يو څوک خپل کور ته ننوزي نو دغه دعاء دي وايي : اللهم اني .... ربنا توكلنا ، اې الله زه ستا څخه د داخلېدو ، د خير او د کور څخه د وتلو د خير غوښتنه کوم

بِسْمِ اللّٰهِ وَلَجْنَا وَبِسْمِ اللّٰهِ ولجنا وَعَلَى اللّٰهِ رَبِّنَا تَوَكَّلْنَا ثُمَّ لِيُسَلِّمْ عَلَى أَهْلِهِ . رواه ابوداؤد

او موږ په کور کي د الله ﷻ په نامه سره داخل سو او موږ پر الله ﷻ چي زموږ رب دئ توکل کړی دی ، د دې وروسته دي کورنۍ ته سلام وکړي . ابوداؤد .

**تخريج** : ابوداود في السنن ۵\ ۳۲۸ ، رقم: ۵۰۹۶.

**تشريح** : په حصن حصين کي دغه دعاء د ابوداؤد څخه نقل سوې ده چي په هغه کي د بسم الله ولجنا څخه وروسته بسم الله خرجنا هم دي ، د ابوداؤد په اصل کتاب کي د کتلو څخه وروسته معلومه سوه چي په هغه کي دغه جمله موجود ده ځکه کیدای سي چي یا خو په خپله د مشکوة مؤلف څخه دا جمله لیکل هېر سوي وي یا د کاتب د غلطۍ په وجه پاته سوې وي، په هر حال ددغه دعاء د ویلو پر وخت دغه جمله هم ویل پکار دي، علماء لیکي چي په خپل کور کي دداخلېدو او دغه دعاء ویلو وروسته خپل کورنۍ سلام ادا کول پکار دي لکه څرنګه چي په حدیث کي په وضاحت سره ښودل سوي دي مګر که په کور کي څوک موجود نه وي نو بیا د ملائکو په نیت سره سلام کول پکار دي ځکه چي هلته ملائکي په هر صورت کي موجود وي او په دغه صورت کي داسي سلام کول پکار دي: السلام علی عباد الله الصالحين .

## د زوم او ناوي لپاره دعاء

﴿۲۳۳۲﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا رَفَّأَ الْإِنْسَانَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي کله به رسول الله ﷺ د يو نکاح کوونکي لپاره دعاء

إِذَا تَزَوَّجَ قَالَ بَارَكَ اللّٰهُ لَكَ وَبَارَكَ عَلَيْكَ وَجَمَعَ بَيْنَكُمَا فِي خَيْرٍ . رواه احمد والترمذي وابوداؤد وابن ماجة .

کول نو داسي به يې فرمايل : بارک الله .... في خير ، الله تعالي دي تا ته برکت درکړي او تاسو دواړو ته دي برکت درکړي او تاسو دواړه دي په نيکۍ کي يو ځای کړي . احمد ، ترمذي ، ابوداؤد او ابن ماجه .

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۲\ ۳۸۱، والترمذي في السنن ۳\ ۴۰۰، رقم: ۱۰۹۱، وابوداود ۵\ ۵۹۸، رقم: ۲۱۳۰، وابن ماجه ۱\ ۶۱۴، رقم: ۱۹۰۵.

**د لغاتو حل**: اذا رفا الانسان: اى اراد الدعاء للمتزوج من الترفئة مهموز اللام بمعنى التهنئة.

## د نكاح كوونكي دعاء

﴿۲۳۳۳﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

عمرو بن شعيب د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا تَزَوَّجَ أَحَدُكُمُ امْرَأَةً أَوِ اشْتَرَى خَادِمًا فَلْيَقُلِ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ

په تاسو كي چي كله يو څوك نكاح كوي يا يو غلام رانيسي نو دغه دعاء دي وايي: اللهم اني .... ماجبلتها عليه، اې الله! زه ستا څخه د هغه خير

خَيْرَهَا وَخَيْرَ مَا جَبَلْتَهَا عَلَيْهِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهَا وَمِنْ شَرِّ مَا جَبَلْتَهَا

او د هغه د اخلاقو ښه والي غواړم، او ستا په ذريعه د هغه (ياهغې) د بدی څخه او د هغه (ياهغې) د اخلاقو د بدی څخه پناه غواړم،

عَلَيْهِ وَإِذَا اشْتَرَى بَعِيرًا فَلْيَأْخُذْ بِذِرْوَةِ سَنَامِهِ وَلْيَقُلْ مِثْلَ ذَلِكَ، وَفِي

او هر كله چي اوښ رانيسي نو د هغه قوب دي ونيسي او همدغه دعاء دي ووايي، د ښځي او

رِوَايَةٍ فِي الْمَرْأَةِ وَالْخَادِمِ ثُمَّ لْيَأْخُذْ بِنَاصِيَتِهَا وَلْيَدْعُ بِالْبَرَكَةِ. رواه ابوداؤد وابن ماجة.

غلام والا په روايت كي دا الفاظ هم سته چي د ښځي او غلام د تندي وربښتان دي ونيسي او د بركت دعاء دي وكړي. ابوداؤد او ابن ماجة.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\ ۶۱۶، رقم: ۲۱۶۰، وابن ماجه في السنن ۱\ ۶۱۷، رقم: ۱۹۱۸.

**تشريح**: د خير او بركت د دعاء څخه پورتني دعاء مراد ده لكه څرنګه چي د حصن حصين څخه فهمول كيږي يعني د ښځي يا غلام د تندي وبښتانو په نيولو سره دي دغه دعاء ووايي، علامه جزري رحمه الله فرمايي چي دا يوازي پر اوښ منحصره نه ده بلكه كوم څوك چي يو حيوان رانيسي

نو دغه دعاء دي وايي نو الله تعالی به هغه حيوان کي برکت واچوي .

## د غم ليري کولو دعاء

﴿۲۲۳۴﴾ : وَعَنْ أَبِيْ بَكْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعَوَاتُ

د حضرت ابو بکرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ و فرمايل : د ستونزمن دعاء داده :

الْمَكْرُوبِ اللّٰهُمَّ رَحْمَتَكَ أَرْجُو فَلَا تَكِلْنِي إِلَى نَفْسِي طَرْفَةَ عَيْنٍ وَأَصْلِحْ لِي شَأْنِي كُلَّهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ . رواه ابوداؤد .

(اللهم رحمتک ....) اې الله ! زه ستا د رحمت اميدوار يم ، ما زما نفس ته يو ګړی هم حواله مه کړې او زما ټول کارونه سم کړې ستا څخه پرته بل څوک د عبادت وړ نسته . ابو داؤد .

**تخريج** : ابوداود في السنن ۵\۳۲۵، رقم: ۵۰۹۰.

## د پور خلاصولو لپاره دعاء

﴿۲۲۳...﴾ : وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَجُلٌ هُمُومٌ لَزِمَتْنِي وَدُيُونٌ يَا

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړي رسول الله ﷺ ته عرض وکړ اې د الله رسوله ! زه ډير غمجن انسان يم ، رنج او غم راګير کړی يم او زه پوروړی يم ،

رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ أَفَلَا أُعَلِّمُكَ كَلَامًا إِذَا قُلْتَهُ أَذْهَبَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ هَمَّكَ وَقَضٰى

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : ايا زه داسي دعاء درته ونښيم چي هغه ته و وايې نو الله تعالی به ستا غم ليري کړي او ستا پور به ادا کړي ،

عَنْكَ دَيْنَكَ قَالَ قُلْتُ بَلٰى يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ قُلْ إِذَا أَصْبَحْتَ وَإِذَا أَمْسَيْتَ

هغه سړي عرض وکړ : هو ، اې د الله رسوله ! رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : ته سهار او ماښام دغه دعاء وايه :

اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحَزَنِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَأَعُوذُ

(اللهم اني .... وقهر الرجال) اې الله ! زه ستا په ذريعه پناه غواړم د فکر او غم څخه او پناه

غواړم د عاجزۍ او سستۍ څخه او پناه غواړم

بِكَ مِنَ الْجُبْنِ وَالْبُخْلِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ غَلَبَةِ الدَّيْنِ وَقَهْرِ الرِّجَالِ قَالَ

د بخل او نامردۍ څخه او پناه غواړم د پور د غلبې څخه او د خلکو د غلبې څخه. د هغه سړي

فَفَعَلْتُ ذَلِكَ فَأَذْهَبَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ هَمِّي وَقَضَى عَنِّي دَيْنِي . رواه ابوداؤد.

بيان دئ چي ما په دې عمل وكړ نو الله تعالى زما غم او فكر ليري كړ او ما ته يې د پور څخه خلاصون راكړ . ابوداؤد.

**تخريج**: ابوداود في السنن ٢\١٩٥، رقم: ١٥٥٥.

**تشريح**: د عاجزۍ څخه د پناه غوښتلو مطلب دادی چي ددې پناه غواړم چي د طاعت او عبادت كولو او د مصيبت او مشقت پر زغملو باندي قادر سم او ددې څخه عاجز نه سم، د بخل څخه مراد دادی چي زكوة، كفارات او نورو ماليه واجباتو ادا كول ترک كول، سوال كونكي او محتاج د خپل كور د دروازې څخه ستنول، د مېلمه مېلمستيا نه كول، سلام نه كول او د سلام جواب نه وركول، كه يو علمي سوال وكړل سي يا يو ديني مسئله وپوښتل سي نو په هغه باندي د پوهېدو او علم سربېره د هغه علمي سوال جواب نه وركول او هغه مسئله نه ښودل او د نبي كريم ﷺ د مبارک نامه په اورېدو سره درود شريف نه ويل.

د نامردۍ څخه مراد دادی چي د جهاد پر وخت د دښمنانو څخه په بېرېدو سره د مقابلې همت بايلل همدارنګه د امر بالمعروف او نهي عن المنكر پر موقع جرات او د حق ويني مظاهره نه كول او د رزق وغيره په معامله كي په زړه سره پر الله تعالى توكل او اعتماد نه كول.

﴿۲۳۳۶﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّهُ جَاءَهُ مُكَاتِبٌ فَقَالَ إِنِّي عَجَزْتُ عَنْ كِتَابَتِي فَأَعِنِّي

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو مكاتب هغه ته راغلئ او وه يې ويل زه د خپل ليكل سوي وعدې څخه عاجز يم تاسو زما مرسته وكړئ،

قَالَ أَلَا أُعَلِّمُكَ كَلِمَاتٍ عَلَّمَنِيهِنَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كَانَ عَلَيْكَ

هغه ورته وويل ايا زه تا ته هغه دعاء ونښيم كوم چي ما ته رسول الله ﷺ ښودلې وه؟ كه پر تا د

مِثْلُ جَبَلٍ كَبِيرٍ دَيْنًا أَدَّاهُ اللّٰهُ عَنْكَ قَالَ قُلِ اللّٰهُمَّ اكْفِنِي بِحَلَالِكَ عَنْ

لوی غره په شان قرض وي نو الله تعالی به هغه ادا کړي ته دغه دعاء وايه : (اللهم اکفني ....

حَرَامِكَ وَأَغْنِنِي بِفَضْلِكَ عَمَّنْ سِوَاكَ. رواه الترمذي والبيهقي في الدعوات الكبير و سنذكر حديث جابر اذا سمعتم نباح الكلاب في باب تغطية الاواني ان شاء الله تعالى.

عمن سواک) اې الله! ما د خپل حلال په ذريعه د حرام څخه وساتې ما په خپل فضل او کرم سره د ځان څخه پرته د هر چا څخه مستغني کړې. ترمذي او بيهقي.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\ ۵۲۳، رقم: ۳۵۶۳.

**تشريح**: مکاتب هغه غلام ته وايي چې د هغه مالک د هغه سره وليکي چې کله هغه دومره مال يا دومره روپۍ ادا کړي نو هغه وخت به هغه ازاد کړل سي همدارنګه بدل کتابت هغه مال ته ويل کيږي چې د هغه د ادا کولو ذمه داري هغه مکاتب غلام قبوله کړې وي کله چې هغه ټا کلی مال ادا کړي نو هغه وخت به هغه ازاد سي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د مجلس وروسته دعاء

﴿۲۲۳۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا جَلَسَ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چې کله به رسول الله ﷺ په يو ځای کي کښېنستئ

مَجْلِسًا أَوْ صَلَّى تَكَلَّمَ بِكَلِمَاتٍ فَسَأَلْتُهُ عَنِ الْكَلِمَاتِ فَقَالَ إِنْ تَكَلَّمَ بِخَيْرٍ كَانَ

يا لمونځ به يې کوئ نو يو څو کلمې به يې ويلې، نو ما د رسول الله ﷺ څخه د هغه کلمې په اړه پوښتنه وکړل، نو رسول الله ﷺ راته وفرمايل: که دد ې کلماتو څخه وړاندې نيکي خبري وسي

طَابِعًا عَلَيْهِنَّ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَإِنْ تَكَلَّمَ بِشَرٍّ ذٰلِكَ كَانَ كَفَّارَةً لَهُ سُبْحَانَكَ

نو دا کلمې تر قيامته پوري پر هغه مهر سي او که خرابي خبري وسي نو دا کلمې د هغه کفاره سي (او هغه کلمې دادي) : سبحانک ..... اليک،

اَللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ. رواه النسائي

اې الله! ته پاک يې، او موږ ستا تعريف بيانوو ستا څخه پرته بل څوک د عبادت وړ نسته زه ستا

څخه د بخښني غوښتونکی یم او تا ته توبه کاږم. نسائي.

**تخريج**: سنن النسائي ۳\۷۲، رقم: ۱۳۴۴.

## د نوي مياشتي ليدلو دعاء

﴿۲۳۳۸﴾: وَعَنْ قَتَادَةَ بَلَغَهُ أَنَّ رَسُول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا رَأَى

د حضرت قتادة رحمه الله څخه روايت دئ چي ما ته څرګنده سوې ده چي رسول الله ﷺ به مياشت

الْهِلَالَ قَالَ هِلَالُ خَيْرٍ وَرُشْدٍ هِلَالُ خَيْرٍ وَرُشْدٍ هِلَالُ خَيْرٍ وَرُشْدٍ آمَنْتُ بِالَّذِي

وليدل نو دا به يې فرمايل: (هلال خير و رشد) د خير او هدايت مياشت ده د خير او هدايت مياشت ده د خير او هدايت مياشت ده، ما پر هغه ذات ايمان راوړئ دئ

خَلَقَكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ يَقُولُ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي ذَهَبَ بِشَهْرِ كَذَا وَجَاءَ بِشَهْرِ

كَذَا. رواه ابوداؤد

چي ته يې پيدا کړې يې، دا درې ورو وروسته به يې فرمايل: الحمد لله ... كذا، ټول تعريفونه الله تعالى لره دي چي فلانى مياشت يې ختمه کړه او فلانى مياشت يې پيل کړه. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۲۶، رقم: ۵۰۹۲.

**تشريح**: لکه څرنګه چي په دارمي کي د ابن عمر رضي الله عنه د روايت څخه څرګنده ده چي رسول الله ﷺ به د نوي مياشتي په ليدو سره الله اکبر ويل بيا دا درې ورو وروسته به يې هلال خير ورشد ...الخ ويل. د خير او هدايت مياشت ده: ددغه جملې په باره کي دا هم ويل کيږي چي دا دعائيه جمله ده يعني ددې معنى داده چي خدايه! دا مياشت د خير او هدايت په پيغام سره راغلې ده يا دا هم کېداى سي چي دغه جمله د نيک فال په توګه خبريه وي.

## د غم په وخت کي دعاء

﴿۲۳۳۹﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَثُرَ

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي په غم او فکر

هَمُّهُ فَلْيَقُلْ اَللّٰهُمَّ إِنِّي عَبْدُكَ وَابْنُ عَبْدِكَ وَابْنُ أَمَتِكَ وَفِي قَبْضَتِكَ نَاصِيَتِي

كي اخته وي نو د غه دعاء دي وايي : (اللهم اني .... و غمي) اې الله ! زه ستا بنده يم ستا د بنده زوى يم ستا د مينځي زوى يم زه ستا په واک كي يم زما د تندي ورېښتان ستا په لاس كي دي

بِيَدِكَ مَاضٍ فِيَّ حُكْمُكَ عَدْلٌ فِيَّ قَضَاؤُكَ أَسْأَلُكَ بِكُلِّ اسْمٍ هُوَ لَكَ سَمَّيْتَ بِهِ

زما په حق كي ستا حكم جاري دئ ستا سو پريكړه زما په حق كي عدل دئ زه ستا سو په نامه سره غوارم د هر هغه نامه په وسيله چي تا خپل د ځان لپاره ټاكلى او غوره كړئ دئ

نَفْسَكَ أَوْ أَنْزَلْتَهُ فِيْ كِتَابِكَ أَوْ عَلَّمْتَهُ أَحَدًا مِنْ خَلْقِكَ أو ألهمت عبادك أو

يا دي په خپل كتاب كي نازل كړى دئ يا په خپل مخلوقاتو كي دي يو چا ته ښودلى دئ يا تا خپلو بندګانو ته الهام كړئ دئ يا غوره كړي دي وي

اسْتَأْثَرْتَ بِهِ فِيْ مَكْنُوْنِ الْغَيْبِ عِنْدَكَ أَنْ تَجْعَلَ الْقُرْآنَ رَبِيْعَ قَلْبِيْ وَجِلاءَ

خپل ځان په پردو د غيب كي په نزد خپل، ته قرآن زما د زړه پسرلى جوړ كړې او هغه زما د غم او

هَمِّيْ وَغَمِّيْ مَا قَالَهَا عَبْدٌ قَطُّ إِلاَّ أَذْهَبَ اللهُ غَمَّهُ وَأَبْدَلَهُ فَرَجًا " . رواه رزين

فكر ليري كونكى كړې ، كوم بنده چي دغه دعاء ووايي نو الله تعالى به يې غم او فكر ليري كړي او د هغه په بدل كي به خوښي وركړي . رزين

**تخريج**: رواه رزين.

## د كښته كېدو او ختلو پر وخت تكبير او تسبيح ويل

﴿۲۳۴۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا إِذَا صَعِدْنَا كَبَّرْنَا وَإِذَا نَزَلْنَا سَبَّحْنَا . رواه البخاري

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي كله به موږ پر يو لوړ ځاى ختلو نو الله اكبر به مو وايه او كله چي به كښته كېدلو نو سبحان الله به مو ويل . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) ٦\١٣٥، رقم: ٢٩٩٣.

## د غم ليري كولو دعاء

﴿۲۳۴۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا كَرَبَهُ أَمْرٌ

د حضرت انس ﷜ څخه روايت دئ چي كله به رسول الله ﷺ په يو شي باندي غمجن سو

يقول يَا حَيُّ يَا قَيُّومُ بِرَحْمَتِكَ أَسْتَغِيثُ . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب و ليس بمحفوظ .

نو ويل به يې (يا حي يا قيوم برحمتک استغيث) اې هميشه ژونديه! اې هميشه قائم خدايه ! زه ستا د رحمت په نامه تا ته فرياد كوم . ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ او خوندي نه دئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۰۴، رقم: ۳۵۲۴.

**تشريح**: دا روايت حاكم او ابن سني د ابن مسعود ﷜ څخه نقل كړی دی او حاكم او نسائي د حضرت علي ﷜ څخه په مرفوع طريقه نقل كړی دی چي په هغه كي دا الفاظ هم دي : و يكرر وهو ساجد ياحي يا قيوم، يعني رسول الله ﷺ به په سجده كي يا حي يا قيوم په وار وار ويل .

﴿۲۳۴۲﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قُلْنَا يَوْمَ الْخَنْدَقِ يَا رَسُولَ اللهِ هَلْ

د حضرت ابو سعيد خدري ﷜ څخه روايت دئ چي د خندق په ورځ موږ رسول الله ﷺ ته وويل:

مِنْ شَيْءٍ نَقُولُهُ فَقَدْ بَلَغَتِ الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ قَالَ نَعَمْ اللّٰهُمَّ اسْتُرْ عَوْرَاتِنَا

اې دالله رسوله ! ايا يو داسي دعاء سته چي موږ يې وو ايو اوس خو زموږ زړونه حلق ته رارسيدلي دي (يعني په سختو ستونزو كي يو) رسول الله ﷺ وفرمايل : دغه دعاء وايا ست : (اللهم استر عوراتنا و آمن روعاتنا) اې الله ! زموږ عيبونه پټ كړې

وَآمِنْ رَوْعَاتِنَا قَالَ فَضَرَبَ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ وُجُوهَ أَعْدَائِهِ بِالرِّيحِ فَهَزَمَهُمُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ بِالرِّيحِ . رواه احمد

او موږ ته د بيري څخه امن راكړې ، د راوي بيان دئ چي الله تعالى په تيزي هواء سره د دښمنانو مخونه وګرځول او الله تعالى په تيزي هواء سره هغوئ ته ماته وركړه . احمد .

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۳\۳.

**تشريح**: د خندق د ورځي څخه مراد د خندق غزا ده چي هغه ته غزوه احزاب هم ويل كيږي، دلته الله تعالى مسلمانان په داسي مرسته او نصرت سره ونازول چي د هواء د تيزی او تندی

چپلاخي د دين پر دښمنانو مسلط سوې چي د هغوئ كتوي يې واړولې د هغوئ خيمې يې وكښلې او هغوئ يې په ډول ډول تكليفو او مصيبتو كي په اخته كولو سره تباه كړل.

**بازار ته د ننوتلو دعاء**

﴿۲۳۴۳﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ السُّوْقَ

د حضرت بريدة ﷛ څخه روايت دئ چي كله به رسول الله ﷺ بازار ته تشريف وړئ

قَالَ بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْأَلُكَ خَيْرَ هٰذِهِ السُّوْقِ وَخَيْرَ مَا فِيْهَا وَأَعُوْذُبِكَ

نو فرمايل به يې (بسم الله .... صفقة خاسرة) د الله ﷻ په نامه سره زه بازار ته داخليږم اې الله! زه ستا څخه ددې بازار او څه چي په دې بازار كي دي ددې خير غواړم او ستا په ذريعه ددې او

مِنْ شَرِّهَا وَشَرِّ مَا فِيْهَا اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُبِكَ أَنْ أُصِيْبَ فِيْهَا صَفْقَةً خَاسِرَةً.

رواه البيهقي في الدعوات الكبير

كوم څه چي په دې كي دي د هغو د بدى څخه پناه غواړم، اې الله! زه ستا په ذريعه ددې څخه پناه غواړم چي زه ددې بازار په معامله كي تاوان پورته كړم. بيهقي.

**تخريج**: رواه البيهقي في الدعوات الكبير.

=======

# بَابُ الْاِسْتِعَاذَةِ ( د پناه غوښتلو بيان )

په دغه باب كي پر هغه دعاؤ باندي شامل حديثونه نقل سوي دي چي په هغو كي اكثر د ناخوښه او غير شرعي شيانو او د شيطانانو د مكر او فريب څخه د الله تعالى د پناه غوښتلو ذكر سوى دى، په دې باره كي د علماؤ اختلافي قولونه دي چي د كلام الله ويلو څخه اعوذبالله ويل غوره دي يا استعيذ بالله؟ اكثر حضرات وايي چي استعيذبالله ويل غوره دي ځكه د قرآن كريم څخه په ظاهره دا معلوميږي لكه چي د الله تعالى ارشاد دى: واذا قرات القرآن فاستعذبالله، مگر د حديثو او آثارو څخه اعوذبالله ويل هم ثابت دي ځكه نو ددې په ويلو كي هم څه پروا نسته.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د خدای ﷻ پناه غوښتل

﴿۲۴۴۴﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَعَوَّذُ مِنْ جَهْدِ الْبَلَاءِ وَدَرَكِ الشَّقَاءِ وَسُوءِ الْقَضَاءِ وَشَمَاتَةِ الْأَعْدَاءِ . متفق عليه

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به فرمايل : د الله په ذريعه پناه غواړئ د ستونزو څخه، د بلا څخه، د بدبختۍ څخه ، د خراب تقدير څخه او د د ښمنانو د خوشحالۍ څخه . بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح ١١\٥١٣، رقم: ٦٦١٦، ومسلم ١٤\٢٠٨٠، رقم: ٥٣- ٢٧٠٧.

**تشريح**: بلاء هغه حالت ته وايي چي په هغه کي انسان د امتحان او ازمائش د سختي مرحلې سره په مخامخ کېدو سره او د دين دنيا په فتنو او سختيو کي اخته کيږي، د جهد معنی د مشقت او غايت ده نو د جهد البلاء او د بلاء د مشقت څخه مراد د دين او دنيا هغه مصيبتونه دي چي په هغه کي انسان اخته کيږي او هغه يوازي د هغه پر کور باندي نه وي بلکه د هغه مصيبتو پر راتلو باندي صبر هم نه سي کولای.

د خراب تقدير څخه مراد هغه شی دی چي د انسان په حق کي خراب او ناخوښه وي همدارنګه د دښمن د خوشحالۍ څخه پناه د غوښتلو مراد دادی چي د دين او دنيا په هيڅ يو مصيبت کي اخته نه سي چي په هغه سره د ښمن خوشحاله سي ، په هر حال په دغه حديث کي چي د کومو شيانو څخه پناه غوښتل فرمايل سوي دي په هغو کي د فکر کولو څخه معلوميږي چي د دغه حديث په ذريعه يو داسي جامع دعاء ته لارښوونه سوې ده کوم چي پر ټولو دنيوي او ديني مقاصدو او مطالبو باندي حاوي ده.

### رسول الله ﷺ د کومو شيانو څخه پناه غوښتل

﴿۲۴۴۵﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اللّٰهُمَّ إِنِّي

حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به فرمايل : (اللهم اني

أَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحَزَنِ وَالْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَالْجُبْنِ وَالْبُخْلِ وَضَلَعِ الدَّيْنِ

وَغَلَبَةِ الرِّجَالِ . متفق عليه

... وغلبة الرجال) اې الله ! زه ستا په ذريعه د غم او فكر څخه ، د عجز او سستئ څخه ، د بزدلئ څخه ، د بخل څخه ، د پور څخه او د خلكو د غلبې څخه پناه غواړم . بخاري او مسلم.

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري) : ۱۱\۱۷۸ ، رقم : ۶۳۶۹ ، ومسلم ۴\۲۰۷۹ ، رقم : ۵۰-۲۷۰۶

**د لغاتو حل** : ضَلَع الدين: اى ثقله وشدته. (د پور دروندوالی او سختي).

﴿۲۳۴۶﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ اللّٰهُمَّ إِنِّي

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ به دغه دعاء كول : (اللهم اني ...)

أَعُوذُبِكَ مِنَ الْكَسَلِ وَالْهَرَمِ وَالْمَغْرَمِ وَالْمَأْثَمِ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُبِكَ مِنْ عَذَابِ

اې الله ! زه ستا په ذريعه پناه غواړم د سستئ څخه ، د سپين ږيرتوب څخه ، د پور څخه ، د ګناه څخه ، اې الله ! زه ستا په ذريعه پناه غواړم د اور د عذاب څخه

النَّارِ وَفِتْنَةِ النَّارِ وَفِتْنَةِ الْقَبْرِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ وَشَرِّ فِتْنَةِ الْغِنَى وَشَرِّ فِتْنَةِ

د اور د فتنې څخه ، د قبر د فتنې څخه ، د قبر د عذاب څخه ، د شتمنئ د فتنې څخه ، د بدئ څخه

الْفَقْرِ وَمِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ اللّٰهُمَّ اغْسِلْ خَطَايَايَ بِمَاءِ الثَّلْجِ

د مفلسئ څخه او د مسيح د جال د فتنې څخه ، اې الله ! زما ګناهونه د واوري او ږلئ په اوبو

وَالْبَرَدِ وَنَقِّ قَلْبِي كَمَا يُنَقَّى الثَّوْبُ الْأَبْيَضُ مِنَ الدَّنَسِ وَبَاعِدْ بَيْنِي وَبَيْنَ

پريولې او زما زړه داسي پاک کړې لکه سپينه جامه چې د خيرو څخه پاکه وي او زما او زما د

خَطَايَايَ كَمَا بَاعَدْتَ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ . متفق عليه

ګناهو په منځ كي دومره ليري والی پيدا كړې څومره چې د لوېديځ او ختيځ په منځ كي دئ . بخاري او مسلم .

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري) : ۱۱\۱۸۱ ، رقم : ۶۳۶۹ ، ومسلم ۴\۲۰۷۸ ، رقم : ۴۹-۲۷۰۵ .

**تشريح** : د اور د عذاب څخه پناه غواړم : ددې مطلب دادی چې اې الله ! زه ددې څخه پناه

غواړم چي زما شمېر په هغه خلكو كي وي كوم چي دوږخيان يا كفار دي.

دلته په دې خبره پوهېدل پكار دي چي د الله تعالى په عذاب كي به يوازي كفار اخته وي موحدين چي د خپلو بدو عملونو سزا په آخرت كي تر لاسه كوي نو هغه ته عذاب نه ويل كيږي بلكه هغه تاديب يعني د هغو د گناهو پريولو او ختمولو لپاره به وي.

د اور د فتنې څخه مراد هغه شيان دي چي د اور او د قبر د عذاب باعث كيږي يعني گناه او معصيت، د قبر د فتنې څخه مراد دادى چي د منكر او نكير د سوالونو د جواب وركولو پر وخت حواس يا فته كېدل.

د قبر د عذاب څخه مراد دادى چي ملائكي هغه خلك په گرزونو وهي او هغوئ په عذاب كي اخته كوي كوم چي د منكر او نكير د سوالو جواب ور نه كړي، د قبر څخه مراد عالم برزخ دى كه هغه قبر وي يا بل ځاى وي، د دولت د فتنې څخه مراد تكبر او سركښي كول دي مال او زر په حرامه ذريعه تر لاسه كول او هغه د گناه پر ځاى مصرف كول او پر مال باندي بې ځايه فخر كو همدارنگه د فقر د فتنې څخه مراد دادى چي پر شتمنو باندي حسد كول د هغوئ د مال او زر هوس او طمع كول په هغه شي نه راضي كېدل كوم چي الله د هغه په قسمت كي ليكلى دى يعني فقر او دا دول ټول شيان چي د صبر او توكل او قناعت خلاف دي.

دلته دا خبره په خاصه توگه په ذهن كي كښېنوئ چي د رسول الله ﷺ د دغه ټولو شيانو څخه پناه غوښتل په دې معنى نه دي چي نعوذ بالله رسول الله ﷺ په دغه شيانو كي اخته وو يا په دغه شيانو كي د اخته كېدو بېره وه ځكه رسول الله ﷺ معصوم وو الله تعالى په دائمي توگه سره هغه د ټولو شيانو څخه خوندي ساتلى وو بلكه د دغه شيانو څخه غوښتل د امت د تعليم په توگه دي چي د امت خلك د دغه شيانو څخه پناه وغواړي او ځان وساتي.

﴿۲۳۴۷﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت زيد بن ارقم ﷜ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به

يَقُولُ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَالْجُبْنِ وَالْبُخْلِ وَالْهَرَمِ

دغه دعاء كول: (اللهم اني ....) اې الله! زه ستا په ذريعه پناه غواړم د عاجزۍ څخه، د سستۍ څخه، د بزدلۍ څخه، د بخل څخه، د سپين ږيرتوب څخه

وَعَذَابِ الْقَبْرِ اللَّهُمَّ آتِ نَفْسِي تَقْوَاهَا وَزَكِّهَا أَنْتَ خَيْرُ مَنْ زَكَّاهَا أَنْتَ وَلِيُّهَا

او د قبر د عذاب څخه، اې الله! زما نفس ته پرهيزګاري ورکړې او پاک يې کړې ته په پاکوونکو کې غوره ذات يې، ته زما کارجوړوونکی يې

وَمَوْلَاهَا اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عِلْمٍ لَا يَنْفَعُ وَمِنْ قَلْبٍ لَا يَخْشَعُ وَمِنْ

او مالک يې، اې الله! زه ستا په ذريعه پناه غواړم د هغه علم څخه چې ګټه نه ورکړي او د هغه زړه څخه چې عاجزي پکښې نه وي، او د

نَفْسٍ لَا تَشْبَعُ وَمِنْ دَعْوَةٍ لَا يُسْتَجَابُ لَهَا. رواه مسلم

هغه نفس څخه چې د حرص د زياتي څخه هيڅکله نه مړېږي او د هغه دعاء څخه چې قبوله نه سي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۲۰۸۸، رقم: ۷۳– ۲۷۲۲.

**تشريح**: د ګټې نه رسوونکي علم څخه د پناه غوښتلو مطلب دادی چې زه د هغه علم څخه پناه غواړم چې پر هغه عمل نه کوم او نورو ته يې نه ښيم، يا ددې څخه هغه علم مراد دی کوم چې ددين لپاره ضروري نه وي همدارنګه هغه علم هم مراد کېدای سي چې د هغه د ترلاسه کولو شريعت اجازه نه وي ورکړې، ابو طالب مکي رحمة الله عليه فرمايي لکه څرنګه چې رسول الله ﷺ د شرک، نفاق او خرابو اعمالو څخه پناه غوښتې ده همدارنګه يې د هغه علم څخه هم پناه غوښتې ده چې د اسلامي عقائدو او اعمالو د نګاه څخه مضر وي او انسان د تقوا او آخرت د بيري د لاري روانېدو پر ځای د دنيا حرص او محبت پر لاره روانوي په کوم سره چې تقوا او د آخرت بيره نه وي هغه د دنيا د دروازې او د نياداری د اقسامو څخه يو قسم دی.

﴿۲۳۴۸﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ مِنْ دُعَاءِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چې د رسول الله ﷺ په دعاوو کې يوه دعاء دا هم

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ زَوَالِ نِعْمَتِكَ وَتَحَوُّلِ عَافِيَتِكَ وَفُجَاءَةِ نِقْمَتِكَ وَجَمِيعِ سَخَطِكَ. رواه مسلم

وه: (اللهم اني ...) اې الله ! زه ستا په ذريعه پناه غواړم ستا د نعمت د زوال څخه ستا د عافيت د بدلون څخه ستا د ناڅاپه عذاب څخه او ستا د ټولو غصو څخه. مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۴\۲۰۹۷، رقم: ۹۶- ۲۷۳۹.

﴿۲۳۴۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا عَمِلْتُ وَمِنْ شَرِّ مَا لَمْ أَعْمَلْ. رواه مسلم

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به دغه دعاء ويل : (اللهم اني ..اعمل) اې الله ! زه ستا په ذريعه پناه غواړم د هغه بدۍ څخه چي ما کړې ده او د هغه بدۍ څخه چي ما نه ده کړې . مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۴\ ۲۰۸۵، رقم: ۶۵- ۲۷۱۶.

**تشريح**: مطلب دادی چي ما کوم خراب کارونه کړي دي د هغو څخه هم پناه غواړم په دې معنی چي د هغه په وجه په عذاب کي اخته نه سم او هغه کارونه راته معاف کړې او کوم کارونه چي ما نه دي کړي د هغه څخه هم پناه غواړم په دې معنی چي په راتلونکي کي داسي کارونه کړم چي ستا د ناراضۍ او ناخوښۍ باعث وي يا دا چي د خرابو کارو ترک کول خپل کمال ونه ګڼم بلکه هغه يوازي ستا فضل ګڼم.

﴿۲۳۵۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ اللّٰهُمَّ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسو الله ﷺ به دغه دعاء ويل : اللهم لک ....

لَكَ أَسْلَمْتُ وَبِكَ آمَنْتُ وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْكَ أَنَبْتُ وَبِكَ خَاصَمْتُ اللّٰهُمَّ إِنِّي

يموتون، اې الله ! ما ستا فرمانبرداري وکړه او ما ستا په لور رجوع وکړه او ستا په مرسته سره جګړه کوم ، اې الله ! زه

أَعُوذُ بِعِزَّتِكَ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ ان تضلني انت الحي الَّذِي لَا يَمُوتُ وَالْجِنُّ وَالْإِنْسُ يَمُوتُونَ. متفق عليه

ستا د عزت په ذريعه پناه غواړم ،ستا څخه پرته بل څوک د عبادت وړ نه سته، ددې څخه چې ته ما گمراه کړې، ته ژوندی یې داسې ژوندی چې نه مرې ، حال دا چې انسانان او پیریانان ټول مړه کیدونکي دي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۱\۱۱۶، رقم: ۶۳۱۷، ومسلم ۴\۲۰۸۶، رقم: ۶۷- ۲۷۱۷

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

﴿۲۳۵۱﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به دغه دعاء ويل :

اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْأَرْبَعِ مِنْ عِلْمٍ لَا يَنْفَعُ وَمِنْ قَلْبٍ لَا يَخْشَعُ وَمِنْ

(اللهم اني ... لا يسمع) اي الله ! زه ستا په ذريعه د څلورو شيانو څخه پناه غواړم : د هغه علم څخه چي گټه نه ورکوي، د هغه زړه څخه چي عاجزي نه کوي،

نَفْسٍ لَا تَشْبَعُ وَمِنْ دُعَاءٍ لَا يُسْمَعُ. رواه احمد و ابوداؤد وابن ماجة و رواه الترمذي عن عبدالله ابن عمرو والنسائي عنهما .

د هغه نفس څخه چي موړ نه وي، د هغه دعاء څخه چي نه واوريدل سي (يعني قبوله نه سي)، احمد ، ابوداؤد ، ابن ماجه، ترمذي دا روايت د عبدالله ابن عمر او نسائي د دواړو څخه روايت کړی دئ .

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۲\ ۳۶۵، وابوداود في السنن ۲\ ۱۹۲، رقم: ۱۵۴۸، وابن ماجه ۱\ ۹۲، رقم: ۲۵۰.

﴿۲۳۵۲﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَتَعَوَّذُ مِنْ خَمْسٍ مِنَ الْجُبْنِ

د حضرت عمر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به د پنځو شيانو څخه پناه غوښتل : د

وَالْبُخْلِ وَسُوءِ الْعُمُرِ وَفِتْنَةِ الصَّدْرِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ . رواه ابوداؤد والنسائي

بزدلۍ څخه، د بخل څخه، د عمر د خرابۍ څخه، د سينې د فتنې څخه، (يعني د بد اخلاقۍ او بدې عقيدې څخه) او د قبر د عذاب څخه. ابوداؤد او نسائي.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۱۸۸، رقم: ۱۵۳۹، والنسائي ۸\۲۵۵، رقم: ۵۴۴۳.

**د لغاتو حل**: فتنة الصدر: اى قساوة القلب وحب الدنيا (د زړه سختي او د دنيا مينه).

﴿۲۳۵۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ اللَّهُمَّ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ به فرمايل: (اللهم اني ...اظلم) اې الله! زه

إِنِّي أَعُوذُبِكَ مِنَ الْفَقْرِ وَالْقِلَّةِ وَالذِّلَّةِ وَأَعُوذُبِكَ مِنْ أَنْ أَظْلِمَ أَوْ أُظْلَمَ. رواه ابوداؤد والنسائي.

ستا په ذريعه پناه غواړم د مفلسۍ څخه، د نيکيو د کمۍ څخه يا د شتمنۍ د کمۍ څخه او د ذلت څخه او د دې څخه پناه غواړم چې زه پر چا ظلم وکړم يا څوک پر ما ظلم وکړي. ابوداؤد او نسائي.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۱۹۰، رقم: ۱۵۴۴، والنسائي ۸\۲۶۱، رقم: ۵۴۶۳.

**تشريح**: د محتاجۍ څخه د زړه محتاجي مراد ده يعني زړه د مال، زر حريص وي يا ددې څخه مراد د مال محتاجي دي چې د هغه په وجه د صبر لمن د لاس څخه وځي، حقيقت دا دی چې رسول الله ﷺ د محتاجۍ د فتنې څخه پناه غوښتل که هغه د زړه محتاجي وي يا د مال.

د قلت څخه مراد د نيکيو لږوالی دی او د مال او زرو لږوالی مراد نه دی ځکه رسول الله ﷺ خو خپله په مال او زر کې قلت او کمي درلودل او د مال زياتوب يې نه خوښوی يا د قلت څخه د مال دومره قلت مراد دی چې هغه د ژوند د بقاء لپاره کافي نه وي چې د هغه په وجه په عبادت کې کوتاهي او تاوان واقع کيږي، ځينې حضرات وايي چې دلته د صبر کمي مراد ده، د ذلت څخه مراد د ګناهو په نتيجه کې ذلت دی چې ګناه کار د الله تعالی په نزد ذليل دی يا د شتمنو د مفلسۍ يا د غربت په وجه ذليل کېدل مراد دي.

﴿۲۳۵۴﴾: وَعَنْهُ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَدْعُو يَقُولُ اللَّهُمَّ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ به دغه دعاء فرمايل: (اللهم ....و

إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الشِّقَاقِ وَالنِّفَاقِ وَسُوءِ الْأَخْلَاقِ . رواه ابوداؤد والنسائي .

زه ستا په ذريعه د بدبختی ، نفاق او بد اخلاقی څخه پناه غواړم . ابوداؤد او نسائي .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۱۹۱، رقم: ۱۵۴۶، والنسائي ۸\ ۲۶۴، رقم: ۵۴۷۱.

**تشريح**: د اختلاف څخه مراد دادی چې د حق مخالفت او ځيني حضراتو ويلي دي چې په خپل مينځ کي اختلاف او عداوت مراد دی ، د نفاق څخه د نفاق ټول قسمونه مراد دي که هغه په عقيده کي وي يا په عمل کي وي مثلا د کفر او شرک تپاره او په ژبه سره د اسلام ظاهرول يو چا ته په ژبي سره څه ويل او په زړه کي بل څه ساتل ډېر درواغ ويل په امانت کي خيانت کول او د وعدې خلاف ورزي کول او داسي نور .

﴿۲۳۵۵﴾: وَعَنْهُ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ اللَّهُمَّ إِنِّي

د حضرت ابو هريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به فرمايل : (اللهم اني....البطانة)

أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْجُوعِ فَإِنَّهُ بِئْسَ الضَّجِيعُ وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخِيَانَةِ فَإِنَّهَا بِئْسَتِ الْبِطَانَةُ . رواه ابوداؤد والنسائي وابن ماجة .

اې الله ! زه ستا په ذريعه د لوږي او فاقې څخه پناه غواړم چي بدترين ملګرى دئ او د خيانت څخه پناه غواړم چي هغه بدترين دننه عادت دئ . ابوداؤد ، نسائي او ابن ماجه

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\ ۱۹۱، رقم: ۱۵۴۷، والنسائي ۸\ ۲۶۳، رقم: ۵۴۶۸، وابن ماجه ۲\ ۱۱۱۳، رقم: ۳۳۵۴.

**تشريح**: د لوږي څخه يې ځکه پناه وغوښتل چي ددې په وجه د انسان په بدن او حواسو کي کمزوري راځي او د هغه اثر په عبادت کي تاوان وي او په حضور کي د خلل په صورت کي ظاهرېږي نو بدترينه لوږه هغه ده چي د تاوان او خلل باعث سي او اکثر وي کله چي هغه لوږه چي د رياضت او مجاهدې په مقصد سره د اعتدال پر طريقه او د خپل حالت موافق وي بدترينه نه ده بلکه هغه د باطن د صفائي د زړه د نورانيت او د ناروغيو څخه د سلامتيا سبب ده .

د خيانت څخه مراد دادی چي د الله تعالى او د هغه د رسول نافرماني کول او د خلکو مالونه او د هغوئ په رازونو کي بې ايماني او خيانت کول ، د قرآن کريم دغه آيت هم پر دې دلالت کوي:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَخُونُواْ اللهَ وَالرَّسُولَ وَتَخُونُواْ أَمَانَاتِكُمْ.

ژباړه: اې مؤمنانو ! د نافرمانۍ په ذريعه د الله تعالى او د هغه د رسول په حق كې خيانت نه كوئ او مه په خپلو مالو كې خيانت كوئ.

﴿۲۳۵۶﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يَقُولُ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ به دا فرمايل: (اللهم اني ... الاسقام) اې الله ! زه ستا په ذريعه پناه غواړم د

الْبَرَصِ وَالْجُنُونِ وَالْجذَامِ وَمِنْ سَيِّئِ الْأَسْقَامِ . رواه ابوداؤد والنسائي .

برص (د فيس ناروغي) څخه د جزام څخه ، د ليونتوب څخه د ټولو خرابو ناروغيو څخه ابوداؤد او نسائي.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۱۹۴، رقم: ۱۵۵۴، والنسائي ۸\۲۷۰، رقم: ۵۴۹۳.

**تشريح**: سيئ الاسقام (د خرابو ناروغيو) ددې يادونه د تعميم بعد التخصيص په توګه دى يعني مخكې خو رسول الله ﷺ د څو ناروغيو د نومونو په اخيستلو سره پناه وغوښتل او بيايې په عامه توګه د هرې ناروغۍ مثلا استسقاء ، دق، فلج، شوګر او داسې نورو څخه دعاء وغوښتل، ددغه ناروغيو څخه رسول الله ﷺ پناه وغوښتل چې کوم چا ته ددغه ناروغيو څخه يو ناروغي لاحقه سي نو اکثر خلک د هغه سره ناسته ولاړه هم پرېږدي او د فيس او ابرص داسې ناروغي ده چې د هغه په وجه د ناروغ بدن بد معلومېږي همدارنګه هغه د بدن په اړه د ځان په ډول د انسانانو د صف څخه ووځي بيا دا چې دغه ناروغي د هميشه لپاره پر هغه وي چې هيڅکله نه ښه کيږي پر خلاف د نورو ناروغيو مثلا د تبې او سردرد او داسې نورو ناروغيو دا حال نه دى په دې کې تکليف کم وي او ثواب هم ډېر وي.

ابن مالک ﷫ وايي چې ددغه حديث خلاصه داده چې کومه ناروغي داسې وي چې خلک د هغه ناروغ څخه ليرې اوسي نه خپله ناروغ د نورو څخه جلا کيداى سي او نه نور خلک د هغه څخه ګټه تر لاسه کولاى سي او ناروغ د هغه ناروغۍ په وجه د حقوق الله او حقوق العباد د ادا کولو څخه عاجز وي نو ددغه ناروغيو څخه پناه غوښتل مستحب دي.

د علماؤ خيال دادى چې د جزام ناروغي متعدي نه ده يعني دغه ناروغي بل چا ته نه لګيږي مګر اکثر داسې کيږي چې د جزام ناروغ بدن د بل چا سره په لګېدو سره دغه ناروغي پيدا کيږي.

﴿۲۳۵۷﴾: وَعَنْ قُطْبَةَ ابْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

د حضرت قطبة بن مالک ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به فرمایل :

اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ مُنْكَرَاتِ الْأَخْلَاقِ وَالْأَعْمَالِ وَالْأَهْوَاءِ . رواه الترمذي

(اللهم اني ... والاهواء) اې الله ! زه ستا په ذریعه د بدو اخلاقو څخه، د بدو اعمالو څخه او د بدو غوښتنو څخه پناه غواړم . ترمذي.

**تخریج**: الترمذي في السنن ۵\۵۳۶، رقم: ۳۵۹۱.

**تشریح**: منکر هغه ته وایي چي د شریعت خیر پکښي نه وي یا شریعت د هغه بدي بیان کړې وي ، د اخلاقو څخه مراد باطني اعمال دي نو د منکر الاخلاق څخه د پناه غوښتلو مطلب دا سو چي اې الله ! زه ستا پناه غواړم د زړه د خرابو اعمالو څخه مثلاً کینه، حسد او داسي نورو څخه، د خرابو اعمالو څخه مراد ظاهري خراب اعمال دي او د خرابو خواهشاتو څخه خرابي عقیدې او غلط افکار مراد دي .

## د پناه غوښتلو یو جامع دعاء

﴿۲۳۵۸﴾: وَعَنْ شُتَيْرِ بْنِ شَكَلِ بْنِ حُمَيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قُلْتُ يَا نبي اللّٰهِ

حضرت شتیر بن شکل بن حمید د خپل پلار څخه روایت کوي چي هغه نبي کریم ﷺ ته وویل: اې د الله رسوله !

عَلِّمْنِي تعويذا تعوذ به قال قُلْ اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ سَمْعِي وَمِنْ شَرِّ

ما ته یو داسي دعاء وښیاست چي د هغه په ذریعه زه پناه غواړم، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : دغه دعاء وایه(اللهم ..... و شر مني) اې الله ! زه ستا په ذریعه د بد اوریدو څخه او د بد

بَصَرِي وَمِنْ شَرِّ لِسَانِي وَمِنْ شَرِّ قَلْبِي وَمِنْ شَرِّ مَنِيِّي . رواه ابوداؤد والترمذي والنسائي .

لیدو څخه، دبد ویلو څخه ، د بد زړه څخه او د شر څخه د مني پناه غواړم . ترمذي، ابوداؤد، او نسائي

**تخریج**: ابوداود في السنن ۲\ ۱۹۳، رقم: ۱۵۵۱، والترمذي ۵\ ۴۸۹، رقم: ۳۴۹۲، والنسائي ۸\ ۲۵۵، رقم: ۵۴۴۴.

کي سستي راسي ، نقل سوي دي چي کوم څوک قرآن کريم په يادوي هغه ددغه آفاتو څخه خوندي وي .

## د سپورمۍ د بې نوره کېدو څخه پناه

﴿۲۳۶۰﴾: وَعَنْ مُعَاذٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اسْتَعِيذُوا بِاللّٰهِ

د حضرت معاذ ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي تاسو پناه غواړئ د الله

مِنْ طَمَعٍ يَهْدِي إِلَى طَبْعٍ . رواه احمد والبيهقي في الدعوات الكبير .

تعالى په ذريعه د طمع څخه پناه غواړئ چي د عيب په لور لارښوونه کوي . احمد او بيهقي

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۵\۲۳۲.

**تشريح**: د طمع معنى ده د الله تعالى د مخلوق څخه د مال اميد درلودل او د طبع اصلي معنى توري ته زنګ لګېدل مګر دلته ددغه لفظ څخه مراد عيب دى نو د پورتني حديث سره سم د طمع څخه پناه غوښتلو مفهوم دادى چي زه د الله تعالى پناه غواړم دطمعي څخه چي ما دغه مقام ته ورسوي چي زما ژوند عيب داره سي او دا عيب دى چي د دنيا والا په مخکي تواضع او خاکساري اختيار سي د متکبرينو او بدعملو شتمنو خلکو په مخکي خپل ځان ذليل کول د ريا لپاره يو کار کول د شتمنو خلکو بې ځايه تعريف او د هغوئ چوپړ کول او دا ډول هغه ذليل حرکتونه چي د طمع په حالت کي رامنځته کيږي .

خلاصه دا چي د طمع څخه پرهيز کول ضروري دي ځکه چي دا هغه حقيره جذبه ده چي د انسان د نفس ، عزت، خپلواکۍ او ضمير لپاره ډېر لوى عيب دى چي د هغه په وجه انسان نه يوازي دا چي په دنيوي توګه ذليل او حقير سي بلکه په ديني توګه هم د هغه روح د نمو او پاکۍ لپاره ديو ناسور څخه کم نه وي چي کرار کرار د دين په ټولو کونجانو کي په مختلفو طريقو سره ګډون کوي ځکه ويل سوي دي چي طمع ددين د فساد بيخ دى او پرهيزګاري د دين د اصلاح ذريعه ده .

شيخ علي متقي رحمه الله فرمايي چي طمع دې ته وايي چي د هغه مال اميد ولري چي د هغه په تر لاسه کولو کي شک وي که د هغه تر لاسه کول يقيني وي لکه پر يو چا باندي حق وي يا يو چا وعده ورسره کړې وي يا د چا سره دومره مينه لري چي د هغه هر خواهش پوره کول نو په داسي صورت کي د هغه څخه توقع درلودلو ته طمع نه وايي .

﴿۲۳۶۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَظَرَ إِلَى الْقَمَرِ فَقَالَ يَا

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ مياشتي ته وكتل او ما ته يې

عَائِشَةُ اسْتَعِيذِي بِاللّٰهِ مِنْ شَرِّ هَذَا فَإِنَّ هَذَا هُوَ الْغَاسِقُ إِذَا وَقَبَ . رواه الترمذي

وفرمايل : اې عائشې ! د الله تعالى په ذريعه ددې د شر څخه پناه غواړه ځكه چي دا تاريكي خپرونكى ده هر كله چي بې نوره سي. ترمذي

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۴۲۱، رقم: ۳۳۶۶.

**تشريح**: د قرآن كريم په سورت قل اعوذ برب الفلق كي چيري چي د نورو شيانو څخه د پناه غوښتلو حكم سوى دى نو د غاسق اذا وقب ذكر هم دى يعني پناه غواړئ د تيارو خپرونكو د شر څخه كله چي هغه بې نوره سي، د رسول الله ﷺ ارشاد مبارک د غاسق اذا وقب وضاحت وفرمايه چي ددې څخه مراد سپوږمى ده كله چي يې تندره ونيسي نو ددې څخه د پناه غوښتلو سبب دادى چي ددې په تندره نيولو كي د الله تعالى دنښو څخه يوه نښه ده چي دا د بلاگانو نازلېدو ته اشاره وركوي، په حديثو كي راځي چي كله سپوږمى تندره نيول نو هغه وخت به رسول الله ﷺ په ېېره كي ودرېدى، مگر دا خبره بايد په ذهن كي وي چي د بلاوو د نازلېدو څخه هغه بلاوي او حادثات مراد نه دي كوم چي منجم يا بدعقيدې والا خلک يې د لمر او سپوږمى په تندره نيولو كي ښيي ځكه د اهل اسلام په نزد ددې هيڅ اعتبار نه سته بلكه ددې څخه مراد د عبرت مواقع دي مثلا كله چي سپوږمى تندره ونيسي نو هغه د يو لوى عبرت وخت دى چي هر انسان ته احسا سوركوي چي كله سپوږمى سره د خپل نورايت خپل نور ضائع كړي او هغه ته د خپل نور پر بقاء قدرت حاصل نه وي نو داسي نه وي چي زما ايمان او زما د عمل نور هم ولاړ سي ځكه نو ددې څخه د پناه غوښتلو حكم سوى دى ، ددغه حديث څخه معلومه سوه چي د غاسق اذا وقب څخه مراد د سپوږمى تندره نيول دي مگر اكثر مفسرين د من شر غاسق اذا وقب په تفسير كي وايي چي ددې څخه مراد تياره شپه ده . والله اعلم.

### د نفس د بدوالي څخه پناه

﴿۲۳۶۲﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ ابْنِ حُصَيْنٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

: حضرت عمران بن حصين ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ زما پلار حصين ته (د اسلام

لِأَبِي يَا حُصَيْنُ كَمْ تَعْبُدُ الْيَوْمَ إِلَهًا قَالَ أَبِي سَبْعَةً سِتَّةً فِي الْأَرْضِ وَوَاحِدًا فِي

راوړلو څخه وړاندي) وفرمايل : اې حصين ! ته نن د څومره خدايانو عبادت كوې ؟ زما پلار ورته وويل: شپږ د مځكي د معبودانو (بتانو) او يو

السَّمَاءِ قَالَ فَأَيُّهُمْ تَعُدُّ لِرَغْبَتِكَ وَرَهْبَتِكَ قَالَ الَّذِي فِي السَّمَاءِ قَالَ يَا

د آسمان د معبود، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : اې حصين ! په دې معبودانو كي ته د چا څخه د خير اميد لرې او د چا څخه بيرېږې ؟ زما پلار ورته وويل : د هغه چا څخه چي په آسمان كي دئ

حُصَيْنُ أَمَا إِنَّكَ لَوْ أَسْلَمْتَ عَلَّمْتُكَ كَلِمَتَيْنِ تَنْفَعَانِكَ قَالَ فَلَمَّا أَسْلَمَ حُصَيْنٌ

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : اې حصين! كه ته اسلام قبول كړې نو زه به تا ته دوې كلمې وښيم چي تا ته به گټه ورسوي ، د عمران بيان دئ چي كله حصين اسلام قبول كړ

قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ عَلِّمْنِيَ الْكَلِمَتَيْنِ اللَّتَيْنِ وَعَدْتَنِي فَقَالَ قُلْ اللَّهُمَّ أَلْهِمْنِي

نو نبي كريم ﷺ ته يې عرض وكړ اې د الله رسوله ! ما ته هغه دوې كلمې وښيه چي تا سو يې وعده كړې وه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : ته دغه دعاء وايه : (اللهم .... من شر نفسي)

رُشْدِي وَأَعِذْنِي مِنْ شَرِّ نَفْسِي . رواه الترمذي

اې الله ! زما په زړه كي هدايت واچوې او زما د نفس د شر څخه پناه راكړې . ترمذي.

**تخريج** : الترمذي في السنن ۵\ ۴۸۵، رقم: ۳۴۸۳.

**تشريح** : او يو په آسمان كي دى: دا خبره د حضرت حصين ﷺ د خپل گمان مطابق وه ځكه چي هغه د ايمان او اسلام په دولت تر دغه وخته برخمن نه وو هغه ته څه معلومه وه چي د الله تعالى لپاره يو ځاى ټاكلى نه دى هغه خو د مځكي او آسمان پر يوه يوه ذره باندي حاوي دى د هغه ذات د يو مقام او ځاى سره مختص نه دى يا به دا وويل سي چي د هغه د دغه خبري مفهوم دا وو چي هغه الله چي د هغه په آسمان كي ملائكي عبادت كوي .

## په خوب کي د بيري څخه پناه

﴿۲۳۶۳﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
حضرت عمرو بن شعيب د خپل پلار څخه او هغه د پلار څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا فَزِعَ أَحَدُكُمْ فِي النَّوْمِ فَلْيَقُلْ أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللّٰهِ التَّامَّاتِ
وفرمايل: په تاسو کي چي څوک په خوب کي بيريږي نو هغه ته پکار ده چي دا دعاء ووايي: (اعوذ بكلمات الله ... يحضرون) پناه غواړم د الله د پوره کلماتو په ذريعه

مِنْ غَضَبِهِ وَعِقَابِهِ وَشَرِّ عِبَادِهِ وَمِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِينِ وَأَنْ يَحْضُرُونِ
د هغه د غضب او عذاب څخه او د هغه د بندګانو د شر څخه او د شيطان د وسوسو. څخه او ددې څخه چي شيطان ما ته راسي،

فَإِنَّهَا لَنْ تَضُرَّهُ وَكَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ ويعلمها مَنْ بَلَغَ مِنْ وَلَدِهِ وَمَنْ لَمْ
نو هغه ته به شيطان هيڅکله تاوان ونه رسوي، عبدالله بن عمرو ﷺ به دغه دعاء خپلو زامنو ته ښودل يعني بالغ هلكانو ته به يې يادول

يَبْلُغْ مِنْهُمْ كَتَبَهَا فِي صَكٍّ ثُمَّ عَلَّقَهَا فِي عُنُقِهِ. رواه ابوداؤد والترمذي و هذا لفظه
او نابالغو ته به يې ليکئ او په غاړه کي به يې وراچوئ. ابوداؤد او ترمذي.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۴\۲۱۸، رقم: ۳۸۹۳، والترمذي ۵\۵۰۶، رقم: ۳۵۲۸.

**تشريح**: ددغه حديث څخه معلومه سوه چي په خوب کي بېرېدل د شيطان تصرف او د هغه د شرارت په وجه وي او دا مسئله هم معلومه سوه چي په غاړه کي تعويذ اچول جائز دي، په دې مسئله کي که څه هم د علماؤ اختلاف دی مګر زيات صحيح او مختاره خبره داده چي حرزات په غاړه کي اچول حرام او مکروه دي مګر داسي تعويذ په غاړه کول جائز دي چي په هغه کي د قرآن کريم آياتونه يا د الله تعالی اسماء مبارک ليکلي وي.

## د جنت غوښتنه او د دوږخ څخه پناه

﴿۲۳۶۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَأَلَ اللّٰهَ
د حضرت انس ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د الله تعالی څخه درې واره

الْجَنَّةَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ قَالَتِ الْجَنَّةُ اللَّهُمَّ أَدْخِلْهُ الْجَنَّةَ وَمَنْ اسْتَجَارَ مِنَ النَّارِ

جنت وغواړي نو جنت وايي اې الله ! دا كس په جنت كي داخل كړې او څوك چي د دوږخ څخه درې واره

ثَلَاثَ مَرَّاتٍ قَالَتِ النَّارُ اللَّهُمَّ أَجِرْهُ مِنَ النَّارِ . رواه الترمذي و النسائي .

پناه وغواړي نو دوږخ وايي اې الله ! دى د اور څخه وساتې. ترمذي او نسائي

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\۶۰۳، رقم: ۲۵۷۲، والنسائي ۸\۲۷۹، رقم: ۵۵۲۱.

**تشريح**: درې واره: كه په يوه مجلس كي دغه دعاء وكړل سي او كه په څو مجلسو كي مگر ضروري ده چي د دعاء پر وخت حضور، اخلاص، تضرع او عاجزي همنوا وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د جادو وغيره څخه د ساتني دعاء

﴿۲۳۶۵﴾: وَعَنِ الْقَعْقَاعِ أَنَّ كَعْبَ الْأَحْبَارِ قَالَ لَوْلَا كَلِمَاتٌ أَقُولُهُنَّ لَجَعَلَتْنِي

د حضرت قعقاع رضي الله عنه څخه روايت دئ چي كعب احبار وويل كه ما دا دعاء نه ويلاى نو

يَهُودُ حِمَارًا فَقِيلَ لَهُ وَمَا هُنَّ فَقَالَ أَعُوذُ بِوَجْهِ اللَّهِ الْعَظِيمِ الَّذِي لَيْسَ

يهوديانو به را څخه خر جوړ كړى واى، پوښتنه وسول هغه كومه دعاء ده؟ هغه وويل: (اعوذ بوجه .... وذرا وبرا) پناه غواړم د الله تعالى د لوى ذات په ذريعه چي تر هغه

شَيْءٌ أَعْظَمَ مِنْهُ وَبِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّاتِ الَّتِي لَا يُجَاوِزُهُنَّ بَرٌّ وَلَا فَاجِرٌ

هيڅوك لوى ذات نسته او د هغه د پوره كلمو په ذريعه چي د هغه څخه هيڅ نيكي او هيڅ بدي نه تيرېږي

وَبِأَسْمَاءِ اللَّهِ الْحُسْنَى مَا عَلِمْتُ مِنْهَا وَمَا لَمْ أَعْلَمْ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ وَذَرَأَ وَبَرَأَ. رواه مالك

او د الله تعالى د هغه نومانو په ذريعه كوم چي ما ته معلوم دي او كوم چي ما ته معلوم نه دي د هغه شي د بدى څخه چي پيدا يې كړل او تار په تار يې كړل او برابر يې كړل يعني كوم شيان چي يې متناسب الاعضاء جوړ كړل. مالک.

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۲\۱۲ ۹۵۱، رقم: ۱۲.

**تشريح**: كعب الاحبار د يهودو د قوم لوى پوه سړى وو كه څه هم د رسول الله ﷺ په زمانه كي وو مگر د رسول الله ﷺ ليدنه او صحبت د شرف څخه محروم پاته سو بيا وروسته د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه كي د ايمان او اسلام په دولت برخمن سو ، د كعب بيان دى چي كله ما ايمان راوړ او مسلمان سوم نو يهود زما مخالف سول هغوئ زما په باره كي دومره كينه درلودل كه د هغوئ حركتونه كامياب سوى واى او ما دغه دعاء نه ويلاى نو هغوئ به په جادو كولو سره زما څخه خرجوړ كړى واى يعني زه به يې ذليل ، بې عقله او د خره په ډول مسلوب العقل كړى واى .

د الله تعالى پوره كلمات: ددې څخه مراد قرآن كريم دى ، د هغه څخه د تجاوز كولو معنى داده چي د هغه ثواب او عذاب څخه هيڅوک هم خارج نه وي مثلا الله تعالى په قرآن كريم كي چي كوم چا ته د اجر او ثواب د وركولو وعده كړې ده يا د كوم چا چي يې په عذاب كي د اخته كېدو فيصله كړې ده يا د كومو شيانو بيان يې چي كړى دى هغه ټول بلا شبه پوره كيږي او په هغو كي څه تغير او تبديل ممكن نه دى يا د الله تعالى د كلماتو څخه مراد د الله تعالى صفات او علوم دى چي د هغه څخه هيڅ شى وتلى نه دى دا ټول يې محيط كړي دي .

### د كفر څخه پناه غوښتل

﴿۲۳۶۶﴾: وَعَنْ مُسْلِمِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ كَانَ أَبِي يَقُولُ فِي دُبُرِ الصَّلَاةِ اللَّهُمَّ

د حضرت مسلم بن ابي بكرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زما پلار به د هر لمانځه وروسته دغه دعاء

إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكُفْرِ وَالْفَقْرِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ فَكُنْتُ أَقُولُهُنَّ فَقَالَ أَبِي أَيْ

ويل : (اللهم اني ....وعذاب القبر) اې الله ! زه ستا په ذريعه د كفر څخه، د مفلسى څخه او د قبر د عذاب څخه پناه غواړم، نو ما هم دا دعاء ويل پيل كړل زما پلار را څخه پوښتنه وكړه اې

بُنَيَّ عَمَّنْ أَخَذْتَ هَذَا قُلْتُ عَنْكَ قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

زويه ! دغه دعاء تا د چا څخه زده كړې ده ما ورته وويل :ستاسو څخه، نو هغه راته وويل : دغه

كَانَ يَقُولُهُنَّ فِي دُبُرِ الصَّلَاةِ . رواه النسائي والترمذي الا انه لم يذكر في دبر الصلوة و روي احمد لفظ الحديث و عنده في دبر كل صلوة .

دعاء به د هر لمانځه وروسته رسول الله ﷺ فرمايل، ددې روايت امام نسائي او ترمذي کړی دئ مګر دا چې د لمانځه وروسته دا الفاظ ذکر نه دي او د امام احمد په روايت کي دا الفاظ هم سته.

**تخريج**: سنن النسائي ۳\ ۷۳، رقم: ۱۳۴۷، والترمذي ۵\ ۴۹۴، رقم: ۳۵۰۳، واحمد في المسند ۵\ ۴۴.

﴿۲۳۶۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

د حضرت ابو سعيد ﷺ څخه روايت دئ چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي چې دغه دعاء به

أَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الْكُفْرِ وَالدَّيْنِ فقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَتَعْدِلُ الْكُفْرُ بِالدَّيْنِ

يې ويل: (اعوذ بالله.....والدين) زه د کفر او پور څخه د الله تعالی پناه غواړم، يو سړي پوښتنه وکړه اې د الله رسوله! ايا تاسو کفر د پور سره سم ګڼئ؟

قَالَ نَعَمْ، وَ فِيْ رِوَايَةٍ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِكَ مِنَ الْكُفْرِ وَالْفَقْرِ قَالَ رَجُلٌ وَيُعْدَلاَنِ قَالَ نَعَمْ. رواه النسائي.

رسول الله ﷺ وفرمايل: هو، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي: (اللهم اني اعوذبک من الكفر والفقر) يو سړي وويل: ايا کفر او فقر سره برابر دي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل هو. نسائي.

**تخريج**: سنن النسائي ۸\ ۲٦۴، رقم: ۵۴۷۳.

**تشريح**: کفر او پور ته يې برابر ځکه وفرمايل چې د پور په وجه انسان درواغ وايي، چمبازي کوي او د وعدې خلاف ورزي کوي او ظاهره ده چې د فقر په وجه انسان بې صبري کوي د خپل قسمت څخه ناراضه کيږي د تقدير څخه ګيله کوي او د خپل ژبي څخه داسي الفاظ راباسي کوم چي د کفر باعث وي.

===========

# بَابُ جَامِعِ الدّعَاءِ

## جامع دعاوي

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### د رسول الله ﷺ د بخښني دعاء

﴿۲۳۶۸﴾: عَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ كَانَ يَدْعُو بِهٰذَا الدُّعَاءِ اللهم اغْفِرْ لِي خَطِيئَتِي وَجَهْلِي وَإِسْرَافِي فِي أَمْرِي وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي جِدِّيْ وَهَزْلِي و خَطَائِيْ وَعَمْدِيْ وَكُلُّ ذٰلِكَ عِنْدِي اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ وَمَا أَسْرَرْتُ وَمَا أَعْلَنْتُ أَنْتَ اَعْلَمُ بِهِ مِنِّيْ اَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَأَنْتَ الْمُؤَخِّرُ وَأَنْتَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ . متفق عليه

د حضرت ابو موسى اشعري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به دغه دعاء ويل: (اللهم اغفرلي .... على كل شئ قدير) اې الله! زما خطا و بخښې، زما د ناپوهۍ په كارو كي زما زياتي او هغه ګناه چي د هغه په اړه زما څخه تاته زيات خبر دئ، اې الله! زما هغه خبره و بخښې چي ما په اراده او پوهه سره كړې ده او هغه خبره چي ما په خندا او شوق سره كړې ده او هغه خبري چي زما څخه په هيره سوي دي او هغه چي ما په قصد سره كړي دي او دا ټولي خبري په ما كښي دي، اې الله! و بخښې زما مخكني او وروستني ګناهونه، پټ ګناهونه او ښكاره ګند او هغه ګناهونه چي د هغو زما څخه تاته زيات خبر دئ، ته وړاندي كونكى او وروسته كونكى يې او ته پر هر شي توانا يې. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في السنن (فتح الباري)؛ ۱۱\۱۹٦، رقم: ٦۳۹۸، ومسلم ۴\۲۰۸۷، رقم: ۷۰- ۲۷۱۹.

**تشريح**: وكل ذالک عندي: (او دا ټولي خبري په ما كي سته) دغه الفاظ رسول الله ﷺ د الله تعالى په دربار كي د خپل عجز او خاكسارۍ او د خپل عبديت د اظهار له كبله وويل، كنه د رسول الله ﷺ ذات مبارک خو د ټولو ګناهو او ټولو خطاوو څخه پاک وو او په حقيقت كي دا د

امت لپاره تعلیم دی چي دا د ول د الله تعالی څخه بخښنه او مغفرت غوښتل کیږي .

## د دین او دنیا لپاره دعاء

﴿۲۲۶۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به فرمایل :

اللَّهُمَّ أَصْلِحْ لِي دِينِي الَّذِي هُوَ عِصْمَةُ أَمْرِي وَأَصْلِحْ لِي دُنْيَايَ الَّتِي فِيهَا

(اللهم اصلح .....من کل شر) اې الله ! زما دین درست کړې چي زما د کارو ساتونکی دئ، او زما دنیا درسته کړې هغه دنیا چي په هغه کي

مَعَاشِي وَأَصْلِحْ لِي آخِرَتِي الَّتِي فِيهَا مَعَادِي وَاجْعَلْ الْحَيَاةَ زِيَادَةً لِي فِي كُلِّ

زما معاش دئ او زما آخرت درست کړې چي هغه ته زما تلل دي او زما ژوند زیات کړې چي د

خَيْرٍ وَاجْعَلْ الْمَوْتَ رَاحَةً لِي مِنْ كُلِّ شَرٍّ . رواه مسلم

نیکۍ سبب سي او مرګ زما لپاره د هري بدۍ څخه د راحت او آرام سبب جوړ کړې . مسلم .

**تخريج**: مسلم في الموضع نفسه، رقم: ۷۱- ۲۷۲۰.

**تشریح**: د دنیا صحیح کېدل او اصلاح په هغه رزق سره کیږي کوم چي په حلالو طریقو او غیر مشتبه وسایلو سره تر لاسه سوی وي په دغه رزق سره په ښه ډول ګزاره کیږي د طاعت قوت تر لاسه کیږي زړه ته سکون او اطمینان تر لاسه کیږي او په عبادت کي د خلل او تشویش څخه خالي وي ، د آخرت صحیح کېدل او اصطلاح د نیکو عقیدو او ښه اعمالو پر توفیق باندي کیږي چي د عذاب څخه د ساتني سبب او د هغه جهان سعادتونو ته د رسیدو ذریعه ده .

د دنیا او آخرت د الفاظو مطلب دادی چي زما د ژوند خاتمه پر کلمه شهادت، ښه عقیدې او توبه کولو څخه وروسته وي چي زما مرګ د دنیا د مشقتونو او مصیبتو څخه د خلاصون او د آخرت د راحت د تر لاسه کولو باعث سي .

## د هدایت دعاء

﴿۲۲۷۰﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُودٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به

يَقُولُ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْهُدَى وَالتُّقَى وَالْعَفَافَ وَالْغِنَى. رواه مسلم

فرمايل (اللهم ...تر ...والغنى پوري) اې الله ! زه ستا څخه هدايت، پرهيزګاري ، پاکدامني او غنا غواړم، مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۴\۲۰۸۷، رقم: ۷۲– ۲۷۲۱.

**تشريح**: د حديث د آخري برخي مطلب دادی چي کله ته د الله تعالی په دربار کي د هدايت د طلب لپاره خواست وکړې نو ستا په ذهن کي دا خبره کېدل پکار دي چي ما ته هغه لارښوونه او هدايت حاصل سي کوم چي پر سيده لاره باندي تلونکي ته حاصلیږي او کله چي ته راستي غواړې نو دا خيال ساته چي ما ته داسي راستي او استقامت تر لاسه سي لکه څرنګه چي غشی سيده وي ، مقصد دادئ چي د آخري درجې او مکمل هدايت طلب کوه چي الله تعالی دي په پوره هدايت او مکمل راستيې سره ونازوي .

﴿۲۳۷۱﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْ اللَّهُمَّ

د حضرت علي ﷺ څخه روايت دئ چي ما ته رسول الله ﷺ وفرمايل : ته ووايه : (اللهم

اهْدِنِي وَسَدِّدْنِي وَاذْكُرْ بِالْهُدَى هِدَايَتَكَ الطَّرِيقَ وَبِالسَّدَادِ سَدَادَ السَّهْمِ .

رواه مسلم

اهدني وسددني) اې الله ! ما ته هدايت وکړې او ما سيده کړې، هر کله چي ته هدايت وغواړې نو د لاري سيده تلل په خيال کي ساته او هر کله چي د سيده والي سوال کوې نو د غشي د سم والي خيال کوه . مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصيح ۴\۲۰۹۰، رقم: ۷۸، ۲۶۹۷.

## د نوي مسلمان دعاء

﴿۲۳۷۲﴾: وَعَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ عَنْ أَبِيهِ قَالَ كَانَ الرَّجُلُ إِذَا أَسْلَمَ عَلَّمَهُ

حضرت ابو مالک اشجعي ﷺ د خپل پلار څخه روايت کوي چي کله به يو سړي اسلام قبول کړ

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّلَاةَ ثُمَّ أَمَرَهُ أَنْ يَدْعُوَ بِهٰؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ اللَّهُمَّ

نو رسول الله ﷺ به هغه ته لمونځ ښودئ او بيا به يې حکم ورکوئ چي په دغه تورو سره دعاء کوه : (اللهم ..... وارزقني) اې الله !

اغْفِرْ لِي وَارْحَمْنِي وَاهْدِنِي وَعَافِنِي وَارْزُقْنِي . رواه مسلم

ما و بخښې پر ما رحم وکړې ، ما ته هدايت وکړې ، ما په عافيت کي ولرې او رزق راکړې . مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۴\۲۰۷۳، رقم: ۳۵- ۲۶۹۷.

## د دنيا او اخرت د ټولو مقصدو دعاء

﴿۲۳۷۳﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ أَكْثَرُ دُعَاءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّهُمَّ آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ . متفق عليه

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به ډير وخت دغه دعاء کول : (اللهم ربنا ..... النار) اې الله ! موږ ته په دنيا کي هم نيکي راکړې او په آخرت کي هم او موږ د دوږخ د ر څخه خوندي کړې . بخاري او مسلم

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۱\۱۹۱، رقم: ۶۳۸۹، ومسلم ۴\۲۰۷۰، رقم: ۲۶- ۲۶۹۰.

**تشريح**: رسول الله ﷺ دغه دعاء ځکه ډېره غوښتل چي دا يو جامع دعاء ده چي په هغه کي د دين او دنيا ټول مقاصد سته او بيا دا چي دغه دعاء په قرآن کريم کي نازل سوې ده .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### يو جامع دعاء

﴿۲۳۷۴﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُو يَقُولُ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به داسي دعاء ويل :

رَبِّ أَعِنِّي وَلَا تُعِنْ عَلَيَّ وَانْصُرْنِي وَلَا تَنْصُرْ عَلَيَّ وَامْكُرْ لِي وَلَا تَمْكُرْ عَلَيَّ

(رب اعني .... سخيمة صدري) اې زما پروردګاره ! زما مرسته وکړې او زما خلاف د چا مرسته مه کوې ، ما ته فتح راکړې او زما په مقابل کي بل چا ته فتح مه ورکوې ، او زما لپاره تدبير وکړې او زما خلاف د چا لپاره تدبير مه کوې

وَاهْدِنِي وَيَسِّرِ الْهُدَى لِي وَانْصُرْنِي عَلَى مَنْ بَغَى عَلَيَّ رَبِّ اجْعَلْنِي لَكَ شَكَّارًا

او ما ته هدايت وكړې او زما لپاره پر سمه لار تلل آسان كړې د هغه چا خلاف زما مرسته وكړې چا چي پر ما زياتى كړى وي، اې پروردګاره! ما خپل شكر ګزار جوړ كړې،

لَكَ ذَكَّارًا لَكَ رَهَّابًا لَكَ مِطْوَاعًا لَكَ مُخْبِتًا إِلَيْكَ أَوَّاهًا مُنِيبًا رَبِّ تَقَبَّلْ تَوْبَتِي

خپل ذكر كونكى مي جوړ كړې، د خپل ذات څخه بيرېدونكى مي جوړ كړې، خپل فرمانبردار مي جوړ كړې خپل په لور عاجزي كونكى، زارى كونكي، او رجوع كونكى مي جوړ كړې، اې پروردګاره! زما توبه قبوله كړې

وَاغْسِلْ حَوْبَتِي وَأَجِبْ دَعْوَتِي وَثَبِّتْ حُجَّتِي وَسَدِّدْ لِسَانِي وَاهْدِ قَلْبِي وَاسْلُلْ

زما ګناهونه ورژوې زما دعاء قبوله كړې زما حجت او دليل باقي وساتې زما توبه ربښتوني جوړه كړې، زما زړه ته هدايت راكړې

سَخِيمَةَ صَدْرِي. رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة.

او زما د سينې توروالى وباسې. ترمذي، ابوداؤد او ابن ماجه.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\ ۵۱۷، رقم ۳۵۵۱، وابوداود ۲\ ۱۷۵، رقم: ۱۵۱۰، وابن ماجه ۲\ ۱۲۵۹، رقم: ۳۸۳۰.

**د لغاتو حل**: سخيمة: اى غشه وغله وحقده: (تورولى).

**تشريح**: د مكر معنى د چم ده مګر كله چي د دغه لفظ نسبت الله تعالى ته كيږي نو ددې څخه مراد د دين او د اسلام پر دښمنانو باندي داسي ځاى څخه د مصيبتو نازلېدل چيري چي ګمان هم نه كيږي. د سينې د تورولي څخه مراد كينه، بغض، حسد او دا ډول نور خصلتونه دي.

### د ايمان وروسته تر عافيت لوى دولت نسته

﴿۲۲۷۵﴾: وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ قَالَ قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ

د حضرت ابو بكر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي (يوځل) رسول الله ﷺ پر منبر ودريدئ

ثُمَّ بَكَى فَقَالَ اسْأَلُوا اللهَ الْعَفْوَ وَالْعَافِيَةَ فَإِنَّ أَحَدًا لَمْ يُعْطَ بَعْدَ الْيَقِينِ

او بيا يې وژړل، د هغه وروسته يې وفرمايل : د الله تعالى څخه بخښنه او عافيت غواړئ ځکه چې د ايمان راوړلو څخه وروسته

خَيْرًا مِنَ الْعَافِيَةِ . رواه الترمذي وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث غريب اسنادا .

تر عافيت غوره شى هيڅا ته نه دئ ورکړل سوى . ترمذي، ابن ماجة، ترمذي ويلي دي دا حديث د اسناد په اعتبار حسن غريب دئ.

**تخريج** : الترمذي في السنن ۵\۵۲۱، رقم: ۳۵۵۸، وابن ماجه ۲\۱۲۶۵، رقم: ۳۸۴۹.

**تشريح** : رسول الله ﷺ پوهېدى چي زما د امت افراد به د نفس په خواهشاتو هوس او حرص كي اخته وي ځكه رسول الله ﷺ د دغه تصور سره هم په ژړا سو چي زما د امت خلک يې د ايمان او يقين په دولت د اسلام هدايت او زما روزنه ، ايثار او استغناء، ديانت او امانت، عزت او خپلواكي، پاک لمني او پرهيزګاری پر معيار نه يوازي ابله کړل بلكه هغوئ د اخلاق حميده او خصائل شريفه بذات خود معيار جوړ کړل ، يو داسي وخت به هم راسي چي د دغه امت خلک به د شيطان په مكر او فريب كي اخته سي او د خپل نفس د خواهشاتو په تابع كېدو سره به د حرص او هوس غلام جوړ سي، رسول الله ﷺ د رشد او هدايت د منبر څخه دا حكم وفرمايه چي خلک د الله تعالى څخه د خپل مغفرت او بخښني طلب وكړي او عافيت وغواړي چي الله تعالى هغوئ د آفاتو او مصيبتو څخه خوندي او په امان كړي ، د عافيت معنى ده سلامتي تر لاسه كېدل په دين كي د فتنې څخه او د بدن د خرابو ناروغيو او سختيو څخه په امن كېدل .

## تر ټولو غوره دعاء د عافيت غوښتنه ده

﴿۲۳۷۶﴾ : وَعَنْ اَنَسٍ أَنَّ رَجُلًا جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا

د حضرت انس ﷜ څخه روايت دئ چي يو سړى د رسول الله ﷺ په خدمت كي عرض وكړ چي اې

رَسُولَ اللّٰهِ أَيُّ الدُّعَاءِ أَفْضَلُ قَالَ سَلْ رَبَّكَ الْعَافِيَةَ وَالْمُعَافَاةَ فِي الدُّنْيَا

د الله رسوله ! كومه دعاء غوره ده ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : د خپل پروردګار څخه عافيت او د دين او دنيا معافات غواړه ،

وَالْآخِرَةِ ثُمَّ أَتَاهُ فِي الْيَوْمِ الثَّانِي فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَيُّ الدُّعَاءِ أَفْضَلُ فَقَالَ

دويمه ورځ هغه سړی بیا راغلئ او عرض یې وکړ اې دالله رسوله ! کومه دعاء غوره ده ؟ رسول الله ﷺ هغه جواب ورکړ

لَهُ مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ أَتَاهُ فِي الْيَوْمِ الثَّالِثِ فَقَالَ لَهُ مِثْلَ ذٰلِكَ قَالَ فَإِذَا أُعْطِيتَ

کوم چي یې وړاندي ورکړی وو، دریمه ورځ بیا هغه سړی راغلی او همدغه پوښتنه یې وکړه، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : هر کله چي تر لاسه سي

الْعَافِيَةَ وَالْمُعَافَاةَ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ فَقَدْ أَفْلَحْتَ . رواه الترمذي وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب اسنادا .

تاته عافیت او ددین معافات نو تا خلاصون تر لاسه کړ . ترمذي، ابن ماجة ، او ترمذي ویلي دي دا حدیث د اسناد په اعتبار حسن غریب دئ .

**تخريج**: الترمذي في السنن ٥\٤٩٩، رقم: ٣٥١٢، وابن ماجه ٢\١٢٦٥، رقم: ٣٨٤٨.

### د الله جل جلاله د محبت لپاره دعاء

﴿٢٣٧٧﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ يَزِيدَ الْخَطْمِيِّ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبد الله بن یزید الخطمي رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به په دعاء کي داسي

وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ فِي دُعَائِهِ اللّٰهُمَّ ارْزُقْنِي حُبَّكَ وَحُبَّ مَنْ يَنْفَعُنِي حُبُّهُ

فرمایل: (اللهم ارزقني...... فیما تحب) اې الله ! ما ته خپل محبت راکړې او د هغه چا مینه راکړې چي د هغه محبت ما ته ګټه ورسوي،

عِنْدَكَ اللّٰهُمَّ مَا رَزَقْتَنِي مِمَّا أُحِبُّ فَاجْعَلْهُ قُوَّةً لِي فِيمَا تُحِبُّ اللّٰهُمَّ وَمَا

اې الله ! څه چي تا ما ته د هغه شي څخه راکړي دي چي هغه زه خوښوم نو زما د قوت ذریعه یې جوړه کړې ، په هغه خبره کي چي ته یې خوښوې ، اې الله! څه چي تا

زَوَيْتَ عَنِّي مِمَّا أُحِبُّ فَاجْعَلْهُ فَرَاغًا لِي فِيمَا تُحِبُّ . رواه الترمذي

د هغه شيانو څخه چي هغه زه خوښوم منع كړي دي نو ته هغه شى زما د فراغت سبب وګرځوې په هغه شي كي چي ته يې خوښوي. ترمذي.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۴۸۸، رقم: ۳۴۹۱.

**تشريح**: د دعاء د آخري الفاظو مطلب دادى چي تا د مال او زر څخه ما ته څه نه دي راكړي هغه زما لپاره په خپل عبادت كي د بوختيا سبب جوړ كړې چي ما ته د قناعت او توكل دولت په برخه سي او هغه مال او زر چي ما ته تر لاسه سوي نه دي د هغه څخه په بې پروا كېدو پر ته مانع ستا په عبادت كي بوخت اوسم او خلاصه د دعاء د آخري دوو جملو داده كه ته ما ته د دنيا نعمتونه راكړې نو بيا د هغه د شكر ادا كولو توفيق هم راكړې چي زما شمېر د شكر كونكو څخه سي او كه ما ته هغه نعمتونه حاصل نه وي نو زما زړه فارغ كړې په دې توګه چي زه د هغه څخه بې پروا سم زما زړه په هغه كي مه لګوه چي زه په پوره اطمينان سره ستا په عبادت كي بوخت اوسم او د جزع او فزع شكايت نه كوم چي زما شمېر د صبر كونكو فقيرانو څخه وي.

## يو خاص دعاء

﴿۲۳۷۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَلَّمَا كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُومُ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي كله به رسول الله ﷺ ولاړېدئ

مِنْ مَجْلِسٍ حَتّٰى يَدْعُوَ بِهٰؤُلَاءِ الدَّعَوَاتِ لِأَصْحَابِهِ اللّٰهُمَّ اقْسِمْ لَنَا مِنْ

د خپلو اصحابو د مجلس څخه نو هغوئ ته به يې دا سي دعاء كول: (اللهم اقسم .... يرحمنا) اې الله! موږ ته خپل دومره بيره راكړې

خَشْيَتِكَ مَا تحول به بَيْنَنَا وَبَيْنَ مَعَاصِيكَ وَمِنْ طَاعَتِكَ مَا تُبَلِّغُنَا بِهِ

چي زموږ او د ګناهو په منځ كي حائل سي او موږ ته ستا د طاعت دومره توان راكړې چي موږ

جَنَّتَكَ وَمِنَ الْيَقِينِ مَا تُهَوِّنُ بِهِ عَلَيْنَا مُصِيبَاتِ الدُّنْيَا وَمَتِّعْنَا بِأَسْمَاعِنَا

ستا جنت ته ورسوي او موږ ته دومره يقين راكړې چي د دنيا ستونزي پر موږ آسانه كړې او موږ ته د خپلو اوريدو،

وَأَبْصَارِنَا وَقُوَّتِنَا مَا أَحْيَيْتَنَا وَاجْعَلْهُ الْوَارِثَ مِنَّا وَاجْعَلْ ثَأْرَنَا عَلٰى مَنْ ظَلَمَنَا

لیدو او توانونو څخه د ګټې پورته کولو موقع راکړې تر څو پورې چې موږ ژوندي لرې او دا ګټه زموږ وارثه وګرځوې او زموږ کینه او غچ اخیستل په هغه چا پورې محدود لرې چې هغه پر موږ ظلم وکړي،

وَانْصُرْنَا عَلَى مَنْ عَادَانَا وَلَا تَجْعَلْ مُصِيبَتَنَا فِي دِينِنَا وَلَا تَجْعَلِ الدُّنْيَا أَكْبَرَ

او زموږ مرسته وکړې او بریالیتوب راکړې پر هغه چا چې زموږ سره دښمني ساتي او د دین په معامله کې موږ په یو ستونزه مه اخته کوې او نه دنیا زموږ د ټولو فکرو مرکز وګرځوې

هَمِّنَا وَلَا مَبْلَغَ عِلْمِنَا وَلَا تُسَلِّطْ عَلَيْنَا مَنْ لَا يَرْحَمُنَا . رواه الترمذي و قال

هذا حديث غريب .

او نه دا زموږ د علم مبلغ جوړ کړې او نه پر موږ هغه خلک مسلط کړې چې پر موږ رحم کونکي نه وي . . ترمذي ویلي دي دا حدیث حسن غریب دئ .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۴۹۳، رقم: ۳۵۰۲.

**تشريح**: موږ ته دومره یقین راکړې: مطلب دادی چې ته پر خپل ذات او صفاتو باندې او د رسول الله ﷺ پر ارشاداتو او تعلیماتو باندې موږ ته دومره یقین او اعتماد راکړې چې د دنیا سختي او مصیبتونه زموږ لپاره اسان وي مثلا چا ته چې دا یقین وي چې الله تعالی رزاق دی د هر ساه لرونکي د ژوند اړتیاوې پوره کوي نو هغه ته به هیڅکله فکر نه وي او هغه به د هغه ذات باور کوي همدارنګه چا ته چې دا یقین تر لاسه سي چې د آخرت سختي او د هغه ځای مصیبتونه زیات سخت دي د دنیا سختي ختمېدونکي دي او د هغه هیڅ حقیقت نه سته نو د هغه لپاره د دنیا مصیبتونه اسانه کیږي او هغه د دنیا د لوی تر لوی مصیبت او سختۍ احساس نه کوي نو اې الله ! ته موږ د یقین او اعتماد په عظیم دولت سره ونازوې ، دنیا زموږ لپاره د فکرونو مرکز مه ګرځوې ، مطلب دادی چې موږ د دنیا په ډېر فکر او تدبیر کي مه لګوې بلکه د آخرت فکر ، د هغه اندېښنو زیات خیال ساتو د دنیا یوازې دومره دومره خیال وساتو کوم چې ضروري وي او د هغه لپاره نه یوازې دا چې موږ ته اجازه ده بلکه مستحب هم دي .

## د علم او عمل دعاء

﴿۲۳۷۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به دا فرمایل :

اللَّهُمَّ انْفَعْنِي بِمَا عَلَّمْتَنِي وَعَلِّمْنِي مَا يَنْفَعُنِي وَزِدْنِي عِلْمًا اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلَى كُلِّ

(اللهم ... اهل النار) اې الله ! کوم شی چي تا ما ته ښودلی دئ د هغه څخه ما ته ګټه راکړې، ما ته هغه وښیې چي ما ته ګټه راکړي او زما علم زیات کړې، په هر حال کي د الله تعالی تعریف دئ

حَالٍ وَأَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنْ حَالِ أَهْلِ النَّارِ. رواه الترمذي وابن ماجة وقال

الترمذي هذا حديث غريب اسنادا .

او زه د الله تعالی په ذریعه د دوږخیانو د حال څخه پناه غواړم . ترمذي او ابن ماجه، ترمذي ویلي دي دا حدیت د اسناد له کبله غریب دئ .

**تخریج** : الترمذي في السنن ۵\۵۴۰، رقم: ۳۵۹۹، وابن ماجه ۲\۱۲۶۰، رقم: ۳۸۳۳.

## د نعمت او عزت دعاء

﴿۲۳۸۰﴾: وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا

د حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه څخه روایت دئ چي کله به پر رسول الله ﷺ

نَزَلَ عَلَيْهِ الْوَحْيُ سَمِعَ عِنْدَ وَجْهِهِ دَوِيٌّ كَدَوِيِّ النَّحْلِ فَأُنْزِلَ عَلَيْهِ يَوْمًا

وحي نازلېدلې نو د رسول الله ﷺ مخ ته نژدې به د مچ د آواز په ډول بنګاری اورېدل سو ، یوه ورځ زموږ په وړاندي وحي نازله سوه

فَمَكَثْنَا سَاعَةً فَسُرِّيَ عَنْهُ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ وَقَالَ اللّٰهُمَّ زِدْنَا

موږ لږ ګړی تم سوو کله چي د غه سختي لیري سول نو رسول الله ﷺ خپل مخ مبارک د قبلې په لور کړ او وه یې فرمایل : اللهم زدنا ...... وارض عنا ، اې الله ! زیات کړې (د دنیا او آخرت

وَلَا تَنْقُصْنَا وَأَكْرِمْنَا وَلَا تُهِنَّا وَأَعْطِنَا وَلَا تَحْرِمْنَا وَآثِرْنَا وَلَا تُؤْثِرْ عَلَيْنَا

نعمتونه) او په هغو کي کمي مه کوې، او موږ په عزت ولرې او موږ ذلیل مه کړې او موږ ته راکړې (د دنیا او آخرت خیر) او موږ محروم مه کړې، او په خپل رحمت او عنایت سره موږ غوره

کړې او پر موږ بل غوره مه کړې،

وَأَرْضِنَا وَارْضَ عَنَّا ثُمَّ قَالَ أُنْزِلَ عَلَيَّ عَشْرُ آيَاتٍ مَنْ أَقَامَهُنَّ دَخَلَ الْجَنَّةَ

موږ راضي کړې او زموږ څخه راضي سې، ددې وروسته رسول الله ﷺ وفرمایل: همدا اوس پر ما لس آیاتونه نازل سوي دي څوک چې په دې عمل وکړي هغه به په جنت کې داخلیږي،

ثُمَّ قَرَأَ { قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ } حَتَّى خَتَمَ عَشْرَ آيَاتٍ. رواه احمد والترمذي

ددې وروسته رسول الله ﷺ دا آیت تلاوت کړ: قد افلح المؤمنون.... تر لسو آیاتو پورې. احمد او ترمذي.

**تخریج**: الامام احمد في المسند ۱\۳۴، والترمذي في السنن ۵\۳۰۵، رقم: ۳۱۷۳.

**تشریح**: کله چې پر رسول الله ﷺ باندې وحې نازلېدلې او جبرائیل علیه السلام به الهي کلام راوړی نو صحابه کرامو به د جبرائیل علیه السلام آواز اورېدی مگر په پوهه کې به نه راتلی لکه څرنګه چې د شاتو د موچې آواز وي مگر په پوهه کې نه راځي ځکه د جبرائیل علیه السلام آواز ته حضرت عمر رضي الله عنه د شاتو د مچې د آواز سره مشابهت ورکړ، هغه لس آیاتونه چې پر رسول الله ﷺ باندې نازل سوي وه او پر هغو باندې د عمل کونکو لپاره په پورتنې حدیث کې زیرې ورکړل سوی دی هغه دادي:

قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ وَالَّذِينَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُونَ وَالَّذِينَ هُمْ لِلزَّكَاةِ فَاعِلُونَ وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَافِظُونَ إِلاَّ عَلَى أَزْوَاجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ فَمَنِ ابْتَغَى وَرَاء ذَلِكَ فَأُولَئِكَ هُمُ الْعَادُونَ وَالَّذِينَ هُمْ لِأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُونَ وَالَّذِينَ هُمْ عَلَى صَلَوَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ أُولَئِكَ هُمُ الْوَارِثُونَ . الَّذِينَ يَرِثُونَ الْفِرْدَوْسَ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ .

**ژباړه**: بېله شکه هغه مؤمنانو کامیابي تر لاسه کړه چې په لمانځه کې (په باطني او ظاهري توګه) عجز او نیاز کوي او د پالتو شیانو څخه مخ اړوي او زکوة ورکوي او د خپلو شرمګاوو ساتنه کوي مگر د خپلو بیبیانو سره او مینزو سره او پر هغو څه ملامتیا نه سته هو څوک چې ددې څخه پرته طالب وي نو هغوئ د حد څخه تجاوز کونکي وي او د آمانتونو او عهد ساتنه کوي او د لمونځو پابندي کوي نو دا خلک دي چې د فردوس خاوندان به وي دا خلک به په دې کې همېشه همېشه اوسیږي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د بنايي لپاره دعاء

﴿۲۳۸۱﴾: عَنْ عُثْمَانَ بْنِ حُنَيْفٍ قَالَ أَنَّ رَجُلًا ضَرِيرَ الْبَصَرِ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى

د حضرت عثمان بن حنيف رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د يو كمزوري ديد والا سړى د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سو

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ ادْعُ اللّٰهَ أَنْ يُعَافِيَنِي قَالَ إِنْ شِئْتَ دَعَوْتُ وَإِنْ شِئْتَ

او ويې ويل: د الله پاک څخه دعاء وغواړي چي ما ته عافيت راكړي (يعني د ستركو خرابي مي ليري سي) رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: كه ته دعاء غواړې نو زه ستا لپاره دعاء كوم او كه ته

صَبَرْتَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ قَالَ فَادْعُهُ قَالَ فَأَمَرَهُ أَنْ يَتَوَضَّأَ فَيُحْسِنَ وُضُوءَهُ

صبر كوې نو صبر ستا لپاره غوره دئ، هغه وويل دعاء راته وكړه ، نو رسول الله ﷺ ورته حكم وكړ او دس وكړه

وَيَدْعُوَ بِهَذَا الدُّعَاءِ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ وَأَتَوَجَّهُ إِلَيْكَ بِنَبِيِّكَ مُحَمَّدٍ نَبِيِّ

او په دې كلماتو سره دعاء وكړه : (اللهم اني ...... فشفعه في) اې الله! زه ستا څخه سوال كوم او ستا د نبي په وسيله ستا په لور متوجه كيږم چي د هغه نوم محمد دئ چي د رحمت نبي دئ ،

الرَّحْمَةِ إِنِّي تَوَجَّهْتُ بِكَ إِلَى رَبِّي ليقضي لي فِي حَاجَتِي هَذِهِ اللَّهُمَّ فَشَفِّعْهُ فِيَّ. رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن صحيح غريب .

اې نبي! زه ستا په وسيله خپل پروردګار ته متوجه كيږم چي زما ددې حاجت په اړه هغه حكم وكړي ، اې الله! د خپل نبي شفاعت زما په حق كي قبول كړې، ترمذي ويلي دي دا حديث صحيح غريب دئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵۳۱\۵، رقم: ۳۵۷۸.

**تشريح**: صبر ته يې ځكه غوره وفرمايل چي پر ړوند والي د صبر ثواب جنت دی، په حديث شريف كي راغلي دي چي الله تعالی فرمايي : كله چي زه خپل يو بنده د هغه په دواړو ستركو

كي اخته كړم (يعني روند يې كړم) او هغه بنده پر دې صبر وكړي نو زه ددې په عوض كي هغه ته جنت وركوم.

## د داؤد عليه السلام دعاء

﴿۲۳۸۲﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ

د حضرت ابو درداء رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

مِنْ دُعَاءِ دَاوُدَ يَقُولُ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ حُبَّكَ وَحُبَّ مَنْ يُحِبُّكَ وَالْعَمَلَ الَّذِي

د داؤد عليه السلام د دعاؤ څخه يوه دعاء دا هم وه: (اللهم اني.... من الماء البارد) اې الله! زه ستا څخه سوال كوم د محبت ستا او محبت د هغه چا چي محبت كوي ستا سره او هغه عمل

يُبَلِّغُنِي حُبَّكَ اللَّهُمَّ اجْعَلْ حُبَّكَ أَحَبَّ إِلَيَّ مِنْ نَفْسِي ومالي وَأَهْلِي مِنَ الْمَاءِ

غواړم چي ستا محبت ته ما ورسوي، اې الله! ته خپل محبت غوره وګرځوې ما ته تر ځان زما تر كورنۍ زما تر مال زما او تر

الْبَارِدِ قَالَ وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا ذَكَرَ دَاوُدَ يُحَدِّثُ عَنْهُ

يخو اوبو (تربو ته). د راوي بيان دئ چي كله به رسول الله ﷺ د داؤد عليه السلام يادونه كول نو

يَقُولُ كَانَ أَعْبَدَ الْبَشَرِ. رواه الترمذي وقال هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

فرمايل به يې چي هغه ډير عبادت كونكى انسان وو. ترمذي ويلي دي دا حديث حسن غريب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۴۸۸، رقم: ۳۴۹۰.

## يوه جامع دعاء

﴿۲۳۸۳﴾: وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ صَلَّى بِنَا عَمَّارُ بْنُ يَاسِرٍ صَلَاةً

عطاء بن السائب رضي الله عنه د خپل پلار څخه روايت كوي چي عمار بن ياسر موږ ته يو لمونځ راكړ

فَأَوْجَزَ فِيهَا فَقَالَ لَهُ بَعْضُ الْقَوْمِ لَقَدْ خَفَّفْتَ أَوْ أَوْجَزْتَ الصَّلَاةَ فَقَالَ أَمَا

نو هغه په لمانځه كي لنډوالى وكړ، ځيني خلكو هغه ته وويل: تا لنډ لمونځ وكړ، عمار بن

عَلَى ذَلِكَ فَقَدْ دَعَوْتُ فِيهَا بِدَعَوَاتٍ سَمِعْتُهُنَّ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

زما لپاره دا لنډوالی ضررناک نه دئ ځکه چي ما په دغه لمانځه کي هغه دعاوي وغوښتلې کومي چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي،

وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَامَ تَبِعَهُ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ هُوَ أُبَيٌّ غَيْرَ أَنَّهُ كَنَى عَنْ نَفْسِهِ فَسَأَلَهُ

بیا چي هغه ولاړ سو نو یو کس په هغه پسې سو او هغه زما پلار وو، هغه د عمار څخه هغه دعاء وپوښتل، د هغه څخه چي دعاء وغوښتل سول

عَنِ الدُّعَاءِ ثُمَّ جَاءَ فَأَخْبَرَ بِهِ الْقَوْمَ اللَّهُمَّ بِعِلْمِكَ الْغَيْبَ وَقُدْرَتِكَ عَلَى

نو بیرته راغلئ او خلک یې خبردار کړل چي هغه دعاء داده (اللهم ...... مهديين) اې الله! په حق د خپل علم غیب او په حق د خپل قدرت پر

الْخَلْقِ أَحْيِنِي مَا عَلِمْتَ الْحَيَاةَ خَيْرًا لِي وَتَوَفَّنِي إِذَا عَلِمْتَ الْوَفَاةَ خَيْرًا لِي

مخلوق باندي ما تر هغه وخته پوري ژوندی لرې تر څو پوري چي زما ژوند زما لپاره غوره وي او هغه وخت مرګ راکړې چي ته زما لپاره مرګ غوره وګڼې،

اللَّهُمَّ وَأَسْأَلُكَ خَشْيَتَكَ فِي الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ وَأَسْأَلُكَ كَلِمَةَ الْحَقِّ فِي الرِّضَا

اې الله! زه ستا څخه په ظاهر او باطن کي بیره غواړم، او زه ستا څخه د حق کلمه ویل په خوښۍ

وَالْغَضَبِ وَأَسْأَلُكَ الْقَصْدَ فِي الْفَقْرِ وَالْغِنَى وَأَسْأَلُكَ نَعِيمًا لَا يَنْفَدُ وَأَسْأَلُكَ

او ناخوښي کي غواړم، ستا څخه د مفلسۍ او خوشحالۍ په حالت کي میانه روي غواړم او داسي نعمت در څخه غواړم چي هیڅکله نه ختمیږي

قُرَّةَ عَيْنٍ لَا تَنْقَطِعُ وَأَسْأَلُكَ الرِّضَاءَ بَعْدَ الْقَضَاءِ وَأَسْأَلُكَ بَرْدَ الْعَيْشِ بَعْدَ

او زه د سترګو یخوالی در څخه غواړم چي هیڅکله نه ختمیږي او زه ستا څخه رضامندي غواړم د حکم څخه وروسته او ستا څخه د مرګ وروسته د ژوند یخوالی (یعنی همیشه راحت)،

الْمَوْتِ وَأَسْأَلُكَ لَذَّةَ النَّظَرِ إِلَى وَجْهِكَ وَالشَّوْقَ إِلَى لِقَائِكَ فِي غَيْرِ ضَرَّاءَ مُضِرَّةٍ

غواړم، ستا څخه ستا د مخ په لور د لیدو لذت او ستا څخه ستا د ملاقات شوق غواړم، داسې شوق چې تاوان راته ونه رسوي

وَلَا فِتْنَةٍ مُضِلَّةٍ اللَّهُمَّ زَيِّنَّا بِزِينَةِ الْإِيمَانِ وَاجْعَلْنَا هُدَاةً مَهْدِيِّينَ. رواه النسائي.

او نه مې د ګمراهۍ په فتنه کې واچوي، اې الله! موږ د ایمان په ښکلا سره ښکلي کړې او موږ هدایت ورکونکي هدایت یافته جوړ کړې. نسائي.

**تخریج:** سنن النسائي ۳\ ۵۴، ۵۵، رقم: ۱۳۰۵.

**تشریح:** او کلمه د حق غواړم ...الخ: ددې مطلب دادی چې په ما کې دومره بې خوفي او استقامت پیدا کړې چې زه همېشه د حق کلمه یعني حقه خبره کوم که خلک زما څخه خوشحاله وي او که ناراضه وي یا دا چې د خپل خوښۍ په حالت کې هم او د خفګان په حالت کې هم د حق کلمه وایم او د عوامو په ډول نه سم چې هغوئ د خفګان په حالت کې وي نو بد وايي او کله چې خوشحاله وي نو ښه وايي.

د سترګو د یخوالي څخه مراد هغه شیان دي چې په هغه سره د طاعت او عبادت کامل لذت او کیفیت تر لاسه کیږي، یا ددې څخه مراد د دعاء غوښتونکي د مرګ څخه وروسته د هغه د اولاد پاته کېدل دي، همدارنګه د سترګو د یخوالي څخه پر لمانځه باندې پابندي هم مراد کېدای سي او که دغه مفهوم ته زیات وسعت ورکړل سي نو د دواړو جهانو خېرونه هم مراد کېدای سي.

في غیر ضراء مضرة: په داسې حالت کې چې ضرر ونه رسوي، ددې تعلق څرنګه چې د ژباړې څخه ظاهر دی. شوق د ملاقات سره دی یعني زه ستا د ملاقات داسې شوق لرم چې زما په چلن کې، زما پر ادب باندې او زما په استقامت کې او د احکامو او اعمالو پر ځای راوړلو او ادا کولو کې تاوان ونه رسیږي ځکه چې کومو خلکو ته پر تصوف باندې د تلو شرف حاصل دی هغوئ پوهیږي چې د الله تعالی د ملاقات شوق ډېر واري د بې خودۍ منزل ته رسیږي چې هغه ته غلبه حال ویل کیږي او دا هغه وخت وي کله چې قدم د استقامت څخه بې نیازه سي په چلن کې کوتاهي پیدا کیږي او په احکامو او اعمالو کې تاوان واقع کیږي نو د مخکې جملې:

ولافتنة مضلة: هم دا مطلب دی چي داسي شوق غواړم چي د استقامت د لاري څخه ليري کونکی او په احکامو او اعمالو کي بې لاري پيدا کونکی ازمائش کي اخته نه کړي يا داسي وويل سي چي ددغه جملې تعلق د دعاء د اولني لفظ احييني سره دی چي ددې مفهوم په دعاء کي پر ذکر سوو ټولو شيانو باندي حاوي سي يعني ما په دغه مذکوره نعمتو سره داسي ژوندی ولرې چي په داسي بلا او مصيبت کي اخته نه سم چي په هغه کي د صبر او شکر لمن د لاس څخه ووځي او زه په ګمراهۍ کي ولويږم.

پر سيده لاره باندي تلونکی جوړ کړې: ددې مطلب دادی چي څرنګه چي موږ نورو ته ښه لاره ښيو او نورو ته د نيک ژوند اختيارولو تلقين کوو همدارنګه موږ خپله هم پر هغه په عمل کولو سره پر ښه لاره باندي روان سو او نيک ژوند اختيار کړو زموږ حالت داسي نه سي چي بل ته خو نصيحت کوو او خپل عمل نه پر کوو بلکه زموږ عمل زموږ د قول مطابق وي.

## د علم نافع، عمل مقبول او حلال رزق دعاء

﴿۲۳۸۴﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ فِي دُبُرِ

د حضرت ام سلمة رضي الله عنها څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به دغه دعاء ويل وروسته تر

الْفَجْرِ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ عِلْمًا نَافِعًا وَعَمَلًا مُتَقَبَّلًا وَرِزْقًا طَيِّبًا. رواه احمد وابن ماجة والبيهقي في الدعوات الكبير.

سهار د لمانځه: (اللهم اني ....... طيبا) اې الله! زه ستا څخه علم ګټه رسونکی، عمل قبليدونکی او حلال رزق غواړم. احمد، ابن ماجه او بيهقي.

**تخريج**: الامام احمد في المسند ٦\ ٢٩٤، وابن ماجه ١\ ٢٩٨، رقم: ٩٢٥.

## د شکر ګزار کېدو دعاء

﴿۲۳۸۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ دُعَاءٌ حَفِظْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي دا يوه دعاء ده چي ما د رسول الله ﷺ څخه ياد کړې ده

وَسَلَّمَ لَا أَدَعُهُ اللّٰهُمَّ اجْعَلْنِي أُعَظِّمُ شُكْرَكَ وَأُكْثِرُ ذِكْرَكَ وَأَتَّبِعُ نَصِيحَتَكَ

وَأَحْفَظُ وَصِيَّتَكَ. رواه الترمذي

او همیشه یې وایم : (اللهم ........ وصیتک) اې الله ! ما داسي جوړ کړې چي ستا ډېر شکر او ډېر ذکر وکړم او ستا د نصیحت پیروي وکړم او ستا د وصیت حفاظت وکړم. ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\ ۷۸۰، رقم: ۳۶۷۶.

**تشریح**: د نصیحت څخه مراد د بندګانو حقوق دي او د وصیت څخه مراد الله تعالی حقوق دي، ددې مطلب دادی چي اې الله ! تا د خلکو د حقوقو د ادا کولو ما ته چي کوم حکم کړی دی او د خپلو حقوقو د ادا کولو کوم فریضه چي پر ما عائد کړې ده پر هغې محافظت وکړم یعني دواړه ډوله حقوق ادا کړم.

## د روغتیا دعاء

﴿۲۳۸۶﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به

يَقُولُ اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْأَلُكَ الصِّحَّةَ وَالْعِفَّةَ وَالْأَمَانَةَ وَحُسْنَ الْخُلُقِ وَالرِّضٰى بِالْقَدَرِ.

فرمایل : (اللهم اني .......... بالقدر) اې الله ! زه ستا څخه روغتیا، د حرامو څخه ساتنه، امانت، ښه اخلاقو او پر تقدیر رضامندي غواړم. بیهقي

**تخریج**: رواه البيهقي في الدعوات الكبير.

## د بدو عادتو څخه د ساتني دعاء

﴿۲۳۸۷﴾: وَعَنْ أُمِّ مَعْبَدٍ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

د حضرت ام معبد (رض) څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوریدلي دي

اَللّٰهُمَّ طَهِّرْ قَلْبِيْ مِنَ النِّفَاقِ وَعَمَلِيْ مِنَ الرِّيَاءِ وَلِسَانِيْ مِنَ الْكَذِبِ وَعَيْنِيْ

(اللهم طهر ....... الصدور) اې الله ! زما زړه د نفاق څخه، او عمل د ریا کارۍ څخه، ژبه د دروغو څخه او سترګي مي

مِنَ الْخِيَانَةِ فَإِنَّكَ تَعْلَمُ خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ وَمَا تُخْفِي الصُّدُوْرُ. رواهما

البيهقي في الدعوات الكبير .

د خيانت څخه پاكي كړي ښشكه ته د ستر ګو خيانت پيژيني او هغه شی هم پيژيني چي په سينو كي پټ دئ . بيهقي

**تخريج**: رواه البيهقي في الدعوات الكبير.

**تشريح**: خائنة الاعين: دا د قرآن كريم د يو آيت برخه ده چي د هغه معنى ده د ستر ګو خيانت، عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه د آيت د تفسير په ضمن كي دا جمله د مثال په توګه داسي واضح كړې ده چي فرض كړه د خلكو يو ډله يو ځای ناست دي ناڅاپه يوه ښځه د هغوئ مخته تېرېږي نو هغه ټول خلک د شرم څخه هغه ښځي ته د كتلو همت نه كوي كله چي هغوئ ټول خپل نظرونه كښته كړي نو د هغو څخه يو سړی د ټولو د نظرو څخه په پټه خپل نظر پورته كوي او په غلا سره هغه ښځي ته ګوري نو دا د ستر ګو خيانت دی .

## د دنيا او اخرت د عاقيت دعاء

﴿۲۳۸۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَادَ رَجُلًا مِنَ الْمُسْلِمِينَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د يو مسلمان (د ناروغی) پوښتنه وكړه

قَدْ خَفَتَ فَصَارَ مِثْلَ الْفَرْخِ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ

چي د مرغه د چيچي په ډول كمزوری سوی وو، رسول الله ﷺ د هغه څخه پوښتنه وكړه ايا

كُنْتَ تَدْعُو بِشَيْءٍ أَوْ تَسْأَلُهُ إِيَّاهُ قَالَ نَعَمْ كُنْتُ أَقُولُ اللَّهُمَّ مَا كُنْتَ مُعَاقِبِي

تا به د الله تعالى څخه د يو شي دعاء غوښتل؟ هغه وويل : ما به دغه غوښتل : (اللهم ماكنت .......... لي في الدنيا) اې الله ! كومه سزا چي ته ما ته په آخرت كي راكونكی يې

بِهِ فِي الْآخِرَةِ فَعَجِّلْهُ لِي فِي الدُّنْيَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُبْحَانَ

هغه ژر په دنيا كي راكړه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : الله تعالى پاک دئ

اللَّهِ لَا تُطِيقُهُ أَوْ لَا تَسْتَطِيعُهُ أَفَلَا قُلْتَ اللَّهُمَّ آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي

ته په دنيا كي د الله تعالى د عذاب توان نه لرې او نه به هغه په آخرت كي وزغملای سې تا داسي

ولي نه ويل: «اللّٰهُمَّ آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي

الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ قَالَ فَدَعَا اللّٰهَ بِهِ فَشَفَاهُ اللّٰهُ . رواه مسلم

الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ »، د راوي بيان دئ بيا هغه سړي د الله تعالى څخه دغه دعاء وغوښتل او الله پاک هغه ته روغتيا ورکړل. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۲۰۶۸، رقم: ۲۳-۳۶۸۸.

## د غير متحمل شيانو دعاء مه غواړئ

﴿۲۳۸۹﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَنْبَغِي

د حضرت حذيفة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د مؤمن لپاره نه ده پكار

لِلْمُؤْمِنِ أَنْ يُذِلَّ نَفْسَهُ قَالُوا وَكَيْفَ يُذِلُّ نَفْسَهُ قَالَ يَتَعَرَّضُ مِنَ الْبَلَاءِ لِمَا

چي هغه خپل ځان ذليل كړي، صحابه كرامو پوښتنه وكړه: مؤمن څنګه ځان ذليل كولاى سي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: په هغو بلاګانو كي خپل ځان اخته كړي چي

لَا يُطِيقُ. رواه الترمذي و ابن ماجة والبيهقي في شعب الايمان وقال الترمذي هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

د هغه توان نه لري. ترمذي، ابن ماجة، بيهقي او ترمذي ويلي دي دا حديث حسن غريب دي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۵۳، رقم: ۲۲۵۴، وابن ماجه ۲\۱۳۳۲، رقم: ۴۰۱۶، البيهقي في شعب الايمان ۷\۴۱۷، رقم: ۱۰۸۲۳.

**تشريح**: دا خبره د مؤمن د خواست خلاف ده چي هغه د يو داسي شي يا يو داسي كار ذمه داري قبوله كړي كوم چي د هغه د طاقت او توان څخه وتلې وي داسي كول د خپل ځان ذليل كول دي مثلا يو څوک د حساب د فن څخه ناخبره وي او داسي كارونه پر خپل ذمه واخلي چي د هغه تعلق د حساب سره وي نو ظاهره ده چي هغه به دغه ذمه داري پوره نه كړلاى سي چي د هغه په نتيجه كي به د خپل ذلت او خوارۍ څخه پرته نور څه نه وي نو دغه ارشاد مسلمانانو ته توجه وركوي چي هغوئ يو ازي داسي كارونه پر خپل ذمه واخلي كوم چي د هغه پوره كولو طاقت او

لياقت ولري د يو غرض او لالچ يا د يو جذبې له كبله د غير متحمل شيانو ذمه داري قبلول د خپل ذلت او خوارۍ باعث دی ، په ظاهره دغه حديث د دغه باب سره تعلق نه لري مگر كه د دغه حديث مفهوم د مخكني حديث د مفهوم په رڼا كي وكتل سي نو دا به معلومه سي چي د دغه باب سره د دغه حديث ژور تعلق دی او هغه دا دی چي سړی د كومو شيان برداشت نه سي كولای نو د هغه شي دعاء دي نه غواړي .

## د باطن د ظاهر څخه غوره والی دعاء

﴿۲۳۹۰﴾: وَ عَنْ عُمَرَ قَالَ عَلَّمَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قُلْ

د حضرت عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ما ته دغه دعاء وښودل

اللّٰهُمَّ اجْعَلْ سَرِيرَتِي خَيْرًا مِنْ عَلَانِيَتِي وَاجْعَلْ عَلَانِيَتِي صَالِحَةً اللّٰهُمَّ إِنِّي

(اللهم اجعل ...... والمضل) اې الله ! زما باطن زما تر ظاهر غوره جوړ كړې او زما ظاهر صالح او ښكلی جوړ كړې ، اې الله ! زه

أَسْأَلُكَ مِنْ صَالِحِ مَا تُؤْتِي النَّاسَ مِنَ الْمَالِ وَالْأَهْلِ وَالْوَلَدِ غَيْرِ الضَّالِّ وَلَا الْمُضِلِّ. رواه الترمذي

ستا څخه د هغه شي خير غواړم چي ته يې خلكو ته وركوې ، يعني ښځه ، شتمني، او اولاد څخه چي نه هغوئ په خپله گمراه سي او نه بل څوک گمراه كړي . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۵۳۴، رقم: ۳۵۸۶.

۞۞۞۞۞۞

بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيمِ

# كِتَـــابُ الْمَناسِك

## د حج د ارکانو بیان

د حج معنی د لغت په اعتبار د یو باعظمته شي په لور قصد کول دي او د شریعت په اصطلاح کي د کعبې شریفي طواف، په مقام عرفات کي قیام په هغه خاص طریقې سره چي شارع (الله ﷻ) ښوولي دي او په هغه خاص وخت کي چي د شریعت څخه منقول دي ده ته حج وايي، حج ددین د هغه پنځه بنیادي رکنو څخه یو عظیم القدر رکن دی چي پر هغه د اسلام د عقائدو او اعمالو پوره عمارت ولاړ دی ، د حج ضروري کېدل (چي د فقهي په اصطلاح کي فرض ورته وايي) د قرآن کریم څخه داسي په صراحت سره ثابت دی لکه څرنګه چي د زکوٰة فرضیت ثابت دی .

### حج کله فرض سو؟

د حج د فرضیت سعادت د سردار دوعالم ﷺ د امت سره مختص دی که څه هم د حج رواج د حضرت ابراهیم علیه السلام د وخت څخه دی مګر هغه وخت د فرضیت حکم نه وو ، نو صحیح مذهب دادی چي حج یوازي پر امت محمدي باندي فرض سوی دی.

حج کله فرض سو؟ په دې باره کي د علماء کرامو مختلف قولونه دي ځیني حضرات وايي چي په پنځم هجري کال کي فرض سو او اکثر علماء وايي چي په شپږم هجري کال کي فرض سوی دی مګر صحیح قول د هغه علماؤ دی کوم چي وايي چي حج د نهم هجري کال په آخر کي فرض سوی دی ، کله چي د الله تعالی دغه حکم نازل سو : ولله علی الناس حج البیت من استطاع الیه سبیلا : یعني د الله تعالی د رضا لپاره پر خلکو د کعبې حج ضروري دی او دا پر هغه چا کوم چي د تلو وس لري.

دا حکم د کال په آخري کي نازل سوی وو ځکه رسول الله ﷺ د حج د افعالو په تعلیم کي د بوختیا او د راتلونکي کال لپاره د حج د سفر د اسبابو په تیاري کي د بوختیا په وجه خپله حج ته نه ولاړی بلکه په هغه کي یعني په نهم هجري کي حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د حاجیانو امیر و ټاکل سو او مکې شریفي ته ولیږل سو چي په خلکو حج وکړي او بیا رسول الله ﷺ خپله په

راتلونكي كال يعني لسم هجري كي د دغه الهي حكم په پوره كولو كي د حج لپاره تشريف يوور ، دا عجيبه اتفاق دى چي د فرضيت څخه وروسته د رسول الله ﷺ دغه اولنى حج وكړ چي آخري حج هم ثابت سو نو دا حج د حجة الوداع په نامه سره مشهور دى د دغه حج څخه وروسته د رسول الله ﷺ مخ مبارک د دنيا څخه پرده وكړه .

## د حج احكام

حج په عمر كي يو وار فرض دى كله چي ټول شرطونه موجود سي په كوم سره چي حج فرض كيږي د دغه شرطونو د موجود كېدو سربيره كوم څوک چي حج ونه كړي نو هغه فاسق او ګناه كار دى او كوم څوک چي د حج د فرضيت څخه انكار وكړي نو هغه كافر دى، صحيح خبره داده چي كله د حج شرطونه موجود سي نو سمدستي حج كول فرض دي تر دوهم كال پوري ځنډول ګناه ده ، حج پر هغه چا باندي واجب دى كوم چي په ميقات كي د ننه بېله احرام تېرلو ولاړ سي او د هغه څخه وروسته د حج احرام وتړي همدارنګه پر هغه چا باندي فرض دى كوم چي د حج نذر منلى وي .

په ناجائز مال سره حج كول حرام دى، او د هغه چا لپاره مكروه تحريمي دى كوم چي د هغه خلكو د اجازې څخه پرته حج وكړي د كومو څخه چي اجازه اخيستل ضروري وي ، د هغه چا لپاره هم حج مكروه تحريمي كوم چي د هغه كسانو د نفقې څخه پرته حج وكړي د كومو چي پر هغه باندي نفقه واجب وي .

## د حج فرض كېدو شرطونه

حج د دغه شرطونو د موجود كېدو وروسته فرض كيږي :

١. مسلمان كېدل او پر كافر باندي حج فرض نه دى .
٢. آزاد كېدل ، پر مينزي او غلام باندي حج فرض نه دى .
٣. عاقل كېدل پر ليوني، مست او بې هوښه باندي حج فرض نه دى .
۴. بالغ كېدل پر كوچنيانو باندي حج فرض نه دى .
۵. روغتيا او پر ناروغ باندي حج فرض نه دى.
٦. قدرت درلودل يعني دومره مال درلودل چي د ضرورت اصليه او پور څخه زيات وي او هغه د لاري خرچه او د سپرلۍ د كرايې لپاره كافي سي او د كومو كسانو نفقه چي د هغه پر ذمه واجب وي د هغوئ لپاره هم دومره پرېږدي چي د هغه د راتلو پوري د هغو كفايت وسي .

۷. په لاره کي د امن کېدل ، په دې باره کي د اکثر اعتبار دی یعني که اکثر خلک په امن سره رسیږي نو حج به فرض وي مثلا که اکثره خلک په لاره کي لوټ سي یا یو داسي رود یا سیند حائل سي چي په هغه کي په کثرت سره خلک ډوبیږي او هلاکیږي یا په لاره کي یو بل ډول بېره وي نو په داسي حالت کي حج فرض نه دی هو که دغه پیښي کله نا کله په اتفاقي توګه سره کیږي نو بیا د حج فرضیت نه ساقط کیږي .
۸. د ښځي سره په ملګرتیا کي د خاوند یا بل محرم موجود کېدل ،په داسي حال کي چي د هغې د مکې د لیري والي په اندازه د سفر مسافت یعني درو ورځو پوري وي که چیري خاوند یا بل محرم په ملګرتیا کي نه وي نو بیا د ښځي لپاره د حج سفر اختیارول جائز نه دي او د محرم عاقل کېدل او فاسق نه کېدل هم شرط دي ، د محرم نفقه به پر هغه ښځه وي کوم چي یې د ځان سره حج ته بیایي او پر کومه ښځه چي حج فرض وي هغه د خپل خاوند د اجازې څخه پرته هم د محرم سره حج ته تللای سي .

که یو نابالغ هلک یا غلام د احرام تړلو وروسته بالغ سي یا ازاد سي او بیا هغه حج پوره کړي نو په دغه صورت کي فرض نه ادا کیږي هو که هلک د فرض حج لپاره د سره احرام وتړي نو صحیح کیږي مګر د غلام احرام د فرض حج لپاره په هغه صورت کي هم نه صحیح کیږي .

## د حج فرضونه

په حج کي پنځه شیان فرض دي :
۱. احرام: دا د حج لپاره شرط هم دی او رکن یعني فرض هم دی .
۲. وقوف عرفات: یعني په عرفات کي درېدل که د یوې دقیقې په اندازه وي او که یوه ورځ یا شپه وي .
۳. طواف الزیارة : دې ته طواف الاضافه او طواف الرکن هم وایي .
۴. په پورتنیو فرضو کي د ترتیب لحاظ یعني احرام پر وقوف او وقوف پر طواف زیارت مخکي کول .
۵. هر فرض په خپل خاص ځای کي ادا کول یعني وقوف په عرفات کي او طواف پر مسجد حرام چاپېره کول او د هر فرض هغه خاص وخت کي ادا کول کوم چي په شریعت کي ضروري وي یعني وقوف د نهم ذي الحجې د ماپښین د وخت څخه تر لسم د سهار څخه مخکي پوري ادا کول او طواف د هغه وروسته ادا کول .

## د حج واجبات

په حج کي لاندیني شیان واجب دي:

۱. وقوف مزدلفه.

۲. د صفا او مروه په مینځ کي سعي.

۳. رمي جمار (شیطانان ویشتل).

۴. د آفاقي یعني غیر مکي لپاره طواف قدوم.

۵. حلق یا تقصیر یعني وربښتان خریل یا کوچني کول.

٦. او هر هغه شی چي د هغه په پرېښودو سره دم یعني د حیوان حلالېدل واجبېږي.

د دغه فرضو او واجباتو څخه پرته نور ټول شیان دي چي د حج په سنتو او ادبو کي دي او هغه به په راتلونکو مخو کي بیان سي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### حج په ټول عمر کي یو وار فرض دی

﴿۲۳۹۱﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ خَطَبَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ:

د حضرت ابوهریرة ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ موږ ته په خطبه کي وفرمایل:

أَيُّهَا النَّاسُ قَدْ فَرَضَ اللهُ عَلَيْكُمُ الْحَجَّ فَحُجُّوا فَقَالَ رَجُلٌ أَكُلَّ عَامٍ يَا

اې خلکو! پر تاسو حج فرض سوی دئ نو تاسو حج کوئ، یو سړي پوښتنه وکړه اې د الله رسوله! ایا هر کال حج کوو؟ د

رَسُولَ اللّٰهِ فَسَكَتَ حَتّٰى قَالَهَا ثَلَاثًا فَقَالَ لَوْ قُلْتُ نَعَمْ لَوَجَبَتْ وَلَمَا

دې په اورېدو سره رسول الله ﷺ پټه خوله سو تر څو هغه سړي دا پوښتنه درې واره وکړه، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل: که ما ویلی وای چي هو، نو پر تاسو به حج کول هر کال فرض سوی وای

اسْتَطَعْتُمْ ثُمَّ قَالَ ذَرُونِي مَا تَرَكْتُكُمْ فَإِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ بِكَثْرَةِ

او تاسو به توان نه درلودای، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل: تاسو ما پرېږدئ تر څو چي زه تاسو

پريږدم ځکه چي کوم خلک وړاندي وه د ډيرو

سُؤَالِهِمْ وَاخْتِلَافِهِمْ عَلَى أَنْبِيَائِهِمْ فَإِذَا أَمَرْتُكُمْ بِشَيْءٍ فَأْتُوا مِنْهُ مَا

پوښتنو او د خپلو انبياؤو په اړه د منځني اختلاف له کبله هلاک سوي دي ، هر کله چي زه تاسو ته د يو شي حکم درکړم نو هغه ادا کړئ

اسْتَطَعْتُمْ وَإِذَا نَهَيْتُكُمْ عَنْ شَيْءٍ فَدَعُوهُ . رواه مسلم

د خپل توان سره سم او د کومي خبري څخه چي مو منع کړم نو هغه پريږدئ . مسلم .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۹۷۵، رقم: ۴۱۲- ۱۳۲۷.

**تشريح**: کله چي الله تعالی د حج د فرضيت فرمان نازل کړ نو رسول الله ﷺ هغه پر امت باندي د نافذ کولو لپاره خلکو ته حکم وکړ چي هغوئ دي حج کوي ، کله چي رسول الله ﷺ د خلکو په مخکي د حج فرضيت بيانوی او هغوئ ته يې د حج کولو حکم ورکوی نو يو صحابي چي د هغه نوم اقرع بن حابس ﷺ وو پوښتنه وکړه چي ايا حج به هر کال کيږي ؟ هغه داوګڼل چي حج به هم مقرر وي ځکه نو هغه دا پوښتنه وکړه مګر رسول الله ﷺ ته دا خبره ناخوښه سوه ځکه رسول الله ﷺ د تنبيه په توګه پټه خوله سو او څه جواب يې ورنه کړ، کله چي هغه څو واره پوښتنه وکړه نو په پای کي رسول الله ﷺ جواب ورکړ که چيري ما د دغه پوښتني په جواب کي هو کړې وای نو يقينا هر کال به حج فرض سوی وای، ځکه چي ما به دغه جواب د الله تعالی پر موجب ورکوی بله د هغه د حکم څخه زما د ژبي څخه يو تشريعي خبره نه راوځي او که هر کال حج فرض سوی وای نو په تاسو کي به دومره توان نه وای چي هر کال حج ادا کړی، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل چي هر ديني حکم ما ته پريږدئ کله چي زه د يو فعل حکم درکړم نو زما څخه دا پوښتنه مه کوئ چي دا فعل څومره دی او څرنګه دی تر څو چي زه يې خپله درته بيان نه کړم چي دغه فعل دي دومره او داسي وکړل سي ، څرنګه چي زه ووايم بس تاسو هم هغسي کوئ که د يو فعل په باره کي د بلا قيد او تعين حکم وکړم نو هغه حکم هم هغسي پر ځای راوړئ او که بيان يې کړم چي دا فعل دومره واره او داسي کوئ نو هغومره واره او هم هغسي يې کوئ ، ددې وجه داده چي زه دنيا ته ددې لپاره راغلی يم چي تاسو ته د اسلام احکام په پوره وضاحت سره ورسوم او شريعت درته بيان کړم ، کومه خبره چي څرنګه وي زه يې هم هغسي بيانوم ستاسو د سوال ضرورت نه پاته کيږي . بيا په پای کي رسول الله ﷺ د احکامو پر ځای راوړلو په اړه د تاکيد او تائيد او

مبالغې په توګه وفرمایل : فاتوا منه مااستطعتم :: په دې کې چې د څه کولو توان لرئ هغه وکړئ، یعني د الله تعالی او د هغه د رسول پر احکامو باندې د عمل کولو چې تاسو څومره توان لرئ د هغه مطابق عمل کوئ یا دا چې ددغه جملې په ذریعه رسول الله ﷺ پر رفع حرج باندې ارشاد وفرمایه چې مثلاً د لمانځه ځینې شرطونه او ارکانو څخه که تاسو عاجز یاست نو څومره چې یې کولای سئ هغومره یې وکړئ او کوم چې تاسو نه سئ کولای نو هغه پرېږدئ که په تاسو کې دومره توان نه وي چې په ولاړه لمونځ وکړئ نو په ناسته لمونځ کوئ او که په ناسته یې نه سئ کولای نو په پروته یې وکړئ مګر خامخا یې کوئ همدارنګه نور احکام او اعمال هم قیاس کېدای سي .

## کوم عمل غوره دی

﴿۲۳۹۲﴾ : وَعَنْهُ قَالَ سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الْعَمَلِ أَفْضَلُ

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چې د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول چې کوم عمل غوره دئ ؟

قَالَ إِيمَانٌ بِاللّٰهِ وَرَسُولِهِ قِيلَ ثُمَّ مَاذَا قَالَ الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ قِيلَ ثُمَّ مَاذَا قَالَ حَجٌّ مَبْرُورٌ . متفق عليه

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : پر الله تعالی او د هغه پر رسول ایمان راوړل، بیا پوښتنه وسول چې ددې وروسته؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : د الله تعالی په لاره کې جهاد کول، بیا پوښتنه وسول چې ددې وروسته؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : قبول سوی حج . بخاري او مسلم .

**تخریج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱\ ۷۷، رقم: ۲۶، ومسلم ۱\ ۸۸، رقم: ۱۵۳ – ۸۳.

**تشریح** : د غوره اعمالو په اړه تر ټولو غوره عمل کوم یو دی ؟ په دې باره کې مختلف حدیثونه نقل سوي دي په ځینو حدیثو کې یوه عمل ته او په ځینو کې بل عمل ته غوره ویل سوي دي، په دغه ټولو حدیثو کې مطابقت او موافقت په دا ډول پیدا کېږي چې دغه اختلاف د پوښتنه کونکو د احوالو ، حیثیتو او مقاماتو د فرق او تفاوت په وجه دی ، دغه حدیث په تفصیل سره په کتاب الصلوة کې هم بیان سوی دی .

## د حج کوونکي سعادت

﴿۲۲۹۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَجَّ لِلّٰهِ فَلَمْ يَرْفُثْ وَلَمْ يَفْسُقْ رَجَعَ كَيَوْمِ وَلَدَتْهُ أُمُّهُ . متفق عليه

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د الله تعالى لپاره حج وکړي او په هغه کي پالتو او بې ګټي خبري ونه کړي او لويه ګناه ونه کړي نو هغه (د ګناهو څخه داسي پاک سي) لکه نن چي د مور څخه زيږيدلی وي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳\۳۸۲، رقم: ۱۵۲۱، ومسلم۲\۹۸۲، رقم: ۴۳۸- ۱۳۵۰.

**تشريح**: څوک چي د الله ﷻ لپاره حج وکړي: ددې مطلب دادی چي هغه د الله تعالى د رضا او خوښۍ او يوازي د هغه د حکم پر ځای راوړلو لپاره حج وکړي ، د ځان ښوونې په جذبې او مقصد سره حج نه کوي نو په دې کي په دومره خبره پوهېدل ضروري دي چي کوم څوک حج او تجارت کوي او د دواړو په قصد سره حج ته ځي نو هغه ته ثواب کم تر لاسه کيږي د هغه سړي په نسبت کوم چي يوازي د حج لپاره ځي چي هغه ته زيات ثواب تر لاسه کيږي .

د رفث معنی ده جماع کول، په فحش کي اخته کېدل او د ښځو سره داسي خبري کول چي د جماع بلونکي وي .

او نه په فسق کي اخته وي: مطلب دادی چي د حج په وخت کي ګناه کبيره ونه کړي او پر صغيره ګناهو باندي همېشتوب ونه کړي ، دا بايد په ذهن کي وي چي د ګناهو څخه توبه نه کول هم په کبيره ګناهو کي شمېرل کيږي لکه څرنګه چي د الله تعالى د ارشاد څخه معلوميږي :

ومن لم يتب فاولئک هم الظالمون : چا چي توبه ونه کړل نو هغه داسي دی چي (په خپل اړه) ظالم دی، خلاصه دا چي کوم څوک خاص د الله تعالى لپاره حج وکړي او هغه د حج په وخت کي په جماع او فحش کي اخته نه سي او نه د ګناه نور شيان اختيار کړي نو د ګناهو څخه داسي پاکيږي لکه څرنګه چي د مور د نس څخه پيدا سوی وي .

## د حج ثمره جنت

﴿۲۲۹۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعُمْرَةُ إِلَى الْعُمْرَةِ كَفَّارَةٌ لِمَا بَيْنَهُمَا وَالْحَجُّ الْمَبْرُورُ لَيْسَ لَهُ جَزَاءٌ إِلَّا الْجَنَّةُ . متفق عليه

: حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : يوه عمره تر بلي عمرې پوري د ګناهو كفاره ده او د قبول سوي حج بدله يوازي جنت دی . بخاري او مسلم.

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳\۵۹۷، رقم: ۱۷۷۳، ومسلم ۲\۹۸۳، رقم: ۴۳۷-۱۳۴۹

## په رمضان کي د عمرې ثواب

﴿۲۳۹۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ عُمْرَةً فِيْ رَمَضَانَ تَعْدِلُ حَجَّةً . متفق عليه

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ و فرمايل : په روژه کي عمره ادا کول د حج سره سمه ده . بخاري او مسلم.

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳\۶۰۳، رقم: ۱۷۸۲، ومسلم ۲\۹۱۷، رقم: ۲۲۱-۱۲۵۶.

## نابالغ ته هم د حج ثواب ورکول کيږي

﴿۲۳۹۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقِيَ رَكْبًا بِالرَّوْحَاءِ

د حضرت بن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ په روحاء نامي ځای کي د يو قافلې سره مخامخ سو ،

فَقَالَ مَنِ الْقَوْمُ؟ قَالُوا الْمُسْلِمُونَ فَقَالُوا مَنْ أَنْتَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ فَرَفَعَتْ

رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه : تاسو کوم خلک ياست؟ هغوئ وويل : موږ مسلمانان يو ، بيا د قافلې خلکو پوښتنه وکړه تاسو څوک ياست ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : د الله رسول ﷺ ،

إِلَيْهِ امْرَأَةٌ صَبِيًّا فَقَالَتْ أَلِهٰذَا حَجٌّ قَالَ نَعَمْ وَلَكِ أَجْرٌ . رواه مسلم

بيا د قافلې يوې ښځي خپل کوچنی راڅرګند کړ او د رسول الله ﷺ څخه يې پوښتنه وکړه چي ايا پر دغه کوچني حج سته؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :هو ، او تا لره هم ثواب دئ . بخاري او مسلم.

**تخريج** : مسلم في الصحيح ۲\۹۷۴، رقم: ۴۰۹-۱۳۳۶.

**تشريح** : د ښځي د سوال په جواب کي د رسول الله ﷺ د هو مطلب دا وو چي دغه کوچنی که چيري نابالغ وي نو پر ده حج فرض نه دی مګر که چيري دی حج ته ولاړ سي نو د : ته به د نفلي حج

ثواب ورکول کیږي او ته به دغه کوچني ته د حج افعال ښيې د هغه خبر به اخلي او بيا دا چي ته به دده د حج باعث جوړيږې ځکه تا ته به هم ثواب درکول کیږي .

مسئله داده که چیري یو نابالغ حج وکړي نو د هغه د ذمې څخه فرضي حج نه ساقط کیږي که چیري د بالغ کېدو وروسته د حج د فرضیت شرطونه موجود سي نو هغه به دوهم وار حج کوي همدارنګه که چیري غلام حج وکړي نو د هغه د ذمې څخه فرض حج نه ساقط کیږي او د ازاد کېدو وروسته که چیري د فرضیت شرطونه موجود سي نو د هغه لپاره دوهم وار حج کول ضروري دي ، ددې پر خلاف که یو مفلس سړی حج وکړي نو د هغه د ذمې څخه فرض ساقط کیږي او د شتمن کېدو وروسته پر هغه دوهم وار حج کول نه واجبیږي .

## د بل چا لپاره د حج کولو مسئله

﴿۲۳۹۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ اِنَّ امْرَأَةً مِنْ خَثْعَمَ قالت يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّ فَرِيضَةَ اللّٰهِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي د قبیله خثعم یوې ښځي پوښتنه وکړه اې د الله رسوله ! الله تعالی پر خپلو بندګانو حج فرض کړئ دئ

عَلَى عِبَادِهِ فِي الْحَجِّ أَدْرَكَتْ أَبِي شَيْخًا كَبِيرًا لَا يَثْبُتُ عَلَى الرَّاحِلَةِ أَفَأَحُجُّ

او زما پلار ډير سپين ږيری سو او پر سپرلۍ نه سي تللای ایا زه د هغه د لوري حج وکړم؟

عَنْهُ قَالَ نَعَمْ وَذٰلِكَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ . متفق عليه

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :هو، او دا د رسول الله ﷺ د آخري حج پېښه ده . بخاري او مسلم

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳\۳۷۸، رقم: ۱۵۱۳، ومسلم۲\۹۷۳رقم ۴۰۷- ۱۳۳۴.

**تشريح**: د هغه ښځي د خبري مطلب دا وو چي زما پر پلار باندي په سپین ږېرتوب کي حج فرض سوی دی په دې سبب چي هغه په سپین ږيرتوب کي مسلمان سوی دی او د هغه سره دومره مال دی چي د هغه په وجه پر هغه حج فرض کیږي ، یا دا چي اوس په سپين ږيرتوب کي هغه ته دومره تر لاسه سوی دی چي پر هغه حج فرض سوی دی مګر هغه دومره ضعیف او کمزوری دی چي د حج د ارکانو او افعالو ادا کول خو ليري هغه پر سپرلۍ باندي هم نه سي کښېنستلای، نو ایا زه د هغه له خوا حج وکړم ؟ رسول الله ﷺ په جواب کي ورته وفرمایل: هو ، د هغه له خوا ته حج وکړه ، مسئله داده که چیري پر یو سړي باندي حج فرض وي او هغه په خپله د حج کولو څخه

معذور وي او يا دا چي د هغه عذر داسي وي چي تر مرګ پوري زائل کېدونکی نه وي لکه د سپين ږيرتوب کمزوري، ړوند والی، د پښو پرې کېدل يا داسي نور، نو د هغه له خوا دوهم سړي ته حج کول جائز دي په شرط ددې چي هغه معذور د خپل طرف څخه حج کونکي ته د حج مصرف هم ورکړي او د خپل طرف څخه د حج کولو حکم هم ورکړي او د هغه د مرګ وروسته هم د هغه له خوا دوهم سړی حج کولای سي که چيري د هغه په وصيت کولو سره مړ سوی وي مګر ځيني علماء وايي که چيري اولاد د خپل مور او پلار له خوا فرض حج وکړي نو په دغه صورت کي هم حکم او وصيت شرط نه دی يعني د مور او پلار له طرف څخه حج کول بېله حکم او وصيته هم جائز دی ، دا خو د فرض حج مسئله وه .

د نفلي حج مسئله دا ده که چيري يو څوک د خپل طرف څخه د بل چا لپاره نفلي حج وکړي نو معذوري شرط نه ده يعني که چيري په خپله هغه ته د حج کولو قدرت حاصل وي نو ددې سربېره هغه په بل چا نفل حج کولای سي .

د پورتنۍ ذکر سوې مسئلې په ذهن کي ساتلو سره حديث ته راسئ ، هغه ښځي د خپل پلار له طرف څخه د حج کولو په باره کي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه مګر هغه وضاحت نه کوي ځکه په ظاهره دا معلومېږي چي د هغې پلار نه خو د خپل طرف څخه د حج کولو حکم ورکړی دی او نه يې هغې ته مصرف ورکړی دی ګويا د حديث په ظاهري مفهوم او پورتنۍ ذکر سوې فقهي روايت کي چي د چا د طرف څخه حج کېدای سي د هغه حکم او د هغه د طرف څخه د مصرف ادا کول د حج صحيح کېدو شرط دی په دې کي تضاد معلومېږي نو دغه تضاد ددغه تاويل په ذريعه ختمېدای سي چي د هغه ښځي پلار هغې ته د خپل طرف څخه د حج کولو اجازه هم ورکړې وي او هغې ته يې مصرف هم ورکړی وي مګر هغې ددې يادونه نه وي کړې ، ددغه تاويل بنياد د شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله هغه تقرير دی کوم چي هغه د ابورزين رضي الله عنه د روايت په وضاحت کي بيان کړی دی، دغه روايت به ددغه باب په دوهم فصل کي راسي ، د ځينو علماؤ قول دی چي د مور او پلار له خوا فرض حج کول بېله د حکم او وصيت څخه هم جائز دی ددې د تاويل هيڅ ضرورت نه سته بلکه په دغه صورت کي خو دغه حديث ددغه فقهي روايت دليل هم جوړېږي .

﴿۲۳۹۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ أَتَى رَجُلٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّ أُخْتِي نَذَرَتْ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کي عرض وکړ

چې زما خور نذر اېښی وو

أَنْ تَحُجَّ وَإِنَّهَا مَاتَتْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كَانَ عَلَيْهَا دَيْنٌ

د حج کولو او مړه سوه ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ایا که پر هغې پور وای نو تا به ادا کړی وای ؟

أَكُنْتَ قَاضِيَهُ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَاقْضِ اللّٰهَ فَهُوَ أَحَقُّ بِالْقَضَاءِ . متفق عليه

هغه عرض وکړ هو ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : نو بیا د الله تعالی پور هم ادا کړه او ددې ادا کول ضروري او مناسب دي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۱\ ۵۸۴، رقم: ۶۶۹۹، ومسلم ۲\ ۸۰۴، رقم: ۱۵۵- ۱۱۴۸.

**تشريح**: ددغه حدیث څخه دا خبره ثابتیږي چې هغه ته د خور په میراث کې څه مال حاصل سوی وو نو رسول الله ﷺ پر حق الله او حق العباد باندي په قیاس کولو سره هغه ته د خور د نذر حج کولو حکم ورکړ .

**مسئله** : د وارث لپاره جائز دي چې هغه د مورث د طرف څخه د هغه د اجازې او وصیت څخه پرته هم حج وکړي یا د هغه له طرف څخه خپله حج وکړي مګر د نورو لپاره اجازه او وصیت شرط دی چې ددې څخه پرته حج نه صحیح کیږي .

**ښځه د خاوند یا محرم بغیر حج ته نه سي تللای**

﴿۲۳۹۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل : نه دي سړی د ښځي سره

بِامْرَأَةٍ وَلَا تُسَافِرَنَّ امْرَأَةٌ إِلَّا وَمَعَهَا مَحْرَمٌ فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ

یو ځای کیږي ، او نه دي ښځي پرته د محرم څخه سفر کوي ، یو سړی عرض وکړ ای د الله رسوله !

اكْتُتِبْتُ فِي غَزْوَةِ كَذَا وَكَذَا وَخَرَجَتْ امْرَأَتِي حَاجَّةً قَالَ اذْهَبْ فَحُجَّ مَعَ امْرَأَتِكَ . متفق عليه

زما نوم په فلاني او فلاني غزا کي لیکل سوي دي او زما ښځه حج ته تلونکې ده ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ته د خپلي ښځي سره حج وکړه . بخاري او مسلم

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ٦\١٤٢، رقم: ٣٠٠٦، ومسلم ٢\٩٧٨، رقم: ٤٢٤-١٣٤١.

**تشريح** : د پردې ښځي او سړي لپاره حرام دي چي هغوئ په يوازي ځای کي يو ځای سي همدا رنګه ښځي ته د سفر د مسافت په اندازه (يعني ۴۸ ميله يا ۷۸ کيلوميټر) يا تر دې زيات مسافت کي د خاوند يا محرم څخه پرته سفر کول حرام دي تر دې چي د حج په سفر کي هم د ښځي لپاره د هغې سره د خاوند يا محرم تلل واجب دي يعني پر ښځه باندي هغه وخت حج فرض کيږي کله چي د هغې سره خاوند يا محرم وي.

محرم : د شريعت په اصطلاح کي محرم هغه ته وايي چي د هغه نکاح د همېشه لپاره د ښځي سره حرامه وي که هغه د قرابت په لحاظ وي يا د تي رودلو يا د خسرګنۍ په وجه وي او د محرم عاقل او بالغ کېدل او مجوسي او فاسق نه کېدل هم شرط دي.

## د ښځي جهاد حج دئ

﴿۲۴۰۰﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ اسْتَأْذَنْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجِهَادِ فَقَالَ جِهَادُكُنَّ الْحَجُّ. متفق عليه

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه په جهاد کي د تللو اجازه وغوښتل نو رسول الله ﷺ راته وفرمايل : ستاسو جهاد حج دئ. بخاري او مسلم.

**تخريج** : البخاري في الصحيح : ٦\٧٥، رقم: ٢٨٧٥. ولم نجده عند مسلم.

## د خاوند يا محرم بغير د ښځي د سفر حد

﴿۲۴۰۱﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُسَافِرُ امْرَأَةٌ مَسِيرَةَ يَوْمٍ وَّلَيْلَةٍ إِلَّا وَمَعَهَا ذُو مَحْرَمٍ. متفق عليه

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ښځي دي د يوې شپې او ورځي د مسافت سفر نه کوي تر څو پوري چي د هغې سره محرم (قريب) نه وي. بخاري او مسلم.

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ٢\٥٦٦، رقم: ١٠٨٨، ومسلم ٢\٩٧٧، رقم: ٤٢١-١٣٣٩

**تشريح** : دلته د حديث او فقهي روايت تضاد راتللای سي په داسي توګه چي په هدايه کي کوم چي د فقه حنفي مشهور کتاب دی ليکلي دي چي ښځو ته پرته د خاوند يا محرم څخه يو داسي

ځای ته سفر کول مباح دی چي د هغه مسافت د سفر د حد څخه کم وي مگر دلته د حدیث څخه دا ثابتیږي چي هیڅ ښځه پرته د خاوند یا محرم څخه د داسي ځای سفر هم نه سي کولای کوم چي د یوې ورځي او یوې شپې د مسافت په اندازه وي او په بخاري او مسلم کي هم دا روایت منقول دی چي هیڅ ښځه دي د دوو ورځو د مسافت په اندازه سفر نه کوي مگر دا چي د هغې سره د هغې خاوند یا محرم وي.

د فقهاؤ قول په ظاهر ددغه روایت مخالف معلومیږي مگر ددغه اختلاف او تضاد لیري کولو لپاره علماء وايي چي په حدیث کي په مطلق توگه سره دا منقول چي هیڅ ښځه دي د خپل خاوند یا محرم څخه پرته سفر نه کوي نو په شرعي توگه د سفر اطلاق پر درو ورځو کم باندي نه کیږي ځکه فقهاء دغه حدیث د درو ورځو د مسافت په اندازه باندي محمول کړی دی او دا فقهي قاعده یې ترتیب کړې ده چي هیڅ ښځه دي د دومره لیري سفر چي د درو ورځو د مسافت په اندازه وي پرته د خاوند یا محرم څخه نه کوي او کله چي د درو ورځو د مسافت په اندازه یوازي سفر نه سي کولای نو ددې څخه د زیات مسافت په اندازه سفر کول خو به په درجه اولی جائز نه وي او په کومو حدیثو کي چي د دوو ورځو یا د یوې ورځي دمسافت په اندازه د سفر څخه منع سوې ده دا یې پر فتنه او فساد باندي محمول کړی دی که سفر د درو ورځو د مسافت څخه کم یعني د دوو ورځو یا د یوې ورځي د مسافت په اندازه وي او د یو فتنې او فساد مثلاً د ښځي د بې عزتۍ گمان وي نو په دغه صورت کي هم ښځي ته یوازي سفر کول نه دي پکار.

یا به داسي وویل سي چي د درو ورځو د مسافت په اندازه د سفر منع منقول ده نو ددې څخه مراد دادی چي هر منزل د ورځي په اکثر برخه کي قطع کیږي نو همدارنگه په درو ورځو کي درې منزلونه قطع کیږي او چیري چي د دوو ورځو د مسافت منع ده نو د هغه څخه مراد دادی چي ټوله ورځ ولاړ سي یعني په یوه ورځ کي یو نیم منزل قطع کړي او همدارنگه په دوو ورځو کي درې منزلونه قطع کیږي او چیري چي د یوې ورځي او شپې د سفر منع ده نو دهغه څخه مراد دادی چي شپه او ورځ روان وي یعني یو نیم منزل پوره ورځ کي قطع کړي یو نیم منزل په پوره شپه کي قطع سي همدارنگه یوه ورځ او یوه شپه کي درې منزلونه قطع کیږي.

ددغه تاویل په وجه د هغه روایتونو مقصد د درو ورځو د مسافت په اندازه ښځي ته د یوازي سفر کولو څخه منع ثابتیږي او په ټولو روایتو کي څه تضاد هم نه پاته کیږي په دې اره د شیخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله دا خبره ډېر ښه ده چي دا ټول روایتونه چي د هغو څخه د ښځي د یوازي سفر کولو منع ثابتیږي او په هغه کي د سفر د حد په باره کي اختلاف دی نو

مقصد د سفر حد او وخت تاکل نه دي بلکه ددغه روایتو مجموعي خلاصه داده چي ښځه دي پرته د خاوند یا محرم څخه یوازي سفر مطلقا نه کوي مسافت که اوږد وي او که لنډ وي ، په اوسنۍ زمانه کي چي د فتنې او فساد بېره عامه ده او انساني ذهن پر غلطه طریقه او تعلیم او تربیت او د فاسد ماحول په وجه د بې حیایۍ او فحاشۍ مرکز جوړ سوی دی د احتیاط تقاضا داده چي ښځه دي مطلقا یوازي سفر نه کوي سفر که لږ وي یا زیات ځکه چي د فساد او فتنې بېره په هر صورت کي وي .

## مواقيت حج

﴿۲۴۰۲﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ وَقَّتَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَهْلِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د احرام تړلو ځای (میقات) د

الْمَدِينَةِ ذَا الْحُلَيْفَةِ وَلِأَهْلِ الشَّأْمِ الْجُحْفَةَ وَلِأَهْلِ نَجْدٍ قَرْنَ الْمَنَازِلِ

مدینې اوسیدونکو لپاره ذوالحلیفة، د شام اوسیدونکو لپاره جحفة، د نجد اوسیدونکو لپاره قرن منازل

وَلِأَهْلِ الْيَمَنِ يَلَمْلَمَ فَهُنَّ لَهُنَّ وَلِمَنْ أَتَى عَلَيْهِنَّ مِنْ غَيْرِ أَهْلِهِنَّ لِمَنْ كَانَ

او د یمن اوسیدونکو لپاره یلملم وټاکئ ، دا ټول ځایونه د احرام تړلو لپاره دي او څوک چي ددغه ښارو څخه وي او په دغه ځایو کي پر یو ځای تیر سي نو هغه دي د هغه ځای څخه احرام

يُرِيدُ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَمَنْ كَانَ دُونَهُنَّ فَمُهَلُّهُ مِنْ أَهْلِهِ وَكَذَاكَ وَكَذَاكَ حَتَّى أَهْلُ مَكَّةَ يُهِلُّونَ مِنْهَا . متفق عليه

وتړي او دا احرام د هغه خلکو لپاره دئ چي د حج او عمرې په اراده پر دغه ځایو تیر سي او کوم خلک چي په دې ځایو کي اوسیږي هغوئ دي په خپل کور کي احرام وتړي همداسي د مکې اوسیدونکي دي د مکې څخه احرام وتړي . بخاري او مسلم.

**تخریج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۳/۳۸۷، رقم: ۱۵۲۶، ومسلم ۲/۸۳۸، رقم: ۱۱-۱۱۸۱

**تشریح** : د احرام معنی ده حرامول یعني پر حج کونکي باندي یو څو شیان حرام کیږي نو ددغه اظهار لپاره چي ددغه وخت څخه دغه شیان حرام سوي دي یوه جامه چي یوازي یو څادر او یو

لونګ وي د حج په نيت اغوستل کيږي چي هغه ته احرام وايي مګر دا خبره دي په ذهن کي وي چي د احرام عمل د هغه وخت څخه شروع کيږي کله چي د احرام اغوستلو څخه وروسته د حج نيت وکړل سي او لبيک وويل سي يا يو داسي فعل وکړل سي چي د تلبيه په مثل وي لکه د قرباني حيوان استول کنه نو يوازي د احرام د جامې په اغوستلو سره يو سړی نه سي محرم کېدای .

**مواقيت**: د ميقات جمع ده ميقات هغه ځای ته وايي چيري مکې مکرمې ته تلونکي کسان احرام تړي او مکې مکرمې ته د تلونکو لپاره هلته پرته د احرام څخه وړاندي کېدل منع دي.

ذوالحليفة : د يو ځای نوم دی چي د مديني منورې څخه په جنوب کي تقريبا د شپږ مېله (لس کيلو ميتره) پر فاصله باندي واقع دی دې ته ابيار علي هم وايي، دغه ځای د مديني او د مديني منورې له خوا څخه د راتلونکو لپاره ميقات دی .

جحفه: د يو ځای نوم دی دغه ځای د مکې مکرمې څخه پر ۱۱۵ مېله فاصله باندي او د رابغ څخه پر شو مېله په جنوب کي واقع دی، دا د قريشو تجارتي لويه لاره او اډه وه اوس غير اباد دی دغه ځای د شام او مصر له خوا د راتلونکو لپاره ميقات دی .

نجد : نجد په اصل کي لوړي مځکي ته وايي مګر په اصطلاح کي د جزيره عرب د يو سيمي نوم دی چي د سعودي عرب يوه برخه ده دغه سيمي ته نجد ځکه ويل کيږي چي د سيند د سطحي څخه دغه سيمه ښه لوړه ده ، دا وخت د جزيرة العرب ټوله وسطي سيمه چي نجد ورته ويل کيږي په شمال کي د بادية الشام د جنوبي سر څخه په شروع کېدو سره په جنوب کي د وادي الاواسر يا الربع الخال پوري او عرضا د احساء څخه تر حجاز پوري خپره سوې ده د سعوي حکومت دار السلطنت رياض د نجد په سيمه کي دی .

قرن المنازل : دا يو غرنۍ سيمه ده چي تقريبا دېرش ميله په جنوب کي د تهامه يوه غرنۍ سيمه ده ، دغه غرنۍ سيمه مکې ته د راتلونکي لار باندي واقع ده ددغه سيمي سره پيوست سعديه نامي يو کلی دی دا د يمن له خوا د راتلونکو ميقات دی ، د پاکستان، افغانستان او هندوستان څخه راتلونکي کسان ددغه غرنۍ سيمي مخته تېريږي ځکه نو ددغه هيوادو د راتلونکو لپاره دغه ميقات دی، ددغه مواقيت څخه پرته يو ميقات ذات عرق دی دا د مکې مکرمې څخه تقريبا شپيته ميله فاصله باندي شمال مشرق ته د عراق د راتلونکو پر لار واقع دی او د عراق څخه د راتلونکو لپاره ميقات دی .

د حديث الفاظ : لمن کان يريد الحج والعمرة : (او دغه د احرام ځايونه د هغه کسانو لپاره

دي كوم چي د حج او عمرې اراده وكړي ) ددې څخه دا خبره ښکاريږي كه يو څوك (يعني ترې مكې ) د حج او عمرې د ارادې څخه پرته د ميقات څخه تېر سي نو د هغه دپاره ضروري نه ده چي هغه په مكه كي د داخلېدو دپاره احرام وتړي لكه څرنګه چي د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دی مګر د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه د مذهب سره سم په مكه كي بېله احرامه د داخلېدل جائز نه دي كه د حج او عمرې اراده وي او كه نه وي. يعني كه يو څوك يعني غير مكي سړی مكې مكرمې ته د ننوتلو اراده كوي نو كه هغه د حج دپاره ځي يا د بل مقصد دپاره ځي نو بېله احرامه مكې ته نه سي د ننوتلای د حنفي مذهب دليل د رسول الله ﷺ دغه مبارك قول دی:

لا يجوز احد الميقات الا محرما: هيڅوك دي په مكه كي د داخلېدو دپاره د ميقات څخه مخته بېله احرامه نه ځي. دغه حديث په دې باره كي مطلق دی په دې كي د حج او د عمرې د ارادې قيد نه سته بېله دا چي احرام هغه مقدس او محترم ځای يعني د كعبې شريفي د تعظيم او احترام په قصد تړل كيږي كه حج او عمره وكړل سي او كه و نه كړل سي. ددغه حكم تعلق چي څرنګه چي د حج او عمرې كوونكو سره دی همدارنګه دغه حكم د تاجرانو او سيلانيانو دپاره هم دی هو كوم خلك چي په ميقات كي دننه وي هغوی د خپل حاجت دپاره بېله احرامه مكې د ننوتلای سي هغوی ته په وار وار مكې مكرمې ته تلل وي نو په دې اړه هغوی د احرامه بې مكه په حكم كي داخل دي لكه څرنګه چي د هغوی لپاره دا جائز دي كه هغوی د يو كار دپاره مكې مكرمې څخه د باندي ووځي او بيا په مكه كي داخليږي نو بېله احرامه راسي همدارنګه د ميقات كي دننه اوسېدونكو ته هم د احرام څخه پرته په مكه كي داخلېدل جائز دي.

فمن كان دونهن: او كوم څوك چي په دغه ميقات كي دننه اوسيږي. مطلب دا دی چي كوم خلك په ميقات كي دننه خو د حرم د حدود څخه د باندي اوسيږي نو د هغوی لپاره د احرام تړلو ځای د هغوی د كور څخه د حرم تر حده پوري دی هغوی ته د احرام تړلو دپاره ميقات ته تلل ضروري نه دي كه څه هم هغوی ميقات ته نژدې وي.

كوم خلك چي خاص په ميقات كي اوسيږي د هغوی په باره كي په دغه حديث كي څرګند حكم نه سته مګر جمهور علماء وايي چي د هغوی حكم هم هغه دی كوم چي په ميقات كي دننه اوسېدونكو لپاره دی.

وكذاك وكذاك: او همداسي او همداسي: ددې تعلق د اولني جملې سره دی چي د حرم څخه د باندي تر مواقيت پوري كوم منځګړی ځای دی څوك چي په كوم ځای كي اوسيږي د هغه ځای څخه دي احرام وتړي يعني د ميقات او حد حرم په مينځ كي چي كوم خلك اوسيږي هغوی

دي د خپل کور څخه احرام تړي که څه هم هغوئ ميقات ته بالکل نژدې وي يا د ميقات څخه ليري وي او حد حرم ته هر څو مره نژدې وي.

حتى اهل مكة يهلون منها : مطلب دادی چي د مکې مکرمې اوسيدونکي يعني اهل حرم دي د مکې څخه احرام تړي او کوم خلک چي خاص د مکې په ښار کي اوسيږي هغوئ دي خاص د مکې څخه احرام وتړي او کوم خلک چي خاص د مکې په ښار کي نه اوسيږي بلکه د ښار څخه د باندي اوسيږي نو هغوئ به د حرم مکې څخه احرام تړي ، د حديث د آخري الفاظو څخه په ظاهره دا معلوميږي چي د مکې مکرمې د اوسيدونکو لپاره د احرام تړلو ځای مکه ده که احرام د حج لپاره وي او که د عمرې لپاره مګر مسئله داده چي عمره کونکي دي حل ته ولاړ سي او د هغه ځای څخه دي په احرام تړلو سره په حرم کي داخل سي ځکه چي نبي کريم ﷺ بي بي عائشې رضي الله عنها ته حکم ورکړی وو چي هغه د عمرې د احرام تړلو لپاره تنعيم ته ولاړه سي کوم چي په حل کي دی نو دا به وويل سي چي د دغه حديث تعلق يوازي د حج سره دی يعني دغه حکم د اهل مکې لپاره دی کله چي هغوئ د حج اراده وکړي نو احرام دي د مکې څخه وتړي او که د عمرې کولو اراده وي نو بيا په حل کي په راتلو کي دي احرام وتړي لکه څرنګه چي د بي بي عائشې رضي الله عنها د حديث څخه ثابته ده.

﴿۲۴۰۳﴾: وَعَنْ جَابِرٍ عَنْ رَّسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مُهَلُّ أَهْلِ

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د مدينې اوسيدونکي دي د

الْمَدِينَةِ ذُو الْحُلَيْفَةِ وَالطَّرِيقُ الْآخَرُ الْجُحْفَةُ وَمُهَلُّ أَهْلِ الْعِرَاقِ مِنْ ذَاتِ

ذوالحليفة څخه احرام وتړي او دويم ځای د احرام تړلو (د مدينې د اوسيدونکو لپاره) جحفه ده

عِرْقٍ وَ مُهَلُّ اَهْلِ نَجْدٍ قَرْنٌ وَمُهَلُّ أَهْلِ الْيَمَنِ يَلَمْلَمُ . رواه مسلم

او د عراق اوسيدونکي دي د ذات عرق څخه احرام وتړي او د نجد اوسيدونکي دي د قرن څخه او د يمن اوسيدونکي دي د يلملم څخه . مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۸۴۱، رقم: ۱۸- ۱۱۸۳.

**تشريح**: او دوهمه لار جحفه ده : مطلب دادی چي د مدينې منورې د اوسيدونکو لپاره د احرام تړلو دوهم ځای جحفه دی که چيري هغوئ د مکې مکرمې لپاره د مدينې منورې څخه هغه لار

اختيار کړي په کوم کي چي جحفه يو ځای کيږي نو هغوئ دي بيا د جحفه څخه احرام وتړي او ذوالحليفه ته د تلو ضرورت نه سته .

اصل خبره داده چي مخکي د مدينې منورې څخه مکې مکرمې ته د راتلو لپاره دوې لارې وې چي په يوه لاره کي ذوالحليفه راتلل او په دوهمه لاره کي جحفه ځکه دا حکم ورکړل سو که چيري هغه لار اختيار کړل سي چي په هغه کي ذوالحليفه راځي نو احرام دي د ذوالحليفه څخه وتړل سي او که هغه لار اختيار کړل سي چي په هغه کي جحفه راځي نو بيا د جحفه څخه دي احرام وتړل سي مګر اوس يوه لاره سوې ده چي په هغه کي ذوالحليفه راځي او بيا جحفه همدارنګه د مدينې د اوسيدونکو لپاره دوه ميقاته سوي وي په دغه صورت کي دا سوال پيدا کيدای سي چي اوس د مدينې منورې اوسيدونکي احرام د کوم ځای څخه وتړي ؟ نو علماء کرام ليکي چي د هغه ځای څخه احرام تړل غوره دي کوم چي د مکې څخه پر زياته فاصله واقع وي يعني ذوالحليفه او که چيري يو څوک د جحفه څخه احرام وتړي نو دا هم جائز دی .

## د رسول الله ﷺ عمرې

(۲۴۰۴): وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ اِعْتَمَرَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعَ عُمَرٍ

حضرت انس ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ څلور عمرې وکړې

كُلُّهُنَّ فِي ذِي الْقِعْدَةِ إِلَّا الَّتِي كَانَتْ مَعَ حَجَّتِهِ عُمْرَةً مِنَ الْحُدَيْبِيَةِ فِي ذِي

او څلور سره يې د ذيقعده په مياشت کي ادا کړې مګر کومه عمره چي رسول الله ﷺ د حج سره ادا کړه هغه يې په ذي الحجې مياشت کي کړې وه

الْقِعْدَةِ وَعُمْرَةً مِنَ الْعَامِ الْمُقْبِلِ فِيْ ذِيْ الْقَعْدَةِ وَعُمْرَةٌ مِّنَ الْجِعْرَانَةِ حَيْثُ

او هغه درې سره عمرې چي په ذيقعده کي يې کړي وې دادي : يوه عمره رسول الله ﷺ د حديبيې څخه په ذيقعده مياشت کي وکړه ، دويمه عمره يې راتلونکی کال وکړه او هغه هم ذيقعده مياشت وه ، او دريمه عمره يې د جعرانه څخه وکړه په کوم ځای کي چي يې

قَسَمَ غَنَائِمَ حُنَيْنٍ فِي ذِي الْقِعْدَةِ وَعُمْرَةً مَعَ حَجَّتِهِ. متفق عليه

د غزوه حنين د غنيمت مال وويشي او هغه هم ذيقعده مياشت وه ، او څلورمه عمره يې د حج سره ادا کړه او هغه يې په ذي الحجة مياشت کي ادا کړې وه ، بخاري او مسلم .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۷\۴۳۹، رقم: ۴۱۴۸، ومسلم ۱۲\۹۱٦، رقم: ۲۱۷- ۱۲۵۳

**تشريح**: حديبيه د يو ځای نوم دی چې د مکې مکرمې څخه مغرب خوا ته تقريبا پر پنځلس يا شپاړلس ميله فاصله باندي جدې ته په تلو کي واقع دی دا د مکې څخه شمال مغرب ته دی دلته جبل الشميسي نامی غر هم دی چې د هغه په وجه اوس هغه ځای ته شميسيه هم وايي د حرم حدود د دغه ځای څخه هم تيريږي ځکه د دغه ځای اکثره برخه په حرم کي ده او يو لږ برخه په حل کي ده.

د حديبيه د عمرې اجمالي بيان دادی چې په شپږم هجري کال کي د ذي العقده پر اول تاريخ د دوشنبې په ورځ نبي کريم ﷺ د عمرې په قصد سره د مدينې منورې څخه روان سو، څوارلس سوه يا تر دې زيات ملګري د رسول الله ﷺ سره وه، کله چې رسول الله ﷺ حديبيې ته ورسيدی نو د مکې قريش جمع سول او رسول الله ﷺ ته راغلل او د بيت الله شريف د زيارت څخه يې منع کړ د ډېر بحث څخه وروسته چې د هغه تفصيل د تاريخ او سيرت په کتابو کي موجود دی، رسول الله ﷺ او قريشو په مينځ کي يوه معاهده په عمل کي راغلل چې د حديبيې د معاهدې يا صلح حديبيه په نامه مشهوره ده، په دغه معاهده کي دا فيصله وسوه چې رسول الله ﷺ به سره د ملګرو سږ کال مدينې ته بېرته ولاړ سي او راتلونکی کال دي راسي عمره دي وکړي نو رسول الله ﷺ د قريشو سره د صلح کولو سره د عمرې څخه پرته مدينې منورې ته ولاړ، په حقيقت کي رسول الله ﷺ عمره ادا نه کړه مګر د عمرې د ثواب تر لاسه کولو په وجه دا د رسول الله ﷺ اولنۍ عمره شمېرل کيږي. دلته د احصار حکم مشروع سو نو راتلونکی کال د دغه عمرې د قضا لپاره رسول الله ﷺ مکې مکرمې ته تشريف راوړ درې ورځي يې په مکه کي قيام وکړ عمره يې ادا کړه او په څلورمه ورځ د هغه ځای څخه ستون سو، دا دوهمه عمره سوه او دې عمرې ته عمرة القضاء وايي، دغه نوم په حديثو کي هم نقل سوی دی، حنفيه حضراتو ددې څخه په استدلال کولو سره وايي که چيري محرم د احصار په وجه د احرام څخه ووځي نو د هغه قضاء پر هغه واجبيږي او د امام شافعي رحمه الله په نزد قضاء نه واجبيږي.

د رسول الله ﷺ دريمه عمره هغه ده کوم چې رسول الله ﷺ د جعرانه څخه مکې مکرمې ته په تلو سره ادا کړې ده چيري چې رسول الله ﷺ د حنين د غزا مال تقسيم کړی وو، ددې تفصيل دادی چې جعرانه د مکې مکرمې او طائف په مينځ کي د يو ځای نوم دی کله چې د مکې مکرمې د فتح څخه وروسته په اتم هجري کال کي د حنين غزا واقع سوه نو هغه وخت بې شمېره غنيمت لاس ته راغلی دلته رسول الله ﷺ په جعرانه کي پنځلس يا شپاړلس ورځي قيام وکړ او

هغه د غنيمت مال يې په صحابه كرامو كي تقسيم كړ ، په دغه ورځو كي يو وار په شپه كي د ماخستن د لمانځه څخه وروسته رسول الله ﷺ مكې مكرمې ته تشريف يووړ او عمره يې ادا كړه او په هغه شپه كي بېرته راغلی او په جعرانه كي يې د سهار لمونځ وكړ .

څلورمه عمره هغه ده كوم چي رسول الله ﷺ د حج فرض كېدو وروسته په لسم هجري كال كي د حج سره ادا كړه نو دا عمره خو په ذي الحجه كي وسوه او پاته عمرې په ذي قعده كي سوي دي همدارنګه رسول الله ﷺ چي كومي څلور عمرې كړي دي هغه دغه وې، البته د اسلام په زمانه كي رسول الله ﷺ يووار حج كړی دی كله چي حج فرض سو ، د جاهليت په ورځو كي به قريشو حج كوی او رسول الله ﷺ به هم هغه وخت حج كوی مګر د هغه شمېر علماء كرامو ته په صحيح توګه معلوم نه دی .

## د حج او عمرې فرق

د حج او عمرې كيفيت او د هغه د متعلقاتو د تفصيل بيان به مخكي راسي مګر دلته يوازي په دې خبره پوهېدل پكار دي چي په حج او عمره كي فرق څه شي دی؟ په حج كي د عرفات وقوف، د بيت الله شريف طواف او د صفا او مروه په مينځ كي سعي كيږي او په عمره كي يوازي د بيت الله شريف طواف، د صفا او مروه په مينځ كي سعي كيږي، احرام د دواړو لپاره شرط دی لكه څرنګه چي حج بېله احرامه نه صحيح كيږي همدارنګه عمره هم بېله احرامه نه صحيح كيږي ، بله خبره داده چي حج فرض هم وي او سنت او نفل هم وي مګر عمره فرض نه ده يوازي سنت او نفل ده هو كه چيري يو څوک د عمرې نذر ومني نو بيا عمره كول واجب ده .

### د حج څخه مخكي رسول الله ﷺ دوې عمرې كړي وې

﴿۲۴۰۵﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ اعْتَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذِي الْقَعْدَةِ قَبْلَ أَنْ يَحُجَّ مَرَّتَيْنِ . رواه البخاري

د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د حج څخه وړاندي دوې عمرې وكړې او هغه دواړې يې د ذي القعدة په مياشت كي ادا كړې . بخاري .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳/۶۰۰، رقم: ۱۷۸۱.

**تشريح**: تر دې مخكي په حديث كي خو دا معلومه سوې ده چي رسول الله ﷺ د حج څخه مخكي درې عمرې كړي دي ، او دا حديث د حج څخه مخكي د رسول الله ﷺ د عمرو شمېر دوه

ښيي، ددغه دواړو حديثو تضاد داسي ليري کيږي چي د حديبيه د صلح پر وخت که څه هم په ظاهره رسول الله ﷺ عمره ونه کړل مگر الله تعالى حکم ورکړى وو چي رسول الله ﷺ دي د احرام څخه ووځي او هغه ته به د عمرې ثواب ورکړل سي نو رسول الله ﷺ د عمرې افعال ادا کړي نه دي، په کوم روايت کي چي د حج څخه مخکي د عمرو شمېر درې ښودل سوى دى نو په هغو کي يوازي عمرې مراد دى او د عمرې ثواب مراد نه دى، په دې اعتبار سره درې عمرې شمېرل سوي دي او په کوم روايت کي چي د حج څخه مخکي د عمرو شمېر دوه ښودل سوى دى نو د هغه څخه مراد دادى چي که څه هم رسول الله ﷺ ته د درو عمرو ثواب حاصل سوى دى مگر په ظاهري توگه رسول الله ﷺ دوې عمرې کړي دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### حج په ټول عمر کي يو وار فرض دى

﴿۲۴۰۶﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَيُّهَا

د حضرت ابن عباس ؓ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: اې خلکو!

النَّاسُ ان الله كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْحَجُّ فَقَامَ الْأَقْرَعُ بْنُ حَابِسٍ فَقَالَ اَفِي كُلِّ

الله جل جلاله پر تاسو حج فرض کړی دئ، اقرع بن حابس پورته شو او وکړه اې دالله رسوله! ايا هر کال؟

عَامٍ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ لَوْ قُلْتُهَا نعم لَوَجَبَتْ وَلَوْ وَجَبَتْ لَمْ تَعْمَلُوا بِهَا أَوْ لَمْ

رسول الله ﷺ وفرمايل: که چيري ما هو کړې واى نو هر کال به حج واجب سوى واى او که هر کال واجب سوى واى نو تاسو به نه سواى ادا کولاى،

تَسْتَطِيعُوا والحج مرة فَمَنْ زَادَ فَتَطَوُّعٌ. رواه احمد والنسائي والدارمي.

او نه به مو دادا کولو توان درلودئ، حج په ټول عمر کي يوازي يو وار فرض دئ او څوک چي تر دې زيات وکړي هغه نفل دئ. احمد، نسائي او دارمي.

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۱\ ۲۵۵، والنسائي ۵\ ۱۱۱، رقم: ۲۶۲۰، والدارمي في السنن ۱۷\ ۴۶، رقم: ۸۱۲.

## د توان سر بيره د حج نه کونکي وعيد

﴿۲۴۰۷﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ مَلَكَ زَادًا

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي خاوند وي د لاري د

وَرَاحِلَةً تُبَلِّغُهُ إِلَى بَيْتِ اللّٰهِ وَلَمْ يَحُجَّ فَلَا عَلَيْهِ أَنْ يَمُوتَ يَهُودِيًّا أَوْ نَصْرَانِيًّا

مصرف او د سپرلۍ او هغه حج ادا نه کړي نو د هغه په يهودي او نصراني مړ کېدو کي هيڅ فرق نسته

وَذٰلِكَ أَنَّ اللّٰهَ تبارك وتعالى يَقُولُ فِي كِتَابِهِ { وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ

او دا ځکه چي الله تعالى فرمايلي دي: (و لله .... سبيلا) د الله تعالى لپاره د بيت الله حج کول پر

اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا } .رواه الترمذي و قَالَ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَفِي إِسْنَادِهِ

مَقَالٌ وَهِلَالُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ مَجْهُولٌ وَالْحَارِثُ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ .

خلکو فرض دئ هر کله چي هغوئ د لاري مصرف او نورو خرڅو توان ولري، ترمذي، دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۱۷۶، رقم: ۸۱۲.

**تشريح**: مطلب دادی چي د کوم چا سره دومره روپۍ وي چي هغه د حج په سفر ولاړ سي او د بېرته راتلو د مصرف لپاره هم کافي سي او خپل کورنۍ ته هم دومره مال ورکړي چي د هغه تر ستنېدو پوري د هغوئ د ژوند اړتياوي پوره کړل سي او د هغه سره داسي سپرلۍ وي چي هغه بيت الله شريفي ته ورسوي که هغه يې خپله وي او که د کرايه وي او هغه د دومره استطاعت او قدرت سربېره بيا هم حج ونه کړي او مړ سي نو هغه يهودي او نصراني مړ سو .

اوس دلته دا تفصيل دی که چيري هغه د استطاعت او قدرت سربېره ځکه حج ونه کړ چي هغه ددې د فرضيت څخه منکر وي نو بيا د يهود او نصراني ددغه مشابهت تعلق به د کفر سره وي يعني څرنګه چي يهودي او نصراني د کفر په حالت کي مړ کيږي همدارنګه به هغه هم د کفر په حالت کي مړ کيږي ، او که چيري د فرضيت د منکر کېدو څخه پرته حج ونه کړي نو ددغه مشابهت تعلق به د ګناه سره وي چي يهودي او نصراني د څومره سختي ګناه په حالت کي مړ کيږي همدارنګه هغه هم د دومره سخت بار په اخيستو سره مړ کيږي، ځيني علماء وايي چي

رسول الله ﷺ دغه وعيد تغليظ او سختئ له مخي يعني د حج د پرېښودو د ګناه پر شدت او هيبت باندې د اظهار لپاره فرمايلي دي مګر په هر حال حج پرېښودل يوه داسې ګناه ده او دومره سخت جرم دی چې نبي كريم ﷺ يې دومره سخت وعيد فرمايلی دی چې حج نه كونكی يهودي او نصراني كېدو سره مړ كيږي . العياذ بالله .

اليه سبيلا : د آيت پاته برخه داده : ومن كفر فان الله غني عن العالمين : او څوک چې كفر وكړي او د الله تعالی د نعمتونو ناشكري وكړي نو الله تعالی د عالم د خلكو څخه بې نيازه دی، يعني خلک كه عبادت او اطاعت وكړي او كه يې ونه كړي په دې سره الله تعالی ته هيڅ ګټه او تاوان نه رسيږي ګټه او تاوان هغه كسانو ته دی كوم چې طاعت او عبادت كوي نو خلاصون به تر لاسه كړي او كه يې څوک نه كوي نو په تاوان او عذاب كې به اخته سي .

په ظاهره خو معلوميږي چې رسول الله ﷺ به پوره آيت ويلي وي ځكه چې استدلال خو په پوره آيت سره كيږي مګر راوي تر اليه سبيلا پوري دغه آيت نقل كړی دی .

﴿۲۴۰۸﴾: وَعَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا صَرُورَةَ فِي الْإِسْلَامِ . رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : صرورة (يعني حج او نكاح پرېښودل) په اسلام كې نسته . ابوداؤد .

**تخريج** : ابوداود في السنن ۲\۲۴۸، رقم: ۱۷۲۹.

**د لغاتو حل** : صَرُورة: هو الذي لم يحج قط. (مرقاة).

**تشريح** : د صرورت مفهوم دادی هغه څوک چې هغه هيڅكله حج نه وي كړی نو ددغه ارشاد مطلب دادی چې كوم څوک د حج د واجب كېدو سربېره حج ونه كړي نو هغه مسلمان نه دی .

طيبي رحمه الله فرمايي چې ددغه حديث ظاهري مفهوم خو دادی چې كوم څوک د حج كولو توان ولري او بيا هم حج ونه كړي نو هغه مسلمان نه دی مګر حقيقت دادی چې دغه ارشاد يا خو د تغليظ او سختئ له مخي دی يا ددې څخه مراد دادی چې داسې سړی كامل مسلمان نه سي كېدای، ځيني حضرات وايي چې د صرورت معنی ده نكاح او حج پرېښودل په دې صورت كې به مطلب دا وي چې نكاح او حج پرېښودل د اسلام طريقه نه ده بلكه دا په رهبانيت كې داخل دي ځكه مسلمان ته د نكاح او حج پرېښودل نه دي پكار .

## حج على الفور فرض دى كه على التراخي

﴿۲۴۰۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَرَادَ الْحَجَّ فَلْيَتَعَجَّلْ. رواه ابوداؤد والدارمي.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د حج اراده وکړي نو بيا دي يې ژر پوره کړي. ابوداؤد او دارمي.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۳۵۰، رقم: ۱۷۳۲، والدارمي ۲\۴۵، رقم: ۱۷۸۴.

**تشريح**: مطلب دادی چي کوم څوک پر حج کولو قادر وي او د حج کولو اراده ولري نو هغه ته پکار دي چي هغه تلوار وکړي او د فرض ادا کولو لپاره په لاس ورغلې موقع غنميت وګڼي ځکه چي د تلوار کولو په صورت کي معلومه نه ده چي څومره ځنډ پيدا کيږي او انجام يې د دغه عظيم نعمت څخه محرومي ده په دې باره کي چي حج سمدستي واجب دی يا على التراخي د حنفيه په نزد تر ټولو صحيح قول دادی چي کله حج واجب سي يعني د حج شرطونه موجود سي او د حج وخت راسي او قافله تر لاسه سي په شرط د دې چي د قافلې ضرورت وي لکه څرنګه چي په پخوا زمانې کي بېله قافلې سفر کول ناممکن وه نو په هغه کال دي حج وکړي او دوهم کال ته دي يې نه ځنډوي او که يو سړی بېله عذره تر څو کالو پوري ځنډ کوي نو هغه ته به فاسق ويل کيږي او د شريعت له مخي به د هغه شاهدي نه قبليږي يعني هغه به د شريعت په نظر کي د اعتبار وړ نه وي په دغه وخت کي کله چي د حج اسباب ضائع سي نو د هغه د ذمې څخه فرض نه ساقط کيږي د امام مالک او امام احمد رحمه الله هم دا مذهب دی.

د امام شافعي رحمه الله په نزد حج واجب على التراخي دی يعني يعني د عمر تر پايه پوري ځنډول يې جائز دي لکه څرنګه چي په لمانځه کي تر آخر وخته پوري ځنډ کول جائز دي، د امام احمد رحمه الله هم دا قول دی مګر په دې اړه دواړه دا هم وايي چي تاخير هغه وخت جائز دی کله چي د حج فوت کېدو ګمان نه وي که چيري دا ګمان وي چي د تاخير کولو په صورت کي به حج فوت سي نو بيا دي تاخير نه کوي په دغه صورت کي که چيري يو سړی د حج فرض کېدو سربېره بېله حج کولو مړ سي نو د ټولو علماؤ په نزد ګناه کار دی او د حج پوښتنه به ځيني کيږي.

حنفي علماء دا هم وايي که چيري يو سړی د حج شرطونو موجود کېدو وروسته په حج کي تاخير وکړي او په دغه وخت کي د هغه مال ضائع سي نو هغه دي پور واخلي او حج دي وکړي که

څه هم د هغه پور پر ادا کولو هغه قادر نه وي او ددې خبري امید وي چي الله تعالی د هغه پور پر نه ادا کولو باندي مؤاخذه نه کوي په شرط ددې چي د هغه نیت دا وي چي کله مال په لاس راسي نو زه به هغه پور روړي ته ورکوم.

## د حج او عمرې یو ځای کولو حکم

﴿۲۴۱۰﴾: وَعَنِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَابِعُوا بَيْنَ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ فَإِنَّهُمَا يَنْفِيَانِ الْفَقْرَ وَالذُّنُوبَ كَمَا يَنْفِي الْكِيرُ خَبَثَ الْحَدِيدِ وَالذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَلَيْسَ لِلْحَجَّةِ الْمَبْرُورَةِ ثَوَابٌ إِلَّا الْجَنَّةُ. رواه الترمذي و النسائي و رواه احمد وابن ماجة عن عمر الى قوله خبث الحديد

د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: یو په بل پسې ادا کوئ حج او عمره ځکه چي دا دواړه مفلسي او ګناهونه داسي لیري کوي لکه چي اور خیري لیري کوي د اوسپني او سرو سپینو زرو څخه، او د قبول سوي حج بدله یوازي جنت ده، ترمذي، نسائي، احمد، او ابن ماجة د حضرت عمر رضی الله عنه څخه تر خبث الحدید پوري نقل کړئ دئ.

**تخریج**: الترمذي في السنن ۳\۱۷۵، رقم: ۸۱۰، والنسائي ۵\۱۱۵، رقم: ۲٦۳۱.

**تشریح**: حج او عمره یو ځای کوئ: ددې مطلب دادی چي قِران کوئ دا د حج تر ټولو غوره قسم دی چي په هغه کي حج او عمره دواړه یو ځای وکړل سي ددې تفصیلي بیان به مخکي راسي یا ددې جملې مطلب دادی که چیري تا عمره کړې وي نو حج هم وکړه او که دي حج کړی وي نو بیا عمره هم وکړه.

د فقر څخه مراد ظاهري فقر هم کېدای سي او باطني فقر هم یعني د حج او عمرې په کولو سره الله تعالی د مال او دولت په نعمت سره نازوي یا دا چي زړه غني سي.

## د حج شرطونه

﴿۲۴۱۱﴾: وَعَنْ ابْنِ عُمَرَ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا يُوجِبُ الْحَجَّ قَالَ الزَّادُ وَالرَّاحِلَةُ. رواه الترمذي وابن ماجه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او پوښتنه یې وکړه اې د الله رسوله ! کوم شی حج واجب کوي ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : خرڅ او سپرلۍ . ترمذي .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۱۷۷، رقم: ۸۱۳، وابن ماجه ۲\۹۶۷، رقم: ۲۸۹۶.

**تشريح**: کوم شی حج واجبوي : ددې مطلب دادی چي د حج واجب کېدو شرط څه شی دی؟ رسول الله ﷺ خو یو شی زاد راه وښودی چي د هغه څخه مراد دومره مال دی چي د حج په سفر کي د تلو او راتلو او د خپل کورنۍ د ضروریاتو لپاره کافي وي او دوهم شی یې سپرلۍ وښودل چي پر هغه باندي په سپرېدو سره بیت الله شریفي ته ورسیږي که څه هم د حج واجب کېدو شرطونه نور هم دي مګر دلته په خاصه توګه د غه شیان ځکه ذکر کړل سول چي په اصل کي دغه دوه شرطونه داسي دي چي د حج لپاره د بنیادي او ضروري اسبابو درجه لري .

دغه حدیث د امام مالک رحمه الله د مذهب تردید کوي د هغه په نزد پر هغه سړي هم حج واجب دی کوم چي پر پښو باندي پر تلو قادر وي او د تجارت یا مزدورۍ په ذریعه د حج د سفر مصرف تر لاسه کولای سي .

## د حاجي صفت او کیفیت

﴿۲۴۱۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ سَئَلَ رَجُلٌ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَالْحَاجُّ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي یو سړي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي د حاجي صفت څه شي دئ ؟

قَالَ الشَّعِثُ التَّفِلُ فَقَامَ آخَرُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ اَيُّ الْحَجِّ اَفْضَلُ قَالَ

رسول الله ﷺ وفرمایل : ګډوډ سر خالي د خوشبویي څخه، یو بل سړي پوښتنه وکړه اې د الله رسوله ! کوم حج ښه (غوره) دی ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :

اَلْعَجُّ وَالثَّجُّ فَقَامَ آخَرُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ مَا السَّبِيْلُ قَالَ الزَّادُ وَالرَّاحِلَةُ.

په لبیک سره آواز پورته کول او د قربانۍ د وینې بیول، دریم سړي پوښتنه وکړه اې د الله رسوله ! د سبیل څخه مراد څه دئ ؟ (کوم چي په قرآن کریم کي راغلئ دئ ) رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : د سفر لپاره د خوراک سامان او سپرلۍ .

رواه في شرح السنة و روي ابن ماجة في سننه الا انه لم يذكر الفصل الاخير.

شرح السنة او ابن ماجه په خپل سنن کي آخري جمله نه ده ذکر کړې.

**تخريج**: ابن ماجه في السنن ۲\ ۹۶۷، رقم: ۲۸۹۶، شرح السنه ۷\ ۱۴، رقم: ۱۸۴۷.

**د لغاتو حل**: الشعث: اى المغبر الراس من عدم الغسل و مفرق الشعر من عدم المشط. (التفل): اى تارک الطيب. (العج): اى رفع الصوت بالتلبيه. (الثج): سيلان دماء الهدي.

## د پلار پر ځاى حج كول

﴿۲۴۱۳﴾: وَعَنْ أَبِي رَزِينٍ الْعُقَيْلِيِّ أَنَّهُ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا

د حضرت ابو رزين العقيلي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او عرض يې وکړ اې

رَسُولَ اللهِ إِنَّ أَبِي شَيْخٌ كَبِيرٌ لَا يَسْتَطِيعُ الْحَجَّ وَلَا الْعُمْرَةَ وَلَا الظَّعْنَ قَالَ

د الله رسوله! زما سپين ږيرى پلار ډير کمزورى دئ چي د حج او عمرې توان نه لري او نه پر سپرلۍ د سفر کولو توان لري، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

حُجَّ عَنْ أَبِيكَ وَاعْتَمِرْ. رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي و قال الترمذي هذا حديث حسن صحيح.

ته د خپل پلار پر ځاى حج او عمره وکړه. ترمذي، ابوداؤد او نسائي، ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دئ.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\ ۴۰۲، رقم: ۱۸۱۰، والترمذي ۳\ ۲۶۹، رقم: ۹۳۰، والنسائي ۵\ ۱۱۱، رقم: ۲۶۲۱

**تشريح**: ددغه باب په اول فصل کي د ابن عباس رضي الله عنه د روايت په تشريح کي ددغه روايت تذکره راغلې ده.

## لومړى خپل حج كول ضروري دى

﴿۲۴۱۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ إِنَّ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعَ رَجُلًا

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د يو سړي څخه دا واوريدل چي ويل يې

يَقُولُ لَبَّيْكَ عَنْ شُبْرُمَةَ قَالَ مَنْ شُبْرُمَةُ قَالَ أَخٌ لِي أَوْ قَرِيبٌ لِي قَالَ

د شبرمة د لوري څخه لبيک، رسول الله ﷺ پو ښتنه وکړه : شبرمه څوک دئ ؟ هغه ورته وويل :
زما ورور دئ يا يې دا ويلي دي چي زما قريب دئ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

حَجَجْتَ عَنْ نَفْسِكَ قَالَ لَا قَالَ حُجَّ عَنْ نَفْسِكَ ثُمَّ حُجَّ عَنْ شُبْرُمَةَ. رواه

الشافعي وابو داؤد وابن ماجة .

ايا تا خپل د ځان لپاره حج کړئ دئ ؟ هغه وويل :يا ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل لومړی د خپل
لوري حج وکړي بيا د شبرمة د لوري څخه . شافعي، ابو داؤد او ابن ماجة .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\ ۴۰۳، رقم: ۱۸۱۱، وابن ماجه ۲\ ۹۶۹، رقم: ۲۹۰۳، وترتيب مسند الامام الشافعي ۱\ ۳۸۹، رقم: ۱۰۰۱.

**تشريح**: امام شافعي او امام احمد رحمة الله عليهما فرمايي کوم چا چي خپل حج نه وي کړی نو هغه د بل چا پر ځای حج نه سي کولای دغه حديث ددغو حضراتو دليل دی، د امام اعظم ابو حنيفة او امام مالک رحمة الله عليهما مذهب دادی چي د بل چاپر ځای حج کول صحيح دی که څه هم خپله يې فرض حج نه وي کړی مګر ددغه حضراتو په نزد هم غوره دادی چي اول خپل حج وکړي د هغه وروسته د بل چا پر ځای حج وکړي د دوئ د مذهب مطابق په دغه حديث کي چي اول د خپل حج کولو کوم حکم ورکړل سوی دی هغه د استحباب په توګه دی د وجوب په توګه نه دی ، داسي هم ويل کيدای سي چي دغه حديث ضعيف دی يا منسوخ دی ځکه هغوئ په دې باندي عمل نه دی کړی .

## د مشرق والاوو ميقات

﴿۲۴۱۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ وَقَّتَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَهْلِ الْمَشْرِقِ الْعَقِيقَ . رواه الترمذي و ابو داؤد .

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د ختيځ د اوسيدونکو لپاره د احرام ترلو ځای عقيق ټاکلی دئ . ترمذي او ابو داؤد .

**تخريج** : الترمذي في السنن ۳\ ۱۹۴، رقم: ۸۳۲، وابوداود ۲\ ۳۵۵، رقم: ۱۷۴۰.

**تشریح**: عقیق د یو ځای نوم دی چي د ذات عرق په شاوخوا کي واقع دی دغه ځای د لویدیځ اوسیدونکو لپاره میقات دی ، د لویدیځ اوسیدونکو څخه مراد هغه خلک دی کوم چي د حرم څخه د باندي د مکې مکرمې په ختیځ سیمو کي اوسیږي دغه خلکو ته عراق هم ویل کیږي چي یادونه یې په راتلونکي حدیث کي ده ، همدارنګه د ختیځ د اوسیدونکو لپاره د احرام تړلو دوه ځایونه سول یو خو عقیق او بل ذات عرق، نو ددغه خوا څخه راتلونکي کسان که په دغه دواړو ځایو کي د هر ځای څخه تېر سي نو هلته دي احرام وتړي .

﴿۲۴۱۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَّتَ لِأَهْلِ الْعِرَاقِ ذَاتَ عِرْقٍ . رواه ابوداؤد والنسائي .

د حضرت عائشي (رض) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د عراقیانو لپاره د احرام تړلو ځای ذات عرق ټاکلی دئ . ابو داؤد او نسائي .

**تخریج**: ابوداود في السنن ۲\ ۳۵۴، رقم: ۱۷۳۹، والنسائي ۵\ ۱۲۵، رقم: ۲۶۵۶.

## د میقات څخه مخکي احرام تړل افضل دي

﴿۲۴۱۷﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

د حضرت ام سلمة (رض) څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي :

مَنْ أَهَلَّ بِحَجَّةٍ أَوْ عُمْرَةٍ مِنَ الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى إِلَى الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ غُفِرَ لَهُ

څوک چي د حج او عمرې احرام د مسجد اقصی څخه تر مسجد حرام پوري وتړي د هغه ټول

مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ أَوْ وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ . رواه ابوداؤد وابن ماجة .

مخکني او وروستني ګناهونه معافیږي او د هغه لپاره جنت واجب کیږي . ابو داؤد او ابن ماجة .

**تخریج**: ابوداود في السنن ۲\ ۳۵۵، رقم: ۱۷۴۱، وابن ماجه ۲\ ۹۹۹، رقم: ۳۰۰۱.

**تشریح**: په : من اهل بحجة او عمرة- کي حرف د او د تنویع لپاره دی او د : او وجبت له الجنة- کي او د راوي شک ظاهروي .

کله چي یو څوک د بیت المقدس څخه مکې مکرمې ته ځي نو هغه په لاره کي پر مدینه منوره تېرېږي همدارنګه هغه څوک په خپل لاره کي په درو غوره مقاماتو باندي مشرف کیږي

په دې توګه چې د هغه د لارې شروع د بيت المقدس څخه کيږي په مينځ کي مدينه منوره راځي او په آخر کي مکې مکرمې ته رسيږي نو د هغه سړي د خوشبختۍ انداز ه په خپله ولګوئ چې د خپل سفر شروع د بيت المقدس څخه وکړي اول خو خپله سفر مقدس او باعظمته وي بيا د سفر شروع د بيت المقدس څخه وي او بيا په مينځ کي مدينه منوره او د سفر ختم پر حرم شريف باندي وي ځکه نو پورته ذکر سوی سړي دغه عظيم ثواب تر لاسه کوي .

ځيني حضرات فرمايي چې دا حديث دې ته اشاره ده چې د احرام تړلو ځای د حرم څخه څومره ليري وي هغومره به ثواب زيات وي ، په دې باره کي فقهي تفصيل دادی چې د امام اعظم رحمة الله عليه په نزد د مواقيت څخه د احرام تقديم يعني د احرام تړلو د ځايو څخه مخکي احرام تړل يا د خپل کور څخه احرام تړلو سره تلل غوره دي ، د امام شافعي رحمة الله عليه يو قول دا هم دی مګر دا په هغه صورت کي کله چې د احرام د ممنوعاتو څخه ځان ساتلای سي او که چيري هغه پوهيږي چې په دغه صورت کي د احرام د ممنوعاتو څخه پرهيز کول ممکن نه دی نو بيا د مقيات څخه احرام تړل غوره دی ، همدارنګه د حج په مياشتو کي (يعني شوال، ذي قعده او د ذي الحجې لس ورځو) څخه مخکي د احرام تړلو په باره کي د حنفيه په نزد د جواز قول هم دی او مکروه هم ورته ويل سوي دي چې د حج د مياشتو څخه مخکي د احرام تړونکو احرام نه صحيح کيږي مګر د هغوئ مذهب دادی که چيري يو څوک د حج د مياشتو څخه مخکي احرام وتړي نو د هغه دغه احرام به د حج پر ځای د عمري احرام سي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### په حج کي د سوال کولو څخه پرهيز وکړئ

﴿۲۴۱۸﴾: عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ أَهْلُ الْيَمَنِ يَحُجُّونَ وَلَا

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چې د يمن خلکو به د خوراک او څښاک سامان نه اخيستئ او حج ته به تلل

يَتَزَوَّدُونَ وَيَقُولُونَ نَحْنُ الْمُتَوَكِّلُونَ فَإِذَا قَدِمُوا مَكَّةَ سَأَلُوا النَّاسَ فَأَنْزَلَ

او دا به يې ويل موږ خو متوکل خلک يو ، بيا چې به مکې ته راغلل نو د خلکو څخه به يې سوال کوئ ، له دې کبله

اللّٰهُ تَعَالٰی وَتَزَوَّدُوا فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰی. رواه البخاري

الله تعالی دا آیت نازل کړ : (و تزودوا..... التقوی) د خوراک او څښاک سامان د ځان سره اخلئ او غوره توښه تقوا ده. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۳۸۳، رقم: ۱۵۲۳.

**تشريح**: خلکو توکل ته د زاد (یعني د لاري د مصرف) درجه ورکړې وه او دا یې ګڼل چي د حج د ضرورت مصرف د جمع کېدو څخه قطع نظر توکل غوره شی دی مګر په حقیقت کي هغه نه خو توکل وو او نه یو ښه خبره وه چي د حج لپاره مکې مکرمې ته په رسیدو سره د خلکو په مخکي سوال کوي چي د انساني شرف او عظمت خلاف کار دی ځکه و فرمایل سول چي تر ټولو لویه خبره او ښه والی دادی چي د لاري مصرف د ځان سره ولري او د خیر غوښتلو څخه ځان وساتي، په دې باره کي مسئله داده چي د حج ضروري مصرف د ځان سره ورلو څخه پرته د هغه چا لپاره تلل صحیح نه دی کوم چي د هغه په نفس کي د توکل قوت نه وي او هغه ته غالب ګمان وي چي زه به شکایت او بې صبري او په سوال کي نه اخته کیږم او نور خلک به هم په پریشانۍ کي نه اخته کوم.

په آیت او حدیث کي دې ته اشاره ده چي دومره سامان د ځان سره درلودل د توکل خلاف نه دي، د کاملینو په نزد دا غوره دي هو که یو څوک بېله اسبابو یوازي توکل اختیار کړي نو په دې کي هم څه حرج نه سته په شرط ددې چي پر خپل عزم او ارادې باندي مستحکم او ټینګ پاته کېدو سره صبر وکړلای سي او داسي هیڅ کار هم ونه کړي کوم چي د حقیقي توکل خلاف وي.

### د ښځو جهاد حج او عمره ده

﴿۲۴۱۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ عَلَى النِّسَاءِ جِهَادٌ قَالَ نَعَمْ عَلَيْهِنَّ جِهَادٌ لَا قِتَالَ فِيهِ الْحَجُّ وَالْعُمْرَةُ. رواه ابن ماجة.

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول ایا پر ښځو باندي جهاد فرض دئ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: هو پر هغوئ داسي جهاد فرض دئ چي په هغه کي جګړه نسته او هغه حج او عمره ده. ابن ماجهٔ.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۹۶۸، رقم: ۲۹۰۱

**تشريح**: اسلام د ښځو لپاره جهاد واجب کړی نه دی مګر دا یو داسي عظیم سعادت دی چي

ددې څخه به ښځي محرومي وي ځکه د هغوئ په حق کي حج او عمرې ته د جهاد په درجې ورکولو سره د جهاد د ثواب په سعادت ونازول سوې ، په حج او عمره کي که څه هم جنګ او جګړه نه سته مګر په دې کي هم د سفر مشقت، د کورنۍ او هيواد څخه بېلوالی داسي دی لکه څرنګه چي په جهاد کي وي ځکه نو د ښځو په حق کي حج او عمره د جهاد په درجه کي ده.

**بېله عذره پر فرض حج نه کولو باندي وعيد**

﴿۲۴۲۰﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَّمْ

د حضرت ابو امامة ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي

يَمْنَعْهُ مِنَ الْحَجِّ حَاجَةٌ ظَاهِرَةٌ أَوْ سُلْطَانٌ جَائِرٌ أَوْ مَرَضٌ حَابِسٌ فَمَاتَ وَلَمْ

څرګند حاجت، ظالم پاچا يا خطرناک ناروغي د حج څخه منع نه کړي او هغه مړ سي

يَحُجَّ فَلْيَمُتْ إِنْ شَاءَ يَهُودِيًّا وَإِنْ شَاءَ نَصْرَانِيًّا . رواه الدارمي

او حج يې ونه کړ نو هغه ته اختيار دئ چي يهودي مړ سي يا نصراني . دارمي.

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\۴۵، رقم: ۱۷۸۵.

**تشريح**: که چيري يو چا ته د حج د سفر په لاره کي د يو ظالم پاچا او حکمران څخه د سر او مال د ضائع کېدو بېره وي نو پر هغه حج فرض نه دی سره ددې چي په هغه کي د حج نور شرطونه مثلاً مصرف ، سپرلۍ او داسي نور موجود وي ، همدارنګه هغه ناروغ چي د هغه په وجه سفر کول ممکن نه وي د حج فرضيت ساقطوي، پر ړانده، فلج وهلي او داسي نورو باندي سره د مالي استطاعت او قدرت حج فرض نه دی.

ددغه تفصيل په رڼا کي د پورتني حديث خلاصه داده چي د کوم چا سره د لاري مصرف وي او د سپرلۍ بندوبست وي او په لاره کي د يو ظالم پاچا بېره نه وي او يو ناروغي وغيره د سفر څخه مانع نه وي نو ګويا د حج ټول شرطونه موجود دي او پر هغه حج فرض دی او بيا هم هغه حج ونه کړي نو اوس پکار دي چي هغه په يهودي يا عيسائي کېدو سره مړ سي ، الله تعالی ته د هغه هيڅ پروا نه سته، ددغه سزا په اړه په تېرو صفحو کي تفصيلي بيان تېر سوی دی .

**حج او عمره کونکي د الله ﷻ ميلمانه وي**

﴿۲۴۲۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ الْحَاجُّ

وَالْعُمَّارُ وَفْدُ اللهِ إِنْ دَعَوْهُ أَجَابَهُمْ وَإِنِ اسْتَغْفَرُوْهُ غَفَرَ لَهُمْ . رواه ابن ماجه

د حضرت ابو هريرة رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : حج او عمره کونکي د الله تعالى ميلمانه دي که د الله تعالى څخه هغوئ دعاء وغواړي نو هغه يې قبلوي او که بخښنه وغواړي نو بخښي يې . ابن ماجة .

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۹٦٦، رقم: ۲۸۹۲

**تشريح**: کعبې شريفي ته بيت الله ويل سوي دي يعني هغه د الله تعالى کور دی کوم څوک چي د دغه کور د زيارت لپاره ځي نو هغه د الله تعالى مېلمه وي لکه څرنگه چي کوربه د خپل مېلمه د هر جائز خواهش احترام کوي همدارنگه الله تعالى هم د هغه مېلمنو خاطر کوي که هغوئ دعاء غواړي نو قبلوي يې که مغفرت او بخښنه غواړي نو الله تعالى هغوئ د مغفرت او بخښني په دولت سره نازوي .

﴿۲۴۲۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ وَفْدُ اللهِ ثَلَاثَةٌ الْغَازِي وَالْحَاجُّ وَالْمُعْتَمِرُ . رواه النسائي و البيهقي في شعب الايمان .

د حضرت ابو هريرة رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې : دري ډوله خلک د الله تعالى ميلمانه دي : جهاد کونکی، حج کونکی او عمره کونکی . نسائي او بيهقي .

**تخريج**: سنن النسائي ۵\۱۱۳، رقم: ۲٦۲۵، البيهقي في الشعب ۳\۳۷۵، رقم: ۴۱۰۳

### د حاجي په راتلو سره د هغه سره سلام او مصافحه کوئ

﴿۲۴۲۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا لَقِيتَ

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ فرمايل : هر کله چي ته يو ځای سې

الْحَاجَّ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ وَصَافِحْهُ وَمُرْهُ أَنْ يَسْتَغْفِرَ لَكَ قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بَيْتَهُ فَإِنَّهُ مَغْفُورٌ لَهُ . رواه احمد

د يو حاجي سره نو هغه ته سلام وکړه او د هغه سره مصافحه وکړه او د هغه څخه غوښتنه وکړه چي هغه خپل کور ته د داخلېدو وړاندي د بخښني دعاء وکړي تا ته ځکه چي هغه بخښل سوی دئ . احمد .

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۱۲/ ٦٩.

**تشريح**: لکه څرنګه چي د يوه روايت څخه ثابته ده چي حاجيان مستجاب الدعوات دي کله چي هغوئ په مکه مکرمه کي داخل سي نو کور ته تر راتلو پوري تر څلوېښت ورځو پوري همداسي وي (لکه څرنګه چي په تېره زمانه کي رواج وو او اوس هم دی) چي کله به حاجيان کور ته راتلل نو خلک به د هغوئ د استقبال لپاره ور تلل او د هغوئ مقصد به دا وو چي ددغه سړي (يعني حاجي صاحب) مغفرت سوی دی او د ګناهونو څخه پاک سوی دی د هغه سره مصافحه وکړي مخکي ددې څخه چي هغه په دنيا کي ملوث سي چي موږ ته هم د هغه څخه فيض ورسيږي، که څه هم نن سبا دغه مقصد کم او د ځان ښوونې جذبه زياته ده، په دغه حديث کي هم د حاجي سره د سلام او مصافحه کولو لپاره په کور کي د داخلېدو څخه مخکي قيد ځکه لګول سوی دی چي نه يوازي دا چي هغه په دنيا کي ملوث او په خپل اهل او عيال کي بوخت سي بلکه تر هغه وخته پوري هغه د الله تعالی په لار کي وي او د ګناهونو څخه پاک وي او په دغه صورت کي حاجي صاحب مستجاب الدعوات وي ځکه يې وفرمايل چي د هغه څخه د ځان لپاره د مغفرت او بخښني دعاء غواړئ چي الله تعالی هغه قبوله کړي او تا په مغفرت او بخښني سره ونازوي.

علماء کرام ليکي چي عمره کونکی، جهاد کونکی او ديني زده کونکی هم د حاجيانو په حکم کي دی يعني کله چي دغه کسان په ستنېدو سره خپل کور ته راسي نو د هغوئ سره هم په کور کي د داخلېدو څخه مخکي سلام او مصاحفه وکړئ او د بخښني او مغفرت د دعاء لپاره خواست ورته وکړئ ځکه چي دغه خلک مغفور دي.

## د حج او عمره کونکي په لاره کي وفات کېدل

﴿۲۴۲۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ خَرَجَ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي ووځي

حَاجًّا أَوْ مُعْتَمِرًا أَوْ غَازِيًا ثُمَّ مَاتَ فِيْ طَرِيقِهِ كَتَبَ اللَّهُ لَهُ أَجْرَ الْغَازِيْ وَالْحَاجِّ وَالْمُعْتَمِرِ. رواه البيهقي في شعب الإيمان

د حج، عمرې او يا جهاد په اراده او بيا په لاره کي مړ سو نو الله تعالی د هغه لپاره د مجاهد،

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۱۳\۴۷۴، رقم: ۴۱۰۰

**تشريح**: د دغه خلكو په حكم كي ديني طالب هم دي يعني كه يو څوک د دين د علم د تر لاسه كولو لپاره د خپل كور څخه وځي او بيا هغه په لاره كي مړ سي نو د هغه لپاره د عالمانو ثواب ليكل كيږي.

## مكه مكرمه او مدينه منوره

د حج په باره كي يو څو بنيادي خبري په اجمالي توګه په دغه باب كي بيان سوي دي، په راتلونكو بابو كي به د حج تفصيلي احكام او مسائل راسي، مكه مكرمه د هغه عظيم عبادت او سعادت بنيادي مقام او محور دی، او مدينه منوره د يو مسلمان د زړه مركز او محبوب كور دی چي د هغه زيارت هم د حج د سفر بنيادي خواهش دی ځكه نو دلته مناسب دي چي ددغه دواړو مقدسو او بابركته ځايو په باره كي مختصر تاريخي او جغرافيايي خاكه وړاندي كړل سي كه څه هم مخته به ددغه ځايو پر فضائلو او مسائلو باندي مشتمل بابونه به راسي.

## مكه مكرمه

چيري چي بيت الله شريف واقع دی هغه د سعودي عرب د هيواد يو ښار دی چي د حجاز په نامه ياديږي كوم چي په وادي ابراهيم كي آباد دی، د سمندر د سطحي څخه ددې لوړوالی تقريبا دري نيم سوه فټه ښودل كيږي د هغه عرض البلد ۲۱ درجې شمال او طول البدل ۳۹ نيم درجې مشرقي دی، آبادي يې څلور لكه يا تر دې زياته ده، ددغه ځای وقوع د سمندر د ساحل څخه تقريبا ۷۸ كيلو ميتره فاصله باندي دی.

د مكې څخه پرته بكه، ام القرى او بلد الامين هم ددغه ښار نومونه دي او مشهور نوم يې مكه دی، دا چي كوم ځای واقع ده هغه بې كښته، تنګه او ژوره شيله ده چي په يوه زمانه كي بالكل ځنګل او بې اوبو او شنګيا ريګستان په سبب د خلكو د اباد‌ي مركز نه وو جوړ سوی، په دغه شيله كي د مكې مكرمې ښار د مشرق څخه تر مغرب پوري تر پنځه مېله زياته برخه كي خپور سوی دی، عرض يې تر دوه مېله زيات دی، دغه مځكي ته د سيلاب د تېرېدو په وجه بطحا هم ويل كيږي د مكې شيله د دوو غرونو په مينځ كي ده چي د مغرب څخه په شروع كېدو ... مشرق ته تللې ده په دې كي يوه سلسله شمالي ده او يوه جنوبي دغه دواړو سلسلو ته اخشبان وايي دغه غرونو ته په تورات كي جبال فاران هم ويل سوي دي.

تقريبا څلور زره كاله مخكي حضرت ابراهيم عليه السلام خپل كورو الا بي بي هاجره او خپل زوی

حضرت اسماعیل علیه السلام په دغه ځنګل او غیر اباده شېله کي اباد کړل او هغه وخت يې د کعبې دوهم وار تعمېر وکړ او هغوئ د الله تعالی څخه دعاء وغوښتل چي دغه ځنګل اباد کړي نو د هغه وخت څخه دغه بې اوبو او وچ میدان د قرب او جوار بلکه د ټولي دنیا مرکز جوړ سو د الله تعالی فرمانبردار بندګان دې ته په مخ کولو سره پنځه وخته د الله تعالی عبادت کوي.

د حضرت اسماعیل رحمه الله نسلونه دلته مقسم سول او یو څو نسلونه شاوخوا خپاره سول قریش ددغه ځای متولیان او اوسیدونکي سول او بیا دلته په قریشو کي د دنیا تر ټولو عظیم رهنما او د الله تعالی آخري پیغمبر او رسول حضرت محمد ﷺ مبارک ولادت وسو او د پیغمبر کېدو څخه وروسته ددغه مقدس ښار څخه د الله تعالی د آخري دین اسلام پیغام يې دنیا ته واوروئ او د دغه ځای څخه د اسلام د تبلیغ او خپرېدو ټولي هڅي شروع سوې.

د مکې مکرمې ابادي مخکي یوازي په خیمو کي وه د هجرت څخه یوازي دوه سوه کاله مخکي د رسول الله ﷺ یو نیکه قصی ابن کلاب چي شام ته راغلی نو د هغه په مشورې سره د ځایونو د جوړولو لړۍ شروع سوه بیا د اسلام د راتلو څخه وروسته دغه ښار پرمختګ وکړ اوس په خپل شاوخوا کي تر لیري ځایو پوري تر ټولو لوی او د پوره عالم اسلام تر ټولو اهم او مرکزي ښار دی، په ښار کي د اوبو یوه چینه ده چي هغې ته زمزم وایي ددې څخه پرته دلته د اوبو بل څاه نه سته د اوبو د کمۍ په وجه دلته په مځکو کي کښت نه سو کېدلای مګر اوس د اوبو د زیاتوب په وجه یو څه وابنه او شنګیاوي لګول سوي دي مخکي په ښار کي د اوبو د کمۍ په وجه د طائف څخه یوه ویاله راوستل سوې ده چي د هغې نوم نهر زبیده دی، دغه ویاله د امین الرشید مور بي بي زبیدې جوړه کړې وه وروسته دغه ویالې ته ترقي ورکړل سوه او ددې لپاره د اوبو رسولو نوري ذرائع هم اختیار کړل سوې، په اوسني حکومت کي د اوبو ډېر معقول انتظام کېدو په وجه د اوبو کمي بالکل ختم سوې ده.

د غرونو په مینځ کي د واقع کېدو په وجه په مکه مکرمه کي ګرمي زیاته او یخ کم دی، د ګرمۍ په فصل کي ډېر سخت وي او باران یوازي په یخ کي کیږي چي د هغه کلنی مقدار تر څلورو او پنځو انچو زیات نه دی نو د ګرمۍ په فصل کي یعني د مارچ د میاشتي څخه په شروع کېدو سره د اکتوبر تر آخره پوري وي، د ژمي په فصل کي یخ کم وي.

## مدینه منوره

د مکې مکرمې څخه شمال خوا ته تقریبا پر ۲۷۰ مېله (۴۳۲کیلومیټره) فاصله باندي واقع ده، ددې مغربي خوا تقریبا پر سل کیلومیټره باندي دریاب او ددغه علاقې مشهور

بندرگاه ينبوع دی ، د مدينې منورې او مکې مکرمې او شام په مينځ کي چي کومي لاري تقريبا پر اوسط باندي واقع دي ددې طول البلد ۳۹ نيم درجې مشرقي او عرض البلد ۲۴ درجې شمالی دی.

کله چي د الله تعالی پر يادونکو باندي مځکه تنګه سوه او د مکې کفارو د خطرناکو انتقامي کارنامو ، تکليف رسولو او فلانونو په وجه د اسلام په تبليغ کي خنډ او د مسلمانانو په بې عزتی پسي ولګېدل نو د الله تعالی په حکم سره رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته د مدينې منورې په لور د هجرت حکم ورکړ او خپله يې هم مکه پرېښودل او مدينې منورې ته راغلی ، همدارنګه د اسلام تبليغ او اشاعت مرکز مدينې منورې ته نقل سو او بيا د مکې ځخه د اسلام رڼا د عربو د حدودو څخه په وتلو سره پوره دنيا ته ورسيدل.

د رسول الله ﷺ د تشريف راوړلو څخه مخکي ددغه ښار نوم يثرب وو دلته په پخوا زمانه کي عمارز او نور قومونه پاته سوي دي ، رسول الله ﷺ ددغه ښار نوم بدل کړ او بيا دې ته مدينة الرسول يعني د رسول الله ﷺ ښار ويل شروع سول ددې څخه پرته طابة، طيبة ، طائبه، ارض الله، دار الهجرة، بيت رسول الله، حرم رسول الله، محبوبه، حسنه او داسي نور نومونه هم په حديثو کي راغلي دي مګر تر ټولو زيات مشهور او متعارف نوم يې مدينه دی.

مدينه منوره د مکې مکرمې څخه برعکس اباد او دکښت ښار دی د مغربي خوا څخه پرته ددې په نورو خواوو کي باغونه ډېر ليدل کيږي چي په هغو کي د خرما ، انګورو، انار، سيب او نوري ډېري ميوې پيدا کيږي د مدينې آب او هواء د مکې د آب او هواء په مقابله کي معتدله ده يوه وجه داده چي هغه د مکې مکرمې په ډول د غرونو په مينځ کي نه ده دوهم دا چي د مختلفو خواوو څخه په باغونو راګېر ده دريم دا چي دغه ښار د سمندر د سطحي څخه ۱۲ نيم فټه لوړ دی دلته يخ او ګرمي دواړه سخت دي ، دغه ښار د روغتيا او صحت ښار ګڼل کيږي ، نقل سوي دي چي کله رسول الله ﷺ په هجرت مدينې منورې ته راغلی نو هغه وخت ددغه ځای آب او هواء ډېره ناقصه او خرابه وه اکثر وبائي ناروغی به پکښې پيدا کېدلې ، حضرت ابوبکر صديق او حضرت بلال رضي الله عنهما دلته په راتلو سره سخت ناروغ سول ، رسول الله ﷺ ددغه ښار د آب او هواء د اصلاح او صحيح کېدو لپاره دعاء وغوښتل او هغه قبوله سوه.

د مدينې ختيځ خوا ته حرة الواقم او لويديځ خوا ته يې حرة الوبره غرونه دي ، شمال ته يې جبل احد چي په هغه کي د احد معرکه رامنځته سوې وه او هلته د ډېرو صحابه کرامو او حضرت حمزه رضي الله عنه قبرونه دي ، دغه غر د ښار څخه تقريبا پر دوه نيم ميله فاصله باندي واقع دی ، او

جنوبي خوا ته يې جبال غير نامي دوه غرونه واقع دي او قباء او عوالي دوه کلي دي ، د حرة الواقم او حرة الوبره په مينځ کي شمال ته جبل سلع دی دا هغه ځای دی چي دلته په څلورم هجري کال کي رسول الله ﷺ د مسلمانانو سره خندق کنبلی وو او پر مدينې منورې باندي د حمله کونکو کفارو لاره يې بنده کړې وه ، دغه واقعه په غزوه احزاب يا غزوه خندق سره بلل کيږي دغه خندق تر حرة الوبره پوري په هلالي (سپوږمیز) شکل کي کنبل سوی وو او د جبل سلع تر شا تېر سوی دی د مسلمانانو لښکر د جبل سلع په لمن کي مقيم وه ، د ښار تقريبا په مينځ کي په مستطيل شکل د رسول الله ﷺ مسجد دی ددغه مسجد ختيځ خوا ته او پر جنوبي سر باندي روضه اطهر ده چي په هغه کي رسول الله ﷺ آرام فرما دی، او د رسول الله ﷺ ملګري حضرت ابوبکر صديق او حضرت عمر فاروق رضي الله عنهما هم دلته دفن دي .

==========

# بَابُ الْاِحْرَامِ وَالتَّلْبِيَهِ

## د احرام او تلبيه بيان

د احرام معنی ده حرامول ، پر حج کونکي باندي يو څو شيان حرام کيږي نو د هغو د اظهار لپاره چي د هغه وخت څخه دغه شيان حرام سوي دي يوه جامه چي يو ازي يو څادر او يو لونګ وي د حج يا عمرې په نيت سره تړل کيږي هغه ته احرام وايي .

تلبيه يعني لبيک ويلو څخه مراد دغه عبارت ويل دي : لبيک اللهم لبيک لبيک لا شريک لک لبيک ان الحمد و النعمة لک والملک لا شريک لک .

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ (لومړی فصل)

### په احرام کي د خوشبويي لګولو مسئله

﴿۲۴۲۵﴾ : عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كُنْتُ اُطَيِّبُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عائشې ﷺ څخه روايت دئ چي ما به رسول اللهﷺ ته خوشبويي وهل

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاِحْرَامِهِ قَبْلَ اَنْ يُّحْرِمَ وَلِحِلِّهِ قَبْلَ اَنْ يَّطُوْفَ بِالْبَيْتِ بِطِيْبٍ

د احرام تړلو څخه وړاندي او د احرام تړلو څخه وړاندي چي رسول الله ﷺ به د بيت الله طواف ته تلئ

فِيْهِ مِسْكٌ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى وَبِيصِ الطِّيبِ فِي مَفَارِقِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ. متفق عليه

نو هغه وخت به مي هم خوشبويي ورته وهل او په هغه کي به مشک هم وه لکه زه چي اوس هم د رسول الله ﷺ د سر په کربنه کي د خوشبويي ځلا وينم په داسي حال کي چي هغه محرم دئ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري) ۳۹۶\۳، رقم: ۱۵۳۹، ومسلم ۸۴۶\۲، رقم: ۳۳-۱۱۸۹

**د لغاتو حل**: بيص: اى لمعانه و بريقه (ځلا)

**تشريح**: د بي بي عائشې رضي الله عنها د وينا مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به کله د احرام اراده کول نو د احرام تړلو څخه مخکي به ما خوشبويي ورلګول او هغه خوشبويي به داسي وه چي په هغه کي به مشک هم وه نو ددې څخه دا ثابته سوه که چيري د احرام څخه مخکي خوشبويي ولګول سي او د هغه اثر د احرام څخه وروسته هم پاته وي نو په دې کي څه پروا نه سته ځکه چي د خوشبويي د احرام څخه وروسته استعمال د احرام د منعو څخه دی نه د احرام څخه مخکي ، د امام ابوحنيفة او امام احمد مذهب هم دادی چي د احرام څخه وروسته د خوشبويي استعمال ممنوع دی او د احرام څخه مخکي په استعمال کي څه حرج نه سته مګر امام مالک او د امام شافعي په نزد د احرام څخه مخکي هم داسي خوشبويي لګول مکروه دي چي د هغه اثر د احرام تړلو څخه وروسته هم پاته وي.

ولحله قبل ان يطوف بالبيت : (او د رسول الله ﷺ د احرام څخه د وتلو لپاره ....) ددغه تفصيل پوهېدو څخه مخکي په دې پوهېدل پکار دي چي د بقر عيد په ورځ (يعني د ذي الحجې په لسمه) حاجيان د مزدلفې څخه منی ته راځي او هلته رمي جمره عقبه باندي د ډبرو وېشتلو څخه وروسته د احرام څخه وځي يعني هغه ټولي خبري چي د احرام په حالت کي منع وې اوس جائز دي، البته رفث يعني جماع کول يا د ښځي په مخکي د جماع ذکر او شهوتي خبري کول جائز نه دي تر دې چي مکې ته بېرته راسي او طواف افاضه وکړي نو بيا رفث هم جائز دی، نو د بي بي عائشې رضي الله عنها ددغه جملې مراد دادی چي رسول الله ﷺ به د احرام څخه ووتی يعني د مزدلفې څخه منی ته په راتلو سره د رمي جمره عقبه څخه به فارغ سو مګر تر اوسه پوري به مکې ته په راتلو سره به يې طواف افاضه نه وو کړی نو ما به هغه وخت رسول الله ﷺ ته خوشبويي ورلګول.

## تلبيد او تلبيه

﴿۲۴۲۶﴾: وَعَنِ بْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُهِلُّ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه په لوړ آواز دا تلبيه اوريدلي

مُلَبِّدًا يَقُولُ لَبَّيْكَ اللّٰهُمَّ لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ إِنَّ الْحَمْدَ

چي فرمايل يې : (لبيک .... لاشريک لک) اې الله ! زه حاضر يم ستا په خدمت کي ستا هيڅوک شريک نسته ، ستا په خدمت کي حاضر يم او ټول تعريفونه

وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَا يَزِيدُ عَلَى هٰؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ. متفق عليه

او نعمت تا لره دئ او پاچاهي هم ، ستا هيڅوک شريک نسته ، رسول الله ﷺ به د دې کلمات څخه زيات نه ويل . بخاري او مسلم .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۳\۴۰۸، رقم: ۵۹۱۵، ومسلم ۲\۸۴۲، رقم: ۲۱-۱۱۸۴.

**تشريح**: تلبيد کول دادي چي احرام تړونکی (محرم) د خپل سر په وېښتانو کي ګونډري ، نکريزي يا بل داسي شی ولګوي چي وېښتان وموښلي چي په هغه کي ګرد او غبار ولويږي او د سپږو څخه خوندي وي .

تلبيه يعني لبيک ويلو کي د علماؤ اختلافي قولونه دي ، د امام اعظم ابو حنيفة رحمه الله په نزد د احرام صحيح کېدو لپاره تلبيه شرط دی ، امام مالک رحمه الله وايي چي تلبيه واجب نه ده مګر د تلبيه په پرېښودو سره دم يعني ذبح کول لازميږي او د امام شافعي رحمه الله په نزد تلبيه سنت ده د دې په پرېښودو سره دم نه لازميږي .

د حديث د آخري الفاظو مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به په تلبيه کي اکثر دومره الفاظ ويل ځکه چي په نورو روايتو کي د تلبيه د دغه الفاظو څخه پرته نور الفاظ هم منقول دي ، په دې باره کي مسئله داده چي د تلبيه کوم الفاظ دلته په حديث کي نقل سوي دي په هغو کي کمي کول مکروه دي او زياتي کول مکروه نه دي بلکه مستحب دي .

د حديث څخه دا مسئله هم واضح سوه چي تلبيه په لوړ آواز سره ويل پکار دي د ټولو علماؤ په نزد په لوړ آواز سره تلبيه ويل مستحب دي .

## تلبیه کله ویل کیږي

﴿۲۴۲۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَدْخَلَ رِجْلَهُ فِي الْغَرْزِ وَاسْتَوَتْ بِهِ نَاقَتُهُ قَائِمَةً أَهَلَّ مِنْ عِنْدِ مَسْجِدِ ذِي الْحُلَيْفَةِ. متفق علیه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي کله به رسول الله ﷺ پښې مبارکي پر سپرلۍ باندي کښېښودلې او اوښه به ودریدل نو رسول الله ﷺ به ذوالحلیفة مسجد ته نژدې تم سو او په هغه ځای کي به یې احرام وتړئ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۶۹\۱۶، رقم: ۲۸۶۵، ومسلم۱۲\۸۴۵، رقم: ۲۷– ۱۱۸۷.

**تشریح**: رسول الله ﷺ د حجة الوداع پر موقع د سفر سامان وتړی او د ماپښین لمونځ یې په مدینه کي وکړ او روان سو ، د مازدیگر لمونځ یې ذوالحلیفه ته په رسیدو سره وکړ کوم چي د اهل مدینې لپاره میقات دی شپه یې هلته تېره کړه او بیا سهار یې احرام وتړی.

ددغه حدیث څخه دا معلومه سوه چي رسول الله ﷺ د اوښ پر شا باندي په کښېنستو سره او د اوښ د درېدو څخه وروسته لبیک ووایه ، مگر په یو بل روایت کي دا منقول دي چي د احرام لپاره به د نفل دوه رکعته لمونځ کولو څخه وروسته لبیک وایي او په یوه روایت کي دادي چي رسول الله ﷺ بېداء ته په رسیدو سره چي د یو لوړ ځای نوم دی لبیک وویل، همدا رنگه د لبیک ویلو د وخت په اړه درې روایتونه منقول دي ، امام شافعي رحمة الله علیه پر اول روایت باندي کوم چي دلته نقل سوی دی په عمل کولو سره وایي چي پر اوښ باندي دي لبیک وویل سي . امام اعظم ابوحنیفة او امام مالک رحمة الله علیهما دوهم روایت اختیار کړی دی نو ددغه درو سره امامانو په نزد مستحب دادي چي د دوو رکعتو نفل کولو څخه وروسته د احرام نیت وکړل سي او بیا پر هغه مصلی باندي په ناسته سره لبیک ووایي نو دا جائز دي مگر د لمانځه وروسته لبیک ویل غوره دي.

اوس ددغه درو سره روایتو تضاد په دغه تطبیق سره لیري کیږي چي رسول الله ﷺ د لمانځه کولو سره پر مصلی باندي په ناسته لبیک ووایه بیا چي پر اوښه باندي کښېنستی نو هغه وخت یې هم لبیک ووایه او ددې څخه وروسته چي بیداء ته ورسیدی نو هلته یې هم لبیک ووایه ، ځکه علماء وایي چي د حالت ، وخت او ځای د بدلېدو پر وخت د لبیک تکرار مستحب دی.

په هر حال رسول الله ﷺ درې واره لبيک ووايه او کوم راوي چي چيري لبيک ويل اوريدلي دي هغه دا ګڼلي دي چي رسول الله ﷺ د دغه ځای څخه لبيک ويل شروع کړي دي ځکه نو هر راوي د خپلو اوريدو سره سم ذکر کړی دی ، د دغه تطبيق او توجيه پر بنياد د ابن عباس رضي الله عنه هغه روايت دی کوم چي شيخ عبد الحق رحمه الله په اشعة اللمعات کي د کتاب خرقي په تشريح کي نقل کړی دی .

## د تلبيه ذکر او د حج قسمونه

﴿۲۴۲۸﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَصْرُخُ بِالْحَجِّ صُرَاخًا . رواه مسلم

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ سره په داسي حال کي (حج ته) ولاړو چي موږ به په لوړ آواز سره تلبيه ويل . مسلم .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ٢\ ٩١٤، رقم: ٢١١- ١٢٤٧.

**تشريح**: يوازي د حج يادونه يې ځکه وکړه چي حج اصل او مقصود اعظم دی او ځيني حضرات وايي چي دا خبره راوي په خپل اړه ويلې ده زيات تر زيات د دې تعلق د ځينو خلکو سره کيدای سي چي د راوي په ډول يوازي د حج لپاره يې تلبيه کول يا په زيات وضاحت سره به داسي ووايو چي دغه حديث يوازي د هغه خلکو حال بيانوي کوم چي د افراد احرام تړلی وو ، او کوم چي د رسول الله ﷺ تعلق دی نو د هغه په باره کي دغه حديث ساکت دی چي د دې وضاحت به په بل روايت کي راسي ځکه دغه روايت د راتلونکو روايتو خلاف نه دی .

﴿۲۴۲۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كُنْتُ رَدِيفَ أَبِي طَلْحَةَ وَإِنَّهُمْ لَيَصْرُخُونَ بِهِمَا جَمِيعًا الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ . رواه البخاري .

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه به د ابو طلحه رضي الله عنه سره (پر سپرلۍ) سپور وم او صحابه کرامو به د حج او عمرې دواړو لپاره په لوړ آواز تلبيه ويل . بخاري .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري) ١٣١\٦، رقم: ٢٩٨٦.

**تشريح**: دغه حديث پر دې دلالت کوي چي قِران افضل دی د حنفيه دا مذهب دی، د حديث د مستدل ګرځولو وجه داده چي صحابه کرام د رسول الله ﷺ سره وه هغوئ د رسول الله ﷺ خلاف

عمل کول هيڅکله زغملای نه سوه نو رسول الله ﷺ به قِران کړی وي ځکه اکثر صحابه کرامو هم د رسول الله ﷺ په پيروي کي قِران وکړ، د قِران معنی په مخکني حديث کي بيان سوې ده.

﴿۲۴۳۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عائشي ﷺ څخه روايت دئ چي موږ په حجة الوداع کي د رسول الله ﷺ سره ولاړو

عَامَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ فَمِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ وَمِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِحَجَّةٍ وَعُمْرَةٍ وَمِنَّا مَنْ

په موږ کي ځينو خلکو د عمرې احرام وتړئ او ځينو د حج او عمرې دواړو احرام وتړئ، او ځينو

أَهَلَّ بِالْحَجِّ وَأَهَلَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَجِّ فَأَمَّا مَنْ أَهَلَّ

يوازي د حج احرام وتړئ او رسول الله ﷺ د حج احرام تړلی وو بيا چي موږ يوازي د عمرې احرام

بِالْحَجِّ أَوْ جَمَعَ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لَمْ يَحِلُّوا حَتَّى كَانَ يَوْمُ النَّحْرِ. متفق عليه

تړلی وو هغه خو حلال سول او چا چي يوازي د حج يا د حج او عمرې دواړو احرام تړلی وو هغوئ حلال نه سول تر څو چي د قرباني ورځ راغلل. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳\۴۲۱، رقم: ۱۵۶۲، ومسلم ۲\۸۷۳، رقم: ۱۱۸- ۱۲۱۱.

**تشريح**: د حج کونکي درې ډوله دي: ۱: مفرد، ۲: قارن، ۳: متمتع.

مفرد هغه ته وايي چي يوازي د حج احرام وتړي او يوازي د حج پر احرام تړلو باندي اکتفاء کولو ته افراد وايي، قارن هغه ته وايي چي د حج او عمرې دواړو په احرام تړلو سره مخکي عمره وکړي او بيا حج وکړي نو د حج او عمرې دواړو په احرام تړلو سره مخکي عمره او بيا حج کولو ته قِران وايي، متمتع هغه ته وايي چي د حج په مياشتو کي د مقيات څخه د عمرې احرام وتړي او د عمرې افعال وکړي بيا که چيري د قرباني حيوان يې د ځان سره راوستلی وي نو احرام دي يې تړلی وي او که د قرباني حيوان يې د ځان سره نه وي راوستلی نو د احرام څخه دي ووځي او په مکه کي دي مقيم سي کله چي د حج ورځ راسي نو د حج احرام دي د حرم څخه وتړي او حج دي وکړي، د حج په مياشتو کي مخکي د عمرې د احرام په تړلو سره عمره کول او د عمرې څخه د فارغه کېدو وروسته هيواد ته د تللو څخه مخکي بېله احرا خلاصولو يا په احرا خلاصولو سره د حج په مياشتو کي مخکي د حج په احرام تړلو سره حج کولو ته تمتع وايي، دلته په اجمالي

توګه یوازي تعریفونه بیان سوي دي تفصیلي احکام به یې مخته راسي انشاء الله.

اوس سوال دادی چي رسول الله ﷺ په حجة الوداع کي د کوم ډول حج لپاره احرام تړلی وو؟ ایا رسول الله ﷺ مفرد وو که قارن او که متمتع؟ علماء وایي چي په دې باره کي مختلف حدیثونه نقل سوي دي د ځینو حدیثو څخه دا معلومیږي چي رسول الله ﷺ مفرد وو نو دلته چي کوم حدیث نقل سوی دی دا هم د هغو څخه دی، د اکثرو حدیثو څخه ثابتیږي چي رسول الله ﷺ قارن وو او د ځینو حدیثو څخه دا ثابتیږي چي رسول الله ﷺ متمتع وو.

نو په دغه ټولو حدیثو کي تطبیق داسي پیدا کیږي چي د رسول الله ﷺ په ملګرو کي ځینو خو د احرام تړلو پر وخت د رسول الله ﷺ څخه یوازي لبیک بحجة اوریدلي او لفظ د عمرة یې نه دی اوریدلی نو هغوئ دا وویل چي رسول الله ﷺ مفرد وو، ځینو لبیک بحجة وعمرة واوریدل نو هغوئ وویل چي رسول الله ﷺ متمتع وو او دا احتمال هم دی چي رسول الله ﷺ کله خو لبیک بحجة ویلي دي او کله یې لبیک بعمرة او کله یې لبیک بحجة وعمرة ویلي دي نو چا چي څه واوریدل هغه یې روایت کړل او دا چي د قران او تمتع افعال په خپلو کي مشابه دي ځکه نو ځینو صحابه کرامو دا وګڼل چي رسول الله ﷺ قران کړی دی نو هغه یې نقل کړ او ځینو دا وګڼل چي رسول الله ﷺ تمتع کړی دی ځکه نو هغه دا نقل کړه، او دا هم کېدای سي چي په کوم روایت کي تمتع منقول ده هلته د هغه لغوي معنی مراد وي ځکه چي د تمتع معنی ده ګټه پورته کول او ظاهره ده چي دا مفهوم په قران سره هم تر لاسه کیږي په دې توګه چي قارن د عمرې څخه منتفع کیږي چي هغه یې د حج سره وکړي.

فاما من اهل بعمرة فحل ... الخ: نو چا چي یوازي د عمرې احرام وتړی نو هغه حلال سو...الخ، مطلب دادی چي کومو خلکو د حج څخه مخکي یوازي د عمرې لپاره احرام تړلی وي نو هغوئ د طواف او سعي کولو او حلق یعني سرخریلو څخه وروسته د عمرې د احرام څخه ووتل او بیا هغوئ د حج احرام وتړي او کومو خلکو چي یوازي د حج یا د حج او عمرې دواړو احرام تړلی وي نو هغوئ د احرام څخه ووتل تر دې چي د قربانۍ ورځ راسي د نحر ورځ هغه هم پر رمي جمرة العقبة باندي د ډبرو ویشتلو او حلق څخه وروسته د احرام څخه ووتی چي د هغه څخه وروسته ټول په احرام کي منع سول نو د هغوئ لپاره جائز سول پرته د ښځي سره د کوروالي چي هغه د طواف رکن څخه وروسته جائز کیږي.

**د رسول الله ﷺ حج**

﴿۲۴۳۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ تَمَتَّعَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ بَدَأَ فَأَهَلَّ بِالْعُمْرَةِ ثُمَّ أَهَلَّ بِالْحَجِّ. متفق عليه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ په حجة الوداع کي تمتع وکړه يعني د عمرې احرام تړلو سره يې د حج احرام هم وتړئ وړاندي رسول الله ﷺ د عمرې احرام تړلی وو، بيا يې د حج احرام وتړئ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳\۵۳۹، رقم: ۱۹۶۱، ومسلم ۲\۹۰۱، رقم: ۱۷۴– ۱۲۲۷.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

**د احرام جامې**

﴿۲۴۳۲﴾: عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَجَرَّدَ لِإِهْلَالِهِ وَاغْتَسَلَ. رواه الترمذي والدارمي

د حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه وليدل رسول الله ﷺ د احرام تړلو لپاره جامې ليري کړې او غسل يې وکړ او بيا يې احرام و تړئ، ترمذي او دارمي.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۱۹۲، رقم: ۸۳۰، والدارمي ۲\۴۸، رقم: ۱۷۹۴.

**تشريح**: د لوڅېدو مطلب دادی چي ګنډلي جامې يې د بدن څخه وکښلې او د لونګ او څادر په اچولو سره د احرام جامې واغوندي، د احرام په حالت کي ګنډلي جامې مثلاً قميص، پرتوګ، خولی، عبا، قبا، موزې او داسي نور شيان اغوستل منع دي.

لکه څرنګه چي د حديث څخه معلومه سوه چي د احرام لپاره غسل کول سنت او افضل دی که چيري غسل ونه کړل سي نو بيا پر اوداسه باندي اکتفاء کول هم جائز دي، د حيض او نفاس والا ښځو او نابالغو کوچنيانو لپاره غسل سنت دی.

**د تلبيد ذکر**

﴿۲۴۳۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَبَّدَ رَأْسَهُ بِالْغِسْلِ.

رواه أبو داود

د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د خپل سر وربښتان په هغه شي سره یو ځای کړل په کوم چي یې وربښتان پریولل. ابوداؤد.

**تخریج**: ابوداود في السنن ۲\۳۶۰، رقم: ۱۷۴۸.

**تشریح**: رسول الله ﷺ د احرام پر وخت د خپل سر مبارک وېښتان په کونډرو یا بل شي سره جمع کړي وه چي د ګرد او غبار څخه خوندي سي دې ته تلبید وایي په دې باره کي مخکي هم بیان سوی دی.

## په تلبیه کي لوړ اواز

﴿۲۴۳۴﴾: وَعَنْ خَلَّادِ بْنِ السَّائِبِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

حضرت خلاد بن السائب د خپل پلار څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

وَسَلَّمَ أَتَانِي جِبْرِيلُ فَأَمَرَنِي أَنْ آمُرَ أَصْحَابِي أَنْ يَرْفَعُوا أَصْوَاتَهُمْ بِالْإِهْلَالِ وَالتَّلْبِيَةِ. رواه مالك والترمذي وابوداؤد والنسائي وابن ماجة والدارمي

جبرائیل علیه السلام ما ته راغلئ او حکم یې راکړ چي زه خپلو صحابه کرامو ته دا امر وکړم چي هغوئ د احرام تړلو یا لبیک ویلو په وخت کي خپل آوازونه لوړ کړي. مالک، ترمذي، ابوداؤد، نسائي، ابن ماجه، او دارمي.

**تخریج**: الامام مالک في الموطا ۱\۳۳۴، رقم: ۳۴، والترمذي في السنن ۳\۱۹۱، رقم: ۸۲۹، وابوداود ۲\۴۰۵، رقم: ۱۸۱۴، والنسائي ۵\۱۶۲، رقم: ۲۷۵۳، وابن ماجه ۲\۹۷۵، رقم: ۲۹۲۲، والدارمي ۲\۵۳، رقم: ۲۹۲۲.

**تشریح**: بالاهلال او التلبیة: دلته حرف د او د راوي شک ظاهروي چي رسول الله ﷺ یا خو بالاهلال وفرمایل او یا یې بالتلبیه وفرمایل، د دواړو معنی یوه ده یعني لبیک ویل.

په لوړ آواز د لبیک ویل د نارینوو لپاره مستحب دي مګر آواز دومره لوړول نه دي پکار چي د هغه څخه تکلیف ورسیږي، ښځي دي دومره په کرار اواز سره لبیک وایي چي هغوئ یې خپله اوري نورو ته د هغوئ آواز ونه رسیږي.

## د لبیک ویونکي فضیلت

﴿۲۴۳۵﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا

د حضرت سهل بن سعد ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

مِنْ مُسْلِمٍ يُلَبِّي إِلَّا لَبَّى مَنْ عَنْ يَمِينِهِ أَوْ عَنْ شِمَالِهِ مِنْ حَجَرٍ أَوْ شَجَرٍ أَوْ

هر کله چي مسلمان لبیک وایي نو د هغه راسته لوري ته ډبري، درختي او

مَدَرٍ حَتَّى تَنْقَطِعَ الْأَرْضُ مِنْ هَاهُنَا وَهَاهُنَا. رواه الترمذي وابن ماجة.

خاوري ټول لبیک وایي تر دې چي آخوا دېخوا ټوله مځکه لبیک وایي. ترمذي او ابن ماجة.

**تخریج**: الترمذي في السنن ۳\۱۸۹، رقم: ۸۲۸، وابن ماجه ۲\۹۷۴، رقم: ۲۹۲۱.

**تشریح**: دا حدیث د لبیک ویونکي عظمت او فضیلت څرګندوي چي کله یو مسلمان لبیک وایي نو د مځکي ټول شیان د لبیک ویونکي ملګرتیا کوي په دې توګه چي هغوئ هم لبیک وایي

## د احرام لپاره دوه رکعته لمونځ

﴿۲۴۳۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْكَعُ

د حضرت ابن عمر ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به

بِذِي الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ إِذَا اسْتَوَتْ بِهِ النَّاقَةُ قَائِمَةً عِنْدَ مَسْجِدِ ذِي

په ذوالحلیفة کي دوه رکعته لمونځ کوئ بیا چي ذوالحلیفة ته نژدې ورسیدئ نو

الْحُلَيْفَةِ أَهَلَّ بِهَؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ وَيَقُولُ لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ

په دې کلماتو ویلو سره یې تلبیه کول (لبیک ..... والعمل) اې الله! زه ستا په خدمت کي حاضر یم، ستا په خدمت کي حاضر یم او ستا په خدمت کي نیک بختي تر لاسه کوم

وَالْخَيْرُ فِي يَدَيْكَ لَبَّيْكَ وَالرَّغْبَاءُ إِلَيْكَ وَالْعَمَلُ. متفق عليه ولفظه لمسلم

او خیر ستا په لاس کي دئ ستا په خدمت کي حاضر یم او شوق او توجه ستا په لور ده او عمل تا

لره دئ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري) ۳\۴۱۲، رقم: ۱۵۵۳، ومسلم ۲\۸۴۳، رقم: ۲۱- ۱۱۸۴.

**د لغاتو حل**: والرغباء، اى الطلب و المسالة والرغبة الى من بيده الخير. (فقر كول).

**تشريح**: مطلب دادى چي كله رسول الله ﷺ ذوالحليفه ته ورسيدى نو هلته به رسول الله ﷺ دوه ركعته لمونځ د نفل په نيت سره كوى كوم چي د احرام لپاره مسنون دى او په دغه دواړو ركعتو كي يې د قل يا ايها الكافرون او قل هو الله احد قرائت وايه، بيا به يې نيت كوى ددې وروسته به يې لبيک وايه او بيا چي به رسول الله ﷺ د ذوالحليفه د مسجد څخه پر اوښه سپور سو نو رسول الله ﷺ به د اوښي سره ودريدى او د هغه كلماتو په ذريعه به يې تلبيه كول كوم چي مشهور دي او بيا د لبيک نور هغه كلمات به يې ويل كوم چي په حديث كي نقل سوي دي.

## د تلبيه وروسته درود او دعاء

﴿۲۴۳۷﴾: وَعَنْ عُمَارَةَ بْنِ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ إِذَا فَرَغَ مِنْ تَلْبِيَتِهِ سَأَلَ اللّٰهَ رِضْوَانَهُ وَالْجَنَّةَ وَاسْتَعْفَاهُ بِرَحْمَتِهِ مِنَ النَّارِ. رواه الشافعي

حضرت عمار بن خزيمة بن ثابت رضي الله عنه د خپل پلار څخه روايت كوي چي كله به رسول الله ﷺ د لبيک څخه فارغ سو نو الله تعالى څخه به يې د هغه رضا او جنت غوښتئ او د هغه د رحمت په ذريعه به يې د هغه د دوږخ د اور څخه امان غوښتئ. شافعي.

**تخريج**: الشافعي في الام ۲\۱۵۷،

**تشريح**: حنفي علماء كرام وايي چي دا مستحب دي كله چي سړى د تلبيه څخه فارغ سي نو هغه دي پر نبي كريم ﷺ باندي درود وايي او د درود ويلو په وخت كي خپل آواز د تلبيه په نسبت كښته كوي او د الله تعالى څخه دي د هغه رضا او جنت غواړي د دوږخ څخه دي پناه غواړي او كوم ديني او دنيوي خير چي غواړي د هغه دعاء دي وكړي.

دا مسئله هم په ذهن كي را وستل پكار دي چي تلبيه كونكي ته سلام ادا كول مكروه دي هو كه يو څوک د تلبيه كولو په حالت كي سلام وكړي نو د هغه د سلام جواب وركول جائز دى او د حنفي علماؤ په نزد يو وار تلبيه ويل فرض دي او تر يو وار زيات ويل سنت دي داسي سنت چي د هغه پرېښودونكى بد گڼل كيږي.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

## د حجة الوداع پر موقع باندي عام اعلان

﴿۲۴۳۸﴾: عَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا أَرَادَ الْحَجَّ أَذَّنَ فِي النَّاسِ فَاجْتَمَعُوْا فَلَمَّا أَتَى الْبَيْدَاءَ أَحْرَمَ. رواه البخاري

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي كله رسول الله ﷺ د حج اراده وكړه نو اعلان يې وكړ، خلک يو ځاى سول بيا د بيداء ميدان ته ورسيدل نو احرام يې وتړئ. بخاري.

**تخريج**: لم نجده عند البخاري وهو بلفظه عند الترمذي ۱۸۱\۳، رقم: ۸۱۷.

**تشريح**: كله چي حج فرض سو نو رسول الله ﷺ په لسم هجري كال كي ددغه فريضې د ادا كولو لپاره اراده وكړه نو دا عام اعلان وسو چي رسول الله ﷺ اراده لري چي پر كومو خلكو باندي حج فرض دى هغوئ د حج د سفر تياري وكړي نو پر ټاكلي وخت باندي په مدينه كي د مسلمانانو ډېر لوى شمېر جمع سو او رسول الله ﷺ د ټولو ملګرو سره د مدينې منورې څخه روان سو بيا چي كله رسول الله ﷺ د بيداء ميدان ته چي د ذوالحليفه نژدې دي ورسيدى نو احرام يې وتړى، دلته په دې خبره پوهېدل پكار دي چي دلته د احرام تړلو څخه مطلب دادى چي په بيداء كي رسول الله ﷺ دوه واره د لبيک په ويلو سره د خپل محرم كېدو اظهار وكړ ځكه چي مخكي ښودل سوي دي او دا هم ثابت دي چي رسول الله ﷺ په شروع كي په ذوالحليفه كي د احرام لپاره دوه ركعته لمونځ وكړى او احرام يې وتړى.

## د مشركانو تلبيه

﴿۲۴۳۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ الْمُشْرِكُوْنَ يَقُوْلُوْنَ لَبَّيْكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي مشركانو به تلبيه ويل نو داسي به يې ويل:
(لبيک لا شريک لک)

قَالَ فَيَقُوْلُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيْلَكُمْ قَدْ قَدْ إِلَّا شَرِيْكًا هُوَ لَكَ

رسول الله ﷺ په دې اوريدو سره وفرمايل: پر تاسو دي افسوس وي بس همدومره وايا ست تر دې زيات مه وايا ست، مګر ددې وروسته به هغوئ ويل (الا شريكا ..... و ماملک) ستا په

خدمت کي حاضر یم ستا هیڅوک شریک نسته خو هغه شریک چي

**تَمۡلِكُهُ وَمَا مَلَكَ يَقُولُونَ هَذَا وَهُمْ يَطُوفُونَ بِالْبَيْتِ . رواه مسلم**

**ستا په ملک کي دئ ته د هغو مالک یې او هغه ستا شریک ستا مالک نه دئ ، دا د مشرکانو تلبیه وه مشرکانو به دغه کلمات ویل او د بیت الله طواف به یې کوئ . مسلم .**

**تخريج**: صحیح مسلم ۲\ ۸۴۳، رقم: ۲۲- ۱۱۸۵.

**د لغاتو حل**: قدِ قدٍ: ای کفاکم هذا الکلام فاقتصروا علیه.

**تشريح**: مشرکانو به هم حج، عمره او طواف وغیره کوی هغوئ به د کعبې شریفي تعظیم کوی او د هغې د احترام خیال به یې ساتی مگر کله چي به یې لبیک ویل نو د خپل شرک په وجه به یې دا ویل : لبیک لا شریک لک الا شریکا هو لک تملکه وما ملک، یعني هغوئ به د الله تعالی سره د شرک نفي کول مگر د بتانو استثناء به یې کول او دا به یې ویل چي هغه بُتان د الله تعالی شریک دي مگر هغه مملوک دي او الله تعالی د دغه بتانو مالک دی، هغوئ چي به تلبیه شروع کړه او دا به یې ویل چي لبیک لا شریک لک ، نو رسول الله ﷺ به فرمایل چي تر دې ځایه خو صحیح دی بس تاسو همدومره وایاست چي د الله تعالی هیڅوک شریک نه ستهٔ ددې څخه وروسته مه وایاست ، مگر د مشرکانو پر عقل خو پردې وې هغوئ به هدایت څرنگه منلای وای ځکه هغوئ وروسته د دغه الفاظو ویلو څخه نه منع کېدل حالانکه د هغوئ دغه کلمات : الا شریکا هو لک ...الخ، په حقیقت کي د هغوئ د بې عقلۍ او حماقت ظاهروی چي بتان یې د الله تعالی ملکیت هم بنودل او بیا یې ورته شریک هم ویل حالانکه که هغوئ ته د عقل سلیم لږ رهنمائي هم تر لاسه وای نو هغوئ به په دې پوهیدای چي مملوک د خپل مالک شریک څرنگه کیدای سي .

==========

# بَابُ قِصةِ حَجَّةِ الْوَدَاعِ

## د حجة الوداع قصه

وَداع د واو په زور سره دی او معنی یې ده رخصتول، او حجة الوداع هغه حج ته وایي چي رسول الله ﷺ د حج د فرضیت وروسته په لسم هجري کال کي وکړ ، د دغه حج نوم ځکه حجة الوداع کنبېښودل سو چي رسول الله ﷺ په دغه حج کي د شریعت د احکامو تعلیم ورکړ هغوئ

يې رخصت کړي او ددغه دنيا څخه د خپل په رخصت کېدو يې هغوئ خبر کړل او د منصب رسالت د ذمه دارۍ د تر سره کولو او ديني او تشريعي احکامو دنيا ته رسولو او نافذ کولو باندې يې هغوئ خپل شاهدان کړل ، په دغه باب کې تر ټولو مخکې د حضرت جابر رضي الله عنه هغه اوږد او بسيط حديث نقل کيږي کوم چې په حديثو کې تر ټولو جامع حديث دی، ددغه حديث څخه يو نيم سل فقهي مسائل مستنبط کيږي او که څوک زيات فکر او غور وکړي نو تر دې هم زيات مسئلې مخته راځي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د حجة الوداع تفصيل د حضرت جابر رضي الله عنه په ژبه

﴿۲۴۴۰﴾: عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِاللهِ اَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَثَ بِالْمَدِيْنَةِ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ (تر هجرت وروسته) په مدينه کې وو

تِسْعَ سِنِينَ لَمْ يَحُجَّ ثُمَّ أَذَّنَ فِي النَّاسِ بالحج فِي الْعَاشِرَةِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ

نهه کاله او په دغه وخت کې يې حج ونه کړ، په لسم کال چې رسول الله ﷺ په دې الفاظو د حج عام اعلان وکړ چې رسول الله ﷺ

حَاجٌّ فَقَدِمَ الْمَدِينَةَ بَشَرٌ كَثِيرٌ فَخَرَجْنَا مَعَهُ حَتَّى أَتَيْنَا ذَا الْحُلَيْفَةِ فَوَلَدَتْ

د حج اراده لري، د اعلان په اورېدو سره ډير خلک يو ځای سول نو د مسلمانانو يو لوی ډله د رسول الله ﷺ سره روان سول ، کله چې موږ ذوالحليفة ته ورسيدو نو

أَسْمَاءُ بِنْتُ عُمَيْسٍ مُحَمَّدَ بْنَ أَبِي بَكْرٍ فَأَرْسَلَتْ إِلَى رَسُولِ اللهِ ﷺ كَيْفَ أَصْنَعُ

د بي بي اسماء بنت عميس څخه محمد بن ابو بکر پيدا سو ، بي بي اسماء د رسول الله ﷺ په خدمت کې يو سړی ولیږی چې په دې حالت کې اوس زه څه وکړم،

قَالَ اغْتَسِلِي وَاسْتَثْفِرِي بِثَوْبٍ وَأَحْرِمِي فَصَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

رسول الله ﷺ حکم ورکړ چې غسل وکړه يو جامه وتړه بيا احرام وتړه ، بيا نبي کريم ﷺ لمونځ وکړ

فِي الْمَسْجِدِ ثُمَّ رَكِبَ الْقَصْوَاءَ حَتَّى إِذَا اسْتَوَتْ بِهِ نَاقَتُهُ عَلَى الْبَيْدَاءِ أَهَلَّ

په مسجد ذو الحليفة کي بيا پر خپله او ښه سپور سو تر څو چي او ښه د بيداء ميدان ته ورسيده نو

بِالتَّوْحِيدِ لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ

رسول الله ﷺ په لوړ آواز سره لبيک و وايه په توحيد ويلو سره حاضر يم: (لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ

وَالْمُلْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ قَالَ جَابِرٌ لَسْنَا نَنْوِي إِلَّا الْحَجَّ لَسْنَا نَعْرِفُ الْعُمْرَةَ حَتَّى

وَالْمُلْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ) د حضرت جابر رضي الله عنه بيان دئ چي د اوس څخه وړاندي به موږ يوازي د حج نيت کوئ او عمره مو نه پيژندل، بيا کله چي

إِذَا أَتَيْنَا الْبَيْتَ مَعَهُ اسْتَلَمَ الرُّكْنَ فَطَافَ سَبْعًا فَرَمَلَ ثَلَاثًا وَّ مَشَى أَرْبَعًا ثُمَّ

موږ د نبي کريم ﷺ سره مکې ته ورسيدو نو حجر اسود يې مچ کړ او اووه واره يې د بيت الله شريفي طواف وکړ، درې واره په ځغاسته او څلورم وار په مناسب تګ سره، بيا

تَقَدَّمَ إِلَى مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ فَقَرَأَ وَ اتَّخِذُوا مِنْ مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى فَصَلَّى

مقام ابراهيم ته ولاړئ او نبي کريم ﷺ دا آيت تلاوت کړ: (واتخذوا من مقام ابراهيم مصلى) او تاسو د ابراهيم عليه السلام ځاى د لمانځه ځاى جوړ کړئ، نو لمونځ يې وکړ

رَكْعَتَيْنِ فَجَعَلَ الْمَقَامَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْبَيْتِ، و في رواية أَنَّهُ قَرَأَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ قُلْ

دوه رکعته د مقام ابراهيم او بيت الله په منځ کي او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي په دغه دوو رکعتو کي يې قل

هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ وَقُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ ثُمَّ رَجَعَ إِلَى الرُّكْنِ فَاسْتَلَمَهُ ثُمَّ خَرَجَ مِنَ

هو الله احد او قل يا ايها الكافرون وويل، بيا د حجر اسود لور ته وګرځيدئ او مچ يې کړل، بيا ووتى

الْبَابِ إِلَى الصَّفَا فَلَمَّا دَنَا مِنَ الصَّفَا قَرَأَ { إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ }

د مسجد د دروازې څخه د صفا په لور او کله چي صفا ته نژدې ورسيدئ نو دا آيت يې تلاوت (ان الصفا والمروة من شعائر الله) صفا او مروه دوې غونډۍ د الله تعالى د نښو څخه دي

أَبْدَأُ بِمَا بَدَأَ اللّٰهُ بِهِ فَبَدَأَ بِالصَّفَا فَرَقِيَ عَلَيْهِ حَتَّى رَأَى الْبَيْتَ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ

بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : زه د غونډۍ څخه پيل کوم چي د هغې څخه الله تعالى خپل کلام پيل کړ، نو د صفا څخه يې پيل وکړ او پر هغه وختې، تر څو چي کعبه شريفه يې وليدل او بيا بيت الله ته مخامخ ودريدئ

فَوَحَّدَ اللّٰهَ وَكَبَّرَهُ وَقَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ

د الله تعالى وحدانيت يې بيان کړ او د الله تعالى لويي يې بيان کړل، لااله الاالله ..... يې وويل،

عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ أَنْجَزَ وَعْدَهُ وَنَصَرَ عَبْدَهُ وَهَزَمَ

او الله اکبر يې وو ايه بيا يې وفرمايل : لااله الاالله...... الاحزاب وحده، د الله څخه پرته بل څوک د عبادت وړ نسته هغه يوازي دئ هغه واحد او يوازي دئ هغه خپله وعده پوره کړه او د خپلو بندګانو مرسته يې وکړه او ماته يې ورکړه

الْأَحْزَابَ وَحْدَهُ ثُمَّ دَعَا بَيْنَ ذٰلِكَ قَالَ مِثْلَ هٰذَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ نَزَلَ وَمَشَى إِلَى

د کافرانو ډلي ته يې، بيا ددې په منځ کي يې دعاء وکړه او درې واره يې همداسي وکړل او په ميدان کي يې دعاء وکړل بيا رسول الله ﷺ راکښته سو او د مروة په لوري روان سو

الْمَرْوَةِ حَتَّى إِذَا انْصَبَّتْ قَدَمَاهُ فِي بَطْنِ الْوَادِي ثُمَّ سَعَى حَتَّى إِذَا صَعِدَتَا مَشَى

تر څو چي رسول الله ﷺ د دواړو غونډيو په منځ کي نشيب ته ورسيدئ نو د هغه ځای څخه يې ځغستل پيل کړه او هر کله چي مروة ته وختئ نو کرار تلئ

حَتَّى أَتَى الْمَرْوَةَ فَفَعَلَ عَلَى الْمَرْوَةِ كَمَا فَعَلَ عَلَى الصَّفَا حَتَّى إِذَا كَانَ آخِرُ طَوَافِهِ

تر څو چي مروة ته وختئ او هلته يې هم هغه وکړل کوم چي يې په صفا باندي کړي وه هر کله چي رسول الله ﷺ په آخري وار مروې ته ورسيدئ

عَلَى الْمَرْوَةِ فَقَالَ وهو على المروة والناس تحته لَوْ أَنِّي اسْتَقْبَلْتُ مِنْ أَمْرِي مَا

نو رسول الله ﷺ خلکو ته په لوړ آواز سره وويل که وړاندي ما ته هغه خبره ښکاره سوې وای کومه چي

اسْتَدْبَرْتُ لَمْ أَسُقِ الْهَدْيَ وَجَعَلْتُهَا عُمْرَةً فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ لَيْسَ مَعَهُ هَدْيٌ

وروسته راته ځرګند ه سوه نو هدي (د قرباني حيوان) به مي د ځان سره راوستلی وای او خپل حج به مي عمري ته نقل کړی وای په تاسو کي چي چا د ځان سره د قرباني حيوان نه وي

فَلْيَحِلَّ وَلْيَجْعَلْهَا عُمْرَةً فَقَامَ سُرَاقَةُ بْنُ مَالِكِ بْنِ جُعْشُمٍ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ

هغه دي ځان حلال کړي او حج دي عمره کړي ، د دې په اورېدو سره سراقة بن مالک بن جعشم ودریدئ او عرض یې وکړ اې د الله رسوله !

أَلِعَامِنَا هَذَا أَمْ لِأَبَدٍ فَشَبَّكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَصَابِعَهُ وَاحِدَةً فِي

ایا سږ کال زموږ لپاره دا حکم دئ او که د همیشه لپاره ؟ رسول الله ﷺ د خپل یوه لاس ګوتي په بل لاس کي ورکړي

الْأُخْرَى وَقَالَ دَخَلَتِ الْعُمْرَةُ فِي الْحَجِّ مَرَّتَيْنِ لَا بَلْ لِأَبَدِ أَبَدٍ وَقَدِمَ عَلِيٌّ مِنْ

او وه یې فرمایل : اوس عمره په حج کي داخله کړل سوې ده ، دا الفاظ یې دوه واره وفرمایل ، دا حکم یوازي سږ کال لپاره نه دئ بلکه د همیشه لپاره دئ، حضرت علي ؓ د یمن څخه د

الْيَمَنِ بِبُدْنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ له مَاذَا قُلْتَ حِينَ فَرَضْتَ الْحَجَّ

رسول الله ﷺ لپاره د قرباني حيوان راوستئ نبي کریم ﷺ د حضرت علي ؓ څخه پوښتنه وکړه تا چي احرام تړلی وو نو څه نیت دي کړی وو ؟

قَالَ قُلْتُ اللَّهُمَّ إِنِّي أُهِلُّ بِمَا أَهَلَّ بِهِ رَسُولُكَ قَالَ فَإِنَّ مَعِيَ الْهَدْيَ فَلَا تَحِلُّ قَالَ

هغه وویل : ما داسي نیت کړی وو (اللهم اني اهل بما اهل رسولک.) اې الله زه د هغه شي نیت کوم د کوم چي ستا رسول کړی دئ ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل زما سره خو د قرباني حيوان دئ له دې کبله ته هم حلال نه یې

فَكَانَ جَمَاعَةُ الْهَدْيِ الَّذِي قَدِمَ بِهِ عَلِيٌّ مِنَ الْيَمَنِ وَالَّذِي أَتَى بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ

او تر څو پوري چي د حج څخه فارغ نه یې احرام تړلی لره ، د راوي بیان دئ چي د رسول الله ﷺ لپاره چي کوم حيوان حضرت علي ؓ د یمن څخه راوستلی وو او هغه حيوان چي خپله رسول

الله ﷺ د ځان سره راوستلي وو

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِائَةً قَالَ فَحَلَّ النَّاسُ كُلُّهُمْ وَقَصَّرُوا إِلَّا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د ټولو شمير سل وو، حضرت جابر رضي الله عنه وايي ټول خلک د احرام څخه ووتل او د خپل سرونو وېښتان يې وخريل، مګر نبي کريم ﷺ

وَمَنْ كَانَ مَعَهُ هَدْيٌ فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ التَّرْوِيَةِ تَوَجَّهُوا إِلَى مِنًى فَأَهَلُّوا بِالْحَجِّ وَرَكِبَ

او هغو خلکو چي د هغو سره د قرباني حيوانان وه د احرام څخه حلال سول بيا چي د ترويې ورځ راغلل نو د منی په لوريې د تلو بندوبست وکړ او صحابه کرامو د حج احرام وتړئ او سپور سو

النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى بِهَا الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ وَالْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ وَالْفَجْرَ

نبي کريم ﷺ او هلته يې په مسجد خيف کي د ماپښين، مازديګر، ماښام، ماخستن او سهار لمنځونه ادا کړل

ثُمَّ مَكَثَ قَلِيلًا حَتَّى طَلَعَتِ الشَّمْسُ وَأَمَرَ بِقُبَّةٍ مِنْ شَعَرٍ تُضْرَبُ لَهُ بِنَمِرَةَ فَسَارَ

بيا لږ ګړی تم سول تر څو چي لمر راوختئ او رسول الله ﷺ حکم ورکړ چي د رسول الله ﷺ لپاره په نمره شيله کي خيمه ولګول سي، دا خيمه د وربښتانو څخه جوړه سوې وه، بيا روان سو

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا تَشُكُّ قُرَيْشٌ إِلَّا أَنَّهُ وَاقِفٌ عِنْدَ الْمَشْعَرِ

رسول الله ﷺ د منی څخه، د قريشو خيال وو چي نبي کريم ﷺ به مشعر حرام (مزدلفه) ته نژدې د حج لپاره ودريږي

الْحَرَامِ كَمَا كَانَتْ قُرَيْشٌ تَصْنَعُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَأَجَازَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

لکه څنګه چي د جاهليت په زمانه کي قريشو کول، مګر رسول الله ﷺ د مزدلفې څخه وړاندي ولاړئ

وَسَلَّمَ حَتَّى أَتَى عَرَفَةَ فَوَجَدَ الْقُبَّةَ قَدْ ضُرِبَتْ لَهُ بِنَمِرَةَ فَنَزَلَ بِهَا حَتَّى إِذَا زَاغَتْ

او د عرفات ميدان ته ورسيدئ، په نمره شيله کي د رسول الله ﷺ خيمه ولاړه وه، رسول الله ﷺ خيمې ته ولاړئ او لږ ګړی يې قيام وکړ، کله چي د لمر زوال سو

الشَّمْسُ أَمَرَ بِالْقَصْوَاءِ فَرُحِلَتْ لَهُ فَأَتَى بَطْنَ الْوَادِي فَخَطَبَ النَّاسَ وَقَالَ إِنَّ

نو رسول الله ﷺ د خپلي اوښي قصواء د راوستلو حکم ورکړ، د رسول الله ﷺ لپاره پر قصواء ځين واچول سو او رسول الله ﷺ پر هغه سپور سو او وادي نمره ته يې تشريف يوړ، او د خلکو په وړاندي يې خطبه وفرمايل: رسول الله ﷺ وفرمايل:

دِمَاءَكُمْ وَأَمْوَالَكُمْ حَرَامٌ عَلَيْكُمْ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هَذَا فِي شَهْرِكُمْ هَذَا فِي

ستاسو وينه او ستاسو مال پر تاسو داسي حرام دئ لکه څرنګه چي ستاسو په دې ورځي، دې مياشت او په دې

بَلَدِكُمْ هَذَا أَلَا كُلُّ شَيْءٍ مِنْ أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ تَحْتَ قَدَمَيَّ مَوْضُوعٌ وَدِمَاءُ

ښار کي قتل، غلا وغيره حرام ګڼئ يعني څرنګه چي ستاسو په نزد د عرفات په ورځ د ذوالحجة مياشت او په مکه کي قتل او غلا حرام دي همداسي د هميشه لپاره په خپلو کي هر ځای وژل او مال اخيستل حرام دي، خبر دار اوسئ د جاهليت د ورځو هر شي زما تر قدمو لاندي پروت دئ

الْجَاهِلِيَّةِ مَوْضُوعَةٌ وَإِنَّ أَوَّلَ دَمٍ أَضَعُ مِنْ دِمَائِنَا دَمُ ابْنِ رَبِيعَةَ بْنِ الْحَارِثِ

او د جاهليت وژنه معاف کړل سوې ده او لومړنی وژنه چي زه يې د خپلو وژنو څخه معافوم د ابن ربيعه بن حارث وژنه ده،

وَكَانَ مُسْتَرْضِعًا فِي بَنِي سَعْدٍ فَقَتَلَتْهُ هُذَيْلٌ وَرِبَا الْجَاهِلِيَّةِ مَوْضُوعٌ وَأَوَّلُ رِبًا

دا شېدې رودونکی کوچنی وو چي په قبيله بني سعد کي يې شيدې چېښلې چي هغه هذيل ووژئ، او د جاهليت سود معاف کړل سو او زه د خپل واجب الاصول سود و څخه تر ټولو وړاندي چي کوم سود معافوم

أَضَعُ رِبَانَا رِبَا عَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَإِنَّهُ مَوْضُوعٌ كُلُّهُ فَاتَّقُوا اللَّهَ فِي النِّسَاءِ

هغه د ابن عباس بن عبد المطلب سود دئ هغه معاف کړل سوی دا او (اې خلکو!) د ښځو په اړه د الله ﷻ څخه وبيرېږئ

فَإِنَّكُمْ أَخَذْتُمُوهُنَّ بِأَمَانِ اللَّهِ وَاسْتَحْلَلْتُمْ فُرُوجَهُنَّ بِكَلِمَةِ اللَّهِ وَلَكُمْ عَلَيْهِنَّ

تاسو هغوئ د الله ﷻ په امان سره اخيستي دي او تاسو د ځان لپاره د هغوئ شرمګاوي د الله تعالی په حکم سره حلال کړئ او پر ښځو ستاسو حق دادئ چي

أَنْ لَا يُوطِئْنَ فُرُشَكُمْ أَحَدًا تَكْرَهُونَهُ فَإِنْ فَعَلْنَ ذٰلِكَ فَاضْرِبُوهُنَّ ضَرْبًا غَيْرَ

هغوئ ستاسو په بسترو کي څوک نه پريږدي چي د هغه راتلل تاسو بد ګڼئ بيا که په دې اړه هغوئ ستاسو خبره ونه مني نو تاسو هغه ښځي ووهئ مګر زياتي يې مه وهئ

مُبَرِّحٍ وَلَهُنَّ عَلَيْكُمْ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَقَدْ تَرَكْتُ فِيكُمْ مَا لَنْ

او پر تاسو د ښځو حق دادئ چي هغوئ ته خوراک ورکړئ او د توان سره سم جامې ورکړئ او (اې خلکو!) ما تاسو ته داسي شی پرې ايښی دئ

تَضِلُّوا بَعْدَهُ إِنِ اعْتَصَمْتُمْ بِهِ كِتَابُ اللّٰهِ وَأَنْتُمْ تُسْأَلُونَ عَنِّي فَمَا أَنْتُمْ قَائِلُونَ

که هغه تاسو ټينګ ونيسئ نو زما وروسته به هيڅکله ګمراه نه سئ او هغه د الله ﷻ کتاب دئ، او (اې خلکو!) ستاسو څخه به زما په اړه پوښتنه کيږي (چي ما د دين احکام تاسو ته رسولي دي که يا) نو تاسو به څه جواب ورکوئ؟

قَالُوا نَشْهَدُ أَنَّكَ قَدْ بَلَّغْتَ وَأَدَّيْتَ وَنَصَحْتَ فَقَالَ بِإِصْبَعِهِ السَّبَّابَةِ يَرْفَعُهَا إِلَى

حاضرينو عرض وکړ موږ به د دې امر شاهدي ورکوو چي تاسو موږ ته د دين احکام راورسول او خپل فرض مو ادا کړ او زموږ خير خواهي مو وکړل، د دې وروسته رسول الله ﷺ د شهادت ګوته د آسمان په لور پورته کړل

السَّمَاءِ وَيَنْكُتُهَا إِلَى النَّاسِ اللّٰهُمَّ اشْهَدْ اللّٰهُمَّ اشْهَدْ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ أَذَّنَ بِلَالٌ

او بيا يې خلکو ته راکښته کړل او وه يې فرمايل: اې الله! ته شاهد يې، اې الله ته شاهد يې دا الفاظ رسول الله ﷺ درې واره وفرمايل، د دې وروسته بلال رضي الله عنه آذان وکړ

ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى الظُّهْرَ ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى الْعَصْرَ وَلَمْ يُصَلِّ بَيْنَهُمَا شَيْئًا ثُمَّ رَكِبَ

بيا يې اقامت ووايه، او د ماپښين لمونځ پيل سو بيا دويم اقامت وسو او د مازديګر لمونځ وسو او د دې دواړو لمنځو په منځ کي يې هيڅ لمونځ ونه کړ، بيا رسول الله ﷺ سپور سو

حَتّٰى أَتَى الْمَوْقِفَ فَجَعَلَ بَطْنَ نَاقَتِهِ الْقَصْوَاءِ إِلَى الصَّخَرَاتِ وَجَعَلَ حَبْلَ الْمُشَاةِ

او د عرفات میدان ته داخل سو ، رسول الله ﷺ د خپلې اوښې قصواء نس د ډبرو په لور کړ او حبل مشاة یې مخ ته وساتئ

بَيْنَ يَدَيْهِ وَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ فَلَمْ يَزَلْ وَاقِفًا حَتّٰى غَرَبَتِ الشَّمْسُ وَذَهَبَتْ

او د قبلې لورې ته یې مخ کړ کښېنستئ او همداسې ناست وو ، تر څو چې لمر ډوب سو او په ژړوالی کې څه کمې وسول او ورکې سوې

الصُّفْرَةُ قَلِيلًا حَتّٰى غَابَ الْقُرْصُ وَأَرْدَفَ أُسَامَةَ وَدَفَعَ حَتّٰى أَتَى الْمُزْدَلِفَةَ فَصَلّٰى

د لمر وړانګې ، بیا رسول الله ﷺ اسامه خپل شاته کښېنوئ او په تیزۍ سره روان سو تر څو چې مزدلفې ته داخل سو ، دلته رسول الله ﷺ لمونځ وکړ

بِهَا الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ بِأَذَانٍ وَاحِدٍ وَإِقَامَتَيْنِ وَلَمْ يُسَبِّحْ بَيْنَهُمَا شَيْئًا ثُمَّ

د ماښام او ماخستن په یوه اذان او دوو تکبیرو سره او ددواړو لمنځو په منځ کې یې هیڅ ډول تسبیح ،نفل وغیره ونه کړل، بیا

اضْطَجَعَ حَتّٰى طَلَعَ الْفَجْرُ وَصَلَّى الْفَجْرَ حِينَ تَبَيَّنَ لَهُ الصُّبْحُ بِأَذَانٍ وَإِقَامَةٍ ثُمَّ

رسول الله ﷺ پرېوتئ تر څو چې سهار سو ، رسول الله ﷺ د سهار لمونځ هغه وخت وکړ چې ښه رڼا سول او یو آذان او یو اقامت وسو ، بیا

رَكِبَ الْقَصْوَاءَ حَتّٰى أَتَى الْمَشْعَرَ الْحَرَامَ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ فَدَعَاهُ وَكَبَّرَهُ وَهَلَّلَهُ

رسول الله ﷺ پر اوښه سپور سو او مشعر حرام ته ورسیدئ ، دلته رسول الله ﷺ مخ پر قبله وریدئ دعاء یې وغوښتل الله اکبر یې ووایه او لااله الاالله یې وویل

وَوَحَّدَهُ فَلَمْ يَزَلْ وَاقِفًا حَتّٰى أَسْفَرَ جِدًّا فَدَفَعَ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ وَأَرْدَفَ

او د الله جل جلاله وحدانیت یې بیان کړ ، یعني وحده لاشریک له له الملک وله الحمد یې وویل، تر څو چې د سهار رڼا ښه خپره سول رسول الله ﷺ په همدې شغل کې بوخت وو ، بیا د لمر ختلو څخه وړاندې ددې ځای څخه روان سو

الْفَضْلَ بْنَ عَبَّاسٍ حَتَّى أَتَى بَطْنَ مُحَسِّرٍ فَحَرَّكَ قَلِيلًا ثُمَّ سَلَكَ الطَّرِيقَ الْوُسْطَى

فضل بن عباس رضي الله عنه يې د ځان سره پر سپرلی. سپور کړ او وادي محسر ته داخل سو خپله سپرلی. يې دلته لږ په تيزي سره وچلول او په هغه درمياني لاره کي تم سو

الَّتِي تَخْرُجُ عَلَى الْجَمْرَةِ الْكُبْرَى حَتَّى أَتَى الْجَمْرَةَ الَّتِي عِنْدَ الشَّجَرَةِ فَرَمَاهَا

هغه چي جمره کبری ته ځي ،هغه جمرې ته ورسيدئ چي د هغه سره درخته وه، و يې ويشتل

بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ يُكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ مِنْهَا مِثْلِ حَصَى الْخَذْفِ رَمَى مِنْ بَطْنِ

په اووه ډبرو او د هر ويشتلو سره يې تکبير وو ايه او دا ډبري د کرخو ددانې په اندازه وې او د نشيب څخه ويشتل سوي وو،

الْوَادِي ثُمَّ انْصَرَفَ إِلَى الْمَنْحَرِ فَنَحَرَ ثَلَاثًا وَسِتِّينَ بِيَدِهِ ثُمَّ أَعْطَى عَلِيًّا فَنَحَرَ مَا

بيا د قرباني په لور وړاندي سو او رسول الله صلی الله علیه وسلم درو شپېته حيوانان په خپل مبارک لاس سره حلال کړل بيا يې چاړه يا نيزه حضرت علي رضي الله عنه ته ورکړل او پاته حيوانان

غَبَرَ وَأَشْرَكَهُ فِي هَدْيِهِ ثُمَّ أَمَرَ مِنْ كُلِّ بَدَنَةٍ بِبَضْعَةٍ فَجُعِلَتْ فِي قِدْرٍ فَطُبِخَتْ

چي اووه ديرش وه هغه يې حلال کړل، او رسول الله صلی الله علیه وسلم د خپل قرباني په حيوانانو کي حضرت علي رضي الله عنه هم ګډ کړ ، بيا رسول الله صلی الله علیه وسلم حکم وکړ چي د هر حيوان څخه دي لږ غوښه واخيستل سي نو هغه غوښه راوړل سول او په کټو کي پخه کړل سول،

فَأَكَلَا مِنْ لَحْمِهَا وَشَرِبَا مِنْ مَرَقِهَا ثُمَّ رَكِبَ رَسُولُ اللَّهِ صلی الله علیه وسلم فَأَفَاضَ إِلَى الْبَيْتِ

دواړو (نبي کريم صلی الله علیه وسلم او حضرت علي رضي الله عنه) هغه وخوړل او ښوروا يې وڅښل، ددې وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم سپور سو او د کعبې شريفې په لور روان سو

فَصَلَّى بِمَكَّةَ الظُّهْرَ فَأَتَى بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ يَسْقُونَ عَلَى زَمْزَمَ فَقَالَ انْزِعُوا بَنِي

او په مکه معظمه کي يې د ماپښين لمونځ وکړ بيا يې د عبد المطلب کورنۍ (يعني خپل اکا حضرت عباس او د هغه اولاد) ته تشريف يووړ چي خلکو ته يې د زمزم اوبه ورکولې ، رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوئ ته وفرمايل : اې د عبد المطلب کورنۍ ! اوبه راوکاږئ او په خلکو يې وڅښئ

عَبۡدِ الۡمُطَّلِبِ فَلَوۡلَا أَنۡ يَغۡلِبَكُمُ النَّاسُ عَلَى سِقَايَتِكُمۡ لَنَزَعۡتُ مَعَكُمۡ فَنَاوَلُوهُ دَلۡوًا فَشَرِبَ مِنۡهُ . رواه مسلم

که زما سره دا اندېښنه نه وای چي خلک به پر تاسو رامات سي نو ما به ستاسو سره اوبه راکښلي وای، بيا د عبد المطلب کورنۍ د اوبو يوه سلواغه رسول الله ﷺ ته ورکړل او د هغه څخه رسول الله ﷺ اوبه وڅښلې . مسلم .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ٢\٨٨٦– ٨٩٢، رقم: ١٤٧– ١٢١٨.

**د لغاتو حل**: واستثفري: اى اجعلي ثوبا بين فخذيک وشدي فرجک بمنزلة الثغر للدابة. القصواء: اسم ناقة رسول اللهﷺ. (د رسول اللهﷺ د اوښې نوم). ينكتها : اى يشير بها (اشاره يې په کول). حبل: اى مجتمعم.

**تشريح**: په حجة الوداع کي د رسول الله ﷺ سره څو کسان وه؟ په دې باره کي مختلف قولونه دي، ځيني حضرات وايي چي په دغه حج کي د رسول اللهﷺسره نيوي زره کسان وه ، ځيني حضرات وايي چي يو لک او دېرش زره او ځينو تر دې هم زيات شمېر بيان کړی دی .

بي بي اسماء بنت عميس مخکي د حضرت جعفر ابن ابوطالب په نکاح کي وه د هغه د وفات څخه وروسته د حضرت ابوبکر صديق ﷺ په نکاح کي راغلل د حضرت ابوبکر صديق ﷺ د وفات څخه وروسته حضرت علي ﷺ د هغې سره نکاح وکړه .

کله چي رسول الله ﷺ د حجة الوداع لپاره روان سو نو هغه وخت دا د حضرت ابوبکر صديق ﷺ په نکاح کي وه او ددې څخه محمد بن ابوبکر ﷺ پيدا سو .

د رسول الله ﷺ له خوا بي بي اسماء ته د غسل ورکولو هدايت ددې خبري دليل دی چي نفاس والا ښځي ته د احرام لپاره غسل کول سنت دی او دا غسل د نظافت يعني پاکوالي لپاره وي د طهارت يعني پاکۍ لپاره نه وي ځکه نفاس والا ښځي ته د تيمم کولو حکم نه دی ورکړل سوی او دا حکم د حائضې هم دی او هغې ته د رسول الله ﷺدغه حکم چي بيا احرام وتړي يعني د احرام نيت وکړي او لبيک ووايي ددې څخه دا خبره ثابتيږي چي د نفاس والا ښځي احرام صحيح کيږي پر دغه مسئله باندي د ټولو علماؤ اتفاق دی .

رسول الله ﷺ په ذو الحليفه مسجد کي لمونځ وکړ، ددې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ د سنت احرام دوه رکعته لمونځ وکړ، په دې باره کي مسئله داده که چيري په ميقات کي مسجد

وي نو په هغه دوه رکعته کول زيات غوره دي هو که چيري يو څوک د مسجد څخه پرته په بل
ځای کي لمونځ وکړي نو هيڅ پروا نه سته او په مکروه وختو کي د غه لمونځ کول نه دی پکار.
علماء دا هم وايي چي د تحية المسجد په ډول فرض لمونځ هم د دغه لمانځه قائم مقام کيږي.
لسنا نعرف العمرة (موږ د عمرې څخه خبر نه وو) دا جمله په اصل کي د مخکي جملې د
تاکيد لپاره استعمال سوې ده د دغه جملو وضاحت دادی چي د جاهليت په زمانه کي دا معمول
وو چي خلکو به د حج په مياشتو کي عمره کول لويه گناه گڼل نو دا وخت رسول الله ﷺ د هغه رد
وکړ او د حج په مياشتو کي د عمرې کولو حکم يې وفرمايه د دې تفصيل به مخته راسي.
کله چي موږ د رسول الله ﷺ سره بيت الله شريفي ته ورسيدو يعني مخکي موږ په ذي طوی
کي کښته سو او د شپې مو هلته قيام وکړ او بيا پر څوارلسم د ذي الحجه په غسل کولو سره ثنيه
عليا څخه مکې مکرمې ته داخل سو او بيا د باب السلام څخه مسجد حرام ته راغلو او هلته مو
د تحية المسجد لمونځ ونه کړ ځکه چي د بيت الله شريفي طواف د هغه تحيه ده.
درې واره رمل وکړ او څلور واره په خپل تګ سره طواف وکړ، په دې باره کي په تفصيل سره
پوهېدل پکار دي چي د کعبې شريفې چاپيره اووه چکره کولو ته طواف وايي طواف اووه چکره
وايي او هر چکر د حجر اسود څخه په شروع کېدو سره پر حجر اسود باندي ختميږي هر چکر ته د
شريعت په اصطلاح کي شوط ويل کيږي.
د طواف په اووه چکرو کي په اولو درو چکرو کي رمل کول پکار دی او د پهلوانانو په ډول
په اوږو ښورولو سره سيده سيده او يو څه په تيزه سره قدم اېښودو ته رمل وايي، د طواف په
پاته څلورو چکرو کي کرار کرار يعني د خپل معمولي تګ سره تلل پکار دي، رمل يعني جګ
جګ او په تېز رفتار سره د تلو وجه داده چي کله نبي کريم ﷺ د عمرة القضا لپاره مکې مکرمې
ته تشريف راوړ نو مشرکينو د رسول الله ﷺ په ليدو سره وويل چي د يثرب تبې يعني د مدينې
منورې تبې هغوئ ډير ضعيف او سست کړي دي نو رسول الله ﷺ مسلمانانو ته حکم ورکړ چي
په داسي تلو سره د خپل قوت اظهار وکړئ هغه وخت خو تېر سو مګر د دې علت او وجه ليري
کولو څخه وروسته هم دا حکم پاته سو دا طريقه تر اوسه پوري جاري ده.
په دغه حديث کي د اضطباع ذکر نه دی سوی مګر د طواف په وخت کي اضطباع هم سنت
دي په نورو حديثو کي د دې ذکر موجود دی.
څادر داسي اچول چي د هغه يو سر د راسته اوږې څخه په راکښته کولو سره او د راسته
بغل لاندي څخه په را ايستلو سره پر چپه اوږه باندي واچول سي دې ته اضطباع ويل کيږي، د

ځادر د داسي اچولو حکم هم د قوت د اظهار لپاره ورکړل سوی دی او دا حکم هم تر اوسه پاته سو.
د مقام ابراهیم معنی داده چي د حضرت ابراهیم علیه السلام د درېدو ځای هسي خو دا د یو ډبري نوم دی چي پر هغه باندي په درېدو سره حضرت ابراهیم علیه السلام د کعبې شریفي تعمیر کوی پر دغه ډبري باندي د حضرت ابراهیم علیه السلام د پښو نښي جوړي سوي دي چي تر ننه پوري قائمي دي.
ځیني حضرات دا هم وايي چي مقام ابراهیم یو ډبره ده کله چي حضرت ابراهیم علیه السلام د خپل زوی حضرت اسماعیل علیه السلام د لېدني لپاره راغلی وه نو د اوښ څخه پر دغه ډبره باندي کښته سوی وو او کله چي بېرته تلی نو پر دغه ډبره باندي په درېدو سره سپور سو، پر دغه ډبره باندي د هغه مبارک د دواړو قدمو نښي جوړي سوې دي، په هر حال دغه ډبره اوس د کعبې شریفي مخته په یوې خوني کي پرته ده، رسول الله ﷺ د طواف څخه په فارغه کېدو سره د دغه مقام ابراهیم شاته دوه رکعته لمونځ وکړ دغه دوه رکعته لمونځ که څه هم په هغه ځای کي په درېدو سره کول افضل دي مګر په حرم کي هر ځای کول جائز دي که په مسجد کي وکړل سي او که د مسجد څخه د باندي او د هر طواف وروسته دغه لمونځ کول د امام ابوحنیفة رحمه الله په نزد واجب دی او د امام د امام شافعي رحمه الله په نزد سنت دی.
په دغه دوو رکعتو کي یې قل هو الله احد او قل یا ایها الکافرون وویل، د دغه عبارت څخه دا معلومېږي چي رسول الله ﷺ قل هو الله احد په اول رکعت کي وویل او قل یا ایها الکافرون یې په دوهم رکعت کي وویل حال دا چي په دغه صورت کي پر سورة مقدم باندي د سورة متاخر تقدیم (یعني د وروسته سورت مخکي کول او د مخکي سورت وروسته کول) لازمېږي ځکه نو علماء ددې توجیه دا بیان کړې ده چي په حدیث کي په دې باره کي چي کوم عبارت نقل سوی دی په هغه د واو حرف د جمع د ظاهرولو لپاره دی یعني ددې مقصد یوازي دا ښوودل دي چي رسول الله ﷺ په دغه دواړو رکعتو کي دغه دواړه سورتونه وویل اوس دا چي په دې کي یې کوم یو په اول رکعت کي وواېه او کوم سورت یې په دوهم رکعت کي ددې وضاحت مقصود نه دی او نه دلته د هغه وضاحت موجود دی ددغه توجیه سره دا اشکال نه سي پیدا کېدای، بیا طیبي رحمه الله په دغه عبارت کي ددغه دواړو سورتونو د ذکر سوي ترتیب په باره کي دا نکته هم بیان کړې ده چي قل هو الله احد د الله تعالی د وحدانیت د اثبات او اظهار لپاره دی او قل یا ایها الکافرون د شرک څخه د بیزارۍ لپاره دی ځکه د توحید د عظمت او د هغه تر ټولو زیات فضیلت په وجه یې دغه سورت مخکي ذکر کړ چي د هغه څخه د توحید اثبات کېږي.
ددغه ټولو خبرو څخه پرته په ځینو روایتو کي دغه عبارت داسي نقل سوی دی چي په هغه

كي اول د قل يا ايها الكافرون ذكر دى او بيا د قل هو الله احد، په دغه صورت كي خبره بالكل صفا كيږي.

رسول الله ﷺ د صفا او مروه په مينځ كي سعي اووه واره وكړه په دې توګه چي د صفا څخه تر مروه پوري يو وار، د مروه څخه تر صفا پوري دوه واره همدا رنګه رسول الله ﷺ اووه چكره ولګول. د سعي شروع خو د صفا څخه وسوه او ختم پر مروه باندي وسو لكه څرنګه چي د حديث الفاظ دي چي رسول الله ﷺ پر مروه باندي د سعي اختتام وكړ.

سعي يعني د صفا او مروه په مينځ كي چكر لګول واجب دي ددې اصل دادى چي كله حضرت اسماعيل عليه السلام ماشوم وو نو د هغه مور بي بي هاجرې رضي الله تعالى عنها د اوبو په پلټني پسي ووتل كله چي كښته ورسيدل نو اسماعيل عليه السلام د هغې د نظر څخه پټ سو هغه پر صفا او مروه باندي په ختلو سره د هغه د لېدو لپاره ددغه دواړو غونډيو په مينځ كي چكر وهى دغه سعي د هغې سنت دى كوم چي رسول الله ﷺ پوره كړ، د صفا او مروه په مينځ كي خاوره اچول سوې ده ځكه نو اوس هغه كښته ځاى نه دى پاته سوى البته هغه نښي جوړي سوي دي او د بي بي هاجرې رضي الله عنها د سنت پوره كولو لپاره هلته منډه وهل كيږي.

لو اني استقبلت من امري ... الخ: كه په خپل اړه ما ته د مخكي څخه هغه خبره معلومه واى... په دې اړه كه څه هم ډېر اوږد بحث دى مګر د خلاصې په توګه پوهېدل پكار دي چي كله نبي كريم ﷺ مكې ته ورسيدى او د عمرې څخه فارغ سو نو صحابه كرامو ته يې حكم وكړ چي كوم چا د ځان سره د قرباني حيوان نه وي راوستلى نو هغه دي د عمرې څخه وروسته د احرام څخه ووځي او حج دې په عمرې سره فسخ كړي (يعني د حج احرام دي د عمرې احرام وګرځوي) كله چي د حج ورځي راسي نو بيا دي دوهم وار احرام وتړي او حج دي وكړي او كوم چا چي د ځان سره د قرباني حيوان راوستلى دى نو هغه دي د عمرې څخه وروسته احرام نه خلاصوي بلكه تر حج پوري دي په احرام كي وي او د حج څخه وروسته دي احرام خلاص كړي، رسول الله ﷺ د قرباني حيوان د ځان سره راوستلى وو ځكه نو رسول الله ﷺ احرام خلاص نه كړى او د عمرې څخه وروسته هم د احرام په حالت كي وو دغه حكم صحابه كرامو ته ډېر مشكل سو يو خو دا چي موږ احرام خلاص كړو او رسول الله ﷺ د احرام په حالت كي وي په داسي كولو سره د رسول الله ﷺ پيروي ترک كيږي كوم چي صحابه كرامو ته هيڅكله د منلو وړ نه وو دوهم هغوئ دا فكر وكړ چي اوس په عرفات كي يوازي پنځه ورځي پاته سوي دي ځكه دا خبره مناسب نه معلوميږي چي احرام خلاص كړل سي او بيا په دغه وخت كي خپلو ښځو ته ورځو او كله چي د

عرفات ورځ راسي نو سمدستي د احرام په تړلو سره به عرفات ته روان سو او حج به وکړو د هغوئ خواهش وو چي دغه درمياني پنځه ورځي هم د احرام په حالت کي تيري سي په داسي کولو سره به د رسول الله ﷺ پيروي هم وسي او په دغه ورځو کي به د خواهشاتو او دنيوي کارو کي د بوختيا څخه هم پرهيز وسي ، بيا دا چي د جاهليت په ورځو کي د حج په مياشتو کي عمره کول بد ګڼل کېدل او د هغوئ په ذهن کي تر اوسه دا خبره وه ځکه نو هغوئ نه غوښتل چي دا وخت په ځانګړې توګه د عمرې صورت پيدا سي ددغه ټولو وجوهاتو په وجه هغوئ غوښتل چي رسول الله ﷺ موږ ته د احرام خلاصولو حکم نه راکړي ځکه نو رسول الله ﷺ د غصې اظهار وکړ او وه يې فرمايل چي دا خو د دين خبره ده زه څه وکړم الله تعالی چي څه حکم کړی دی هم هغسي به کيږي که څه هم پر طبعيت باندي بار وي که ما ته دا معلومه وای چي زما د پيروی د پرېښودو په وجه به تاسو ته احرام خلاصول مشکل وي نو ما به هم د قرباني حيوان نه راوستلای او د احرام په خلاصولو سره به مي د هغه وخت حج په عمرې سره فسخ کړی وای مګر ما ته څه معلومه وه چي د الله تعالی حکم به دا وي .

امام نووي رحمة الله عليه فرمايي چي په عمرې سره ددغه فسخ سوي حج په باره کي د علماء کرامو اختلافي قولونه دي چي ايا دا په هغه کال يوازي د صحابه کرامو لپاره وو او که د همېشه لپاره نورو ته هم داسي جائز دي؟ امام احمد رحمة الله عليه او د اهل ظاهر يو ډلي دا ويلي دي چي دغه فسخ د حج يوازي د صحابه کرامو لپاره نه وه بلکه دغه حکم د همېشه لپاره پاته دی نو د هغه چا لپاره چي د حج احرام وتړي او هدي ورسره نه وي دا جائز دي چي هغه د حج احرام په عمرې سره فسخ کړي او د عمرې د افعالو د ادا کولو څخه وروسته حلال سي يعني احرام خلاص کړي ، د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه ، امام مالک رحمة الله عليه ، امام شافعي رحمة الله عليه او د سلف او خلف د علماؤ وينا داده چي دغه حکم يوازي په هغه کال کي د صحابه کرامو لپاره وو کوم چي د جاهليت په زمانه کي د حج په مياشتو کي عمره کول حرام ګڼل کېدل چي د هغه ترديد وسي .

او ددغه حديث سره سم د امام ابوحنيفة او امام احمد رحمة الله عليهما مذهب دا هم دی چي کوم څوک د عمرې احرام وتړي او هدي د ځان سره نه راولي نو د عمرې د افعالو د ادا کولو وروسته دي د احرام څخه ووځي او که هدي يې د ځان سره راوستلې وي نو د احرام څخه دي نه وځي تر دې چي د قرباني په ورځ د هغه هدي ذبح وسي مګر امام شافعي او امام مالک رحمة الله عليهما وايي چي مجض د عمرې د افعالو د ادا کولو څخه وروسته د احرام څخه وتل جائز دي که هغه د ځان سره هدي راوستلې وي او که يې نه وي راوستلې .

مشعر حرام په مزدلفه کي د يوه غره نوم دی، د جاهليت په زمانه کي د قريشو دا طريقه وه چي هغوئ د حج لپاره د عرفات پر ځای په مزدلفه کي درېدل او دا به يې ويل چي دا موقف حمس يعني د قريشو او حرم د اوسيدونکو د تم کېدو ځای دی د قريشو څخه پرته ټولو عربو به په عرفات کي وقوف کوی رسول الله ﷺ هم د قريشو څخه وو ځکه قريشو دا ګمان وکړ بلکه سيده عرفات ته ورسيدل چي رسول الله ﷺ به هم د عرفات پر ځای په مزدلفه کي وقوف وکړي مګر رسول الله ﷺ هلته وقوف ونه کړ بلکه سيده عرفات ته ورسيدی او د نمرې په شېله کي يې خطبه وفرمايل، رسول الله ﷺ دوې خطبې وويلې په اوله خطبه کي يې د حج احکام بيان کړل او په عرفات کي پر ډېر ذکر او دعاؤ باندي يې ترغيب ورکړ او دوهمه خطبه د اولي خطبې په نسبت کوچنۍ وه چي په هغه کي يوازي دعاء وه.

د ربيعه ابن حارث د زوی قصه داده چي حارث د رسول الله ﷺ اکا او د عبدالمطلب زوی وو او د هغه زوی ربيعه وو، د ربيعه يو تی رودونکی ماشوم وو چي نوم يې اياس وو د عربو د عامې قاعدې سره سم ايا ته د تي ورکولو لپاره د بني سعد قبيلې ته ورکړل سوی وو په کومو ورځو کي چي د سعد او هذيل د قبيلو په مينځ کي معرکه کېدل نو اياس د بني سعد په قبيله کي وو د هغه جګړې په دوران کي د هذي د قبيلې يو سړي اياس په ډبرو وويشتی چي په هغه سره هغه ماشوم مړ سو، اياس د رسول الله ﷺ د اکا لمسی وو ځکه د هغه د قتل د بدلې اخيستلو حق رسول الله ﷺ ته حاصل وو مګر رسول الله ﷺ د هغه قتل معاف کړ.

همدارنګه حضرت عباس رضي الله عنه ابن عبدالمطلب د رسول الله ﷺ محترم اکا وو د سود راکړه ورکړه يې کول هغه وخت دده ډېر زيات سود د خلکو پر ذمه پاته وو هغه هم رسول الله ﷺ معاف کړ.

بيا دوهم وار اقامت وسو او د مازديګر لمونځ وسو يعني د ماپښين په وخت کي خو د ماپښين لمونځ وسو او بيا د مازديګر لمونځ وسو يعني د ماپښين او مازديګر لمونځونه په جمع کولو سره وکړل سول دې ته جمع تقديم وايي په عرفات کي د وقوف لپاره دغه دواړه لمونځونه پر يو ځای د ماپښين په وخت کي کيږي په داسي توګه چي د ماپښين د څلور رکعته فرضو څخه وروسته مؤذن دوهم اقامت وکړي او بيا د مازديګر لمونځ وکړي ددغه دواړو لمونځو په مينځ کي سنت، نفل او نور لمونځونه نه کيږي چي د دواړو لمونځو په مينځ کي د وقفه کېدو په وجه جمع باطله نه سي ځکه چي دغه لمونځونه پرله پسې کول واجب دي.

او په تېز تللو سره مزدلفې ته راغلی، مزدلفه د منی او عرفات په مينځ کي د يو ځای نوم دی، د لسم تاريخ په شپه په مزدلفه کي تم کېدل د حنفيه په نزد سنت دی او د امام شافعي او

امام احمد رحمة الله عليهما په نزد واجب دي .

د حديث څخه دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ مزدلفې ته په رسيدو سره د ماښام او ماخستن لمونځونه په يوه اذان او دوو اقامتو سره وکړل لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ په عرفات کي د ماپښين او مازديګر لمونځونه په يوه اذان او دوو اقامتو سره کړي وي ، د امام شافعي، امام مالک او امام احمد رحمة الله عليهم دا مذهب دی مګر د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه په نزد په مزدلفه کي دغه دواړه لمنځونه په يوه آذان او يوه اقامت سره کيږي چي دلته د ماخستن لمونځ په خپل وخت کي کيږي ځکه نو د خبر ورکولو لپاره د جلا تکبير ضرورت نه سته پر خلاف د عرفات چي هلته د مازيدګر لمونځ په خپل وخت کي نه کيږي بلکه د ماپښين په وخت کي کيږي ځکه نو هلته د خبر ورکولو لپاره جلا تکبير ضروري دی، په صحيح مسلم کي د ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت منقول دی او ترمذي هم ددې تحسين او تصحيح کړې ده .

مشعر حرام: لکه څرنګه چي مخکي ښوول سوي دي چي په عرفات کي د يوه غره نوم دی او پر لسم تاريخ د سهار په وخت کي هلته وقوف د حنفيه په نزد واجب دی او د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد د حج يو رکن دی .

وادي محسر : دا د مزدلفې او منی په مينځ کي يو شيلې نوم دی ، ويل کيږي چي اصحاب فيل دلته د الله تعالی په عذاب کي په اخته کېدو هلاک سوی وه ، رسول الله ﷺ چي د مشعر حرام (مزدلفې) څخه روان سو او دغه شيلې ته ورسيدی نو خپل سپرلی يې تيزه کړه او ددغه شيلې مسافت يې په تيزي سره پوره کړ ځکه چي د رسول الله ﷺ مبارک عادت وو چي پر کوم ځای به پر يو قوم باندي عذاب نازل سوی وو نو رسول الله ﷺ به د عبرت له مخي د هغه ځای څخه په تيزي سره تېريدی ، ځيني حضرات وايي چي د حج په وخت کي به نصاری يا دعربو مشرکينو په وادي محسر کي وقوف کوی ځکه رسول الله ﷺ د هغوئ د مخالفت په وجه په دغه شيله کي خپل سپرلی تېزه کړه چي د هغه ځای څخه ژر تېر سي ، په هر حال د رسول الله ﷺ د پيروی سره سم د هر چا لپاره مستحب دي چي ددغه شيلې سره په تېزي سره تېر سي .

او پر هغه منځنی لار روان سو کوم چي د جمره کبری سربېره تېريږي : ددې مطلب دادی چي پر کومه لار رسول الله ﷺ تشريف وړی وو هغه لار بله وه او دغه لار بله وه چي جمره کبری يعني پر جمره عقبی باندي تيريږي ، اوله لار چي پر هغې باندي رسول الله ﷺ عرفات او مزدلفې ته تشريف وړی وو هغه ته به يې طريق ضب ويل او دغه لار چي پر هغه باندي رسول الله ﷺ د رمي جمار لپاره منی ته بېرته راتلی طريق مازمين وايي، ضب او مازمين د دوو غرو نومان دي .

تر دې چې رسول الله ﷺ هغه جمرې ته ورسيدی کوم چې درختي ته نژدې ده ، دلته د جمره څخه مراد جمره عقبه ده د کوم چې مخکي یادونه وسوه، جمره منار ته وايي په منی کي يو څو داسي مناري دي چې هغه په ډبرو ويشتل کيږي ددې تفصيل به مخته راسي انشاء الله تعالی .

رسول الله ﷺ د خپل قربانۍ په حيوانانو کي حضرت علي ﷺ هم د ځان سره ګډ کړی وو، يعني رسول الله ﷺ حضرت علي ﷺ ته يو څو اوښان ورکړل چې هغه يې د خپل ځان لپاره حلال کړي ، اوس يا خو رسول الله ﷺ هغه ته هغه اوښان د خپل پاته اوښانو څخه ورکړل او يا به يې د نورو اوښانو څخه ورکړي وي .

رسول الله ﷺ او حضرت علي ﷺ د قربانۍ غوښه وخوړل او د هغه ښوروا يې وڅښل، ددې څخه دا خبره معلومه سوه چې د خپلي قربانۍ څخه غوښه خوړل مستحب دي .

او کعبې شريفې ته روان سو او هلته په رسيدو سره يې طواف وکړ، دغه طواف ته طواف افاضه هم وايي او طواف رکن هم، دغه طواف د حج يو رکن دی او په دې سره حج ختميږي، هسي خو دغه طواف د قربانۍ په ورځ کول غوره دی مګر وروسته کول هم جائز دي .

او په مکه کي يې د ماپښين لمونځ وکړ : دا خبره د ابن عمر ﷺ د هغه روايت خلاف ده چې د هغه څخه ثابتيږي چې رسول الله ﷺ د ماپښين لمونځ په منی کي وکړ ، په دغه دواړو روايتو کي مطابقت داسي پيدا کيږي چې رسول الله ﷺ د ماپښين لمونځ په مکه کي وکړ البته په منی کي يې نفل لمونځ کړی دی چې ابن عمر ﷺ د ماپښين د لمانځه ګمان وکړ ، يا به داسي وويل سي چې کله دواړه روايتونه متعارض سي نو دواړه ساقط سي اوس به ترجيح هغه خبري ته ورکول کيږي چې رسول الله ﷺ د ماپښين لمونځ په مکه کي وکړ ځکه چې په مکه کي لمونځ کول غوره دي. والله اعلم .

## د احرام طريقې او د حج قسمونه

﴿۲۴۴۱﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ

د حضرت عائشي ﷺ څخه روايت دئ چې موږ په حجة الوداع کي د رسول الله ﷺ سره ولاړو ،

الْوَدَاعِ فَمِنَّا مَنْ اَهَلَّ بِعُمْرَةٍ وَمِنَّا مَنْ اَهَلَّ بِحَجٍّ فَلَمَّا قَدِمْنَا مَكَّةَ قَالَ النَّبِيُّ

په موږ کي ځينو د عمرې او ځينو د حج احرام وتړئ ، کله چې موږ مکې ته ورسيدو نو رسول الله ﷺ وفرمايل :

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ وَلَمْ يُهْدِ فَلْيَحْلِلْ وَمَنْ أَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ

چا چي د عمرې احرام تړلی دئ او د قرباني حيوان يې نه دي راوستلی نو هغه ته پکار ده چي ځان حلال کړي او چا چي د عمرې احرام تړلی دئ

وَأَهْدٰى فَلْيُهِلَّ بِالْحَجِّ مَعَ الْعُمْرَةِ ثُمَّ لَا يَحِلُّ حتى يحل مِنْهُمَا. وَفِيْ رِوَايَةٍ

او د قرباني حيوان يې راوستلی دئ نو هغه دي د حج او عمرې دواړو احرام وتړي او تر هغه وخته پوري چي د عمرې او حج دواړو څخه فارغ نه سي حلال دي نه سي، او په يوه روايت کي دي

فَلَا يَحِلُّ حَتّٰى يَحِلَّ بِنَحْرِ هَدْيِهِ وَمَنْ أَهَلَّ بِحَجٍّ فَلْيُتِمَّ حَجَّهُ قَالَتْ فَحِضْتُ

تر څو پوري چي هغه خپل قرباني حلاله نه کړي نه دي حلالېږي او چا چي يوازي د حج احرام تړلی وي هغه دي خپل حج پوره کړي، بي بي عائشة (رض) وايي پر ما حيض راغلئ

وَلَمْ أَطُفْ بِالْبَيْتِ وَلَا بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ فَلَمْ أَزَلْ حَائِضًا حَتّٰى كَانَ يَوْمَ

او تر اوسه مي نه د بيت الله طواف کړی وو او نه مي د صفا او مروه په منځ کي سعي کړې وه، تر عرفات پوري زما وينه راتلل

عَرَفَةَ وَلَمْ أُهْلِلْ إِلَّا بِعُمْرَةٍ فَأَمَرَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَنْقُضَ

او ما يوازي د عمرې احرام تړلی وو، نبي کريم ﷺ ما ته حکم راکړ چي زه خپل سر پريولم

رَأْسِيْ وَأَمْتَشِطَ وَأُهِلَّ بِالْحَجِّ وَأَتْرُكَ الْعُمْرَةَ فَفَعَلْتُ حَتّٰى قَضَيْتُ حَجِّيْ بَعَثَ

او بومنځ يې کړم او عمره پرېږدم يوازي د حج احرام وتړم، نو ما همداسي وکړل او خپل حج مي پوره کړ، بيا رسول الله ﷺ وليږئ

مَعِيَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِيْ بَكْرٍ وَأَمَرَنِيْ أَنْ أَعْتَمِرَ مَكَانَ عُمْرَتِيْ مِنَ التَّنْعِيْمِ

زما سره (زما ورور) عبدالرحمن بن ابوبكر رضي الله عنه او ما ته يې حکم راکړ چي زه د خپلي عمرې پر ځای د مقام تنعيم څخه عمره وکړم،

قَالَتْ فَطَافَ الَّذِيْنَ كَانُوْا أَهَلُّوْا بِالْعُمْرَةِ بِالْبَيْتِ وَبَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ ثُمَّ حَلُّوْا

د بي بي عائشې بيان دئ چي کومو خلکو د عمرې احرام وتړئ هغوئ د بيت الله طواف وکړ او د صفا او مروة په منځ کي يې سعي وکړه او بيا حلال سول ،

ثُمَّ طَافُوا طَوَافًا بَعْدَ أَنْ رَجَعُوا مِنْ مِنًى وَأَمَّا الَّذِينَ جَمَعُوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَإِنَّمَا طَافُوا طَوَافًا وَاحِدًا . متفق عليه

بيا چي هغوئ د منی څخه راستانه سول هغوئ يو طواف بل وکړ او کومو خلکو چي د حج او عمرې دواړو احرام تړلی وو هغوئ يوازي يو طواف وکړ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح ۳\ ۴۱۵، رقم: ۱۵۵۶، ومسلم۲\ ۷۸۰، رقم: ۱۱۲- ۱۲۱۱.

**تشريح**: تنعيم د يو ځای نوم دی چي د مکې څخه پر دوه نيم يا درې ميله فاصله باندي شمال مغرب ته واقع دی ، دغه ځای د حرم د حدود څخه وتلی دی ، حاجيان صاحبان د عمرې د احرام تړلو لپاره دلته راځي .

د عمرې د احرام لپاره ضروري او شرط دی چي د حرم د حدودو څخه دباندي وتړل سي که عمره کونکی مکي وي او که غير مکي وي. او د حج احرام غير مکي خو د حل څخه تړي او مکي د حرم په حدودو کي هر ځای چي وي وه يې تړي .

د دې څخه که څه هم دا خبره مفهوم کيږي چي قارن ته يو طواف د حج او عمرې دواړو لپاره کافي دی لکه څرنګه چي د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دی مګر د حنفيه په نزد قارن ته دوه طوافه کول ضروري دي يو طواف خو د عمرې لپاره چي په مکه کي د داخلېدو وروسته وکړل سي او دوهم طواف د حج لپاره چي د وقوف عرفات څخه وروسته وکړل سي ځکه چي د حديث څخه دا خبره ثابته سوې ده چي د حجة الوداع پر موقع نبي کريم ﷺ قارن وو کله چي رسول الله ﷺ مکې ته داخل سو نو يو طواف يې هغه وخت وکړ او دوهم وار طواف الزيارة يې د عرفات د وقوف څخه وروسته وکړ ، دار قطني يو روايت نقل کړی دی چي د هغه خلاصه دا ده چي قارن دوه طوافه وکړي او د صفا او مروه په مينځ کي دوه واره سعي وکړي ، د حضرت علي او عبد الله ابن مسعود رضي الله عنهما څخه هم دا خبره منقول ده چي قارن دي دوه طوافه او دوه واره سعي کوي .

﴿۲۴۴۲﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ تَمَتَّعَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبد الله بن عمر ﷠ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ په حجة الوداع کي د عمرې څخه د حج په لور ګټه پورته کړل ،

فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ فَسَاقَ مَعَهُ الْهَدْيَ مِنْ ذِي الْحُلَيْفَةِ وَبَدَأَ

يعني لومړی يې د عمرې احرام وتړئ او بيا يې د حج ، نو رسول الله ﷺ د ذوالحليفة څخه د ځان سره د قرباني حيوانان بوتلل او پيل يې داسي وکړ چي

فَأَهَلَّ بِالْعُمْرَةِ ثُمَّ أَهَلَّ بِالْحَجِّ فَتَمَتَّعَ النَّاسُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

لومړی يې د عمرې او بيا يې د حج احرام وتړئ نو خلکو د نبي کريم ﷺ سره د حج او عمرې يوځای کولو ګټه پورته کړل ،

بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ فَكَانَ مِنَ النَّاسِ مَنْ أَهْدَى وَمِنْهُمْ مَنْ لَمْ يُهْدِ فَلَمَّا

په خلکو کي داسي هم وه چي د قرباني حيوانان يې د ځان سره راوستلي وه او ځيني داسي هم وه چي حيوانان يې د ځان سره نه وه راوستلي،

قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ قَالَ لِلنَّاسِ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ أَهْدَى

کله چي رسول الله ﷺ مکې معظمي ته ورسيدئ نو خلکو ته يې وفرمايل : په تاسو کي چي چا د قرباني حيوان راوستلی وي

فَإِنَّهُ لَا يَحِلُّ من شَيْءٍ حَرُمَ مِنْهُ حَتَّى يَقْضِيَ حَجَّهُ وَمَنْ لَمْ يَكُنْ مِنْكُمْ

نو هغه دي ځان نه حلالوي هغه شی چي پر حرام دی پر ده تر څو پوري چي هغه خپل حج پوره نه کړي او چا چي د قرباني حيوان نه وي راوستلی

أَهْدَى فَلْيَطُفْ بِالْبَيْتِ وَبِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَلْيُقَصِّرْ وَلْيَحْلِلْ ثُمَّ لِيُهِلَّ بِالْحَجِّ

هغه دي د بيت الله طواف وکړي ، د صفا او مروة په منځ کي دي سعي وکړي د سر وربښتان دي وخريي او ځان دي حلال کړي ، بيا دويم وار دي د حج احرام وتړي او د قرباني حيوان دي حلال کړي

فَمَنْ لَمْ يَجِدْ هَدْيًا فَلْيَصُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَسَبْعَةً إِذَا رَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ

او چا ته چي د قرباني حيوان نه وي تر لاسه هغه دي درې ورځي د حج په ورځو کي او اووه ورځي په کور کي روژې ونيسي،

فَطَافَ حِينَ قَدِمَ مَكَّةَ وَاسْتَلَمَ الرُّكْنَ أَوَّلَ شَيْءٍ ثُمَّ خَبَّ ثَلَاثَةَ أَطْوَافٍ

مکې ته په ننوتلو سره نبي کريم ﷺ طواف وکړ او تر ټولو وړاندي يې حجر اسود مچ کړ، او د طواف درې واره ګرځېدل يې په منډه وکړل،

وَمَشَى أَرْبَعًا فَرَكَعَ حِينَ قَضَى طَوَافَهُ بِالْبَيْتِ عِنْدَ الْمَقَامِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ

او څلور واره يې په معمولي تګ سره وکړل، بيا يې د مقام ابراهيم سره دوه رکعته لمونځ وکړ او سلام يې وګرځوئ،

فَانْصَرَفَ فَأَتَى الصَّفَا فَطَافَ بِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ سَبْعَةَ أَطْوَافٍ ثُمَّ لَمْ يَحْلِلْ مِنْ

د صفا په لور ولاړئ او د صفا او مروه په منځ کي يې اووه واره سعي وکړه، بيا په هيڅ شي سره حلال نه سو

شَيْءٍ حَرُمَ مِنْهُ حَتَّى قَضَى حَجَّهُ وَنَحَرَ هَدْيَهُ يَوْمَ النَّحْرِ وَأَفَاضَ فَطَافَ

چي احرام پر حرام کړي وو، تر دې چي حج يې پوره کړ او د قرباني په ورځ يې خپل حيوان حلال کړ، بيا يې د بيت الله طواف وکړ

بِالْبَيْتِ ثُمَّ حَلَّ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ حَرُمَ مِنْهُ وَفَعَلَ مِثْلَ مَا فَعَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَاقَ الْهَدْيَ مِنَ النَّاسِ. متفق عليه

او ددې وروسته د هر هغه شي څخه حلال سو چي پر رسول الله ﷺ باندي حرام وو او کومو خلکو چي د ځان سره د قرباني حيوان راوستلی وو هغوئ هغه وکړل کوم چي رسول الله ﷺ کړي وو. بخاري او مسلم.

**تخريج:** البخاري في الصحيح ۳\۵۳۹، رقم: ۱۶۹۱، ومسلم ۲\۹۰۱. رقم: ۱۷۴- ۱۲۲۷.

**دلغاتو حل:** خب: اى رمل. (و يې ويشتل).

**تشريح**: د دغه حديث څخه معلوميږي چي رسول الله ﷺ د تمتع حج کړی وو مګر زياته صحيح خبره داده چي رسول الله ﷺ قارِن وو، اوس په د دغه حديث په اړه دا وويل سي چي دلته د تمتع څخه مراد د هغه لغوي معنی ده يعني ګټه پورته کول او دا مفهوم په قران کي هم موجود دی په دې توګه چي قارن د حج او عمرې په يو ځای کولو سره منتفع کيږي.

## د حج په مياشتو کي عمره کول جائز ده

﴿۲۴۴۳﴾: وَعَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذِهِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: (په حجة الوداع کي) دا

عُمْرَةٌ اسْتَمْتَعْنَا بِهَا فَمَنْ لَمْ يَكُنْ عِنْدَهُ الْهَدْيُ فَلْيَحِلَّ الْحِلَّ كُلَّهُ فَإِنَّ

عمره ده موږ ددې څخه ګټه تر لاسه کړل ځکه چي د چا سره د قرباني حيوان نه وي هغه دې د هر شي څخه حلال سي ځکه چي اوس

الْعُمْرَةَ قَدْ دَخَلَتْ فِي الْحَجِّ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ. رواه مسلم و هذا الباب خال عن الفصل الثاني.

عمره کول تر قيامته پوري د حج په ورځو کي داخل سول. مسلم. دا باب د دويم فصل څخه خالي دئ.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۹۱۱، رقم: ۲۰۳- ۱۲۴۱.

**تشريح**: په دغه حديث کي هم د تمتع څخه د هغه لغوي معنی مراد ده يعني ګټه تر لاسه کول، ددې پاته وضاحت مخکي تېر سوی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

## د احرام د تبديلۍ پر حکم د صحابه کرامو تردد

﴿۲۴۴۴﴾: وَعَنْ عَطَاءٍ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ رضي الله عنه فِي نَاسٍ مَعِي قَالَ

د حضرت عطاء رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د خلکو په يوه ډله کي چي زما سره وه

أَهْلَلْنَا أَصْحَابَ مُحَمَّدٍ ﷺ بِالْحَجِّ خَالِصًا وَحْدَهُ قَالَ عَطَاءٌ قَالَ جَابِرٌ فَقَدِمَ

د جابر بن عبد الله رضي الله عنه څخه واوريدل چي موږ يعني صحابه کرامو يوازي د حج احرام وتړئ، د عطاء بيان دئ چي جابر رضي الله عنه موږ ته وويل:

النَّبِيُّ ﷺ صُبْحَ رَابِعَةٍ مَضَتْ مِنْ ذِي الْحِجَّةِ فَأَمَرَنَا أَنْ نَحِلَّ قَالَ عَطَاءٌ

د ذي الحجة په څلورمه نېټه د سهار رسول الله ﷺ تشريف راوړ او موږ ته يې حکم راکړ چي موږ حلال سو، عطاء وايي

قَالَ حِلُّوا وَأَصِيبُوا النِّسَاءَ قَالَ عَطَاءٌ وَلَمْ يَعْزِمْ عَلَيْهِمْ وَلَكِنْ أَحَلَّهُنَّ لَهُمْ

رسول الله ﷺ وفرمايل: حلال سئ او ښځو ته ورسئ د عطاء خيال دئ چي رسول الله ﷺ ښځو ته د ورتلو حکم د وجوب په طور نه وو ورکړئ يعني ښځو ته ورتلل يې واجب کړي نه وو بلکه د روا کېدو اجازه وو،

فَقُلْنَا لَمَّا لَمْ يَكُنْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ عَرَفَةَ إِلَّا خَمْسٌ أَمَرَنَا أَنْ نُفْضِيَ إِلَى نِسَائِنَا

د دې حکم په اورېدو سره موږ په تعجب يو بل ته وويل: هر کله چي زموږ او عرفات د ورځي په منځ کي يوازي پنځه ورځي پاته دي رسول الله ﷺ موږ ته دا حکم راکړی دئ چي موږ د خپلو ښځو سره کوروالي وکړو،

فَنَأْتِي عَرَفَةَ تَقْطُرُ مَذَاكِيرُنَا الْمَنِيَّ قَالَ يَقُولُ جَابِرٌ بِيَدِهِ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى قَوْلِهِ

او بيا په داسي حال کي موږ عرفات ته ننوتلو چي زموږ د خاص اندام څخه د منې څاڅکي بهېدل، عطاء وايي چي جابر رضي الله عنه خپل لاس ته په حرکت ورکولو سره د خاص اندام څخه د څاڅکو بهېدلو په لور اشاره وکړه او دا ننداره تر اوسه پوري د سترګو په وړاندي ده،

بِيَدِهِ يُحَرِّكُهَا قَالَ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِينَا فَقَالَ قَدْ عَلِمْتُمْ

جابر رضي الله عنه وويل: کله چي زموږ د تعجب خبر رسول الله ﷺ ته ورسيدئ نو رسول الله ﷺ موږ ته د خطبې ويلو لپاره ولاړ سو او وه يې فرمايل: تاسو ته څرګند ده چي

أَنِّي أَتْقَاكُمْ لِلَّهِ وَأَصْدَقُكُمْ وَأَبَرُّكُمْ وَلَوْلَا هَدْيِي لَحَلَلْتُ كَمَا تَحِلُّونَ وَلَو

زه په تاسو خلکو کي د الله جل جلاله څخه زيات ويرېږم په تاسو کي تر ټولو زيات رېښتونی يم او زه

ډير نيک يم ، که زما سره د قرباني حيوان نه وي نو تاسو څنګه حلال سوي ياست همداسي به زه هم حلال سوی وم، او که

اسْتَقْبَلْتُ مِنْ أَمْرِي مَا اسْتَدْبَرْتُ لَمْ أَسُقِ الْهَدْيَ فَحِلُّوا فَحَلَلْنَا وَسَمِعْنَا

ما ته دا دې خبري علم وای کوم چي ما ته وروسته څرګند سوه نو ما به د ځان سره د قرباني حيوان نه را وستلای له دې کبله تاسو حلال سئ نو موږ احرام خلاص کړ او حلال سوو او موږ د رسول الله ﷺ حکم واوريدئ

وَأَطَعْنَا قَالَ عَطَاءٌ قَالَ جَابِرٌ فَقَدِمَ عَلِيٌّ مِنْ سِعَايَتِهِ فَقَالَ بِمَ أَهْلَلْتَ قَالَ

او فرمانبرداري مو وکړل، عطاء وايي جابر بيان وکړ چي حضرت علي رضي الله عنه د خپل سپارل سوي کار څخه راغلئ نو نبي کريم ﷺ پوښتنه وکړه تا د څه شي احرام تړلی دئ هغه عرض وکړ :

بِمَا أَهَلَّ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د کوم شی احرام چي نبي ﷺ تړلی دئ ، نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل :

وَسَلَّمَ فَأَهْدِ وَامْكُثْ حَرَامًا قَالَ وَأَهْدَى لَهُ عَلِيٌّ هَدْيًا فَقَالَ سُرَاقَةُ بْنُ

نو ته (د قرباني په ورځ) حيوان حلال کړه او تر هغه وخته پوري په احرام کي اوسه ، جابر رضي الله عنه وويل : حضرت علي رضي الله عنه د ځان لپاره يا د نبي کريم ﷺ لپاره د ځان سره د قرباني حيوانان را وستلي وه ، سراقة بن مالک بن جعشم (د احرام څخه

مَالِكِ بْنِ جُعْشُمٍ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَلِعَامِنَا هَذَا أَمْ لِأَبَدٍ قَالَ لِأَبَدٍ . رواه مسلم

د حلال کېدو په اوږېدو سره پوښتنه وکړل اې د الله رسوله ! دا حکم د سږ کال لپاره دئ او که د هميشه لپاره؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : د هميشه لپاره . مسلم .

**تخريج** : صحيح مسلم ۲\ ۸۸۳، رقم: ۱۴۱- ۱۲۱۶.

**تشريح** : موږ يوازي د حج احرام وتړی، جابر رضي الله عنه دا خبره د خپل ګمان مطابق وکړه کنه نو کوم چي د واقعې تعلق دی نو د بي بي عائشې رضي الله عنها د روايت څخه دا معلومه سوې ده چي ځيني صحابه کرامو يوازي د عمرې احرام تړلی وو او ځينو يوازي د حج او ځينو د عمرې او حج دواړو احرام تړلی وو .

حضرت جابر ﷛ په خپل لاس سره اشاره وکړه: ددې مطلب دادی چي حضرت جابر ﷛ خپل لاس ته په حرکت ورکولو سره د خاص اندام (ذکر) څخه د مني د څاڅکو څڅېدو ته اشاره وکړه، یا دا چي هغه د خاص اندام حرکت ته د لاس په حرکت سره تشبیه ورکړه، په هر حال دا د اهل عرب عادت وو چي هغوئ به په خبره کولو سره د اندامو په اشاره سره وضاحت کوی چي مفهوم په ښه ډول واضح او په ذهن کي راسي.

## د صحابه کرامو تردد

﴿۲۴۴۵﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ قَدِمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَرْبَعٍ

د حضرت عائشي ﷞ څخه روایت دئ چي رسول اللهﷺ ما ته راغلی د ذي الحجې په څلورمه

مَضَيْنَ مِنْ ذِي الْحِجَّةِ أَوْ خَمْسٍ فَدَخَلَ عَلَيَّ وَهُوَ غَضْبَانُ فَقُلْتُ مَنْ

یا پنځمه نېټه ، هغه وخت رسول الله ﷺ د سختي غصې په حالت کي وو ، ما چي رسول الله ﷺ په غضب کي ولیدئ نو عرض مي وکړ:

أَغْضَبَكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَدْخَلَهُ اللّٰهُ النَّارَ قَالَ أَوَمَا شَعَرْتِ أَنِّي أَمَرْتُ النَّاسَ

ای د الله رسوله! تاسو چا په غصه کي کړي یاست الله ﷻ دي هغه په دوږخ کي واچوي ، رسول الله ﷺ وفرمایل: ایا تا ته څرګنده نه ده چي ما خلکو ته یو حکم ورکړ (یعني د احرام څخه د

بِأَمْرٍ فَإِذَا هُمْ يَتَرَدَّدُونَ وَلَوْ أَنِّي اسْتَقْبَلْتُ مِنْ أَمْرِي مَا اسْتَدْبَرْتُ مَا سُقْتُ

الْهَدْيَ مَعِي حَتَّى أَشْتَرِيَهُ ثُمَّ أَحِلُّ كَمَا حَلُّوا. رواه مسلم.

حلال کېدو) نو هغوئ په شک کي دي که ما ته وړاندي ددې امر حال څرګند وای نو د ځان سره به مي د قرباني حیوان نه راویستلای او نه به مي هغه رانیولای، او بیا چي څرنګه نور خلک حلال سول همدا سي به زه هم حلال سوی وای. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۲\۸۷۹، رقم: ۱۳۰-۱۲۱۱.

# بَابُ دُخُوْلِ مَكَّةَ وَالطَّوَافِ

## مکې ته د ننوتلو او طواف بیان

د (مَکَ) لغوي معنی ده هلاکول، بربادول، دغه مقدس ښار ته مکه ځکه ویل کیږي چي هغه ګناهونه تباه کوي او هغه څوک په اخرت او دنیا کي هلاکوي کوم چي په دغه ښار کي ظلم او بې لاري اختیاروي.

په دغه باب کي هغه خبري ذکر کیږي چي د کلي څخه راتلونکي کسان دغه مقدس ښار ته د کومي خوا څخه داخل سي او د کومي خوا څخه ووځي، څه وخت راسي او دا چي د داخلېدو پر وخت د کومو ادبونو او قواعدو خیال ساتل پکار دي او طواف او د هغه د متعلقاتو مثلاً د حجر اسود وغیره د مچولو کیفیت او د هغه د مسائلو بیان دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د مکې مدخل او مخرج

﴿۲۴۴۶﴾: وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ اِنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ لَا يَقْدَمُ مَكَّةَ إِلَّا بَاتَ بِذِي طَوًى

د حضرت نافع رضي الله عنه څخه روایت دئ چي کله به ابن عمر رضي الله عنه مکې ته تلئ نو د شپې به په طوی نامي ځای کي تم سو

حَتّٰى يُصْبِحَ وَيَغْتَسِلَ ويصلي فَيَدْخُلُ مَكَّةَ نَهَارًا وَإِذَا نَفَرَ مِنْهَا مَرَّ بِذِیْ

او کله چي به سهار سو نو غسل به یې وکړ او لمونځ به یې ادا کړ او د ورځي به مکې ته داخلیدئ او د مکې څخه چي به راستنېدئ نو بیا به یې هم شپه په ذي

طُوًى وَّبَاتَ بِهَا حَتّٰى يُصْبِحَ وَيَذْكُرُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَفْعَلُ ذَالِكَ. متفق عليه

طوی کي تیروله او تر سهاره پوري به هلته وو او یادونه به یې کول چي نبي کریم ﷺ به داسي کول. بخاري او مسلم.

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري) ۳\۴۳۵، رقم: ۱۵۷۳، ومسلم ۲\۹۱۹، رقم: ۲۲۷-۱۳۵۹.

**تشریح:** ذی طوی د یو ځای نوم دی چې د حرم په حدود کې د مقام تنعیم په خوا کې واقع دی،
نبي کریم ﷺ چې به مکې مکرمې ته تشریف راوړ نو د استراحت لپاره به یې په ذي طوی کي
شپه تېروله بیا به سهار به یې غسل کوی او د لمانځه کولو سره به په دغه ښار کي داخل سو ، د
لمانځه څخه په ضهره نفل لمونځ مراد دی چې هلته د تللو لپاره به یې کوی، بیا چې به کله رسول
الله ﷺ د مکې مکرمې څخه ستنیدی نو هغه وخت به یې هم په ذي طوی کي قیام کوی چې
ملګري هسته جمع سي او د ټولو خلکو سامان وغیره جمع سي.
امام مالک رحمه الله فرمايي چې د دغه حديث څخه دا خبره معلومه سوه چې په مکه کي د ورځي
د خیمې مستحب دي چې په ښار کي په داخلېدو سره بیت الله شریف ووینې او دعاء وکړل سي.

(۲۰۰) وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا جَاءَ إِلَى مَكَّةَ
دَخَلَ مِنْ أَعْلَاهَا وَخَرَجَ مِنْ أَسْفَلِهَا . متفق علیه .

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چې کله رسول الله ﷺ مکې ته تشریف راوړ (په حجة
الوداع کي) نو مکې ته د لوړي لوري څخه (یعنید ذي طوی څخه) داخل سو او کله چې ستون
سو نو د مکې د کښته لوري څخه ووتئ . بخاري او مسلم.

**تخریج:** البخاري في الصحيح (فتح الباري) ۳\۴۳۷، رقم: ۱۵۷۷، ومسلم۲\۹۱۸، رقم: ۲۲۴\۱۲۵۸.

**تشریح:** د مکې مکرمې کومي خوا ته چې ذي طوی ده هغه د ښار لوړه برخه ده ، جنت المعلی
یعني د مکې مکرمې مشهوره هدیره هم دغه خوا ته ده ، په اول حدیث او دغه حدیث کي څه
تضاد نه سته ځکه د مکې د کښته برخي څخه په وتل سره چې د مدینې لار به یې اختیار کړه نو
ذي طوی ته به رسیدی او هلته د شپې په تېرولو سره په سهار کي به د مدینې منورې لپاره روانیدی.

## د طواف لپاره پاکي واجب ده

﴿۲۴۴۸﴾: وَعَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ قَدْ حَجَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَتْنِي عَائِشَةُ أَنَّ أَوَّلُ شَيْءٍ بَدَأَ بِهِ حِينَ قَدِمَ مكة أَنَّهُ تَوَضَّأَ ثُمَّ طَافَ بِالْبَيْتِ ثُمَّ لَمْ تَكُنْ عُمْرَةً ثُمَّ حَجَّ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَكَانَ أَوَّلَ شَيْءٍ بَدَأَ بِهِ الطَّوَافُ بِالْبَيْتِ ثُمَّ لَمْ تَكُنْ عُمْرَةً ثُمَّ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مِثْلُ ذٰلِكَ ثُمَّ عُثْمَانُ مِثْلَ ذَالِكَ. متفق عليه

د حضرت عروة بن الزبير ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ حج وکړ او ما ته بي بي عائشې ﷞ بیان وکړ چي مکې ته په د اخلېدو سره نبي کریم ﷺ تر ټولو وړاندي اودس وکړ بیا یې د بیت الله شریفي طواف وکړ بیا یې عمره ونه کړل یعني رسول الله ﷺ په حج موقوف کولو سره عمره ونه کړل دواړه یې یو ځای وساتل، (د رسول الله ﷺ وروسته) ابوبکر صدیق ﷛ حج وکړ او کله چي مکې ته داخل سو نو تر ټولو وړاندي یې طواف وکړ بیا عمره نه وسول، د حضرت ابوبکر ﷛ وروسته حضرت عمر ﷛ همداسي وکړل بیا حضرت عثمان ﷛ همداسي وکړل. بخاري او مسلم.

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري) ۳\۴۹۶، رقم: ۱۶۴۱، ومسلم ۲\۹۰۶، رقم: ۱۹۰– ۱۲۳۵.

**تشریح**: رسول الله ﷺ اودس وکړ: ددې مطلب دادی چي مکې ته په رسیدو سره د بیت الله شریفي د طواف څخه مخکي رسول الله ﷺ دوهم وار اودس وکړ ځکه دا خبره مخکي معلومه سوې ده چي رسول الله ﷺ په مکه کي د داخلېدو څخه مخکي په ذي طوی کي غسل کوی او ظاهره ده چي په غسل کي به اودس هم شامل وو، د طواف صحیح کېدو لپاره طهارت یعني پاکي د جمهور علماؤ په نزد شرط ده مګر د حنفیفه په نزد شرط نه ده البته واجب ده.

په تېرو حدیثو کي دا خبره تېره سوې ده چي رسول الله ﷺ او صحابه کرام مکې ته په رسیدو سره عمره وکړه ددې څخه وروسته چي کومو خلکو د قرباني حیوان د ځان سره راوستلی وو هغوئ خو احرام ترلي پاته سول او کومو خلکو چي د قرباني حیوان د ځان سره نه وو

راوستلی نو هغوئ احرام خلاص کړی.
او عمره ونه سوه: مطلب دادی چي رسول الله ﷺ حج فسخ يعني موقوف کولو سره عمره ونه کړل او احرام يې خلاص کړی بلکه رسول الله ﷺ د عمرې څخه وروسته د احرام په حالت کي پاته سو ځکه چي قارن وو او بيا په آخر کي د قربانی په ورځ رسول الله ﷺ احرام خلاص کړ، راوي دا خبره ځکه وکړه چي د خلکو ترديد وسي کومو چي دا گمان کوی چي رسول الله ﷺ د حج په فسخ کولو سره عمره وکړه يا ددې جملې مراد دادی چي هغوئ ټولو د حج څخه وروسته بله جلا عمره ونه کړه بلکه پر هغه عمرې يې اکتفاء وکړه کومه چي د حج سره شامله وه.

## په طواف کي د رمل ذکر

﴿۲۴۴۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا طَافَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي کله به رسول الله ﷺ طواف کوئ

فِي الْحَجِّ أَوِ الْعُمْرَةِ أَوَّلَ مَا يَقْدَمُ سَعَى ثَلَاثَةَ أَطْوَافٍ وَمَشَى أَرْبَعَةً ثُمَّ سَجَدَ

د حج يا عمرې نو لومړی درې واره به يې په تيز قدم اخيستلو سره کول او څلور به يې په معمولي تګ سره کوئ، بيا په مقام ابراهيم کي به يې

سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ يَطُوفُ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ. متفق عليه

دوه رکعته لمونځ وکړ او په صفا او مروة کي به يې سعي وکړل. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري) ۳\۴۷۷، رقم: ۱۶۱۶، ومسلم ۲\۹۲۰، رقم: ۲۳۱ - ۱۲۶۱.

**تشريح**: د کعبې شريفي شاوخوا يو چکر لګولو ته شوط وايي او اووه اشواط يو طواف دی، نبي کريم ﷺ به د طواف پر وخت په درو شوطو کي داسي تېز تيز تلی چي قدم به يې ژر ژر پورته کوی او ځغاستی به مګر ټوپونه به يې نه وهل او په پاته څلورو اشواطو کي به په خپل معمولي تګ سره تلی.

## د صفا او مروه په مينځ کي سعي واجب ده

﴿۲۴۵۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ رَمَلَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مِنَ الْحَجَرِ إِلَى الْحَجَرِ ثَلَاثًا وَمَشَى

أَرْبَعًا كَانَ يَسْعَى بِبَطْنِ الْمَسِيلِ إِذَا طَافَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ. رواه مسلم

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي د حجر اسود څخه تر حجر اسود پوري (طواف) دري واره په تلوار وکړ او څلورم واريې په معمولي تګ سره وکړ، او رسول الله ﷺ چي به د صفا او مروه سعي کول نو په وادي مسيل کي به په منډه تلئ. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۹۲۱، رقم: ۲۳۳- ۱۲۶۲.

**تشريح**: سعي کول يعني د صفا او مروه په مينځ کي اووه چکره وهل د حنفيه په نزد واجب دي او د امام شافعي رحمۃ اللہ علیہ په نزد رکن دی.

بطن مسيل د صفا او مروه په هينځ کي د يو ځای نوم دی، د شناخت لپاره د هغه پر دواړو سرونو نښي جوړي سوي دي چي هغه ته ميلين اخضرين وايي د سعي پر وخت په دغه ځای کي په تيزي سره تلل د ټولو علماؤ په نزد سنت دي.

## حجر اسود مچول

﴿۲۴۵۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ اِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا قَدِمَ مَكَّةَ أَتَى الْحَجَرَ فَاسْتَلَمَهُ ثُمَّ مَشَى عَلَى يَمِينِهِ فَرَمَلَ ثَلَاثًا وَمَشَى أَرْبَعًا. رواه مسلم

حضرت جابر رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي کله چي رسول الله ﷺ مکې ته تشريف راوړ نو حجر اسود ته راغلئ هغه يې مچ کړل بيا (د طواف لپاره) راسته لوري ته ولاړئ بيا دري واره په تيز قدم سره ولاړئ او څلورم وار په معمولي تګ سره. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۸۹۳، رقم: ۱۵۰- ۱۲۱۸.

﴿۲۴۵۲﴾: وَعَنْ الزُّبَيْرِ بْنِ عَرَبِيٍّ قَالَ سَأَلَ رَجُلٌ ابْنَ عُمَرَ عَنْ اسْتِلَامِ الْحَجَرِ فَقَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ يَسْتَلِمُهُ وَيُقَبِّلُهُ. رواه البخاري.

د حضرت زبير بن عربي رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي يو سړي د ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه د حجر اسود د مچولو په اړه پوښتنه وکړه نو هغه ورته وويل: ما رسول الله ﷺ حجر اسود ته په لاس وروړلو او مچولو سره ليدلی دئ. بخاري.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳\۴۷۵، رقم: ۱۶۱۱.

## رکن یماني ته لاس وروړل

﴿۲۴۵۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ لَمْ أَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَلِمُ مِنَ الْبَيْتِ إِلَّا الرُّكْنَيْنِ الْيَمَانِيَيْنِ. متفق علیه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما همیشه رسول الله ﷺ د بیت الله شریفي هغه لوري ته په لاس ورړلو باندي لیدلئ دئ کوم ځای چي دواړه رکن یماني دي. بخاري او مسلم.

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۳\۴۷۳، رقم: ۱۶۰۹، ومسلم ۲\۹۲۴، رقم: ۲۴۲-۱۲۶۷

**تشریح**: د کعبي شریفي څلور رکنه یعني څلور کونجان دي یو رکن خو هغه دی چي په هغه کي حجر اسود نصب دی دوهم د هغه مخته دی او په حقیقت کي یماني دد غه رکن نوم دی مګر دد غه خوا دواړو رکنو ته رکن یماني وایي ددې څخه پرته دوه نور رکنه دي چي په هغو کي یو خو رکن عراقي دی او دوهم رکن شامي مګر دغه دواړو ته رکن شامي وایي.

په کوم رکن کي چي حجر اسود دی هغه ته دوه برابر فضیلت حاصل دی یو فضیلت خو ځکه حاصل دی چي دا د حضرت ابراهیم علیه السلام جوړ سوی دی او دوهم فضیلت دا دی چي په هغه کي حجر اسود دی او رکن یماني ته یوازي یو فضیلت حاصل دی چي هغه حضرت ابراهیم علیه السلام جوړ کړی دی، خلاصه داده چي دغه دواړو رکنو ته پر رکن شامي او رکن عراقي باندي فضیلت حاصل دی ځکه نو استلام په دغه دواړو کي ددغه رکن سره مختص دی.

د استلام معنی ده لمس کول یعني مس کول، دا مس کول که د لاس وغیره په ذریعه وي او که په مچولو سره او که په دواړو سره وي کله چي دغه لفظ د رکن اسود سره استعمالیږي نو ددې څخه د حجر اسود مچول مقصود دي او کله چي د رکن یماني سره استعمالیږي نو ددې څخه رکن یماني مس کول مراد دی، رکن اسود تر رکن یماني افضل دی ځکه هغه مچوي یا په لاس وغیره لګولو سره هغه ته په اشاره کولو سره یې مچوي، او رکن یماني یوازي مچول کیږي او لاس نه ور وړل کیږي، پاته دواړه رکنه یعني شامي اوعراقي نه مچول کیږي او نه لاس ور وړل کیږي. مسئله داده چي د حجر اسود او رکن یماني څخه پرته بله ډبره وغیره مچول نه دي پکار او نه پر هغه لاس لګول پکار دي.

## پر اوښ باندي سپور طواف کول

﴿۲۴۵۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ طَافَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ

الْوَدَاعِ عَلَى بَعِيرٍ يَسْتَلِمُ الرُّكْنَ بِمِحْجَنٍ. متفق عليه

د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ په حجة الوداع کي پر اوښ باندي طواف وکړ او حجر اسود یې په لکړه چي د هغې سر کوږ وو مچ کړل. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳\۴۷۲، رقم: ۱۶۰۷، ومسلم ۲\۹۲۶، رقم: ۲۵۳- ۱۲۷۲.

**تشريح**: د حنفيه په نزد پر پښو باندي طواف کول واجب دي ځکه د دغه حديث په باره کي دا ويل کيږي چي رسول الله ﷺ به د يو عذر او مجبورۍ په وجه داسي طواف کړی وي نو دا طواف د رسول الله ﷺ سره مختص دی د بل چا لپاره پر سپرلۍ په ناستي سره طواف کول جائز نه دي. علامه طيبي رحمۃ اللہ علیہ فرمايي که څه هم پر پښو باندي طواف کول افضل دی مګر رسول الله ﷺ پر اوښ باندي په سپرېدو سره ځکه طواف وکړ چي ټول خلک رسول الله ﷺ ووينې.

دلته يو اشکال پيدا کيږي هغه دا چي د دغه حديث څخه دا خبره ثابته سوې ده چي رسول الله ﷺ د حجة الوداع پر موقع په طواف کولو سره په اولو درو اشواطو کي رمل کړی وو، او د دغه حديث څخه معلوميږي چي رسول الله ﷺ پر اوښ باندي په سپرېدو سره طواف وکړ او ظاهره ده چي په دغه صورت کي د رمل سوال نه پيدا کيږي.

ددې جواب دادی چي رسول الله ﷺ پر پښو طواف کول او د هغه په درو چکرو کي رمل کول د طواف قدوم پر موقع وو او پر اوښ باندي په سپرېدو سره د طواف کولو تعلق د طواف افاضه سره دی چي فرض دی او د قرباني په ورځ سوی وو چي هغه ته طواف الرکن هم وايي، دلته پر اوښ باندي په سپرېدو سره د طواف کولو وجه داوه چي خلک رسول الله ﷺ ته وګوري چي د طواف افعال او مسائل زده کړي.

محجن هغه لرګي ته وايي چي د هغه سر کوږ وي د هغه په ذريعه د حجر اسود د مچولو صورت دا وو چي رسول الله ﷺ به په هغه لرګي سره حجر اسود ته په اشاره کولو سره هغه مچوی.

## د حجر اسود استلام

﴿۲۴۵۵﴾: وَعَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَافَ بِالْبَيْتِ عَلَى بَعِيرٍ كُلَّمَا أَتَى عَلَى الرُّكْنِ أَشَارَ إِلَيْهِ بِشَيْءٍ فِيْ يَدِهِ وَكَبَّرَ. رواه البخاري

د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ پر اوښ سپور د بيت الله طواف وکړ کله چي حجر اسود ته ورغلئ نو په هغه شي چي د رسول الله ﷺ په لاس مبارک کي به وه حجر

اسود ته اشاره کول او الله اکبر به يې وايه . بخاري.

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۳\۴۹۰، رقم: ۱۶۳۲.

**تشريح** : د حجر اسود د مچولو طريقه داده چې دواړه لاسونه پر حجر اسود باندې په اېښودو سره دواړې شونډې پر حجر اسود ولګول شي مګر رسول الله ﷺ به د رش په وجه حجر اسود ته په لرګي سره اشاره کړې وي او هغه به يې مچ کړې وي ، د حنفيه مذهب دادی چې حجر اسود ته په اشاره کولو سره دې هغه مچ کړل شي هو که په څه وجه پر حجر اسود باندې لاس اېښودل او هغه مچول ممکن نه وي نو بيا د اشارې په ذريعه دغه سعادت تر لاسه کيدای شي.

﴿۲۴۵۶﴾ : وَعَنْ اَبِي الطُّفَيْلِ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَطُوفُ بِالْبَيْتِ وَيَسْتَلِمُ الرُّكْنَ بِمِحْجَنٍ مَعَهُ وَيُقَبِّلُ الْمِحْجَنَ . رواه مسلم

د ابو طفيل رضي الله عنه څخه روايت دئ چې ما رسول الله ﷺ په طواف کولو ليدلی دئ ، رسول الله ﷺ به په يو لرګي سره چې د هغه سر کوږ وو حجر اسود مسه کوی او هغه لرګی به يې مچوئ . مسلم

**تخريج** : مسلم في الصحيح ۱۲\۹۲۷، رقم: ۲۵۷ - ۱۲۷۵.

**تشريح** : د رسول الله ﷺ په اړه د ځينو روايتو څخه دا معلوميږي چې رسول الله ﷺ حجر اسود مچ کړ . او ځيني روايتونه دا ښيي چې رسول الله ﷺ حجر اسود په لاس لګولو سره مچ کړ او ځيني روايتونه حجر اسود ته په اشاره کولو سره مچول ثابتوي، نو په دغه ټولو روايتو کې داسې مطابقت پيدا کيږي چې په ځيني طواف کې به رسول الله ﷺ مچ کړې وي او په ځيني طواف کې به يې په لاس لګولو سره مچ کړې وي او په ځيني طواف کې به يې د ډېر رش په وجه حجر اسود ته په اشاره کولو سره استلام کړی وي يا دا چې په يوه طواف کې د هر شوط څخه وروسته د حجر اسود استلام وي نو رسول الله ﷺ به په ځيني چکرو کې مچ کړې وي او په ځينو کې به يې په لاس لګولو سره مچ کړې وي او په ځينو کې به يې د رش په وجه د اشارې په ذريعه استلام کړې وي.

## حائضه دې طواف او سعي نه کوي

﴿۲۴۵۷﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا نَذْكُرُ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چې موږ د رسول الله ﷺ سره د حج لپاره ولاړو او موږ

يوازي د حج يادونه كول

إِلَّا الْحَجَّ فَلَمَّا كنا بسَرِفَ طَمِثْتُ فَدَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا أَبْكِي

كله چي سرف نامي ځاى ته ورسېدو ما ته حيض راغلئ ، رسول الله ﷺ زما خوا ته راغلى او ما ژړل ،

فَقَالَ لَعَلَّكِ نُفِسْتِ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَإِنَّ ذٰلِكِ شَيْءٌ كَتَبَهُ اللّٰهُ عَلَى بَنَاتِ آدَمَ

رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه ايا ستا وينه راغلل ؟ ما عرض وكړ هو ، رسول الله ﷺ راته وفرمايل : دا يو داسي شى دئ چي الله تعالى د آدم عليه السلام پر لونړو ټاكلى دئ

فَافْعَلِي مَا يَفْعَلُ الْحَاجُّ غَيْرَ أَنْ لَا تَطُوفِي بِالْبَيْتِ حَتَّى تَطْهُرِي. متفق عليه

ته هغه افعال ادا كړه كوم چي حاجيان يې كوي مګر د بيت الله شريفي طواف تر هغه وخته پوري مه كوه تر څو پوري چي پاكه نه سې . بخاري او مسلم .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱\ ۴۰۰، رقم: ۲۹۴، ومسلم ۲\ ۸۷۳، رقم: ۱۱۹- ۱۲۱۱.

**تشريح**: سرف د يو ځاى نوم دى چي د مكې مكرمې څخه تقريبا شپږ مېله او د مقام تنعيم شمال ته پر درې يا څلور مېله فاصله واقع دى، په دغه ځاى كي د ام المؤمنين بي بي ميمونې رضي الله عنها مبارک قبر دى او دا عجيبه اتفاق دى چي د بي بي ميمونې ﵂ نكاح هم په دغه ځاى كي سوې وه د واده شپه يې هم په دغه ځاى كي تېره كړې وه او وفات هم دلته سوه .

په دغه حديث سره يو خلجان پيدا كيداى سي هغه دا چي د بي بي عائشې ﵂ دغه الفاظ (لانذكر الا الحج) يعني موږ يوازي د حج ذكر كوى، دا په خپله د بي بي عائشې رضي الله عنها د هغه روايت خلاف دى كوم چي په تېر باب كي تېر سوى دى په هغه كي بي بي عائشې رضي الله عنها په خپل باره كي دا ښودلي وه چي ولم اهلل الا بعمرة يعني ما يوازي د عمرې احرام تړلى وو. نو د ظاهري تضاد رفع كولو لپاره به دا تاويل كيږي چي دلته د بي بي عائشې رضي الله عنها د الفاظ : لانذكر الا الحج، مراد دا وي چي د دغه سفر څخه زموږ اصل مقصد حج وو او د حج درې ډولونه دي ۱: افراد، ۲: تمتع، ۳: او قران ، ځكه نو په موږ كي ځينو مفرد وه ، ځيني متمتع او ځيني قارن، ما د تمتع قصد كړى وو ما د ميقات څخه د عمرې احرام وتړى مګر مكې ته د رسيدو څخه مخكي زما د حيض ورځي شروع سوې چي د هغه لړۍ جاري وه تر دې چي د عرفات ورځ او د وقوف عرفات وخت راغلى او همدارنګه د عمرې د وخت په تېرېدو سره د حج

ورځي شروع سوې رسول الله ﷺ ما ته حکم وکړ چي زه د عمرې احرام خلاص کړم او د حج احرام وتړم او بیا د طواف او سعي څخه پرته نور د حج افعال ادا کړم.

**مشرکانو ته د کعبې د طواف منعه**

﴿۲۴۵۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ بَعَثَنِيْ اَبُوْ بَكْرٍ فِي الْحَجَّةِ الَّتِي أَمَّرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ په کوم حج کي چي نبي کریم ﷺ حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د حج امیر و ټاکئ

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهَا قَبْلَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ يَوْمَ النَّحْرِ فِي رَهْطٍ اَمَرَهُ اَنْ يُؤَذِّنَ

نو ابوبکر صدیق رضی الله عنه زه د قرباني په ورځ د دې اعلان کولو لپاره ولیږلم چي ددې کال وروسته

فِي النَّاسِ اَلَا لَا يَحُجُّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ وَلَا يَطُوفَنَّ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ . متفق عليه

دې هیڅ یو مشرک حج نه کوي او نه دې څوک لوڅ پر خانه کعبه طواف کوي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱\ ۴۷۷- ۴۷۸، رقم: ۳۶۹، ومسلم ۲\ ۹۸۲، رقم: ۴۳۵- ۱۳۴۷.

**تشریح**: مخکي دا نبودل سوي دي چي حج د لسم هجري کال په آخر کي فرض سوی دی، رسول الله ﷺ په هغه کال په نورو دیني چارو کي د بوختیا په وجه خپله حج ته نه ولاړی بلکه حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه یې د حاجیانو د قافلې امیر جوړ کړی او د حاجیانو سره یې واستوی. دا واقعه د حجة الوداع څخه یو کال مخکي ده، کله چي حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه هلته ورسیدی نو یو ډله یې چي په هغه کي ابو هریره رضی الله عنه هم شامل وو خلکو ته ولیږل او هغو ته یې حکم وکړ چي په خلکو کي دا اعلان وکړل سي چي ددغه کال څخه وروسته به په راتلونکي کي هیڅ مشرک (یعني کافر) د بیت الله شریفي حج ته نه ځي ځکه چي د حج سعادت یوازي د مسلمانانو لپاره خاص سوی دی او هغوئ دغه اعلان ددغه آیت کریمه مطابق وکړ چي:

إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ فَلاَ يَقْرَبُواْ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هَذَا،

**ژباړه**: ټول مشرکان نجس (ناپاک) دي نو هیڅ مشرک دي ددغه کال څخه وروسته مسجد حرام ته نه راځي.

او همدارنګه حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه دغه ډلي ته ددغه اعلان کولو حکم هم وکړ چي هیڅوک دي په لوڅېدو سره د کعبې شریفي طواف نه کوي، دا خو معلومه ده چي د جاهلیت په

زمانه کي به خلکو په لوڅېدو سره طواف کوی او د دې وجه به يې دا بيانول چي موږ د الله تعالی دغه عظيم عبادت په جامو کي څرنګه کولای سو چي په هغه کي شپه او ورځ ګناه کوو نو اسلام دا لغويت بند کړ او حکم يې وکړ چي په راتلونکي کي دي هيڅوک هم د دغه غير اخلاقي، غيرانساني او د جهالت څخه ډک حرکت جرئت نه کوي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

## د کعبې شريفې په لېدو سره دعاء کول

﴿۲۴۵۹﴾: عَنِ الْمُهَاجِرِ الْمَكِّيِّ قَالَ سُئِلَ جَابِرٌ عَنِ الرَّجُلِ يَرَى الْبَيْتَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فَقَالَ قَدْ حَجَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ ﷺ فَلَمْ نَكُنْ نَفْعَلُهُ. رواه الترمذي وابوداؤد

د حضرت مهاجر المکي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د هغه چا په اړه چي د بيت الله په لېدو سره دواړه لاسونه پورته کړي د حضرت جابر رضي الله عنه څخه پوښتنه وسول، حضرت جابر رضي الله عنه وويل: موږ د نبي کريم ﷺ سره حج کړی دئ مګر موږ به داسي نه کول. ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۲۱۰، رقم: ۸۵۵، وابوداود ۲\۴۳۷، رقم: ۱۸۷۰.

**تشريح**: د بيت الله زيارت کوونکي چي کله مکې ته په رسيدو سره په مسجد حرام کي داخل سي نو د کعبې شريفې په لېدو سره دي دعاء کوي او د هغه دعاء قبلېږي ځکه مسئله داده چي د کعبې شريفې پر مقدس جمال باندي په نظر لوېدو سره چي څه زړه غواړي نو د خپل پروردګار څخه دي يې وغواړي.

اوس سوال دادی چي هغه وخت د دعاء په غوښتلو سره خپل دواړه لاسونه هم پورته کړي که يا، دا حديث د دې څخه انکار کوي او د امام ابوحنيفة، امام شافعي او امام مالک رحمة الله عليهم هم دا مذهب دی چي د کعبې شريفې په لېدو سره دعاء غوښتونکی دي خپل لاسونه نه پورته کوي (يعني دعاء دي کوي مګر لاسونه دي نه پورته کوي) او د امام احمد رحمه الله مذهب دادی چي د کعبې شريفې په لېدو سره دي لاسونه پورته کړل سي او دعاء دي وغوښتل سي. طيبي.

ملا علي قاري رحمه الله په مرقات کي د امام اعظم ابوحنيفة او امام شافعي رحمة الله عليهما مذهب د دې پر خلاف ليکلی دی يعني د هغه د نقل مطابق د دغه دواړو امامانو په نزد لاسونه پورته کول مشروع دي مګر ملا علي قاري رحمه الله په خپل يو کتاب مناسک کي دې ته مکروه

ويلي دي ، كه څه هم ځيني علماء ددې جواز هم نقل كوي ، د فقه حنفي مشهور او معتمد كتاب هدايه او درمختار څخه هم دا خبره ثابتيږي چي پر دغه ځاى باندي لاسونه پورته كول نه دي پكار .

## د سعي په دوران كي كعبه شريفه ليدل او دعاء كول

﴿۲۴۶۰﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ أَقْبَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي كله رسول الله ﷺ مكه مكرمه ته داخل سو

مَكَّةَ فَأَقْبَلَ إِلَى الْحَجَرِ فَاسْتَلَمَهُ ثُمَّ طَافَ بِالْبَيْتِ ثُمَّ أَتَى الصَّفَا فَعَلَاهُ حَتَّى

نو د حجر اسود په لور متوجه سو او هغه يې مچ كړل بيا يې د بيت الله شريفي طواف وكړ ، ددې وروسته صفا او مروه ته وختئ او هلته يې

يَنْظُرُ إِلَى الْبَيْتِ فَرَفَعَ يَدَيْهِ فَجَعَلَ يَذْكُرُ اللّٰهَ مَا شَاءَ وَيَدْعُو . رواه أبوداؤد

د بيت الله شريفي په ليدو سره دواړه لاسونه (ددعاء لپاره) پورته كړل او د الله جل جلاله ذكر يې وكړ څو مره چي يې غوښتل دعاوي يې وغوښتلې . ابوداؤد .

**تخريج** : ابوداود في السنن ۲\۴۳۸، رقم: ۱۸۷۲.

**تشريح** : د سعي كولو پر وخت كله چي صفا ته وخيژي نو هلته بيت الله شريفي ته په مخ كولو سره درېدل پكار دي او بيا د تكبير او تهليل په ويلو او درود شريف ويلو څخه وروسته د دواړو لاسونو په پورته كولو سره دعاء كول پكار دي .

يو وخت دا طريقه وه او كيداى سي اوس هم وي چي ځينو خلكو به په دغه وخت كي په تكبير ويلو سره لاسونه پورته كول لكه څرنګه چي په لمانځه كي په تكبير ويلو سره رفع يدين كيږي ، په ښه ډول پوه سئ چي په شريعت كي ددې هيڅ اصل نه سته دا يو غير مشروع او غير مسنون طريقه ده .

## په طواف او لمانځه كي مماثلت

﴿۲۴۶۱﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الطَّوَافُ حَوْلَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د بيت الله شاوخوا طواف

الْبَيْتِ مِثْلُ الصَّلَاةِ إِلَّا أَنَّكُمْ تَتَكَلَّمُونَ فِيهِ فَمَنْ تَكَلَّمَ فِيهِ فَلَا يَتَكَلَّمَنَّ إِلَّا

بِخَيْرٍ . رواه الترمذي والنسائي و الدارمي وذكر الترمذي جماعة وقفوه على ابن عباس .

کول د لمانځه په ډول دئ مګر تاسو د طواف په حالت کي خبري کولای سئ ، نو څوک چي خبري کوي د نیکۍ خبري دي وکړي . ترمذي، نسائي او دارمي .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۲۹۳، رقم: ۹۶۰، والنسائي ۵\۲۲۲، رقم: ۲۹۲۲، والدارمي ۲\۶۶، رقم: ۱۸۴۷.

**تشريح**: په لمانځه او طواف کي د مماثلت تعلق د ثواب له مخي دی لکه څرنګه چي د لمانځه ثواب ډېر زیات دی همدارنګه د کعبې شریفې د طواف هم ډېر زیات ثواب دی البته په دواړو کي فرق دادی چي په لمانځه کي خبري او کلام کول مفسد دی مګر په طواف کي خبري کول مفسد نه دی .

د حدیث څخه دا څرګندېږي چي خبري کول او کوم شیان چي د خبرو په حکم کي دي لکه خوراک، څښاک او افعال کثیره او داسي نور د طواف لپاره مفسد دي .

د حدیث دا مطلب بالکل نه دی چي لمونځ او طواف دواړه یو ډول دي ځکه چي یو فرق خو حدیث ښوولی دی ددې څخه پرته هم ځیني شیان داسي دي چي د دواړو ظاهر فرق واضح کوي مثلا د رسول الله ﷺ د عمل څخه دا خبره ثابته ده لکه څرنګه چي په لمانځه کي قبلې ته مخ کول او د وخت کېدل شرط دي همدارنګه په طواف کي مخ پر قبله کېدل او د یو خاص وخت متعین کېدل شرط نه دي . همدارنګه د لمانځه نور شرطونه لکه طهارت حقیقیه او حکمیه او د ستر پټول که څه هم د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد د طواف لپاره په دغه درجې کي دی په کومه درجه کي چي لمونځ دی یعني څرنګه چي دغه شیان د لمانځه د شرطو څخه دي چي ددې څخه پرته لمونځ نه ادا کیږي همدارنګه د طواف لپاره هم شرطونه دي مګر د حنفیه په نزد دغه شیان د طواف یوازي د واجب په درجه کي دي شرط نه دي .

د حدیث الفاظ چي طواف کول د لمانځه په مثل دي ددې څخه دا نه لازمیږي چي طواف بعینه د لمانځه په درجه کي دی بلکه طواف ته د لمانځه په مثل ویل خپله دې ته اشاره کوي چي لمونځ د طواف څخه غوره دی .

## د حجر اسود حقیقت

﴿۲۴۶۲﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نزل الْحَجَرُ الْأَسْوَدُ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : راغلی دئ حجر اسود

مِنْ الْجَنَّةِ وَهُوَ أَشَدُّ بَيَاضًا مِنَ اللَّبَنِ فَسَوَّدَتْهُ خَطَايَا بَنِي آدَمَ . رواه احمد والترمذي وقال هذا حديث حسن صحيح .

د جنت څخه هغه تر شيدو زياته سپينه وه د انسانانو ګناهو هغه توره کړل . احمد ، ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دئ.

**تخريج** : الامام احمد في المسند ۱\۳۰۷، رقم: ۸۷۷.

**تشريح** : هغه مقدسه ډبره چي هغه ته نن سبا حجر اسود (توره ډبره) ويل کيږي کله چي د جنت څخه په راکښته کېدو سره د ظلم او جهل څخه ډکه دې دنيا ته راغله او د دنيا ګناه کارو خلکو هغه مس کول او د هغې سره لاس لګول يې شروع کړل نو د هغوئ د ګناهونو تاثير د هغې رنګ بدل کړ او هغه ډبره چي د شيدو څخه هم زياته سپينه وه د انسانانو په ګناهونو سره توره سوه .

اوس فکر وکړئ چي کله پر ډبره باندي د انسان د ګناهو دا اثر دی نو خپله د انسان پر زړه باندي د هغه ګناهونو څومره اثر وي . معاذالله .

## حجر اسود د قيامت په ورځ

﴿۲۲۶۳﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْحَجَرِ وَاللَّهِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د حجر اسود په اړه رسول الله ﷺ وفرمايل:

لَيَبْعَثَنَّهُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَهُ عَيْنَانِ يُبْصِرُ بِهِمَا وَلِسَانٌ يَنْطِقُ بِهِ يَشْهَدُ عَلَى مَنْ اسْتَلَمَهُ بِحَقٍّ . رواه الترمذي وابن ماجة والدارمي .

د قيامت په ورځ به الله تعالی حجر اسود په داسي ډول راپورته کړي چي دوې سترګي به يې وي چي په هغه به ويني او ژبه به يې وي چي په هغه سره به خبري کوي او په رښتيا به پر هغه چا شاهدي ورکوي چا چي مچ کړی وي . ترمذي ، ابن ماجة او دارمي .

**تخريج** : الترمذي في السنن ۳\ ۲۹۴، رقم: ۹۶۱، وابن ماجه ۲\ ۹۸۲، رقم: ۱۸۳۹.

**تشريح** : چا چي په حق سره مچ کړل: ددې مطلب دادی چي چا په ايمان، صدق او يقين او محض د ثواب د طلب له کبله حجر اسود مچ کړی نو په قيامت کي به د هغه سړي په باره کي

شاهدي ورکوي چي دغه سړي زه مچ کړی یم .

دا حديث هم پر خپله ظاهري معنى باندي محمول دی په دې کي د ذرې په اندازه هم شک نه سته چي د قيامت په ورځ به حجر اسود ته دا سي سترګي او ژبه ورکړل سي لکه څرنګه چي مور انسانانو ته راکړل سوي دي ځکه الله تعالى په جماداتو کي د بينائي او ګويائي پر پيدا کولو باندي قادر دی هغه که د ويني او غوږنو يو تهوتهی ته د لېدلو او ويلو قوت ورکولای سي نو يو ډبري ته هم د لېدو او ويلو توان ورکولای سي .

## حجر اسود او مقام ابراهيم د جنت ياقوت دي

﴿۲۴۶۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې:

إِنَّ الرُّكْنَ وَالْمَقَامَ يَاقُوتَتَانِ مِنْ يَاقُوتِ الْجَنَّةِ طَمَسَ اللّٰهُ نُورَهُمَا وَلَوْ لَمْ

حجر اسود او مقام ابراهيم د جنت د ياقوتو څخه دي ، الله تعالى د دوئ نور پست کړی دئ او که

يَطْمِسْ نُورَهُمَا لَأَضَاءَتَا مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ. رواه الترمذي

د دوئ رڼا قائمه پاته سوې وای نو د ختيځ او لوېديځ ټول شيان به يې ځلانده کړي وای . ترمذي .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۲۲٦، رقم: ۸۷۸.

## د حجر اسود استلام او د طواف فضيلت

﴿۲۴۶۵﴾: وَعَنْ عُبَيْدِ ابْنِ عُمَيْرٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يُزَاحِمُ عَلَى الرُّكْنَيْنِ زِحَامًا

د حضرت عبيد ابن عمير رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ابن عمر رضي الله عنه به د دواړو رکنو (حجر اسود او رکن يماني) په مچولو کي دومره زور کوئ

مَا رَأَيْتُ أَحَدًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُزَاحِمُ عَلَيْهِ قَالَ إِنْ

چي ما د رسول الله ﷺ په اصحابو کي هيڅوک په دومره زور کولو باندي نه دی ليدلئ ، ابن عمر رضي الله عنه به په خپل دغه کار تعجب کونکو ته ويل :

أَفْعَلْ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ مَسْحَهُمَا كَفَّارَةٌ

كه زه داسي كوم نو تعجب مه كوئ ځكه چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي دغه دواړو ته لاس وروړل د ګناهو كفاره ده

لِلْخَطَايَا وَسَمِعْتُهُ يَقُولُ مَنْ طَافَ بِهَذَا الْبَيْتِ أُسْبُوعًا فَأَحْصَاهُ كَانَ كَعِتْقِ

او ما داسي هم د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي څوک دديې بيت (بيت الله) اووه واره طواف وكړي او د هغه د واجباتو ، سنتو او وغيره پابندي وكړي نو هغه ته دومره ثواب وركول

رَقَبَةٍ وَسَمِعْتُهُ يَقُولُ لَا يَضَعُ قَدَمًا وَلَا يَرْفَعُ أُخْرَى إِلَّا حَطَّ اللَّهُ عَنْهُ خَطِيئَةً

وَكَتَبَ لَهُ بِهَا حَسَنَةً . رواه الترمذي

كيږي څومره چي د يوه غلام آزادولو ، او د رسول الله ﷺ څخه مي دا هم اوريدلي دي چي كوم قدم په طواف كي كښېښودل سي او كوم قدم چي پورته كړل سي پر هر قدم باندي الله تعالى ګناه ليري كوي او نيكي ليكي . ترمذي.

**تخريج**: الترمذي في السنن : ۱۳\ ۲۹۲، رقم: ۹۵۹.

**تشريح**: د سبقت تر لاسه كولو مطلب دادى چي هغه به د حجر اسود او ركن يماني د استلام لپاره د خلكو په رش كي مخكي كېدى او پر دواړو ركنو به يې لاس لګوى مګر د هغه دا سبقت داسي وو چي خلكو ته به تكليف نه رسيدى ، كه چيري يو څوک د استلام لپاره خلک په تكليف كوي او خلک په دې سره تكليف محسوس كړي نو هغه به ګناه كاروي او د رش په صورت كي د لاس په ذريعه د ليري څخه پر اشاره كولو باندي اكتفاء كول پكار دي .

اووه واره يې طواف وكړ : په دې كي درې احتماله دي يو خو دا چي اووه شوطه يې وكړه يعني د كعبې شريفې شاوخوا يې اووه چكره ولګول او دا معلومه ده چي اووه چكره لګول يو طواف دى. دوهم دا چي اووه طوافه يې وكړه او دريم دا چي تر اوو ورځو پوري يې طواف وكړ .

## د حجر اسود او ركن يماني په مينځ كي دعاء

﴿۲۴۶۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ السَّائِبِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبد الله بن السائب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه د حجر اسود او

وَسَلَّمَ يَقُولُ مَا بَيْنَ الرُّكْنَيْنِ ﴿رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ

حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ} . رواه ابو داؤد .

ركن يماني په منځ کي دا آيت اوريدلى دئ : رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ. ابو داؤد .

**تخريج** : ابوداود في السنن ۲\۴۴۸، رقم: ۱۸۹۲.

## د سعي حکم

《۲۴۶۷》: وَعَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ قَالَتْ أَخْبَرَتْنِي بِنْتُ أَبِي تُجْرَاةَ قَالَتْ دَخَلْتُ

د حضرت صفية بنت شيبة (رض) څخه روايت دئ چي د ابي تجرات لور ما ته بيان وکړ چي زه د

مَعَ نِسْوَةٍ مِّنْ قُرَيْشٍ دَارَ آلِ أَبِي حُسَيْنٍ نَنْظُرُ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

قريشو د يو څو ښځو سره د ابو حسين کور ته ددې لپاره ولاړم چي رسول الله ﷺ

وَسَلَّمَ وَهُوَ يَسْعٰى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ فَرَأَيْتُهُ يَسْعٰى وَإِنَّ مِئْزَرَهُ لَيَدُوْرُ مِنْ

د صفا او مروه په منځ کي په سعي کولو ووينم ، نو ما رسول الله ﷺ د صفا او مروه په منځ کي په سعي کولو وليدئ ، د رسول الله ﷺ تهبند د منډي له کبله پېچل کېدئ ،

شِدَّةِ السَّعْيِ وَسَمِعْتُهُ يَقُوْلُ اسْعَوْا فَإِنَّ اللهَ كَتَبَ عَلَيْكُمُ السَّعْيَ . رواه في شرح السنة ورواه أحمد مع اختلاف

بيا ما د رسول الله ﷺ څخه دا واوريدل چي سعي کوئ ځکه چي الله تعالى پر تاسو سعي واجب کړې ده ، شرح السنة او احمد .

**تخريج** : الامام احمد في المسند ۲\۴۲۱، البغوي في شرح السنة ۷\۱۴۰ – ۱۴۱، رقم: ۱۹۲۱.

**تشريح** : مخکي ښودل سوي دي چي د صفا او مروه په مينځ کي اووه چکره لګولو ته سعي وايي چي د حج يو اهم رکن دی ، د صفا او مروه غونډۍ اوس نه سته دغه دواړي غونډۍ په اوارولو سره ختمي سوي دي يوازي د هغو ځايونه ټاکل سوي دي، دا هم مخکي ښودل سوي دي چي دغه سعي په حقيقت کي د بي بي هاجرې رضي الله عنها د هغه ځغاستي او پرېشانۍ

یادګار دی چي په هغه کي هغې د خپل تي رودونکي ماشوم حضرت اسماعیل علیه السلام د تندي ماتولو لپاره د اوبو په لټه کي د دغه دواړو غونډیو په مینځ کي اخته سوې وه د هغه وروسته الله تعالی زمزم پیدا کړ ، د اسلام څخه مخکي عربو پر دغه دواړو غونډیو یو یو بُت ایښی وو د صفا د بت نوم اهناف او د مروه د بت نوم نائله وو ، د صفا غونډۍ د جبل ابو قیس په لمن کي ده .

د هغه ځای څخه سعي شروع کیږي د صفا او مروه په مینځ کي هغه لار چي پر هغه سعي کیږي او هغه ته مسعي وایي د بیت الله شریفي مشرق ته ده دا مخکي د مسجد حرام څخه د باندي وو اوس په هغه کي ګډه سوي دي .

د حدیث د الفاظو : فان الله کتب علیکم السعي – څخه امام شافعي رحمه الله دا مراد اخلي چي الله تعالی پر تاسو باندي سعي فرض کړې ده د هغه په نزد د صفا او مروه په مینځ کي سعي فرض ده که یو څوک سعي ونه کړي نو د هغه حج باطل دی ، د امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله په نزد سعي فرض نه ده بلکه واجب ده ، هغه د دغه جملې معنی دا اخلي چي الله تعالی پر تاسو باندي سعي واجب کړې ده د حنفي مذهب سره سم که یو څوک سعي پرېږدي نو پر هغه باندي دم یعني د پسه وغیره حلالول لازمیږي او حج نه باطلیږي .

## سعي پر پښو کول واجب ده

﴿۲۴۶۸﴾ : وَعَنْ قُدَامَةَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمَّارٍ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ

د حضرت قدامة بن عبد الله بن عمار رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما رسول الله ﷺ لیدلی دئ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْعٰى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ عَلٰى بَعِيْرٍ لاَ ضَرْبَ وَلاَ طَرْدَ وَلاَ إِلَيْكَ إِلَيْكَ . رواه في شرح السنة

د صفا او مروه په منځ کي پر اوښ باندي په سعي کولو ، نه خو رسول الله ﷺ اوښ ووهئ، نه یې شړئ او نه یې فهم کوئ وویل . شرح السنة .

**تخریج** : البغوي في شرح السنة ۷/۱۴۲، رقم: ۱۹۲۲.

**تشریح** : د دغه حدیث څخه معلومیږي چي رسول الله ﷺ پر اوښ باندي په سپرېدو سره سعي وکړه حال دا چي په پورتني حدیث او ځینو نورو حدیثو کي دا ثابته سوې ده چي رسول الله ﷺ پر پښو باندي سعي کړې وه نو د دغه حدیثو تضاد داسي ختمیږي چي په ځینو سعي کي رسول الله ﷺ پر پښو وو او په ځینو کي د امت د تعلیم لپاره یا د یو عذر په وجه پر اوښ باندي په

سپړېدو سره يې سعي وکړه ، د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه د مذهب سره سم پر پښو باندي سعي کول واجب ده په شرط د قدرت، که يو څوک بېله عذره پر سپرلۍ وغيره باندي سعي کوي نو پر هغه باندي دم (يعني د حيوان حلالول) واجبېږي.

د حديث د آخري الفاظو مطلب دادی چي کله رسول الله ﷺ پر اوښ باندي په سپړېدو سره سعي کول نو هغه وخت د خپل لاري صفا کولو لپاره او د شان او شوکت د اظهار لپاره يې نه څوک وهل او نه يې چا ته ډيکه ورکول او نه يې په لاس وغيره سره څوک ليري کول او نه يې ليري سئ آخوا سئ ويل، لکه څرنګه چي د اميرانو او پاچاهانو او ظالمانو خلکو عادت دی ، يعني د دغه جملې په ذريعه داسي خلکو ته غيرت ورکول دي او پر هغوئ طعن کول مقصد دي کوم چي دا ډول حرکتونه کوي .

## په طواف کي اضطباع

﴿۲۴۶۹﴾: وَعَنْ يَّعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ قَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَافَ بِالْبَيْتِ مُضْطَبِعًا بِبُرْدٍ أَخْضَرَ . رواه الترمذي وأبو داود وابن ماجه والدارمي

د حضرت يعلي بن امية رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د بيت الله طواف وکړ او څادر يې اضطباع کړ (يعني څادر يې د راسته بغل. لاندي څخه راوکښی او پر چپه وږه يې واچوئ) . ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه او دارمي

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\ ۲۱۴، رقم: ۸۵۹، وابوداود ۲\ ۴۴۳، رقم: ۱۸۸۳، وابن ماجه ۲\ ۹۸۴، رقم: ۲۹۵۴، والدارمي ۲\ ۶۵، رقم: ۱۸۴۳.

**تشريح**: مخکي ښودل سوي دي چي څادر داسي اچول چي هغه د راسته بغل د لاندي څخه په را ايستلو سره پر چپه اوږه باندي واچول سي دې ته اضطباع ويل کيږي د طواف پر وخت داسي څادر اچولو وجه هم مخکي بيان سوې ده .

## په طواف کي اضطباع سنت ده

﴿۲۴۷۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابُهُ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ اود هغه اصحابو

اعْتَمَرُوْا مِنَ الْجِعِرَّانَةِ فَرَمَلُوْا بِالْبَيْتِ ثَلَاثًا وَجَعَلُوْا أَرْدِيَتَهُمْ تَحْتَ آبَاطِهِمْ

ثُمَّ قَذَفُوْهَا عَلٰى عَوَاتِقِهِمُ الْيُسْرٰى . رواه أبو داود

د جعرانه نامي ځای څخه عمره وکړه او د بيت الله شريفي په طواف کي درې واره په تيز قدم ولاړل او خپل څادرونه يې د خپلو بغلو لاندي وکښتل او پر چپه اوږو يې واچوي . ابوداؤد .

**تخريج:** ابوداود في السنن ٢\ ٤٤٤، رقم: ١٨٨٤.

**تشريح:** اضطباع په ټول طواف کي سنت ده، کله چي رمل يعني تېز تيز او جګ جګ تلل د طواف څخه مخکي په دوو يا درو چکرو کي کيږي نو په دې خبره پوهېدل پکار دي چي اضطباع يوازي د طواف په وخت کي مستحب دي د طواف څخه پرته په نورو وختو کي مستحب نه دي او ځيني خلک چي د احرام په شروع کي اضطباع اختياروي د هغه هيڅ اصل نه سته بلکه د لمانځه په حالت کي دا مکروه دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د استلام حجر اسود او رکن يماني فضيلت

﴿٢٤٧﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ مَا تَرَكْنَا اسْتِلاَمَ هٰذَيْنِ الرُّكْنَيْنِ الْيَمَانِيِّ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هر کله ما رسول الله ﷺ په حجر اسود او رکن يماني

وَالْحَجَرِ فِيْ شِدَّةٍ وَلاَ رُخَاءٍ مُنْذُ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَسْتَلِمُهَا متفق عليه،

مچولو ليدلی دئ نو هيڅکله زه د هغو د مچولو څخه نه سم پاته کيدلای که څه هم رش وي يا نه ، بخاري او مسلم.

وَفِيْ رِوَايَةٍ لَّهُمَا قَالَ نَافِعٌ رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ يَسْتَلِمُ الْحَجَرَ بِيَدِهٖ ثُمَّ قَبَّلَ يَدَهُ

او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي د نافع بيان دئ چي ما ابن عمر په لاس ورړلو او بيا په لاس مچولو ليدلی دئ هغه وويل ما هيڅکله د رکن يماني او حجر اسود مچول نه دي پرې

وَقَالَ مَا تَرَكْتُهُ مُنْذُ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُهُ .

ايښي د څه وخت څخه چي مي رسول الله ﷺ د دې په مچولو ليدلی دئ .

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ٣\ ٤٧١، رقم: ١٦٠٦، ومسلم ٢\ ٩٢٤، رقم: ٢٤٥- ١٢٦٨.

## د عذر په وجه په سپرتيا سره طواف كول جائز دي

﴿۲۴۷۲﴾: وَعَنْ اُمِّ سَلْمَةَ قَالَتْ شَكَوْتُ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ام سلمة (رض) څخه روايت دئ چي (د حج په ورځو كي) ما رسول الله ﷺ ته د خپلي

أَنِّي أَشْتَكِي فَقَالَ طُوفِي مِنْ وَرَاءِ النَّاسِ وَأَنْتِ رَاكِبَةٌ فَطُفْتُ وَرَسُولُ اللّٰهِ ﷺ

ناروغۍ شكايت وكړ ، رسول الله ﷺ راته وفرمايل : ته د خلكو څخه وروسته ورو سته يا د خلكو څخه ليري ليري طواف وكړه ، نو ما پر سپرلۍ طواف وكړ او وه مي ليدل چي رسول الله ﷺ

يُصَلِّي إِلَى جَنْبِ الْبَيْتِ يَقْرَأُ بِالطُّورِ وَكِتَابٍ مَسْطُورٍ . متفق عليه

د بيت الله په طرف كي لمونځ كوي او په لمانځه كي والطور وكتاب مسطور ، وايي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۴۸۰، رقم: ۱۶۱۹، ومسلم ۲\۹۲۷، رقم: ۲۵۸- ۱۲۷۶.

**تشريح**: سورة وطور به يې په يوه ركعت كي ويلي وي او په دوهم ركعت كي به يې يو بل سورت ويلی وي لكه څرنگه چي د رسول الله ﷺ مبارک عادت وو ، يا دا چي سورة طور به يې په دواړو ركعتو كي ويلي وي ، ددغه حديث څخه معلومه سوه چي د يو عذر په وجه د بيت الله شريفي طواف په سپرېدو سره جائز دي او بېله عذره جائز نه دی ځكه چي پر پښو باندي طواف كول واجب دی .

## د حضرت عمر رضي الله عنه حجر اسود ته خطاب

﴿۲۴۷۳﴾: وَعَنْ عَابِسِ بْنِ رَبِيْعَةَ قَالَ رَأَيْتُ عُمَرَ يُقَبِّلُ الْحَجَرَ وَيَقُوْلُ إِنِّي

د حضرت عابس بن ربيعة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما حضرت عمر رضي الله عنه په حجر اسود مچولو وليدئ او دا مي ځيني واوريدل چي ويل يې :

لَأَعْلَمُ أَنَّكَ حَجَرٌ مَا تنفع ولا تَضُرُّ وَلَوْلَا أَنِّي رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَبِّلُكَ مَا قَبَّلْتُكَ . متفق عليه

زه پوهيږم چي ته ډبره يې نه چا ته گټه رسولای سې او نه تاوان، كه ما رسول الله ﷺ ستا په مچولو نه وای ليدلی نو هيڅكله به مي نه وای مچ كړی . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۴۶۲، رقم: ۱۵۹۷، ومسلم ۲\۹۲۵، رقم: ۲۵۱- ۱۲۷۰.

**تشريح**: د حضرت عمر رضي الله عنه د غه ارشاد د اعتقادي او عملي ګمراهي منع كولو لپاره وو چي ځيني نوي مسلمانان د دغه ډبري عبادت كول شروع نه كړي نو د دغه ارشاد څخه يې مراد دا وو چي دغه ډبره بذات خود نه چا ته ګټه رسولای سي او نه د چا تاوان كولای سي كه د هغه د ذات څخه يو ګټه رسيدلای سي نو يوازي تر دې حده پوري چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم د حكم په تعميل كي د هغه په مچولو سره ثواب تر لاسه كيږي.

## پر ركن يماني باندي دعاء

﴿۲۴۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وُكِلَ بِهِ سَبْعُونَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: تاكل سوي دي اوويا

مَلَكًا يَعْنِي الرُّكْنَ الْيَمَانِيَ فَمَنْ قَالَ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْعَفْوَ وَالْعَافِيَةَ فِي

ملائكي پر ركن ايمان نوڅوك چي ووايي: اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْعَفْوَ وَالْعَافِيَةَ فِي

الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ

النَّارِ قَالُوا آمِينَ. رواه ابن ماجة.

الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ، نو ملائكي آمين وايي. ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۹۸۵، رقم: ۲۹۵۷.

**تشريح**: كله چي د ركن يماني دا فضيلت دی نو د حجر اسود فضيلت خو به تر دې هم زيات وي مګر دا هم كېدای سي چي دغه فضيلت او امتياز يوازي د ركن يماني سره مختص دی او د حجر اسود لپاره تر دې هم زيات فضيلتونه دي، په دغه حديث كي او تير سوي حديث كي چي په هغه كي دا ذكر سوي وه چي رسول الله صلى الله عليه وسلم د حجر اسود او ركن يماني په مينځ كي ربنا آتنا ...الخ ويل، په دغه دواړو روايتو كي څه تضاد نه سته په دې توګه چي كله رسول الله صلى الله عليه وسلم د طواف په دوران كي ركن يماني ته ورسيدی او په تلو سره يې دغه دعاء ويل شروع كړه نو ظاهره ده چي د دغه دعاء ويل به د ركن يماني او حجر اسود په مينځ كي وي ځكه چي په طواف كولو سره د دعاء لپاره دريدل خو صحيح نه دي نو كوم خلك چي د طواف په دوران كي په دريدو سره دعاء

کوي هغوئ غلطي کوي.

## په طواف کي د تسبيح، تهليل وغيره فضيلت

﴿۲۴۷۵﴾: وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ طَافَ بِالْبَيْتِ سَبْعًا

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي اووه واره د بيت الله شريفي طواف وکړي

وَلَا يَتَكَلَّمُ إِلَّا بِسُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ وَلَا حَوْلَ

او بيا په دغه طوافو کي پرته د بِسُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ وَلَا حَوْلَ

وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ مُحِيَتْ عَنْهُ عَشْرُ سَيِّئَاتٍ وَكُتِبَتْ لَهُ عَشْرُ حَسَنَاتٍ وَرُفِعَ

وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ، بل څه و نه وايي نو د هغه لس ګناهونه رژيږي، لس نيکۍ ليکل کيږي او لوړيږي

لَهُ عَشَرَةُ دَرَجَاتٍ وَمَنْ طَافَ فَتَكَلَّمَ وَهُوَ فِي تِلْكَ الْحَالِ خَاضَ فِي الرَّحْمَةِ بِرِجْلَيْهِ كَخَائِضِ الْمَاءِ بِرِجْلَيْهِ. رواه ابن ماجة.

لس درجې يې او څوک چي طواف وکړي او خبري يې وکړې او دی په دغه حال کي وي نو هغه د رحمت په درياب کي داسي داخليږي لکه څرنګه چي تاسو په درياب کي په خپلو پښو سره داخليږئ. ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\ ۹۸۵، رقم: ۲۹۵۶.

**تشريح**: د حديث د اولي برخي خلاصه داده چي کوم څوک د طواف په حالت کي په تسبيح، تکبير، تهليل او بل شي کي بوخت سي نو د هغه ګناه ليري کيږي د هغه په نيکيو کي زياتوب کيږي او د هغه په درجو کي لوړوالی ورکول کيږي.

دوهمه برخه: او کوم څوک چي طواف وکړي او په دغه حالت کي خبري وکړي دا په حقيقت کي د اولي برخي تکرار دی، او په دغه حالت کي خبري وکړي: دلته د کلام څخه مراد تسبيح، تکبير او داسي ذکر سوي کلمات ويل دي، دوهم وار ځکه دا خبره ذکر سوې ده چي د طواف په حالت کي د دغه کلماتو زيات ثواب بيان کړل سي چي يو ثواب خو هغه دی کوم چي

پورته ذکر سوی دی او یو ثواب دادی ، مگر علماء دا هم وایي چي د حدیث په دغه دوهمه برخه کي د کلام څخه مراد تسبیح، تکبیر او مذکوره کلماتو څخه پرته نور اذکار او د اولیاء او مشائخو منقولاتو او ارشادات وغیره دي .

=========

## بَابُ الْوُقُوف بِعَرَفَةَ ( په عرفات کي د درېدو بیان)

عرفه د یو خاص ځای نوم دی او د زمان په معنی کي هم استعمالیږي په دې توګه چي نهم ذي الحجې ته د عرفې ورځ وایي مگر عرفات په جمع لفظ سره یوازي د دغه خاص ځای لپاره استعمالیږي او دغه جمع د اطرافو او جوانبو په اعتبار ده .

عرفات د مکې مکرمې څخه تقریبا پنځلس نیم مېله (۲۵ کیلو میټره) فاصله باندي واقع دی ، دا یو پراخه شېله یا میدان دی چي په درو غرونو سره راچاپېره او شمال خوا ته یې جبل الرحمة دی .

د عرفات د تسمیې د وجه په اړه ډېر قولونه دي ، ویل کیږي چي کله حضرت آدم علیه السلام او بي بي حوا علیها السلام د جنت څخه په راکښته کېدو سره دې دنیا ته راغلل نو هغوئ دواړو تر ټولو مخکي په دغه ځای کي سره یو ځای سول د دغه تعارف په مناسبت د دغه نوم عرفه سو او دغه ځای ته عرفات وویل سول، یو قول دادی چي حضرت جبرائیل علیه السلام په دغه ځای کي حضرت ابراهیم علیه السلام ته د حج د افعالو تعلیم ورکوی نو هغه به په دغه دوران کي د هغه څخه پوښتنه کول چي عَرَفتَ (یعني کوم تعلیم چي ما درکړی دی په هغه پوه سوې) حضرت ابراهیم علیه السلام به په جواب کي ویل : عَرَفتُ (هو زه پوه سوم) او په پای کي د دواړو په سوال او جواب کي د دغه کلمې استعمال د دغه ځای د تسمیې وجه سو د دې څخه پرته نور قولونه هم دي .

وقوف عرفات یعني پر نهم ذي الحجې هر حاجي د عرفات میدان ته رسیدل د هغه د حج د ادا کولو لپاره تر ټولو لوی رکن دی چي د هغه څخه پرته حج نه صحیح کیږي، د حج دوه رکنونه یعني طواف الافاضة او وقوف عرفات د حج تر ټولو لوی رکنونه دی ځکه که چیري دا پرېښودل سي نو حج نه صحیح کیږي .

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

## د عرفات په ورځ د تکبیر او تلبیه مسئله

﴿۲۴۷۶﴾: عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِيْ بَكْرِ الثَّقَفِيِّ اَنَّهُ سَاَلَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ وَهُمَا

د حضرت محمد بن ابي بکر الثقفي رضي الله عنه څخه روایت دئ چي کله زه او انس بن مالک رضي الله عنه

غَادِيَانِ مِنْ مِنًى إِلَى عَرَفَاتٍ فَكَيْفَ كُنْتُمْ تَصْنَعُونَ فِيْ هٰذَا الْيَوْمِ مَعَ النَّبِيِّ

د منی څخه د عرفات په لور سهار تللو نو هغه زما څخه پوښتنه وکړه چي په نن ورځ کي به تا د رسول الله ﷺ سره څه کول؟

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كَانَ يُهِلُّ مِنَّا الْمُهِلُّ فَلاَ يُنْكَرُ عَلَيْهِ وَيُكَبِّرُ الْمُكَبِّرُ مِنَّا فَلاَ يُنْكَرُ عَلَيْهِ. متفق علیه

انس رضي الله عنه وویل: په موږ کي به لبیک ویونکو لبیک وایه او هغه دديٍ څخه نه منع کېدل او الله اکبر ویونکو به الله اکبر وایه او نه به منع کېدل. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۳\۵۱۰، رقم: ۱۶۵۹، ومسلم ۲\۹۳۳، رقم: ۲۷۴- ۱۲۸۵.

**تشریح**: علامه طیبي رحمه الله فرمایي چي د عرفات په ورځ د حاجیانو تکبیر ویل جائز خو دي لکه څرنگه چي نور اذکار جائز دي مگر سنت نه دي بلکه په دغه ورځ سنت عمل د هغوئ په تلبیه کي بوخت کېدل دي تر څو پوري چي هغوئ د عقبه د رمي څخه فارغ نه سي.

دا خبره خو معلومه ده چي د عرفات د ورځي د سهار څخه د ایام تشریق آخر یعني د ذي الحجې د دیارلسم تاریخ تر مازدیگر پوري د هر فرض لمونځ کونکي لپاره که په حج کي وي او که په حج کي نه وي تکبیر ویل واجب دي.

### په منی کي قرباني

﴿۲۴۷۷﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَحَرْتُ هَاهُنَا

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: ما په دې ځای کي قرباني کړې ده

وَمِنًى كُلُّهَا مَنْحَرٌ فَانْحَرُوا فِي رِحَالِكُمْ وَوَقَفْتُ هَاهُنَا وَعَرَفَةُ كُلُّهَا مَوْقِفٌ

وَوَقَفْتُ هَاهُنَا وَجَمْعٌ كُلُّهَا مَوْقِفٌ . رواه مسلم .

او ټوله منا د قرباني ځای دئ نو تاسو په خپلو خیمو کي قرباني وکړئ او زه دلته ولاړ یم ، او د عرفات ټول میدان د درېدو ځای دئ او ما په دې ځای کي (مزدلفه) قیام وکړ او د مزدلفې ټول ځای د قیام دئ . مسلم .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\ ۸۹۳، رقم: ۱۴۹- ۱۲۱۸.

**د لغاتو حل**: جمع: ای مزدلفه.

**تشريح**: په دغه ځای سره رسول الله ﷺ د منی هغه ځای ته اشاره وکړه چیري چي رسول الله ﷺ قرباني وکړه دغه ځای ته منحر النبي (یعني د نبي کریم ﷺ د قربانۍ کولو ځای) ویل کیږي، رسول الله ﷺ دغه ځای ته په اشاره کولو سره وفرمایل چي ما خو دلته قرباني کړې ده مګر په منی کي هر ځای قرباني کیدای سي ځکه چي هلته په هر ځای کي قرباني کول سنت دي ، همدارنګه رسول الله ﷺ په عرفات کي د خپل وقوف ځای ته په اشاره کولو سره وفرمایل چي زه خو په عرفات کي په دغه ځای کي تم سوم مګر د عرفات په هر ځای کي وقوف کیدای سي .

مزدلفې ته جمع وايي رسول الله ﷺ د دغه ځای په باره کي د خپل وقوف ځای ته چي مشعر حرام ته نژدې دی په اشاره کولو سره وفرمایل چي ما خو دلته وقوف کړی دی مګر په مزدلفه کي هر ځای د وادي محسر څخه وقوف کیدای سي . د حدیث خلاصه داده چي په منی کي هر ځای قرباني کېدای سي او په عرفات او مزدلفه کي هر ځای د وادي محسر څخه پرته وقوف کیدای سي مګر دا ظاهره ده چي رسول الله ﷺ په کوم ځای کي قرباني کړې ده او کوم ځای یې وقوف کړی دی هلته قرباني کول او وقوف کول غوره دي.

## د عرفات دورځي فضيلت

﴿۲۴۷۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنْ

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

يَوْمٍ أَكْثَرَ مِنْ أَنْ يُعْتِقَ اللّٰهُ فِيهِ عَبْدًا مِنَ النَّارِ مِنْ يَوْمِ عَرَفَةَ وَإِنَّهُ لَيَدْنُو

الله تعالی د عرفات تر ورځي زیات په هیڅ یو ورځ خپل بندګان د دوږخ د اور څخه نه آزادوي او په دې ورځ الله تعالی په خپل رحمت او مغفرت سره بندګانو ته نژدې کیږي

ثُمَّ يُبَاهِي بِهِمُ الْمَلَائِكَةَ فَيَقُولُ مَا أَرَادَ هَؤُلَاءِ . رواه مسلم

او د ملائکو په وړاندې په حج کونکو فخر کوي او فرمايي : دا خلک څه غواړي ؟ . مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۹۸۲، رقم: ۴۲۶- ۱۳۴۸.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د امام د موقف څخه لیرې کېدل

﴿۲۴۷۹﴾: عَنْ عَمْرِو بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ صَفْوَانَ عَنْ خَالٍ لَّهُ يُقَالُ لَهُ يَزِيْدُ بْنُ

حضرت عمرو بن عبدالله بن صفوان رضي الله عنه د خپل ماما يزيد بن شيبان څخه روايت کوي چي

شَيْبَانَ قَالَ كُنَّا فِيْ مَوْقِفٍ لَّنَا بِعَرَفَةَ يُبَاعِدُهُ عَمْرٌو مِّنْ مَوْقِفِ الْإِمَامِ جِدًّا

موږ په عرفات کي پر خپل ځای تم سوي وو امام د تم ځای څخه ډېر لیرې وو

فَأَتَانَا ابْنُ مِرْبَعٍ الْأَنْصَارِيّ فَقَالَ إِنِّيْ رَسُوْلُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د مربع انصاري زوی موږ ته راغلئ او وه یې ویل : زه د رسول الله ﷺ پيغام راوړونکی يم

إِلَيْكُمْ يَقُوْلُ لَكُمْ قِفُوْا عَلٰى مَشَاعِرِكُمْ فَإِنَّكُمْ عَلٰى إِرْثٍ مِّنْ إِرْثِ أَبِيْكُمْ

او دا پيغام مي راوړی دئ چي تاسو په عرفات کي په کوم ځای کي تم یاست هلته تم اوسئ تاسو د خپل پلار

إِبْرَاهِيْمَ عَلَيْهِ السَّلَامُ . رواه الترمذي وأبو داود والنسائي وابن ماجه

ابراهيم عليه السلام پر ميراث یاست ، . ترمذي، ابوداؤد او نسائي .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\ ۲۳۰، رقم: ۸۸۳، وابوداودد ۲\ ۴۶۹، رقم: ۱۹۱۹، والنسائي ۵\ ۲۵۵، رقم: ۳۰۱۴، وابن ماجه ۲\۱۰۰۱- ۱۰۰۲، رقم: ۳۰۱۱.

**تشريح**: په عربو کي د اسلام د ظهور څخه مخکي دا رواج وو چي د عرفات په میدان کي به د هري قبيلې او هر قوم لپاره جلا جلا ځای موقف ټاکلی وو ، هر سړي به په هغه ځای کي وقوف کوی کوم چي د هغه د قوم لپاره ټاکلی سوی وو، د يزيد بن شيبان د قبيلې موقوف چي په کوم

ځای کي وو هغه ځای د هغه څخه ډېر لیري وو چیري چي رسول الله ﷺ وقوف کړی وو نو په حدیث کي د امام د موقوف څخه مراد د رسول الله ﷺ موقوف دی.

بهر حال د عرفات په میدان کي د رسول الله ﷺ څخه د دومره لیري والي په وجه یزید بن شیبان رضي الله عنه وښتل چي رسول الله ﷺ ته ووایي چي تاسو موږ ته هم خپل نژدې د وقوف اجازه راکړئ، رسول الله ﷺ چي دا محسوسه کړه چي دوئ ددې خبري خواست کونکي دي نو د یو صحابي په ذریعه چي د هغه نوم ابن مربع وو دا پیغام ولیږی چي تاسو خلک پر خپل پخواني موقف باندي وقوف وکړئ، په حدیث کي د مشاعر څخه مراد د هغوئ پخواني موقف دی او تاسو خلک د خپل هغه موقف څخه کوم چي ستاسو د پلار او نیکه څخه ستاسو لپاره تاکل سوی دی د منتقل کېدو کوښښ مه کوئ ځکه اول خو ټول د عرفات میدان موقف دي او دوهم دا چي د عرفات په میدان کي د امام د موقف په لیري والي یا نژدیوالې سره څه فرق نه رامنځته کیږي او بیا دا چي هر څوک دا خواهش لري چي زه د خپل امام او امیر نژدې موقف وکړم نو دا ځرنګه ممکن کیدای سي ځکه رسول الله ﷺ دا خبره د هغوئ د ډاډ لپاره وکړه تر څو په خپل مینځ کي د اختلاف صورت پیدا نه سي.

## د حرم په حدود کي هر ځای قرباني کیدای سي

﴿۲۴۸۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُلُّ عَرَفَةَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د عرفات ټول میدان

مَوْقِفٌ وَكُلُّ مِنًى مَنْحَرٌ وَكُلُّ الْمُزْدَلِفَةِ مَوْقِفٌ وَكُلُّ فِجَاجِ مَكَّةَ طَرِيقٌ وَمَنْحَرٌ. رواه ابوداؤد والدارمي.

د تم کېدو ځای دئ او ټوله منا د قرباني ځای دئ او ټول مزدلفه د تم کېدو ځای دئ او د مکې هره لار او هره کوڅه د قرباني ځای دئ. ابوداؤد او دارمي.

**تخریج**: ابوداود في السنن ۲\۴۷۸، رقم: ۱۹۳۷، والدارمي ۲\۷۹، رقم: ۱۸۷۹.

**تشریح**: د حدیث د آخري الفاظو مطلب دادی چي پر کومه لار باندي مکې ته ولاړ سئ هغه صحیح ده او په مکه کي چیري چي وغواړئ د قرباني حیوان حلال کړئ ځکه چي د قرباني حیوان په حرم کي ذبح کول پکار دي او مکه په حرم کي واقع ده، دا بېله خبره ده چي د قرباني

حیوان په منی کي د ذبح کولو رواج جوړ سوی دی ځکه چي د قربانۍ په ورځ چي هغه د ذي الحجې لسم تاریخ دی حاجیان په منی کي وي ځکه نو خپله قرباني هم هلته کوي.

خلاصه دا چي رسول الله ﷺ دا خبره د جواز د بیان په وجه وفرمایل کنه نو هغه ځای غوره دی چیري چي رسول الله ﷺ وقوف کړی وي یا په کوم ځای کي چي یې د قربانۍ حیوان حلال کړی وي او هغه لار غوره ده پر کوم چي رسول الله ﷺ مکې ته راغلی وي.

## د رسول الله ﷺ خطبه

﴿۲۴۸۱﴾: وَعَنْ خَالِدِ بْنِ هَوْذَةَ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ النَّاسَ يَوْمَ عَرَفَةَ عَلَى بَعِيرٍ قَائِمٌ فِي الرِّكَابَيْنِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت خالد بن هوذة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما د عرفات په ورځ رسول الله ﷺ پر اوښ سپور د خلکو په منځ کي په خطبه ویلو ولیدئ په داسي حال کي چي رسول الله ﷺ په رکابو کي پښې مبارکي اچولي ولاړ وو. ابوداؤد.

**تخریج**: ابوداود في السنن ۲\۴۶۹، رقم: ۱۹۱۷.

**تشریح**: د لوړوالي لپاره رسول الله ﷺ پر رکابونو ودریدی او بیا یې خطبه وفرمایل تر څو لیري او نژدې ټول خلک یې واوري.

## د عرفات د ورځي دعاء

﴿۲۴۸۲﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ

وَسَلَّمَ قَالَ خَيْرُ الدُّعَاءِ دُعَاءُ يَوْمِ عَرَفَةَ وَخَيْرُ مَا قُلْتُ أَنَا وَالنَّبِيُّونَ مِنْ

فرمایلي دي: د عرفات د ورځي دعاء د دعاگانو څخه ده او د شیانو څخه غوره شی چي زما او زما څخه وړاندي انبیاؤ ته ویل سوی دئ

قَبْلِي لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ. رواه الترمذي و روى مالك عن طلحة ابن عبيدالله الى قوله لا شريك له.

(هغه دادئ) : لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ . ترمذي او مالک د حضرت طلحه بن عبيد الله ځخه روايت تر لاشريک له ، پوري روايت کړئ دئ.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۵۳۴، رقم: ۳۵۸۳.

## د شيطان د ذلت ورځ

﴿۲۴۸۳﴾: عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ كَرِيزٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت طلحة بن عبيدالله بن كريز رضي الله عنه ځخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

قَالَ مَا رُئِيَ الشَّيْطَانُ يَوْمًا هُوَ فِيهِ أَصْغَرُ وَلَا أَدْحَرُ وَلَا أَحْقَرُ وَلَا أَغْيَظُ مِنْهُ

شيطان د عرفات تر ورځي زيات ذليل، زيات رټل سوی ، زيات سپک او زيات غضبناک په بل هيڅ ورځ نه دی ليدل سوی،

فِي يَوْمِ عَرَفَةَ وَمَا ذَاكَ إِلَّا لِمَا رَأَى مِنْ تَنَزُّلِ الرَّحْمَةِ وَتَجَاوُزِ اللّٰهِ عَنِ الذُّنُوبِ

او دا ځکه چي په دې ورځ کي شيطان د الله تعالى رحمتونه نازليدونکيويني اوويني چي الله تعالى په دې ورځ لوی لوی ګناهونه بخښي

الْعِظَامِ إِلَّا مَا أُرِيَ يَوْمَ بَدْرٍ فَقِيلَ وَمَا رَأَى يَوْمَ بَدْرٍ قَالَ فَإِنَّهُ قَدْ رَأَى جِبْرِيلَ يَزَعُ الْمَلَائِكَةَ . رواه مالك مرسلا و في شرح السنة بلفظ المصابيح

د بدر په ورځ هم شيطان وليدل چي جبرائيل عليه السلام (د كفارو سره د جګړې لپاره) د ملائكي صفو ته ترتيب ورکوئ له دې کبله په دې ورځ هم شيطان ډير ذليل او خوار سو . مالک مرسلا او شرح السنة .

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\۴۲۲، رقم: ۲۴۵، شرح السنة ۷\۱۵۸، رقم: ۱۹۳۰.

**د لغاتو حل**: ادحر: اسم تفضيل من الدحر وهو الطرد والابعاد (ليري کول او شړل).

## د عرفات د ورځي فضيلت

﴿۲۴۸۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ يَوْمُ

د حضرت جابر رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د عرفات په ورځ

عَرَفَةَ إِنَّ اللهَ يَنْزِلُ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا فَيُبَاهِي بِهِمُ الْمَلَائِكَةَ فَيَقُولُ انْظُرُوا

الله تعالی د دنیا آسمان ته نزول فرمایي او د ملائکو په وړاندي په حج کوونکو فخر کوي او فرمايي: وګورئ

إِلَى عِبَادِي أَتَوْنِي شُعْثًا غُبْرًا ضَاجِّينَ مِنْ كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ أُشْهِدُكُمْ أَنِّي قَدْ

زما بندګانو ته چي پریشانه وربېنتان، په ګرد لړلي او په لارو کي ما یادونکي زما په لور راځي زه تاسو شاهدان کوم چي ما

غَفَرْتُ لَهُمْ فَيَقُولُ الْمَلَائِكَةُ يَارَبِّ فُلَانٌ كَانَ يُرَهَّقُ وَفُلَانٌ وَفُلَانَةُ قَالَ

دوئ و بخښل، د دې په اورېدو سره ملائکي وايي اې پروردګاره ! په دوئ کي خو فلانی سړی هم دئ چي د هغه په اړه ویلي سوي دي چي ګناه کار دئ او فلانی سړی او فلانۍ ښځه هم ده چي ګناه کار دي،

يَقُولُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ قَدْ غَفَرْتُ لَهُمْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا

الله تعالی فرمائي ما دوئ هم بخښلي دي، رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالی خپلو بندګانو ته

مِنْ يَوْمٍ أَكْثَرَ عَتِيقًا مِّنَ النَّارِ مِنْ يَوْمِ عَرَفَةَ. رواه في شرح السنة

د عرفات تر ورځي زیات په هیڅ ورځ د اور څخه نجات نه ورکوي . شرح السنة.

**تخريج**: شرح السنة ۱۵۹/۷، رقم: ۱۹۳۱.

**د لغاتو حل**: يُرهق: ای يتهم بسوء الی غشيان المحارم.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### په عرفات کي د وقوف حکم

﴿۲۴۸۵﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ قُرَيْشٌ وَمَنْ دَانَ دِينَهَا يَقِفُونَ بِالْمُزْدَلِفَةِ

د حضرت عائشي رضی اللہ عنہا څخه روايت دئ چي قريش او د هغوئ هم مذهبه خلکو به (د جاهلیت په

زمانه کي) په مزدلفه کي قيام کوئ

وَكَانُوا يُسَمَّوْنَ الْحُمْسَ فَكَانَ سَائِرُ الْعَرَبِ يَقِفُونَ بِعَرَفَاتٍ فَلَمَّا جَاءَ الْإِسْلَامُ

او شجاع او بهادر به ورته وويل سول او د عربو پاته قبيلې به په عرفات کي تم کېدې، بيا د اسلام راتلو وروسته

أَمَرَ اللّٰهُ نَبِيَّهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَأْتِيَ عَرَفَاتٍ فَيَقِفَ بِهَا ثُمَّ يُفِيضَ

الله تعالی خپل نبي ته حکم ورکړ چي (ټول خلک دي) عرفات ته راسي او قيام دي وکړي او بيا د هغه ځای څخه دي ستانه کېږي

مِنْهَا فَذَلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَى { ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ } . متفق عليه

او د الله تعالی ددې ارشاد مطلب دادئ: ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۱۸۶، رقم: ۴۵۲۰، ومسلم ۲\۸۹۳، رقم: ۱۵۱- ۱۲۱۹.

**د لغاتو حل**: حُمس: جمع احمس من الحماسة اى الشجاعة (مېړانه).

**تشريح**: مزدلفه د حرم په حدود کي واقع ده او عرفات د حرم څخه وتلی دی، قريشو او د هغو ملګرو به پر نورو خلکو باندي د خپل غوره والي او فضيلت ښودلو لپاره په مزدلفه کي قيام کوی او ويل به يې چي موږ د اهل الله څخه يو او د الله تعالی د حرم اوسيدونکي يو ځکه نو موږ د حرم څخه د باندي وقوف نه سو کولای د قريشو څخه پرته ټول اهل عرب به د قاعدې سره سم د عرفات په ميدان کي قيام کوی، کله چي د اسلام رڼا د لېبيز تيارې ختمي کړې او د قبيلې او ذات په مينځ کي فرق او امتياز يې ختم کړی نو دا حکم وکړل سو چي څرنګه نور ټول خلک د عرفات په ميدان کي وقوف کوی همدارنګه قريش دي هم د عرفات په ميدان کي وقوف کوی او په داسي کولو سره دي په خپل مينځ کي د امتياز او فرق ديوال نه دروي.

## په مزدلفه کي د رسول الله ﷺ دعاء

﴿۲۴۸۶﴾: وَعَنْ عَبَّاسِ بْنِ مِرْدَاسٍ أَنَّ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعَا

د حضرت عباس بن مرداس ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ دعاء وغوښتل

لِأُمَّتِهِ عَشِيَّةَ عَرَفَةَ بِالْمَغْفِرَةِ فَأُجِيبَ إِنِّي قَدْ غَفَرْتُ لَهُمْ مَا خَلَا الظَّالِمَ

د عرفات په ماښام د خپل امت د بخښني لپاره، د دعاء په قبلېدو سره الله تعالى ورته وفرمايل: ما تول و بخښل مگر ظالم نه بخښم

فَإِنِّي آخُذُ لِلْمَظْلُومِ مِنْهُ قَالَ أَيْ رَبِّ إِنْ شِئْتَ أَعْطَيْتَ الْمَظْلُومَ مِنَ الْجَنَّةِ

او د مظلوم حق به خامخا د هغه څخه اخلم، د رب العزت په دربار کي رسول الله ﷺ عرض وکړ اې پروردګاره! که ته وغواړې نو مظلوم ته به جنت ورکړې

وَغَفَرْتَ لِلظَّالِمِ فَلَمْ يُجِبْ عَشِيَّتَهُ فَلَمَّا أَصْبَحَ بِالْمُزْدَلِفَةِ أَعَادَ الدُّعَاءَ

او ظالم به و بخښې مگر دا خواست د عرفات په ماښام قبول نه سو بيا چي په مزدلفه کي سهار سو نو رسول الله ﷺ بيا دغه دعاء وغوښتل

فَأُجِيبَ إِلَى مَا سَأَلَ قَالَ فَضَحِكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْ قَالَ

او د رسول الله ﷺ د غوښتني سره سم د رسول الله ﷺ دعاء قبوله سوه، د راوي بيان دئ چي (د دعاء قبلېدو وروسته) رسول الله ﷺ وخندل

تَبَسَّمَ فَقَالَ لَهُ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي إِنَّ هَذِهِ لَسَاعَةٌ مَا كُنْتَ

يا مسکی سو، حضرت ابوبکر رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه عرض وکړ: زموږ مور او پلار دي پر تاسو قربان وي دا وخت خو د خندا نه دئ تاسو ولي

تَضْحَكُ فِيهَا فَمَا الَّذِي أَضْحَكَكَ أَضْحَكَ اللَّهُ سِنَّكَ قَالَ إِنَّ عَدُوَّ اللَّهِ إِبْلِيسَ

وخندل؟ الله تعالى دي هميشه تاسو خندېدونکي لري، رسول الله ﷺ وفرمايل: د الله تعالى دښمن ابليس ته

لَمَّا عَلِمَ أَنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ قَدِ اسْتَجَابَ دُعَائِي وَغَفَرَ لِأُمَّتِي أَخَذَ التُّرَابَ

چي څرگنده سوه چي الله تعالى زما دعاء قبوله کړه او زما امت يې و بخښئ نو هغه پر سر

فَجَعَلَ يَحْثُوهُ عَلَى رَأْسِهِ وَيَدْعُو بِالْوَيْلِ وَالثُّبُورِ فَأَضْحَكَنِي مَا رَأَيْتُ مِنْ جَزَعِهِ. رواه ابن ماجة وروى البيهقي في كتاب البعث والنشور نحوه.

خاوري اچولې په افسوس کولو سره و تبنتېدئ ما چي هغه پريشانه او بد حاله وليدئ نو ما ته خندا راغلل. ابن ماجه او بيهقي.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۰۰۲، رقم: ۳۰۱۳.

**تشريح**: د دغه حديث د ظاهري مفهوم څخه دا معلومېږي چي امت په عامه بخښنه سره نازول سوی دی چي حقوق الله يې هم و بخښل او حقوق العباد هم، ځکه نو غوره داده چي د حديث په مفهوم کي دا قيد ولګول سي چي د دغه بخښني تعلق د هغه خلکو سره دی چي سږ کال د حج پر موقع د رسول الله ﷺ سره ملګري وه يا دا خبره د هغه سړي په حق کي ده چي د هغه حج مقبول سي په دې توګه چي د هغه په حج کي د فسق او فجور څه خبره نه وي سوې.

او يا دا چي د دغه حديث مفهوم د هغه پر ظاهر باندي محمول دی چي هغه ته د توبې توفيق و کړل سي او هغه په صداقت او اخلاص سره توبه وکړي مګر د حق د بيرته ورکولو څخه عاجز او معذور وي بيا دا چي د الله تعالی رحمت چا ته چي وغواړي په خپل لمن کي پټولای سي لکه چي فرمايي: إِنَّ اللّهَ لاَ يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَن يَشَاء، بېله شکه الله تعالی دا نه معافوي چي د هغه سره څوک شريک کړل سي، مګر د مشرک څخه پرته چا ته چي وغواړي بخښي يې.

شاه ولي الله رحمة الله عليه د رسول الله ﷺ د شفاعت او عامي بخښني په اړه فرمايي چي د رسول الله ﷺ شفاعت به هر مسلمان ته حاصل وي که صالح وي او که ګناه کار او د هغه صورت به دا وي چي الله تعالی د رسول الله ﷺ د شفاعت په وجه په جنت کي د صالح او نيکانو خلکو درجې لوړوي او اکثر ګناه کار به په بخښلو سره په جنت کي داخل کړي، اوس پاته سول هغه خلک چي په دوږخ کي دي نو د هغوئ په حق کي به د رسول الله ﷺ د شفاعت اثر دا وي چي د هغوئ په عذاب کي به تخفيف او د عذاب په وخت کي به کمي وکړل سي، همدارنګه د الله تعالی مغفرت او بخښنه به هم انشاء الله هر مسلمان ته حاصل سي که هغه صالح وي او که ګناه کار په دې توګه چي په جنت کي به د صالح او نيکانو درجې د هغه د جزاء او انعام څخه زياتي وي کوم چي د هغه د نيکو اعمالو په وجه مستحق وي او د فاجر او ګناه کار په حق کي به مغفرت دا وي چي يا خو به هغوئ په خپل فضل او کرم سره بېله عذابه په جنت کي داخل کړي او يا د هغوئ د عذاب په سختی کي به کمي وکړل سي دا هم د مغفرت يو ډول دی.

========

# بَابُ الدَّفْعِ مِنْ عَرَفَةَ وَالْمُزْدَلِفَةَ

## د عرفات او مزدلفې څخه ستنېدل

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د عرفات څخه د رسول الله ﷺ تګ

﴿۲۴۸۷﴾: عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سُئِلَ أُسَامَةُ بن زيد كَيْفَ كَانَ

هشام بن عروة د خپل پلار څخه روايت کوي چې د اسامه بن زيد رضي الله عنه څخه پوښتنه وسول چې

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسِيْرُ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ حِيْنَ دَفَعَ قَالَ كَانَ يَسِيْرُ

الْعَنَقَ فَإِذَا وَجَدَ فَجْوَةً نَصَّ. متفق عليه

د حجة الوداع څخه عرفات ته د ستنېدو په وخت کې رسول الله ﷺ څنګه تلئ ؟ هغه وويل: رسول الله ﷺ په تيز تګ ولاړئ او کوم ځاى چې يې پراخه لاره تر لاسه کړه نو رسول الله ﷺ خپل سپرلی ځغلول. بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۵۱۸، رقم: ۱۶۶۶، ومسلم ۲\۹۳۶، رقم: ۲۸۳-۱۲۸۶.

**د لغاتو حل:** العَنَق: اى السير السريع (تېز تګ). نص: اى سار سيرا اسرع. (تېز تګ).

﴿۲۴۸۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّهُ دَفَعَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ عَرَفَةَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چې د عرفات په ورځ هغه د رسول الله ﷺ سره ستون سو ،

فَسَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَاءَهُ زَجْرًا شَدِيْدًا وَضَرْبًا لِلْإِبِلِ فَأَشَارَ

رسول الله ﷺ تر خپل شا د حيوان په سختئ سره وهلو او د تيز شړلو شور واوريدئ نو رسول الله ﷺ خپلي غمچيني ته په حرکت ورکولو سره اشاره وکړه

بِسَوْطِهِ إِلَيْهِمْ وَقَالَ أَيُّهَا النَّاسُ عَلَيْكُمْ بِالسَّكِيْنَةِ فَإِنَّ الْبِرَّ لَيْسَ بِالْإِيْضَاعِ.

رواه البخاري.

خلک يې مخاطب کړل او ورته وه يې فرمايل: اې خلکو! په آرامه سره ځئ ځغلول کومه نيکي نه ده. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۵۲۳، رقم: ۱۶۷۱.

**د لغاتو حل**: ايضاع: وهو حمل الابل على سرعة السير.

**تشريح**: ځغلول نيکي نه ده: مطلب دادی چي نيکي يوازي د سپرليو په ځغلولو کي نه سته بلکه د نيکۍ اصل خو د حج د افعالو ادا کول او د ممنوعاتو څخه ځان ساتل دي، خلاصه دا چي نيکيو ته تلوار کول که څه هم ښه کار دی مګر داسي تلوار ښه نه دی چي سړي مکروهاتو ته ورسوي او پر کوم شي چي د ګناه ترتب وي، ددغه مفهوم په رڼا کي په دغه حديث او مخکني حديث کي څه تضاد نه سته.

## پر له پسې لبيک ويل

﴿۲۴۸۹﴾: وَعَنْهُ أَنَّ أُسَامَةَ بن زيد كَانَ رِدْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي اسامه بن زيد رضي الله عنهما د عرفات څخه تر مزدلفې پوري د رسول الله ﷺ سره پر سپرلۍ تر شا ناست وو،

عَرَفَةَ إِلَى الْمُزْدَلِفَةِ ثُمَّ أَرْدَفَ الْفَضْلَ مِنَ الْمُزْدَلِفَةِ إِلَى مِنًى فَكِلَاهُمَا قَالَ لَمْ

بيا د مزدلفې څخه تر منا پوري فضل بن عباس رضي الله عنهما د رسول الله ﷺ تر شا ناست وو د دواړو بيان

يَزَلِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُلَبِّي حَتَّى رَمَى جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ. متفق عليه

دئ چي رسول الله ﷺ په دې سفر کي پر له پسې لبيک وايه تر څو چي رسول الله ﷺ په جمره عقبه کي رمي وکړه (جمره عقبه يې وويشتل). بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۵۲۳، رقم: ۱۶۸۶، ومسلم ۲\۹۳۱، رقم: ۲۶۶- ۱۲۸۰.

## په مزدلفه کي جمع بين الصلوتين

﴿۲۴۹۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ جَمَعَ النَّبِيُّ ﷺ الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ بِجَمْعٍ كُلُّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا بِإِقَامَةٍ وَلَمْ يُسَبِّحْ بَيْنَهُمَا وَلَا عَلَى إِثْرِ كُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا. رواه البخاري

د حضرت ابن عمر ؓ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ په مزدلفه کي د ماښام او ماخستن لمنځونه يو ځای وکړل او د هر يوه لپاره يې بيل بيل تکبير وکړ او د هغو په منځ کي يې سنت نه وکړل او نه يې نفل او نه يې د هغه وروسته څه ولوستل . بخاري .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري) : ٢\٥٢٣، رقم: ١٦٧٣.

**تشريح** : د دغه لمونځو څخه وروسته د نفل لمانځه کولو چي کومه نفي سوې ده نو د دغه دواړو څخه وروسته د سنت او وتر کولو نفي نه لازميږي .

په باب قصة حجة الوداع کي د حضرت جابر ؓ اوږد حديث تېر سوی دی د هغه د دغه الفاظو (لم يسبح بينهما شيئا) په وضاحت کي ملا علي قاري رحمه الله ليکلي دي چي په مزدلفه کي رسول الله ﷺ د ماښام او ماخستن لمونځ وکړ او د ماښام او ماخستن سنت او وتر يې هم وکړل، په يوه روايت کي دا هم نقل سوي دي او شيخ عابد سندهي هم د درمختار په حاشيه کي په دې اړه د علماؤ اختلافي قولونو نقل کولو څخه وروسته دا ليکلي دي چي صحيح خبره داده چي رسول الله ﷺ د ماخستن د لمانځه څخه وروسته سنت او وتر وکړل .

﴿٢٤٩١﴾ : وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت عبد الله بن مسعود ؓ څخه روايت دئ چي ما هيڅکله رسول الله ﷺ ليدلی نه دئ

صَلَّى صَلَاةً اِلاَّ لِمِيقَاتِهَا إِلَّا صَلَاتَيْنِ صَلٰوةَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ بِجَمْعٍ وَصَلَّى الْفَجْرَ يَوْمَئِذٍ قَبْلَ مِيقَاتِهَا . متفق عليه

په ناوخته لمونځ کولو مگر د دوه لمنځونه يعني د ماښام او ماخستن لمنځونه رسول الله ﷺ په مزدلفه کي يو ځای وکړل او په دې ورځ يې د سهار لمونځ د عام وخت څخه وړاندي وکړ . بخاري او مسلم

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري) : ٣\٥٣٠، رقم: ١٦٨٢، ومسلم ٢\٩٣٨، رقم: ٢٩٢-١٢٨٩.

**تشريح** : دلته يوازي د ماښام او ماخستن د لمونځو ذکر سوی دی چي رسول الله ﷺ په مزدلفه کي د ماښام لمونځ د ماخستن په وخت کي وکړ حالانکه رسول الله ﷺ په عرفات کي د ماپښين او مازديگر لمونځ هم يو ځای داسي کړي وه چي د مازديگر لمونځ يې په مخته کولو سره د ماپښين په وخت کي وکړ ، دلته دغه دواړه لمونځونه ځکه ذکر سوي نه دي چي هغه د ورځي

وخت وو او ټول پوهېدل چي رسول الله ﷺ د مازديګر لمونځ په مخته کولو سره د ماپښين په وخت کي کړی دی ځکه د دې په خاصه توګه د ذکر کولو څه ضرورت محسوس نه سو .

د سهار لمونځ يې تر وخت مخکي وکړ: د دې مطلب دا دی چي رسول الله ﷺ په هغه ورځ د سهار لمونځ د معمولي وخت يعني رڼا خپرېدو څخه مخکي په تياره کي کړی وو دلته دا مراد نه دی چي رسول الله ﷺ د سهار د وخت څخه مخکي کړی وو ځکه چي د ټولو علماؤ په نزد د سهار لمونځ د صبح صادق څخه مخکي کول جائز نه دی .

## د مزدلفه څخه د ښځو او کوچنيانو مخکي روانول

﴿۲۴۹۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أَنَا مِمَّنْ قَدَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ الْمُزْدَلِفَةِ فِي ضَعَفَةِ أَهْلِهِ. متفق عليه

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه د هغه خلکو څخه وم چي هغوئ په کمزور ګڼلو سره رسول الله ﷺ د مزدلفې په شپه تر ټولو وړاندي روان کړي وه . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۵۲۶، رقم: ۱۶۷۸، ومسلم ۲\۹۴۱، رقم: ۳۰۱- ۱۲۹۳.

**د لغاتو حل**: ضعفة: اى من النساء والصبيان (ماشومان او ښځي).

**تشريح**: د کمزورو او ضعيفو خلکو څخه مراد ښځي او کوچنيان دي چي رسول الله ﷺ پر لسم د ذي الحجې تر مخه منى ته استولي وه چي په هغوئ کي ابن عباس رضي الله عنهما هم شامل وو او خپله رسول الله ﷺ د لمر ختلو څخه مخکي او د سهار د رڼا خپرېدو وروسته د منى لپاره سپور سو لکه څرنګه چي سنت دي ، رسول الله ﷺ خپل کورنۍ ځکه مخته استولې وه چي د رش په وجه هغوی ته تکليف نه وي او داسي کول جائز دي .

## د رمي جمار وخت

په يوه روايت کي دي کوم چي مخته را روان دی رسول الله ﷺ هغه خلک مخته استولي وه او هغوئ ته يې وفرمايل چي د جمره عقبه رمي د لمر ختلو څخه وروسته وکړئ ، د امام ابو حنيفة رحمه الله دا مذهب دی چي د جمره عقبه رمي د لسم ذي الحجې په ورځ د لمر ختلو څخه وروسته شروع کيږي مګر په ځينو رواياتو کي نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ هغه خلکو ته يوازي دومره ويلي وه چي ولاړ سئ او د جمره عقبه رمي وکړئ ، په ځينو روايتو کي د لمر ختلو قيد نه سته ، امام شافعي او امام احمد رحمة الله عليهما په دغه روايت عمل کړی دی ، د دوئ

په نزد د جمره عقبه د رمي وخت د نيمي شپې څخه وروسته شروع کيږي.

## د رمي لپاره ډبري

(۲۶۹۳): وَ عَنِ الْفَضْلِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَكَانَ رَدِيفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي فضل بن عباس رضي الله عنهما چي د رسول الله ﷺ ترشا پر

وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ فِي عَشِيَّةِ عَرَفَةَ وَغَدَاةِ جَمْعٍ لِلنَّاسِ حِينَ دَفَعُوا عَلَيْكُمْ

سپرلی سپور وو بيان وکړ چي د عرفات په ماښام او د مزدلفې په سهار چي خلکو سپرلی په تيزي سره شړلې او وهلې، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

بِالسَّكِينَةِ وَهُوَ كَافٌّ نَاقَتَهُ حَتَّى دَخَلَ مُحَسِّرًا وَهُوَ مِنْ مِنًى قَالَ عَلَيْكُمْ

ورو نو کرار کرار ځئ، رسول الله ﷺ دغه وخت او ښه تم کړه بيا چي رسول الله ﷺ په وړاندي ولاړ او په وادي محسر کي داخل سو چي په منا کي داخل ده نو رسول الله ﷺ وفرمايل:

بِحَصَى الْخَذْفِ الَّذِي يُرْمَى بِهِ الْجَمْرَةُ وَقَالَ لَمْ يَزَلْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُلَبِّي حَتَّى رَمَى الْجَمْرَةَ. رواه مسلم

د دې ځای څخه تاسو ټول کوچني کوچني ډبري پورته کړئ چي جمره په ولو، د فضل بن عباس رضي الله عنهما بيان دئ چي د جمرې تر وېشتلو پوري رسول الله ﷺ پر له پسې لبيک وايه. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۹۳۱، رقم: ۲۶۸- ۱۲۸۲.

**تشريح**: د عرفات په ورځ په ماښام کي رسول الله ﷺ د عرفات د ميدان څخه تر مزدلفې پوري ولاړی نو هغه وخت فضل بن عباس رضي الله عنهما د رسول الله ﷺ سره پر سپرلی نه وو البته په راتلونکې ورځ پر لسم د ذي الحجې په سهار کي چي د مزدلفې څخه منی ته روان سو نو هغه وخت فضل رضي الله عنه د رسول الله ﷺ تر شا پر سپرلی ناست وو.

خذف په اصل کي په کوچنی ډبري (شګي) يا د خرما په مندکي د شهادت په ګوتو کي په اېښودو سره ويشتلو ته وايي او دلته د خذف څخه مراد دادی چي کوچنی کوچنی ډبري چي د نخود په اندازه وي د دغه ځای څخه پورته کړي چي د جمار د رمي پر وخت په کار راسي.

په دې باره کي مسئله داده چي د رمي لپاره ډبري د مزدلفې څخه د تلو پر وخت د هغه ځای

ځخه یا چیري چي یې زړه وغواړي واخیستل سي، مګر د جمرې ځخه دي هغه ډبري نه اخیستل کیږي په کوم چي جمره ویشتل سوې وي ځکه چي دا مکروه دي مګر که یو څوک د جمرې ځخه ویشتل سوی ډبري واخلي او رمي په وکړي نو دا جائز دي مګر ښه کار نه دی، شمني رحمه الله د نقایه په شرح کي لیکلي دي چي په دغه ډبرو سره رمي خو کافي کیږي مګر داسي کول بد کار دی، په دې باره کي د علماؤ اختلاف دی چي څومره ډبري پورته کړل سي؟ ایا یوازي د هغه ورځي د رمي جمره عقبه لپاره یوازي اووه ډبري پورته کړل سي یا اویا ډبري پورته کړل چي په هغه کي یوازي اووه ډبري د هغه ورځي د جمره عقبه لپاره پکار وي او که پاته درو شپېته ډبري چي په نورو درو ورځو کي پکار کیږي هم پورته کړل سي.

## د رسول الله ﷺ د وصال اطلاع

﴿۲۴۹۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ أَفَاضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ جَمْعٍ وَّعَلَيْهِ

د حضرت جابر رضي الله عنه ځخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د مزدلفې ځخه روان سو نو په آرامه تلئ

السَّكِيْنَةُ وَأَمَرَهُمْ بِالسَّكِيْنَةِ وَأَوْضَعَ فِيْ وَادِيْ مُحَسِّرٍ وَّأَمَرَهُمْ أَنْ يَّرْمُوْا

او خلکو ته یې حکم وکړ چي هغوئ هم په آرام او اطمینان سره ولاړ سي او په وادي محسر کي رسول الله ﷺ په تیز تګ سره ولاړئ او خلکو ته یې حکم ورکړ چي په کوچنۍ کوچنۍ ډبرو سره

بِمِثْلِ حَصَى الْخَذْفِ وَقَالَ لَعَلِّيْ لَا أَرَاكُمْ بَعْدَ عَامِيْ هٰذَا. لَمْ أَجِدْ هٰذَا

جمرې وولئ او پر یوه موقع رسول الله ﷺ وفرمایل: کیدای سي راتلونکی کال زه تاسو ونه وینم

الْحَدِيْثَ فِي الصَّحِيْحَيْنِ إِلاَّ فِيْ جَامِعِ التِّرْمِذِيِّ مَعَ تَقْدِيْمٍ وَّتَأْخِيْرٍ.

ما دا حدیث د جامع ترمذي ځخه پرته په صحیحین (بخاري او مسلم) کي نه ولیدئ او هلته هم په څه فرق سره دئ.

**تخریج**: الترمذي في السنن ۳\۲۳۴، رقم: ۸۸۶.

**تشریح**: د حدیث د آخري الفاظو مطلب دادی چي دغه کال زما د دنیوي ژوند آخري کال دی پ راتلونکي کال کي به د دې دنیا ځخه رخصت سم ځکه تاسو خلک زما ځخه د دین احکام او د حج مسائل زده کړئ په دې وجه دې ته حجة الوداع ویل کیږي چي د دغه حج پر موقع رسول الله ﷺ د دین احکام په پوره توګه خلکو ته ورسول او خپل صحابه کرام یې رخصت او وداع کړل او بیا په

راتلونکي کال يعني د يارلسم هجري کال کي د بيع الاول په مياشت کي رسول الله ﷺ وفات سو.
د صاحب مشکوٰة د قول مطلب دا دی چي صاحب مصابيح دغه حديث په اول فصل کي نقل کړی دی چي د هغه څخه دا معلوميږي چي دغه حديث د صحيحين يعني بخاري او مسلم دی حالانکه داسي نه ده بلکه دا د ترمذي روايت دی ځکه صاحب د مصابيح ته پکار وه چي هغه دغه روايت د اول فصل پر ځای په دوهم فصل کي نقل کړی وای که څه هم په دغه صورت کي د تقديم او تاخير اختلاف بيا هم پاته کيدی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### عرفات څخه د ستنيدو او د مزدلفې څخه د روانيدو وخت

﴿۲۴۹۵﴾: عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ قَيْسِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ خَطَبَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ

د حضرت محمد بن قيس بن مخرمة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ خطبه وفرمايل چي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّ أَهْلَ الْجَاهِلِيَّةِ كَانُوا يَدْفَعُوْنَ مِنْ عَرَفَةَ حِيْنَ تَكُوْنُ

د جاهليت په زمانه کي خلکو به د عرفات څخه هغه وخت روانيدل چي لمر به د خلکو پر سرو

الشَّمْسُ كَأَنَّهَا عَمَائِمُ الرِّجَالِ فِيْ وُجُوْهِهِمْ قَبْلَ أَنْ تَغْرُبَ وَمِنَ الْمُزْدَلِفَةِ

داسي ځرګند سو لکه لنګوټه چي د خلکو پر مخو د دوئ وي يعني د لمر د ډوبيدو څخه وړاندي او مزدلفې څخه به هغه وخت روانيدل چي

بَعْدَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ حِيْنَ تَكُوْنُ كَأَنَّهَا عَمَائِمُ الرِّجَالِ فِيْ وُجُوْهِهِمْ وَإِنَّا لاَ

لمر به دومره پورته سوی وو لکه لنګوټې چي د خلکو پر مخونو دي او موږ به تر هغه وخته پوري د عرفات څخه نه روانيدو تر څو پوري چي لمر به ډوب نه سو، او موږ به

نَدْفَعُ مِنْ عَرَفَةَ حَتّٰى تَغْرُبَ الشَّمْسُ وَنَدْفَعُ مِنَ الْمُزْدَلِفَةِ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ هَدْيُنَا مُخَالِفٌ لِّهَدْيِ عَبَدَةِ الْأَوْثَانِ وَالشِّرْكِ. رواه البيهقي في شعب الإيمان وقال فيه خطبنا وساقه نحوه.

د مزدلفې ځخه د لمر ختلو وړاندي نه وځو او زموږ طریقه د بت پرستو د طریقې ځخه مخالف ده. بیهقي په شعب الایمان کي.

**تخریج**: لم نجده في الشعب.

**تشریح**: مطلب دادی چي د جاهلیت په زمانه کي به خلک د عرفات ځخه په داسي وخت کي تلل کله چي به لمر نیمږ وب سوی وو او د هغه نیمه برخه به دباندي وه د لمر دغه صورت کي د لنګوټې سره مشابهت ورکړل سوی دی چي د لمر نیمه برخه د لنګوټې په شکل کي وي همدا رنګه د مزدلفې ځخه به په داسي وخت کي روانېدل کله چي به د لمر نیمه برخه راختلې وه او نیمه به دننه وه.

صاحب د مشکوة ته ددې تحقیق نه وو سوی چي دا روایت چا نقل کړی دی د مشکوة په اصل نسخه کي لفظ د رواه ځخه وروسته خالي ځای پرېښودل سوی دی البته د یو بلي صحیح نسخې په حاشیه کي دا لیکل سوي دي چي: رواه البیهقي في شعب الایمان وقال خطبنا وساقه نحوه.

## په شپه کي رمي کول جائز نه دي

﴿۲۴۹۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَدَّمَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه ځخه روایت دئ چي د مزدلفې په شپه رسول الله ﷺ موږ د

الْمُزْدَلِفَةِ أُغَيْلِمَةَ بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ عَلَى حُمُرَاتٍ فَجَعَلَ يَلْطَخُ أَفْخَاذَنَا وَيَقُولُ

بني عبد المطلب د کورنۍ سره وړاندي لیږلي وو او موږ پر خرو سپاره وه او زموږ د رخصتولو په وخت کي زموږ په ورنو باندي په لاس وهلو سره رسول الله ﷺ موږ ته وفرمایل:

أُبَيْنِيَّ لَا تَرْمُوا الْجَمْرَةَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ. رواه ابوداؤد والنسائي وابن ماجة

زما کوچنیانو بچیانو! جمره تر هغه وخته پوري په ډبرو مه ولئ تر ځو پوري چي لمر را ونه خیژي. ابن ماجه، ابوداؤد او نسائي.

**تخریج**: ابوداود في السنن ۲\ ۴۸۰، رقم: ۱۹۴۰، والنسائي ۵\ ۲۷۱، رقم: ۳۰۶۴، وابن ماجه في السنن ۲\ ۱۰۰۷، رقم: ۳۰۲۵.

**د لغاتو حل**: یلطخ: ای یضرب. (وهي).

**تشریح**: دا حدیث ددې خبري دلیل دی چي د شپې رمي جائز نه ده، د امام ابو حنیفه رحمه الله او د اکثر علماؤ دا مذهب دی او د امام شافعي رحمه الله په نزد د نیمي شپې ځخه وروسته رمي جائز ده

او د طلوع فجر څخه وروسته د لمر ختلو څخه مخکې رمي که څه هم د ټولو علماؤ په نزد جائز ده مګر امام ابو حنيفة رحمه الله په کراهت سره د جواز قائل دی د حنفي مذهب سره سم د لمر ختلو څخه وروسته رمي مستحب ده.

## د امام شافعي رحمه الله مستدل حديث او د هغه تاويل

﴿۲۴۹۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ أَرْسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأُمِّ سَلَمَةَ

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ د لوی اختر په شپه بي بي ام سلمه

لَيْلَةَ النَّحْرِ فَرَمَتِ الْجَمْرَةَ قَبْلَ الْفَجْرِ ثُمَّ مَضَتْ فَأَفَاضَتْ وَكَانَ ذٰلِكَ الْيَوْمُ

منا ته ليږلې وه، هغې د سهار مخکې جمره په ډبرو وويشتل بيا ولاړه طواف يې وکړ او دا هغه ورځ ده

الْيَوْمَ الَّذِي يَكُونُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَهَا. رواه ابوداؤد.

چې په هغه کې د رسول الله ﷺ د هغې سره د اوسيدو وار وو. ابوداؤد.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۴۸۱، رقم: ۱۹۴۲.

**تشريح**: د حديث په آخري الفاظو کې دې ته اشاره ده چې رسول الله ﷺ بي بي ام سِلمه رضي الله عنها په هغه شپه منی ته ولې وليږل او هغې د شپې رمي ولې وکړه او د ورځې د طواف افاضه څخه ولې فارغه سوه حال دا چې نورو بيبيانو په راتلونکې شپه کې طواف افاضه وکړ؟

امام شافعي رحمه الله د فجر څخه مخکې د رمي جمره د جواز لپاره دا حديث دليل ګرځوي که څه هم افضل د فجر څخه وروسته دی، د امام شافعي رحمه الله څخه پرته نور علماء د دغه حديث په باره کې فرمايي چې دغه سهولت او رعايت دی چې يوازې بي بي ام سلمه ته ورکړل سوی وو د نورو لپاره د ابن عباس رضي الله عنه د ذکر سوي روايت سره سم رمي جائز نه ده او دا هم ممکن ده چې دلته د فجر څخه مراد د سهار لمونځ وي چې بي بي ام سلمه د سهار د لمانځه څخه مخکې د لمر ختلو څخه وروسته رمي وکړه.

## په عمره کې تلبيه کله موقوف کړل سي

﴿۲۴۹۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ يُلَبِّي الْمُقِيمُ اَوِ الْمُعْتَمِرُ حَتّٰى يَسْتَلِمَ الْحَجَرَ. رواه ابوداؤد وقال وروي موقوفا على ابن عباس.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي مقيم يعني په مکه کي اوسيدونکی او عمره کونکی دي تر هغه وخته پوري لبيک وايي تر. څو پوري چي حجر اسود مچ نه کړي . ابوداؤد .

**تخريج** : ابوداود في السنن ۲\۴۰۶، رقم: ۱۸۱۷.

**تشريح** : د مقيم څخه مراد د مکي مکرمې اوسيدونکي دي چي عمره وکړي او د عمره کونکي څخه غير مکي مراد دي چي د عمرې لپاره مکې ته راغلي وي نو په دغه جمله : يلبي المقيم والمعتمر، کي حرف د او د تنويع لپاره دی .

د حديث خلاصه داده چي څرنگه په حج کي د جمره عقبه پر رمي باندي تلبيه موقوف کوي همدارنگه په عمره کي د حجر اسود په مچولو سره تلبيه موقوف کيږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د رسول الله ﷺ د عرفات او مزدلفې په مينځ کي تلل

﴿۲۴۹۹﴾: عَنْ يَّعْقُوْبَ بْنَ عَاصِمِ بْنِ عُرْوَةَ أَنَّهُ سَمِعَ الشَّرِيْدَ يَقُوْلُ أَفَضْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَمَا مَسَّتْ قَدَمَاهُ الْأَرْضَ حَتّٰى أَتٰى جَمْعًا . رواه أبو داود

د حضرت يعقوب بن عاصم بن عروة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه د شريد رضي الله عنه څخه دا هم اوريدلي دي چي زه (د عرفات څخه) د رسول الله ﷺ سره راغلم ، د رسول الله ﷺ قدم پر مځکه نه وو لگيدلی تر څو چي مزدلفې ته ورسيدو . ابوداؤد .(يعني سپور راغلی وو خو اودس تازه کولو ته کښته سوی وو) .

**تخريج** : لم نجده عند ابي داود.

**د لغاتو حل** : جمعا : ای مزدلفة.

**تشريح** : ددغه روايت مقصد دا څرگندول دي چي رسول الله ﷺ د عرفات څخه تر مزدلفې پوري ټوله لار پر سپرلی قطع کړل او پر پښو نه ولاړی، ددې مطلب دا نه دی چي رسول الله ﷺ په ټوله لار کي پر مځکه قدم کښېښودی بلکه په صحيح بخاري کي منقول دي چي د عرفات څخه د ستنېدو پر موقع په لاره کي رسول الله ﷺ د سپرلی څخه په کښته کېدو سره د غره يوې درې ته تشريف يووړ هلته يې اودس مات کړ او بيا يې اودس وکړ ددې په لېدو سره حضرت اسامه رضي الله عنه عرض وکړ چي اې د الله رسوله ! ايا د لمانځه وخت راغلی دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چي د لمانځه وخت خو مخته راځي ، يعني لمونځ به په مزدلفه کي کوو .

## په عرفات کي جمع بين الصلوتين

﴿۲۵۰۰﴾: وَعَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي سَالِمٌ أَنَّ الْحَجَّاجَ بْنَ يُوسُفَ عَامَ

د حضرت ابن شهاب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي سالم بن عبد الله بن عمر رضي الله عنهما ما ته بيان وکړ چي حجاج بن يوسف په کوم کال چي

نَزَلَ بِابْنِ الزُّبَيْرِ سَأَلَ عَبْدَ اللّٰهِ كَيْفَ تَصْنَعُ فِي الْمَوْقِفِ يَوْمَ عَرَفَةَ فَقَالَ

عبد الله بن زبير قتل کړ په هغه کال يې عبد الله بن عمر څخه پوښتنه وکړه چي په عرفات کي د درېدو په ورځ موږ څه وکړو ؟ سالم بن عبد الله جواب ورکړ

سَالِمٌ إِنْ كُنْتَ تُرِيدُ السُّنَّةَ فَهَجِّرْ بِالصَّلَاةِ يَوْمَ عَرَفَةَ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

که ته پر سنت عمل کول غواړې نو د عرفات په ورځ د ماپښين او مازديګر لمونځ وختي وکړه ، عبد الله بن عمر وويل :

عُمَرَ صَدَقَ إِنَّهُمْ كَانُوا يَجْمَعُونَ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ فِي السُّنَّةِ فَقُلْتُ لِسَالِمٍ

سالم رښتيا وويل ، صحابه کرامو به د سنت طريقه ادا کولو لپاره د ماپښين او مازديګر لمنځونه يو ځای کول ، ابن شهاب وايي ما سالم ته وويل

أَفَعَلَ ذٰلِكَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سَالِمٌ وَهَلْ يتبعُونَ فِي ذٰلِكَ إِلَّا سُنَّتَهُ . رواه البخاري .

ايا رسول الله ﷺ به همداسي کول ؟ سالم وويل : په دې اړه موږ د رسول الله ﷺ د سنت پيروي کوو . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري) : ۳ \ ۸۰۴ ، رقم : ۱۶۶۲ .

**تشريح**: کوم څوک چي د اسلامي تاريخ څخه لږ هم خبر وي نو هغه به د حجاج بن يوسف د نامه څخه ښه خبر وي دا يو د ظلم او بربريت په قصو کي د خپل يو لوی وحشتناک قصې حامل دی.

حجاج بن يوسف چي د هغه نوم ظالم ګرځيدلی دی ، ويل کيږي چي هغه يو لک شل زره کسان په تړلو سره قتل کړي دي . د عبد الملک ابن مروان له لوري دغه ظالم په مکه کي پر

حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه باندي حمله کړې وه او دغه جليل القدر صحابي يې په دار کړی وو.
د دغه واقعې څخه وروسته عبدالملک ابن مروان دغه ظالم د حاجيانو امير ټاکلی وو او هغه ته يې حکم وکړ چي په ټولو افعالو کي د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه د افعالو او اقوالو پيروي کوه د هغه څخه د حج د مسائلو پوښتنه کوه او په هيڅ معامله کي د هغه مخالفت مه کوه نو حجاج هغه وخت د حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه څخه مذکوره مسئله وپوښتل.

==========

## بَابُ رَمْيِ الْجِمَار (په منی کي د وېشتلو بيان)

جمار په اصل کي شګو او ډبرو ته وايي، او جمار حج د هغه ډبرو نوم دی کوم چي منارې په ويشتل کيږي او پر کومو منارو باندي چي ډبري ويشتل کيږي هغه ته د جمار په مناسبت سره جمرات وايي.
جمرات يعني هغه منارې چي هغه په ډبرو ويشتل کيږي درې داني دي: جمره اولی، جمره وسطی، جمره عقبه، دغه درې سره جمرات په منی کي واقع دي او د بقر عيد (لوی اختر) يعني د ذي الحجې په لسم يوازي جمره عقبه په ډبرو ويشتل کيږي او بيا په يوولسم، دوولسم او ديارلسم باندي درې سره جمرات په ډبرو ويشتل واجب دي.

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### رمي پر سپرلۍ باندي هم جائز ده

﴿۲۵۰۱﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْمِي عَلَى رَاحِلَتِهِ
د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما رسول الله ﷺ د قربانۍ په ورځ پر خپل اوښه سپور په
يَوْمَ النَّحْرِ وَيَقُولُ لِتَأْخُذُوا مَنَاسِكَكُمْ فَإِنِّي لَا أَدْرِي لَعَلِّي لَا أَحُجُّ بَعْدَ حَجَّتِي هَذِهِ. رواه مسلم
رمي کولو وليدئ. رسول الله ﷺ به رمي کول او فرمايل به يې د حج ارکان او افعال زده کړئ ځکه چي ما ته نه ده څرګنده کيدای سي د دې حج وروسته زه بل حج ونکړم. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۹۴۲، رقم: ۳۱۰- ۱۲۹۷.

**تشریح**: حضرت امام شافعي رحمه الله فرمايي کوم شخص چي منى ته پیاده ورسیږي نو هغه دي پیاده جمره عقبه په ډبرو ولي او وروسته بیا په یوولسم او دوولسم تاریخ درې سره جمرات پیاده وولي او په دیارلسم تاریخ دي په سپرېدو سره رمي وکړي.

د فقهي حنفي په مشهور کتاب هدایه کي لیکلي دي چي د کومي رمي څخه وروسته دوهمه رمي ده لکه د جمره اولى او جمره وسطى رمي نو دغه رمي پر پښنو کول غوره دي ځکه چي د دغه رمي کولو څخه وروسته وقوف کول، درود او دعاء وغیره ویل دي او په داسي صورت کي د پښنو حالت د عاجزۍ او تصرع په لحاظ غوره دی.

او کوم چي د رسول الله ﷺ د عمل تعلق دی او په صحیح حدیثو کي منقول دي نو د هغه خلاصه او حاصل دادی چي رسول الله ﷺ د نحر په ورځ د جمره عقبه رمي پر سپرلی کړې ده او پاته دوارې رمي یې پر پښنو باندي کړي دي.

## د ډبرو شمېر او د وېشتلو طریقه

﴿۲۵۰۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَمَى الْجَمْرَةَ بِمِثْلِ حَصَى الْخَذْفِ . رواه مسلم

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما رسول الله ﷺ په کوچنی کوچنی ډبرو ویشتلو لیدلی دئ. مسلم.

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۲\ ۹۴۴، رقم: ۳۱۳ – ۱۲۹۹.

**تشریح**: د منارو په ډبرو ویشتلو د طریقې څو ډولونه منقول دي مګر صحیح او اسانه طریقه داده چي ډبري د شهادت په ګوته او په بټې ګوتي نیولو سره وویشتل سي او اوس هم داسي معمول دی.

## د رمي د جمار وخت

﴿۲۵۰۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ رَمٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْجَمْرَةَ يَوْمَ النَّحْرِ ضُحًى وَّأَمَّا بَعْدَ ذٰلِكَ فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ . متفق علیه

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي د قربانی په ورځ د څاښت په وخت کي او تر هغه وروسته په زوال سوي وخت کي رسول الله ﷺ جمره په ډبرو وویشتل. بخاري او مسلم.

**تخریج**: اخرجه البخاري تعليقا في الصحيح (فتح الباري) ۳\۵۷۹، ومسلم في الصحيح ۱۲\۹۴۵، رقم: ۱۷۴۷.

**تشریح**: ضحوه د ورځي هغه برخي ته وايي چي د لمر ختو څخه وروسته د لمر زوال کېدو مخکي پوري وي، د وروسته ورځي څخه مراد ايام تشريق يعني دوولسم تاريخونه دي په دغه ورځو کي رسول الله ﷺ د لمر د زوال څخه وروسته رمي وکړل.

ابن همام رحمه الله فرمايي چي ددغه حديث څخه دا معلومه سوه چي دوهمه ورځ يعني په يوولسم تاريخ د رمي جمار وخت د لمر د زوال څخه وروسته وي همدارنګه په دريمه ورځ يعني په دوولسم تاريخ هم د رمي وخت زوال څخه وروسته وي، اوس ددې څخه وروسته که يو څوک مکې ته تلل غواړي نو هغه پر ديارلسم تاريخ د سهار د لمانځه څخه مخکي تللای سي او که د صبح صادق څخه وروسته مکې ته تلل غواړي نو بيا پر هغه باندي د هغه ورځ رمي جمار واجبېږي اوس د هغه لپاره د رمي جمار څخه پرته مکې ته تلل صحيح نه دي، هو په هغه ورځ يعني په ديارلسم تاريخ د لمر د زوال څخه مخکي هم رمي جمار جائز دی.

دلته په دغه مسئله هم پوه سئ که يو څوک رمي ونه کړي بلکه پر هغه ډبري واچوي نو دا کافي دی مګر دا سي کول ناخوښه کار دی په خلاف د منارو چي په هغوئ باندي د ډبرو يوازي اېښودل کافي نه دي.

## د رمي پر وخت تکبير

﴿۲۵۰۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّهُ انْتَهٰى إِلَى الْجَمْرَةِ الْكُبْرٰى فَجَعَلَ

د حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه جمره عقبه ته ورسيدئ او بيت الله

الْبَيْتَ عَنْ يَّسَارِهٖ وَمِنًى عَنْ يَّمِيْنِهٖ وَرَمٰى بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ يُّكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ

يې چپه لوري ته کړل او منا يې راسته لوري ته او اووه واره يې ويشتل وکړه، په هر وار سره يې

ثُمَّ قَالَ هٰكَذَا رَمَى الَّذِيْ اُنْزِلَتْ عَلَيْهِ سُوْرَةُ الْبَقَرَةِ. متفق عليه

الله اکبر وو ايه او بيا خلکو ته يې وويل هغه سړی چي سورة بقرة پر نازل سو همداسي ويشتل کړي دي. بخاري او مسلم.

**تخریج**: البخاري في (۴) مواضع من الصحيح (فتح الباري) ۳\۵۸۰، رقم: ۱۷۴۷، ومسلم في الصحيح ۱۲\۹۴۲، رقم: ۳۰۵- ۳۰۹، ۱۲۹۶.

**تشریح**: ابن مسعود ﷛ پر جمره عقبه باندي داسي ودريدى چي کعبه شريفه د هغه چپه خوا ته وه او منى يې راسته خوا ته مگر پر دوهم رمي جمره باندي داسي دريدل مستحب دي چي مخ يې قبلې ته وي .

په رمي کي اووه ډبري ويشتل كيږي او د هري ډبري ويشتلو پر وخت تکبير ويل كيږي، د بيهقي د روايت سره سم رسول الله ﷺ د هري ډبري سره داسي تکبير وايه : الله اكبر الله اكبر اللهم اجعله حجا مبرورا وذنبا مغفورا و عملا مشكورا .

هسي خو ټول قرآن كريم پر رسول الله ﷺ نازل سوى دى مگر دلته په خاصه توگه د سورة بقره ذکر دى دا په دې مناسبت سره دى چي په دغه سورة د حج احکام او افعال مذکور دي .

## اووه ډبري ويشتل واجب دي

﴿۲۵۵۵﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الِاسْتِجْمَارُ تَوٌّ وَرَمْيُ الْجِمَارِ تَوٌّ وَالسَّعْيُ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ تَوٌّ وَالطَّوَافُ تَوٌّ وَإِذَا اسْتَجْمَرَ أَحَدُكُمْ فَلْيَسْتَجْمِرْ بِتَوٍّ . رواه مسلم .

د حضرت جابر ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : استنجاء طاق ده (يعني د استنجاء لپاره لوټي وغيره طاق اخيستل پکار دي) او د جمرو ويشتل هم طاق دي او د صفا او مروه په منځ کي ځغستل هم طاق دي او طواف كول هم طاق دي او كله چي په تاسو كي يو څوک د اگربتۍ وغيره لوږي اخلي نو طاق دي يې اخلي . مسلم .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۱۲\۹۴۵، رقم: ۲۱۵- ۱۲۰۰.

**د لغاتو حل**: تو : فرد . (طاق)

**تشريح**: پر منارو باندي اووه ډبري ويشتل واجب دي همدارنگه د صفا او مروه په مينځ كي اووه واره سعي كول واجب دي او د جمهورو علماؤ په نزد د يوه طواف لپاره د كعبې شريفې چاپيره اووه چكره لگول فرض دي او د حنفيه په نزد څلور چكرونه فرض دي او پاته واجب دي .

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

## پر سپرلۍ باندي رمي

﴿۲۵۰۶﴾: عَنْ قُدَامَةَ ابْنِ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمَّارٍ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت قدامة بن عبد الله بن عمار رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د قرباني په ورځ ما رسول الله ﷺ

وَسَلَّمَ يَرْمِي الْجِمْرَةَ يَوْمَ النَّحْرِ عَلَى نَاقَةٍ صَهْبَاءَ لَيْسَ ضَرْبٌ وَلَا طَرْدٌ

پر صهباء اوښي باندي سپور په ډبرو ويشتلو باندي وليدئ نه خو هلته وهل وه ، نه شړل

وَلَيْسَ قِيْلَ إِلَيْكَ إِلَيْكَ . رواه الشافعي والترمذي والنسائي وابن ماجة والدارمي

او نه آخوا سئ ځان وساتئ . شافعي، ترمذي، نسائي ، ابن ماجه او دارمي .

**تخريج**: الشافعي في الام ۲\ ۲۱۳، والترمذي في السنن ۳\ ۲۴۷، رقم: ۹۰۳، والنسائي ۵\ ۲۷۰، رقم: ۳۰۶۱، وابن ماجه ۲\ ۱۰۰۹، رقم: ۳۰۳۵، والدارمي ۲\ ۸۷، رقم: ۱۹۰۱.

**د لغاتو حل**: طرد : الدفع (شړل).

**تشريح**: صهباء هغه اوښي ته وايي چي د هغې رنګ سپين او سرخي لرونکي وي په دې توګه چي د هغه د وريښتانو څوکي سرې وي او لاندي سپين وي .

د حديث د آخري برخي مطلب دادی چي څرنګه اميران او پاچاهان د سپرلۍ مخکي د چوکيدار د لاري په انتظام او اهتمام کولو سره ځي د رسول الله ﷺ د سپرلۍ مخکي داسي څه انتظام او اهتمام نه وو .

## سعي او رمي د الله ﷻ د ذکر ذريعه ده

﴿۲۵۰۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّمَا جُعِلَ رَمْيُ

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د جمرو ويشتل کول

الْجِمَارِ وَالسَّعْيُ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ لِإِقَامَةِ ذِكْرِ اللهِ . رواه الترمذي والدارمي وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح .

او د صفا او مروه په منځ کي ځغستل د الله د ذکر لپاره ټاکل سوي دي . ترمذي او دارمي .

ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دئ .

**تخريج**: الترمذي في السنن ٣\٢٤٦، رقم: ٩٠٢، والدارمي ٢\٧١، رقم: ١٨٥٣.

**تشريح**: په ظاهري توګه دا فعل داسي دی چي ددغه عبادت کولو څخه معلوميږي څکه يې وفرمايل چي دغه دواړه فعلونه د الله تعالی د ذکر قائمولو لپاره ټاکل سوي دي دا معلومه ده چي د هري ډبري ويشتلو پر وخت تکبير ويل سنت دي او د سعي په دوران کي هغه دعاوي ويل سنت دي کوم چي مخکي يې ذکر سوی دی .

## په منی کي ځای مه ټاکی

﴿۲۵۰۸﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ قُلْنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَلَا نَبْنِي لَكَ بَيْتًا يُظِلُّكَ بِمِنًى قَالَ لَا مِنًى مُنَاخُ مَنْ سَبَقَ . رواه الترمذي و ابن ماجة والدارمي .

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي موږ رسول الله ﷺ ته عرض وکړ چي اې د الله رسوله ايا ستاسو لپاره په منا کي يو سايه لرونکی ځای جوړ کړو ، رسول الله ﷺ وفرمايل : يا، منا د هغه چا د ناستي ځای دئ څوک چي لومړی ورسيږي . ترمذي، ابن ماجه او دارمي .

**تخريج**: الترمذي في السنن ٣\٢٢٨، رقم: ٨٨١، وابن ماجه في السنن ٢\١٠٠، رقم: ٣٠٠٦، والدارمي ٢\١٠٠، رقم: ١٩٣٧.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادی چي منی ته په رسيدو کي په مخته والي سره د خاص ځای جوړولو يا ټاکلو سره نه وي يعني منی داسي ځای دی چي هلته د چا لپاره خصوصيت نه سته او نه هلته د چا لپاره يو ځای متعين دی بلکه هلته چي کوم سړی کوم ځای ته ورسيږي هغه د هغه ځای مستحق دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

## پر جمرات باندي وقوف

﴿۲۵۰۹﴾: وَعَنْ نَّافِعٍ قَالَ إِنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يَقِفُ عِنْدَ الْجَمْرَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ

د حضرت نافع رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ابن عمر رضي الله عنه به په جمره اولی او جمره وسط باندي تر

وُقُوفًا طَوِيلًا يُكَبِّرُ اللّٰهَ وَيُسَبِّحُهُ وَيَحْمَدُهُ وَيَدْعُو اللّٰهَ وَلَا يَقِفُ عِنْدَ جَمْرَةِ

الْعَقَبَةِ . رواه مالك .

ډيره وخته پوري دريدی او الله اکبر، سبحان الله او الحمد لله به يې ويل، بيا به يې د الله تعالی څخه دعاء غوښتل او جمره عقبه سره به نه دريدی. مالک .

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۱\۴۰۷، رقم: ۲۱۲.

**تشريح**: د اولو دوو منارو څخه مراد جمرۀ اولی او جمره وسطی دي ، ابن عمر رضي الله عنهما چي کله د دغه دواړو جمرو رمي وکړه نو هلته په درېدو سره په رمي وغيره کي بوخت سو د دغه جمرات سره وقوف کول او د وقوف په دوران کي دعاء او زاري وغيره کي بوخت کېدل سنت دي د وقوف د وخت په باره کي علماؤ ليکلي دي چي پر دغه جمراتو باندي تر دومره وخته پوري درېدل پکار دي په څومره وخت کي چي سورة بقرة ويل کيږي د ځينو اهل الله په باره کي دا منقول دي چي هغوئ به د دغه جمراتو سره دومره درېدل چي پښې به يې و پړسيدلې .

او د جمره عقبی سره به نه دريدی، ددې مطلب دادی چي د جمره عقبی د رمي څخه وروسته د دعاء لپاره پر هغه جمره نه خو د قربانۍ په ورځ دريدی او نه به يې په نورو ورځو کي وقوف کوی مګر ددې څخه د دعاء بالکل پرېښودل نه لازميږي ، په باب النحر کي به هغه روايت راسي چي په هغه کي ابن عمر رضي الله عنهما دا روايت کړی دی چي ما رسول الله ﷺ په داسي کولو سره ليدلی دی.

========

## بَابُ الْهَــدْيِ (د قربانۍ بيان)

هَدي د ها په زور او د دال په سکون سره هغه حيوان ته ويل کيږي کوم چي په حرم کي د ثواب لپاره ذبح کيږي که هغه پسه، مېږه، بزه، غوا، ګاېښه، غويی او که اوښ وي او د عمر وغير کوم شرطونه چي د قربانۍ په نورو حيوانو کي وي هغه په هدي کي هم وي ، پسه او دا ډول نور حيوانان لکه د پسه او مېږي قرباني خو پر دغه موقع باندي جائز ده مګر که څوک د جنابت يا حيض په حالت کي طواف زيارت وکړي يا يو څوک د عرفات د وقوف څخه وروسته د سر خريلو څخه مخکي جماع وکړي نو په دغه صورت کي د کفارې او د قربانۍ د جزاء په توګه د پسه ذبح کول کافي نه دي بلکه د اوښ يا غويي قرباني کول پکار دي .

د هدي دوه ډولونه دي :۱- واجب،۲: تطوع يعني نفل، بيا د واجب هدي څو ډولونه دي : هدي قران، هدي تمتع، هدي جنايات، هدي نذر او هدي احصار .

د هدي د تسميې وجه داده چي بنده د الله تعالى په دربار کي د هغه حيوان د قرباني هديه استوي او د هغه په ذريعه د الله تعالى قربت تر لاسه کوي د دغه مناسبت په وجه هغه حيوان ته هدي وايي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د اشعار او تقليد مسئله

﴿۲۵۱۰﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ ثُمَّ دَعَا بِنَاقَتِهِ فَأَشْعَرَهَا فِي صَفْحَةِ سَنَامِهَا الْأَيْمَنِ وَسَلَتَ الدَّمَ وَقَلَّدَهَا نَعْلَيْنِ ثُمَّ رَكِبَ رَاحِلَتَهُ فَلَمَّا اسْتَوَتْ بِهِ عَلَى الْبَيْدَاءِ أَهَلَّ بِالْحَجِّ. رواه مسلم.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ په ذوالحليفة کي لمونځ وکړ بيا يې د خپلي قرباني اوښه راوغوښتل او د هغې قب يې د راسته لوري پر غاړه زخمي کړ د هغې وينه يې وچه کړه او او په غاړه کي يې دوې چپلۍ وروا چولې بيا د خپل سپرلۍ پر اوښه چي د هغې نوم قصواء وه سپور سو بيا چي کله اوښه بيداء ته ورسيدل نو رسول الله ﷺ د حج احرام وتړی او لبيک يې ووايه. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۹۱۲، رقم: ۲۰۵- ۱۲۴۳.

**د لغاتو حل**: سلت: اى مسح واماط (ومو ښل).

**تشريح**: مخکي په دې پوهېدل پکار دي چي اشعار او تقليد څه ته وايي په حج کي چي کوم حيوان يو څوک د ځان سره بيايي او هغه اړخ زخمي کوي نو دې ته اشعار وايي او د هغه حيوان په غاړه کي د څپليو يا هډوکو وغيره هار اچوي نو هغه ته تقليد ويل کيږي او ددغه دواړو مقصد دادی چي دا د هدي حيوان دی.

رسول الله ﷺ چي د حج لپاره روان سو او ذوالحليفه ته چي د اهل مدينې ميقات دی ورسيدی نو د لمانځه کولو څخه وروسته يې هغه اوښه را وغوښتل کومه چي رسول الله ﷺ د هدي په توګه د ځان سره بيولې وه مخکي رسول الله ﷺ د هغه د قب (بوک) راسته خوا په نېزه

ووهل کله چي د هغه څخه وينه و بهېدل او هغه وچه سول او بيا د هغه په غاړه کي يې د دوو څپليو هار واچوی همدا رنګه رسول الله ﷺ دغه نښه و ټاکل چي دا د هدي حيوان دی چي خلک دغه نښي او علامې په ذريعه دا وپيژني چي دا هدي ده نو څوک به کار نه په لري چي غله وغيره يې غلا نه کړي او که ددغه حيوان څخه لار ورکه سي نو خلک به يې هغه ځای ته ورسوي ، د جاهليت په زمانه کي د خلکو دا طريقه وه چي په کوم حيوان کي به يې داسي يو نښه ونه ليدل نو هغه به يې غلا کوی او پر کوم حيوان چي به دغه نښه وه نو هغه به يې پرېښودی نو شارع اسلام هم دا طريقه د پورتني مقصد لپاره جائز وګرځول .

اوس په دې اړه فقهي مسئلې ته راسئ ، جمهور امامان پر دې خبره متفق دي چي اشعار يعني حيوان داسي زخمي کول سنت دي مګر جثم يعني په پسه ، مېږه او بزې کي اشعار ترک کول پکار دي ځکه چي دغه حيوانان کمزوري وي ددغه حيوانانو لپاره يوازي تقليد يعني په غاړه کي هار اچول کافي دي، د امام ابو حنيفة رحمه الله په نزد تقليد مستحب دی مګر اشعار مطلق مکروه دی که د پسه او مېږې وي او که د اوښ وغيره وي ، علماء د امام ابو حنيفة رحمه الله ددغه خبرې تاويل داسي کوي چي امام صاحب په مطلق توګه باندي د اشعار د کراهت قائل نه وو بلکه هغه يوازي د خپل زمانې لپاره اشعار مکروه ګرځولی وو ځکه چي هغه وخت خلک ددغه مقصد لپاره هدي ډېره زياته زخمي کول چي په هغه سره به د خم شدت پيدا کيدی .

ددغه حديث څخه دا معلومېږي چي رسول الله ﷺ د ماپښين لمونځ د ذوالحليفه په مسجد کي وکړ او د باب صلاة السفر په اول حديث کي چي بخاري او مسلم روايت کړی دی دا خبره په واضحه توګه ثابته سوې ده چي رسول الله ﷺ د ماپښين لمونځ په مدينه کي کړی وو مګر ابن عباس رضي الله عنه به په مدينه کي د ماپښين لمونځ د رسول الله ﷺ سره نه وي کړی ځکه هغه چي رسول الله ﷺ په ذوالحليفه کي پر لمانځه کولو وليدی نو دا ګمان يې وکړ چي رسول الله ﷺ دلته د ماپښين لمونځ کوي ځکه هغه دلته دا بيان وکړ چي رسول الله ﷺ د ماپښين لمونځ په ذوالحليفه کي وکړ .

اهل بالحج (رسول الله ﷺ د حج لپاره لبيک ووايه): ددې څخه دا ګڼل نه دي پکار چي رسول الله ﷺ واقعتا يوازي د حج لپاره لبيک ووايه بلکه دا مفهوم مراد واخلئ چي رسول الله ﷺ د حج او عمرې دواړو لپاره لبيک ووايه ځکه په صحيحين کي د حضرت انس رضي الله عنه څخه منقول دي ، روايت دا خبره بالکل واضح کړې ده چي ما د رسول الله ﷺ څخه د حج او عمرې لپاره لبيک ويل اوريدلي دي ، دلته راوي د عمرې ذکر ځکه ونه کړ چي اصل شی خو حج دی

ځکه يوازي ددې په ذکر کولو يې اکتفاء وکړه يا دا چي رسول الله ﷺ د دواړو لپاره لبيک ووايه نو راوي يوازي حج واوريدی او د عمرې ذکر يې نه واوريدی.

﴿۲۵۱۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ أَهْدَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّةً إِلَى الْبَيْتِ غَنَمًا فَقَلَّدَهَا. متفق عليه.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي يو وار رسول الله ﷺ د قرباني لپاره بيت الله شريفي ته پسونه وليږل او د هغو په غاړه کي يې اميل واچوئ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳\۵۴۷، رقم: ۱۷۰۱، ومسلم ۲\۹۵۸، رقم: ۳۶۷ - ۱۳۲۱.

**تشريح**: علامه طيبي رحمه الله فرمايي چي د ټولو علماؤ پر دې اتفاق دی چي په پسو کي اشعار يعني د هغو زخمي کول مشروع نه دي البته په هغو کي تقليد يعني د هغو په غاړه کي هار اچول سنت دي مګر په دې باره کي د امام مالک رحمه الله اختلافي قول دی.

**د بل چا له خوا قرباني**

﴿۲۵۱۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ ذَبَحَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَائِشَةَ بَقَرَةً يَوْمَ النَّحْرِ. رواه مسلم

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د قرباني په ورځ رسول الله ﷺ د بي بي عائشې د لوري يوه غوا قرباني کړه. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۹۵۶، رقم: ۳۵۶ - ۱۳۱۹.

﴿۲۵۱۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ نَحَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نِسَائِهِ بَقَرَةً فِيْ حَجَّتِهِ. رواه مسلم

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د خپلو بيبيانو له لوري يوه غوا قرباني کړه. مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح: ۳۵۷ - ۱۳۱۹.

**تشريح**: علماء ليکي چي دغه دواړه حديثونه پر دې محمول دي چي رسول الله ﷺ به د خپلو

بيبيانو په اجازه سره قرباني کړې وي ځکه د بل چا پر ځای د هغه د اجازې څخه پرته قرباني جائز نه ده .

د امامانو په نزد مشهوره مسئله داده چي په يوه غوا کي د اوو کسانو له طرفه قرباني جائز ده مګر د امام مالک رحمه الله قول دادی چي د يوې غوا او يوه پسه وغيره قرباني کول د ټولي کورنۍ لپاره کافي دي نو دغه حديث د امام مالک رحمه الله د دغه قول دليل کيدای سي په شرط د دې چي رسول الله ﷺ د اوو څخه د زياتو له طرفه يوه قرباني کړې وي او د نورو امامانو په نزد دا حديث پر دې محمول دی چي رسول الله ﷺ د يوې غوا قرباني يوازي د اوو کسانو له طرفه کړې وه .

## خپله حج ته ولاړ نه سي او د تحفې استولو مسئله

﴿۲۵۱۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ فَتَلْتُ قَلَائِدَ بُدْنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدَيَّ ثُمَّ قَلَّدَهَا وَأَشْعَرَهَا وَأَهْدَاهَا فَمَا حَرُمَ عَلَيْهِ كَانَ أُحِلَّ لَهُ. متفق عليه

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ د قربانۍ د حيوان د اميلونو رسۍ ما په خپل لاسو سره و اوبدل، بيا رسول الله ﷺ اميلونه د هغو په غاړه کي واچول د هغو قبونه يې زخمي کړل او د قربانۍ حيوانان جوړولو سره يې مکې ته وليږل او پر رسول الله ﷺ د هغه حيوانانو په ليږلو سره هيڅ حلال شی حرام نه سو . بخاري او مسلم .

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۵۴۲، رقم: ۱۶۹۶، ومسلم في الصحيح ۲\۹۵۷، رقم: ۳۶۲- ۱۳۲۱.

**تشريح** : د حديث د آخري جملې مطلب دادی چي د دغه حيوانانو د هدي په توګه ليږلو په وجه پر رسول الله ﷺ باندي د احرام احکام جاري نه سول چي د احرام په حالت کي کوم شيان حرام کيږي هغه پر رسول الله ﷺ حرام سوي وي ، دا خبره بي بي عائشې رضي الله عنها ځکه وکړه چي هغې د ابن عباس رضي الله عنه په باره کي اوريدلي وه چي هغه دا وايي چي کوم څوک حج ته ولاړ نه سي او د خپل طرف څخه هدي مکې ته وليږي نو پر هغه ټول شيان کوم چي پر محرم باندي حرام کيږي تر هغه وخته پوري حرام دي تر څو چي د هغه هدي حرم ته ونه رسيږي او ذبح نه سي نو بي بي عائشې رضي الله عنها د دغه حديث په بيانولو سره د ابن عباس رضي الله عنه د دغه قول ترديد وکړ .

﴿۲۵۱۵﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ فَتَلْتُ قَلَائِدَهَا مِنْ عِهْنٍ كَانَ عِنْدِي ثُمَّ بَعَثَ بِهَا مَعَ أَبِي. متفق عليه

حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چې ما د اميلونو رسۍ په هغه رنګينه وړۍ سره و وبدل کومه چې زما سره وه، بيا رسول الله ﷺ هغه زما پلار ته وليږل. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري)، ۳\۵۴۸، رقم: ۱۷۰۵، ومسلم ۲\۹۵۸، رقم: ۳۶۴- ۱۳۲۱.

**د لغاتو حل**: العِهن: الصوف: (وړۍ).

## د قرباني پر حيوان سپرتيا

﴿۲۵۱۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ رَأَى رَجُلاً يَسُوْقُ بَدَنَةً فَقَالَ ارْكَبْهَا فَقَالَ إِنَّهَا بَدَنَةٌ قَالَ ارْكَبْهَا وَيْلَكَ فِي الثَّانِيَةِ أَوِ الثَّالِثَةِ. متفق عليه.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ يو سړی وليدئ چې د خپل قرباني حيوان يې شړئ او ورسره روان وو، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: پر دې سپور سه هغه عرض وکړ دا د قرباني حيوان دئ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: سپور سه، هغه بيا همداسي وويل د قرباني حيوان دئ، رسول الله ﷺ بيا ورته وفرمايل: سپور سه پر تا افسوس دئ دا الفاظ يې دوه يا درې واره وفرمايل. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۵۳۶، رقم: ۱۶۸۹، ومسلم ۲\۹۶۰، رقم: ۳۷۱- ۱۳۲۲.

﴿۲۵۱۷﴾: وَعَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ سُئِلَ عَنْ رُكُوبِ

د حضرت ابو الزبير رضي الله عنه څخه روايت دئ چې ما د جابر بن عبد الله رضي الله عنه څخه واوريدل چې د هغه څخه د قرباني پر حيوان د سپريدو په اړه وپوښتل سوه

الْهَدْيِ فَقَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ ارْكَبْهَا بِالْمَعْرُوفِ إِذَا أُلْجِئْتَ إِلَيْهَا حَتَّى تَجِدَ ظَهْرًا. رواه مسلم.

هغه ورته وويل: ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چې په ښه طريقه سره سپور سه کله چې ته په سپريدو مجبور يې تر څو چې تا ته بله سپرلۍ تر لاسه سي. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۹۶۱، رقم: ۳۷۵\۱۳۲۴.

**تشريح**: په دې باره کي د علماؤ اختلاف دی چي ايا پر هدي باندي سپرېدل جائز دي که يا؟ ځيني حضرات وايي که د سپرېدو په صورت کي هدي ته يو تاوان نه رسيږي نو پر هغه سپرېدل جائز دي مگر د حنفيه په نزد دا مسئله ده که چيري ضرورت او مجبوري وي نو پر هدي باندي سپرېدلای سي او که نه نو نه سي سپريدای، نو په کومو روايتو کي چي پر هدي باندي د سپرېدو په مطلق توگه سره جواز تر لاسه کيږي هغه روايتونه يوازي د ضرورت او مجبورۍ پر حالت محمول دي.

## په لاره کي د قريب الموت کېدو والا هديه

﴿۲۵۱۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بَعَثَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسِتَّ

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ شپاړلس

عَشْرَةَ بَدَنَةً مَعَ رَجُلٍ وَأَمَّرَهُ فِيهَا فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ كَيْفَ أَصْنَعُ بِمَا أُبْدِعَ

اوښان د يو سړي سره مکې ته وليږل او د هغه اوښانو يې ساتونکی و ټاکئ، هغه د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه که په دې اوښانو کي يو اوښ د يو ناروغۍ يا ستړيا له کبله نه سي تلای نو څه ورسره وکړم؟

عَلَيَّ مِنْهَا قَالَ انْحَرْهَا ثُمَّ اصْبُغْ نَعْلَيْهَا فِي دَمِهَا ثُمَّ اجْعَلْهُ عَلَى صَفْحَتِهَا وَلَا تَأْكُلْ مِنْهَا أَنْتَ وَلَا أَحَدٌ مِنْ أَهْلِ رُفْقَتِكَ. رواه مسلم

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هغه حلال کړه او د هغه په وينه کي هغه څپلۍ چي د هغه په غاړه کي پرتې دي ډوبي کړه او د هغه پر قوب نښه وکړه او د هغه غوښه مه ته خوره او نه دي ستا ملگري خوري. مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۹۶۲، رقم: ۳۷۷ - ۱۳۲۵.

**تشريح**: د څپلۍ په وينو رنګ کولو سره د اوښ پر قُب (بوک) باندي د نښې کولو لپاره رسول الله ﷺ ځکه وفرمايل چي پر لاره باندي تلونکي کسان په دې پوه سي چي دا هديه ده او ددې غوښه دي فقيران او مسکينان وخوري او شتمن خلک دي د هغه څخه پرهيز وکړي ځکه چي ددې غوښه خوړل پر شتمنو حرام دي.

په پای کي رسول الله ﷺ هغه ته هدايت وکړ چي هغه اوښ په ذبح کولو سره هلته پرېږده د

هغه غوښه مه خپله خوره او مه يې د سفر په ملگرو خوره که څه هم فقيران او مسکينان وي يا شتمن په هر حال کي د هغو غوښه خوړلو څخه يې ځکه منع کړل چي دا خلک د خپل بې وزلۍ په بهانه کولو سره د خپل خوراک لپاره اوښ ذبح نه کړي .

اوس دا اشکال پيدا کيداى سي چي په داسي صورت کي د غوښو خوړلو څخه خپل محافظ هم منع کيږي او هغه د قافلې ملگري هم نو بيا ددغه غوښو مصرف به څه شي وي ؟ ظاهره ده چي هغه غوښه ضائع سي .

ددې جواب دادى چي هغه غوښه نه ضائع کيږي بلکه چيري چي هغه اوښه ذبح کيږي هلته د شاوخوا اوسيدونکي به هغه استعمال کړي يا قافلې چي ځي او راځي هلته چي کومه قافله تيريږي هغه به گټه ځيني واخلي .

په هر حال په لاره کي چي کومه هديه مرگ ته نژدې سي او هغه ذبح کړل سي نو د هغه حکم هغه دى کوم چي په حديث کي تېر سو چي د هغه غوښه د شتمنو او د قافلې د ملگرو لپاره خوړل صحيح نه دي مگر په دې باره کي فقهي تفصيل دادى چي په ملتقى الابحر او درمختار کي دا نقل سوي دي ۱ : که هدي واجب وي او هغه په لاره کي مرگ ته نژدې سي يا داسي عيب داره سي چي د هغه قرباني نه جائز کيږي نو د هغه پر ځاى دي بله هدي واستوي او هغه اوله هدي که په ذبح کولو سره خپله وخوري يا په نورو يې وخوري يا څه چي يې زړه غواړي په وه دي يې کړي، ۲ : که چيري قرباني نفل وي او مرگ ته نژدې وي نو هغه دي ذبح کړي او څپلۍ چي په غاړه کي يې وي هغه دي په وينه کي په رنگ کولو سره پر هغه دي ښنبه وکړي او د هغه غوښه دي نه د قربانۍ خاوند خوري او نه دي يې شتمن خلک خوري ،. ۳ : کومه قرباني چي منزل مقصود ته په رسيدو سره ذبح سي نو د هغه په باره کي ددغه فصل د آخري حديث په تشريح کي دا ښودل سوي دي چي د نفل تمتع او قران هدي او د قربانۍ د غوښي څخه مالک ته خوړل مستحب دي ددې څخه پرته د بل ډول هدي د غوښي څخه خاوند ته خوړل صحيح نه دي .

په پاى کي په دې خبره هم پوه سئ چي د پورتني حديث په تشريح کي د ځينو شارحينو څخه هېره سوې ده ځکه چي هغوئ ليکلي چي په حديث کي د غوښي نه خوړلو کوم حکم سوى دى دا د هغه هدي سره متعلق دى چي پر خپل ځان باندي واجب کړل سوې وي لکه د نذر هدي او که چيري هدي نفل وي نو د هغه غوښه خوړل جائز دي نو دغه شارحين د لاري د هغه هدي چي منزل مقصود ته په رسيدو سره پر ذبح کونکي باندي په قياس کولو سره دا خبره ليکلې ده حالانکه دا خبره د حديث د حقيقت بالکل خلاف ده .

## د قربانۍ برخي

﴿۲۵۱۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ نَحَرْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ الْبَدَنَةَ عَنْ سَبْعَةٍ وَالْبَقَرَةَ عَنْ سَبْعَةٍ . رواه مسلم .

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د حديبيه په کال موږ د رسول الله ﷺ سره د اووه کسانو د لوري د اوښ او د اوو کسانو د لوري د غوا قرباني وکړه. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۹۵۵، رقم: ۳۵۰- ۱۳۱۸.

**تشريح**: مطلب دادی چي موږ په ګډه حيوان ذبح کړی په داسي توګه چي په اوښ او غوا کي اووه کسان شريک وو ، دا حديث د امام ابوحنيفة رحمه الله او اکثر علماء د هغه مذهب دليل دی چي په اوښ او غوا کي د اوو کسانو ګډون جائز دی کله چي دغه اوو کسانو ته قربت يعني ثواب مقصود وي قربت که يو ډول وي لکه يو سړی د هدي نيت لري او بل سړی هم د هدي نيت لري يا قربت مختلف وي لکه ځيني خو د هدي په نيت ګډ وي او ځيني د قربانۍ په نيت ، او د امام شافعي رحمه الله په نزد په دغه صورت کي هم په يوه اوښ او يوه غوا کي د اوو کسانو ګډون جائز دی کله چي ځينو د هدي يا قربانۍ په نيت ګډ وي او ځيني محض د غوښو لپاره ګډ وي، د امام مالک رحمه الله مذهب دادی چي په واجب قربانۍ يا هدي کي په هيڅ حيوان کي په مطلقه توګه ګډون صحيح نه دی ، په پسه او مېږه کي ګډون د ټولو علماؤ په اتفاق سره جائز نه دی.

## د اوښ د قربانۍ طريقه

﴿۲۵۲۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهُ اَتَى عَلَى رَجُلٍ قَدْ اَنَاخَ بَدَنَتَهُ يَنْحَرُهَا قَالَ ابْعَثْهَا قِيَامًا مُقَيَّدَةً سُنَّةَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . متفق عليه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه يو سړي ته ورغلئ چي خپل اوښ يې کښېنولی حلالوئ هغه ورته وويل : اوښ ودروه پښې يې وتړه او حلال يې کړه چي دا د محمد ﷺ طريقه ده. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري) ۳\۵۵۳، رقم: ۱۷۱۳، ومسلم ۲\۹۵۶، رقم: ۳۵۸- ۱۳۲۰.

**تشريح**: د اوښ په سينه کي نيزې وهلو ته نحر وايي او د غوا وغيره غاړه په چاړې سره پرېکولو ته ذبح ويل کيږي، نو د اوښ نحر کول افضل دي او د غوا ، غويي، ګاميښي، پسه او

داسي نورو حيوانانو ذبح کول افضل دي ، د نحر کولو طريقه داده چي اوښ په درولو سره د هغه چپه پښه په رسۍ وتړل سي او بيا د هغه سينه په نيزه ووهل سي چي وينه څيني ولاړه سي او هغه را ولويږي .

امام ابن همام رحمه الله فرمايي چي د اوښ په درولو سره نحر کول افضل دی او که ونه درول سي نو بيا په کښېنولو سره نحر کول تر پرې ايستلو افضل دی ، کوم حيوان چي ذبح کيږي نو د هغه پر چپه اړخ پرې ايستلو سره ذبح کول پکار دي .

د قرآن کريم څخه هم دا ثابته ده چي اوښ دي نحر کړل سي لکه چي فرمايل سوي دي :

فصل لربک وانحر : د الله تعالی لپاره لمونځ کوئ او نحر کوئ .

د دغه آيت په تفسير کي د اوښ نحر کول ليکل سوي دي ، او د ذبح کولو لپاره دغه آيت کريمه دی : ان تذبحوا بقرة : دا چي تاسو غوا ذبح کړئ .

## د هدی په اړه يو څو هدايات

﴿۲۵۲۱﴾ : وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ أَمَرَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَقُومَ عَلَى

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ما ته حکم راکړ چي زه و درېږمه پر اوښانو

بُدْنِهِ وَأَنْ أَتَصَدَّقَ بِلَحْمِهَا وَجُلُودِهَا وَأَجِلَّتِهَا وَأَنْ لَا أُعْطِيَ الْجَزَّارَ مِنْهَا قَالَ

نَحْنُ نُعْطِيهِ مِنْ عِنْدِنَا . متفق عليه

د رسول الله ﷺ او د هغو غوښه خيرات کړم او پوست وغيره يې هم صدقه کړم او د قصاب مزدوري (غوښه) مه ورکوه ، رسول الله ﷺ وفرمايل : مزدوري به موږ د ځانه ورکوو . بخاري او مسلم

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري) ۳\۵۵۶، رقم: ۱۷۱۷، ومسلم ۲\۹۵۴، رقم: ۳۴۸- ۱۳۱۷.

**تشريح** : د اوښانو څخه مراد هغه اوښان دي کوم چي رسول الله ﷺ په حجة الوداع د هدي په توګه مکې مکرمې ته د ځان سره بيولي وه او د هغو شمېر سل وو ، ددې تفصيل مخکي تير سوی دی .

د هدي د حيوان پوست ، ځل او مهار وغيره هم خيراتول پکار دي دغه شيان د قصاب په مزدوري کي ورکول نه دي پکار هو که چيري قصاب د احسان په توګه ورکړل سي نو بيا څه پروا نه سته ، که پوست يو چا ته په صدقه کي ورکړل سي او که خرڅ کړل سي نو کوم قيمت چي واخلي هغه دي صدقه کړي دا هم جائز دي .

د هدي د حیوان شېدې لوښل نه دي پکار بلکه د هغه پر غولانزه یخي او به اچول پکار دي چي د هغه شېدې توئیدل موقوف سي او که د شېدو په لوښلو سره حیوان ته تکلیف وي نو بیا شېدې لویشل پکار دي او هغه دي خیرات کړل سي.

## د کوم هدی غوښې مالک ته خوړل جائز دي

﴿۲۵۲۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا لَا نَأْكُلُ مِنْ لُحُومِ بُدْنِنَا فَوْقَ ثَلَاثٍ فَرَخَّصَ لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كُلُوا وَتَزَوَّدُوا فَأَكَلْنَا وَتَزَوَّدْنَا. متفق علیه

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي موږ به د خپلي قرباني غوښه تر درو ورځو زیاته نه خوړل بیا رسول الله ﷺ موږ ته اجازه راکړه او ويې فرمایل: خورئ او پټوئ یې، نو موږ به خوړل او پټول به مو. بخاري او مسلم.

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۳\۵۵۷، رقم: ۱۷۱۹، ومسلم ۳\۱۵۶۲، رقم: ۳۰- ۱۹۷۲.

**تشریح**: د اسلام په شروع کي خلکو ته د غوښو زیات ضرورت وو او د داسي خلکو شمېر زیات وو چي خپله یې قرباني نه سوه کولای ځکه رسول الله ﷺ ته حکم ورکړل سوی وو چي د قرباني غوښه دي تر درو ورځو څخه زیات نه ایږدي بلکه نورو خلکو ته د خوړلو لپاره دي یې صدقه کوي بیا وروسته چي د غوښو زیات ضرورت پاته نه سو او اکثرو خلکو ته د قرباني کولو توان تر لاسه سو نو رسول الله ﷺ اجازه وکړه چي د قرباني غوښه د درو ورځو څخه وروسته هم اېښودل کیدای سي. شمني رحمه الله فرمایي چي د هدي خاوند ته د نفل، تمتع او قران هدي او د قرباني غوښه خوړل جائز دي ددې څخه پرته د نوره ول هدي غوښه صحیح نه ده ځکه چي هغه به د کفارې او جنایت وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

## د خدای جل جلاله د ښمنانو ته غم رسول مستحب دی

﴿۲۵۲۳﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أَنَّ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْدٰى عَامَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي د حدیبیه په کال رسول الله ﷺ د خپلي قرباني په

الْحُدَيْبِيَةِ فِي هَدَايَا رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَمَلًا كَانَ لِأَبِي جَهْلٍ فِي

حيوانانو کي د ابو جهل اوښ هم ﺑﻮتلئ (دا اوښ د بدر په غزا کي په غنيمت راوړل سوی وو)

رَأْسِهِ بُرَةٌ مِّنْ فِضَّةٍ ، و في رواية مِنْ ذَهَبٍ يَغِيظُ بِذَلِكَ الْمُشْرِكِينَ . رواه ابوداؤد

چي په پزه کي يې د سپينو زرو پيزوان وو ، او په يوه روايت کي دي چي د سروزرو پيزوان وو او ددې څخه مقصد د مشرکانو په غيظ او غضب کي راوستل وه . ابو داؤد .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۳۶۰ ،رقم: ۱۷۴۹.

**د لغاتو حل**: بُرة: اى حلقة (پيزوان).

**تشريح**: رسول الله ﷺ په شپږم هجري کال کي د عمرې لپاره د مدينې منورې څخه روان سو مگر د مکې مشرکينو رسول الله ﷺ او د هغه ملگري د حديبيې پر ځای باندي تم کړه او مکې ته يې نه پرېښودل ، دا يو ډېره مشهوره واقعه ده چي په دغه سفر کي رسول الله ﷺ کوم اوښ د هدي په توگه د ذبح کولو لپاره بيولی وو په هغه کي يو اوښ د ابو جهل هم وو چي د بدر په غزا کي د غنيمت په توگه په لاس راغلی وو ، دغه اوښ رسول الله ﷺ ددې لپاره د ځان سره بيولی وو چي د مکې مشرکين دغه اوښ ووينې او په غصه سي چي هغه اوښ د مسلمانانو په لاس ورغلی دی او ذبح کيږي ، ددې څخه معلومه سوه چي د الله تعالی دښمنانو ته غم رسول او د هغوی د زړونو سوځل مستحب دي .

## د قريب الموت هدی حکم

﴿۲۵۲۴﴾: وَعَنْ نَاجِيَةَ الْخُزَاعِيِّ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ كَيْفَ أَصْنَعُ بِمَا

د حضرت ناجيه خزاعي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما عرض وکړ اې د الله رسوله ! زه د قرباني د هغه حيوان په اړه چي مرگ ته نژدې وي څه وکړم ؟

عَطِبَ مِنَ الْبُدْنِ قَالَ انْحَرْهَا ثُمَّ اغْمِسْ نَعْلَهَا فِي دَمِهَا ثُمَّ خَلِّ بَيْنَ النَّاسِ

رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه حلال کړه او د هغه په وينه کي هغه څپلۍ ډوبي کړه چي د هغو په غاړه کي دئ د هغو پر غاړو نښه ولگوه او بيا هغه خلکو ته پرېږده

وَبَيْنَهَا فَيَأْكُلُوهَا. رواه مالك و الترمذي وابن ماجة و رواه ابوداؤد والدارمي عن ناجية الاسلمي .

چي هغوئ يې وخوري . مال، ترمذي، ابن ماجة، ابوداوُد او دارمي د ناجية الاسلمي څخه روايت کړئ دئ .

**تخريج**: مالک في الموطا ١\ ٣٨٠، رقم: ١٤٨، والترمذي في السنن ٣\ ٢٥٣، رقم: ٩١٠، وابن ماجه في السنن ٢\ ١٠٣٦، رقم: ٣١٠٦.

**تشريح**: چي هغوئ يې وخوري: ددې مطلب دادی چي د قافلې د ملګرو څخه پرته که هغوئ شتمن وي او که فقيران وي د هغه حيوان غوښه په خپل استعمال کي راولي په دې باره کي پوره تفصيل په اول فصل کي تېر سوی دی .

پورتنی حديث مالک، ترمذي او ابن ماجه د ناجيه خزاعي ﷺ څخه نقل کړی دی او ابوداؤد او دارمي د ناجيه اسلمي ﷺ څخه، په څرګنده خو دا معلومېږي چي ددغه حديث دوه راويان دي يو ناجيه خزاعي ﷺ او بل ناجيه اسلمي ﷺ، حالانکه داسي نه ده دلته اختلاف يوازي دنسب دی او ذات يو دی يعني ناجيه خزاعي او ناجيه اسلمي د يوه صحابي نوم دی خبره يوازي داده چي ځينو په ناجيه اسلمي سره ذکر کړی دی او ځينو ورته ناجيه اسلمي ويلي دي ځکه چي خزاعي او اسلمي دواړه دده د نسل نومونه دي .

## د قرباني دورځي فضيلت

﴿۲۵۲۵﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ قُرْطٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ

د حضرت عبدالله بن قرط ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

أَعْظَمَ الْأَيَّامِ عِنْدَ اللّٰهِ تَبَارَكَ وَتَعَالَى يَوْمُ النَّحْرِ ثُمَّ يَوْمُ الْقَرِّ قَالَ ثَوْرٌ وَهُوَ

د الله تعالی په نزد په ټولو ورځو کي لويه ورځ د قرباني ورځ ده او بيا د قرورځ ، د ددې حديث

الْيَوْمُ الثَّانِي وَقَالَ وَقُرِّبَ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَدَنَاتٌ خَمْسٌ أَوْ

راوي ويلي دي چي د قرورځ د ذي الحجې يوولسمه نېټه ده د راوي بيان دئ چي پنځه يا

سِتٌّ فَطَفِقْنَ يَزْدَلِفْنَ إِلَيْهِ بِأَيَّتِهِنَّ يَبْدَأُ فَلَمَّا وَجَبَتْ جُنُوبُهَا قَالَ فَتَكَلَّمَ

شپږ د قرباني حيوانان رسول الله ﷺ ته نژدې راوستل سول نو دا حيوانان په خپله ورته نژدې کېدل پيل سول په هغو کي چي کوم يې خوښه وي هغه لومړی حلال کړي ، راوي وايي کله چي دا حيوانان پر بغل را پرېوتل نو رسول الله ﷺ

بِكَلِمَةٍ خَفِيَّةٍ لَمْ أَفْهَمْهَا فَقُلْتُ مَا قَالَ قَالَ مَنْ شَاءَ اقْتَطَعَ. رواه ابوداؤد و ذكر حديثا ابن عباس و جابر في باب الاضحية.

په کراره څه وفرمايل چي زه په پوه نه سوم ما د نژدې سړي څخه پوښتنه وکړل چي رسول الله ﷺ څه وفرمايل : هغه وويل : رسول الله ﷺ وفرمايل څوک چي غواړي ددې حيوانانو د غوښو ټوټه دي يوسي ، د ابن عباس او جابر حديث په باب الاضحية کي بيان سوي دئ. ابوداؤد.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲/ ۳٦۹، رقم: ۱۷٦۵.

**تشريح**: علامه طيبي رحمه الله فرمايي چي په ورځو کي لويه ورځ د قرباني ده ، ددې څخه مراد دادی چي د قرباني ورځ د هغه ورځو څخه يوه ورځ ده کوم چي افضل او غوره ورځي دي، دا مراد ځکه اخيستل سوی دی چي په نورو حديثو کي د ذي الحجې لسيزي ته د ټولو ورځو په مقابله کي افضل ويل سوي دي نو په دې اعتبار سره د ذي الحجې لسيزه افضله ده ، د ذي الحجې لسم تاريخ هم افضل دی ځکه چي دغه ورځ هم د ذي الحجې په لسيزه کي شامله ده.

اوس پاته سوه دا خبره چي څرنګه د حديثو څخه دا ثابتيږي چي په ټولو ورځو کي غوره ورځي د ذي الحجې لسيزي دي ، همدارنګه دا خبره هم د حديثو څخه ثابته سوې ده چي د رمضان اخيري لسيزه افضله ده نو دا تضاد داسي دفع کيږي چي هغه حديثونه چي د هغو څخه د ذي الحجې لسيزه غوره کېدل ثابتيږي په اشهر حرام سره مقيد کړل سي يعني دا وويل سي چي د اشهر حرام په ورځو کي غوره ورځي ايام ذي الحجې دي نو خلاصه دا سوه چي د ذي الحجې لسيزه په حرامو مياشتو کي غوره دي او د رمضان اخيري لسيزه په مطلق توګه په ټولو ورځو کي افضل دي.

د پورتني تضاد ليري کولو لپاره دا هم ويل کيدای سي چي دغه افضيلت د حيثيت په اعتبار مختلف دی يعني په رمضان کي روژې نيول کيږي ، په دغه مقدسه مياشت کي د عبادت ثواب ډېر زيات تر لاسه کيږي او د هغه په آخري لسيزه کي اعتکاف کيږي په دې اعتبار سره خو د رمضان اخيري لسيزه افضله ده او د ذي الحجې په لسيزه کي د حج افعال ادا کيږي او قرباني کيږي په دې اعتبار دا افضله ده.

د قر د ورځي څخه د قرباني د ورځي وروسته يعني د ذي الحجې يوولسم تاريخ مراد دی دغه ورځي د قر ورځ ځکه ويل کيږي چي دغه ورځ د مناسکو د ادا کولو او تکليف زغملو څخه

وروسته په منى كي په دغه ورځ حاجيانو ته سکون او وقار تر لاسه كيږي.

دلته دا انديښنه پيدا كيداى سي چي په حديث كي د عرفات ورځي ته افضل ويل سوي دي نو ددې جواب هم داداى چي د قر ورځ په هغه ورځو كي يوه ورځ كوم چي افضله ده.

اوښان رسول الله ﷺ ته نژدې كېدل ...الخ: ددې مطلب داداى چي رسول الله ﷺ د هغه اوښانو د ذبح كولو اراده وكړه او هغه اوښان رسول الله ﷺ ته راوستل سول نو هر يو اوښ د رسول الله ﷺ د مبارک لاس د بركت تر لاسه كولو لپاره ددې منتظر وو چي مخكي ما ذبح كړي، ددغه مقصد لپاره اوښانو د يو بل څخه په سبقت تر لاسه كولو كي هڅه كول، دا په اصل كي د رسول الله ﷺ معجزه وه چي په حيوانانو كي هم د بركت او سعادت تر لاسه كولو جذبه پيدا سوه كومه چي د انسانانو خاصه كېداى سي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د قربانۍ غوښه

﴿۲۵۲۶﴾: عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت سلمه بن الاكوع رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو كي چي

ضَحّٰى مِنْكُمْ فَلَا يُصْبِحَنَّ بَعْدَ ثَالِثَةٍ وَ فِي بَيْتِهِ مِنْهُ شَيْءٌ فَلَمَّا كَانَ الْعَامُ

څوک قرباني وكړي هغه دې تر درو ورځو وروسته هيڅ شى په كور كي نه ساتي (يعني غوښه)

الْمُقْبِلُ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ نَفْعَلُ كَمَا فَعَلْنَا عَامَ الْمَاضِي قَالَ كُلُوا وَأَطْعِمُوا

بيا چي دويم كال راغلئ نو خلكو پوښتنه وكړه اي د الله رسوله ايا سږ كال هم موږ همداسي وكړو څنګه چي تير كال مو كړي وه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: خورئ او ذخيره كوئ، او

وَادَّخِرُوا فَإِنَّ ذٰلِكَ الْعَامَ كَانَ بِالنَّاسِ جَهْدٌ فَأَرَدْتُ أَنْ تُعِينُوا فِيهِمْ. متفق عليه

تير مال ما له دې كبله منع كړې وه چي هغه كال د محنت، مشقت او مفلسۍ كال وو نو ما مناسب دا وګڼل چي په دې سره به د غريبانو مرسته وكړل سي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري) ۱۰\ ۲۴، رقم: ۵۵۶۹، ومسلم ۳\ ۱۵۶۳، رقم: ۳۴- ۱۹۷۴.

**تشريح**: يو كال په مدينه او شاوخوا سيمو كي سخته وچ كالي راغلې وه په دغه وخت كي د

خارج څخه دېر خلک مدينې منورې ته راتلل چي مدينه منوره ځيني دکه سوه ځکه رسول الله ﷺ فرمايلي وه چي د خلکو سره څومره غوښه وي هغه دي وويشي او نه دي يې ذخيره کوي بيا په راتلونکي کال چي د ويشلو حاجت پاته نه سو نو رسول الله ﷺ د جمع کېدو اجازه ورکړه.

﴿۲۵۲۷﴾: وَعَنْ نُبَيْشَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّا كُنَّا نَهَيْنَاكُمْ

د حضرت نبيشه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: موږ به تاسو منع کولاست

عَنْ لُحُومِهَا أَنْ تَأْكُلُوهَا فَوْقَ ثَلَاثٍ لِكَيْ تَسَعَكُمْ فَقَدْ جَاءَ اللّٰهُ بِالسَّعَةِ فَكُلُوا

چي د خپلي قرباني غوښه تر درو ورځو زيات مه خورئ، ددې وجه داوه چي پراخي وي (يعني د غريبانو مرسته وسي) اوس الله تعالى پراخي درکړې ده اوس چي تر څو پوري مو زړه وي خورئ

وَادَّخِرُوا وَاتَّجِرُوا أَلَا وَإِنَّ هَذِهِ الْأَيَّامَ أَيَّامُ أَكْلٍ وَشُرْبٍ وَذِكْرِ اللّٰهِ. رواه ابوداؤد

او پټوئ يې او صدقه کوئ، خبردار سئ چي دا ورځي د خوراک، څښاک او د الله تعالى د ذکر ورځي دي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\\۲۴۳، رقم: ۲۸۱۳.

**تشريح**: د حديث د آخري جملې مطلب دادی چي الله تعالى د دغه ارشاد مطابق دغه ورځي په ذکر الله کي د ډېر زيات بوخت کېدو ورځي دي:

فَإِذَا قَضَيْتُم مَّنَاسِكَكُمْ فَاذْكُرُواْ اللّٰهَ كَذِكْرِكُمْ آبَاءكُمْ أَوْ أَشَدَّ ذِكْرًا.

ژباړه: هر کله چي تاسو د حج د افعالو د ادا کولو څخه فارغ سئ نو الله تعالى يادوئ لکه څرنګه چي تاسو خپل پلرونه يادوئ يعني الله تعالى ډېر زيات يادوئ.

============

# بَابُ الْحَلْقِ (د سر خريلو بيان)

پر لسم د ذي الحجې د جمره عقبه د رمي څخه وروسته په منى کي هدي ذبح کيږي د هغه څخه وروسته د وېښتانو په خريلو يا کوچني کولو سره احرام خلاصيږي، همدارنګه د رفث (د ښځي سره جماع کول) څخه پرته هر هغه شی چي د احرام په حالت کي منع وو جائز کيږي، په دغه باب کي د سر خريلو او وېښتانو کوچني کولو دواړو ذکر کيږي که څه هم د مؤلف مشکوة

په عنوان کي يوازي د سر خريلو پر ذکر باندي اکتفاء سوې ده ځکه چي احرام ته د تلو لپاره د وېښتانو کوچني کولو په نسبت سر خريل افضل دي په دې باره کي به تفصيل راسي انشاء الله.
په دې خبره پوه سئ چي د رسول الله ﷺ په باره کي دا ثابت نه دي چي د حج او عمرې څخه پرته يې بل وخت سر خريلی وي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### سر خريل غوره دي

﴿۲۵۲۸﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَلَقَ رَاْسَهُ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ وَاُنَاسٌ مِّنْ أَصْحَابِهِ وَقَصَّرَ بَعْضُهُمْ. متفق عليه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي په حجة الوداع کي رسول الله ﷺ خپل سر مبارک وخرايه او په صحابه کرامو کي ځينو وخرايه او ځينو غچي کړ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۳\ ۵۶۱، رقم: ۴۴۱۰و ۴۴۱۱، ومسم ۲\ ۹۴۵، رقم: ۳۱۶-۱۳۰۱.

**تشريح**: کومو صحابه کرامو چي سرونه وخريل هغوئ خو د رسول الله ﷺ د پيروی د جذبې او د فضيلت تر لاسه کولو له کبله داسي وکړل او کومو صحابه کرامو چي د وېښتانو پر کوچني کولو اکتفاء وکړه نو هغوئ پر جواز باندي عمل وکړ چي وېښتان کوچني کول هم جائز دي، په صحيحين وغيره کي دا منقول دي چي رسول الله ﷺ په عمرة القضاء کي د سرخريلو پر ځای وېښتان کوچني کړي وه د دې څخه معلومه سوه چي د رسول الله ﷺ څخه دواړه ثابت دي مګر سرخريل غوره دي.

### د رسول الله ﷺ وېښتان کوچني کول

﴿۲۵۲۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ لِيْ مُعَاوِيَةُ أَنِّيْ قَصَّرْتُ مِنْ رَأْسِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ الْمَرْوَةِ بِمِشْقَصٍ. متفق عليه

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي ما ته معاوية وويل: ما مروة ته نژدې په غتي غچي سره د رسول الله ﷺ د سر وېښتان غچي کړل. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري)؛ ٣\٥٦١، رقم: ١٧٣٠، ومسلم ٢\٩١٣، رقم: ٢٠٩-١٢٣٦.

**د لغاتو حل**: مِشقَص: اى نصل طويل عريض او غير عريض له حدة وقيل: المراد به المقص وهو الاشبه في هذا المحل. (غجي).

**تشريح**: مشقص، ددې ترجمه ځينو حضراتو په لوى غچي سره كړې ده، دا معنى تر ټولو مناسبه او ډېره صحيح ده چونكه د حديثو څخه دا خبره ثابته سوې ده چي نبي كريم ﷺ په حج كي خپل سر مبارک خريلى دى او كوچنى كړى يې نه دى نو ددې څخه دا معلومه سوه چي د معاويه ؓ دا خبره د عمرې سره تعلق لري او د حج سره يې نه لري ځكه چي معاويه ؓ وايي چي عند المروة، ددې څخه معلومه سوه چي عمره ده ځكه كه حج واى نو بيا به يې داسي ويلي واى چي عند المنى، چي حلق په منى كي كيږي.

## د سر خريونكو لپاره در سول الله ﷺ دعاء

﴿٢٥٣٠﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ

د حضرت ابن عمر ؓ څخه روايت دئ چي په حجة الوداع كي رسول الله ﷺ وفرمايل:

اَللّٰهُمَّ ارْحَمْ الْمُحَلِّقِيْنَ قَالُوا وَالْمُقَصِّرِيْنَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ اللّٰهُمَّ ارْحَمْ

اې الله! پر سر خريونكو رحم وكړې، صحابه كرامو عرض وكړ اې د الله رسوله او پر غچي كوونكو؟ رسول الله ﷺ وفرمايل اې الله! رحم وكړې

الْمُحَلِّقِيْنَ قَالُوا وَالْمُقَصِّرِيْنَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ وَالْمُقَصِّرِيْنَ. متفق عليه

پر سر خريونكو، صحابه كرامو بيا پوښتنه وكړه اې د الله رسوله! او پر غچي كونكو باندي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل او پر غچي كونكو باندي هم. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري)؛ ٣\٥٦١، رقم: ١٧٢٧، ومسلم ٢\٩٤٥، رقم: ٣١٧-١٣٠١.

**تشريح**: ددې څخه د سرخريلو فضيلت ثابت سو چي رسول الله ﷺ د سر خريونكي لپاره څو واره د رحمت دعاء وكړه او د وېښتان كوچني كونكو لپاره يې د څو واره څخه وروسته يو وار د رحمت دعاء وكړه.

﴿٢٥٣١﴾: وَعَنْ يَحْيَى بْنِ الْحُصَيْنِ عَنْ جَدَّتِهِ أَنَّهَا سَمِعَتْ النَّبِيَّ ﷺ فِي

حَجَّةِ الْوَدَاعِ دَعَا لِلْمُحَلِّقِينَ ثَلَاثًا وَلِلْمُقَصِّرِينَ مَرَّةً وَاحِدَةً. رواه مسلم.

حضرت یحی بن الحصین د خپل انا څخه روایت کوي چي هغې په حجة الوداع کي د نبي کریم ﷺ څخه سر خریونکو لپاره درې واره دعا کول واوریدل او د غچي کونکو لپاره یو وار. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۲\۹۴۶، رقم: ۳۲۱-۱۳۰۳.

**تشریح**: د دغه حدیث څخه مخکي د بخاري او مسلم کوم روایت چي نقل سوی دی د هغه څخه معلومه سوه چي رسول الله ﷺ د سر خریونکو لپاره دوه واره دعاء وکړه او په دریم وار یې د وېښتانو کوچني کونکو ته هم وکړه، او د بخاري او مسلم په یو بل روایت کي دا منقول دي چي رسول الله ﷺ په څلورم وار د وېښتانو کوچني کونکو ته دعاء وکړه، حال دا چي د مسلم روایت دا ښیي چي رسول الله ﷺ د سر خریونکو لپاره درې واره دعاء وکړه او د وېښتانو کوچني کونکو لپاره یې یو وار او س که یې هغوئ په دریم وار کي ګډ کړي وي او که په څلورم وار کي د هغوئ لپاره یې بیله دعاء غوښتې وي.

په هر حال په دغه ټولو روایتو کي د مطابقت پیدا کولو لپاره علماء وایي چي رسول الله ﷺ به دغه دعاء په څو مجلسونو کي کړې وي نو په یوه مجلس کي به رسول الله ﷺ د سر خریونکو لپاره دوه واره او دریم وار به یې د وېښتانو کوچني کونکو لپاره دعاء کړې وي او په بل مجلس کي به یې درې واره د سر خریونکو لپاره او په څلورم وار به یې د وېښتانو کوچني کونکو لپاره دعاء کړې وي یا دا چي کوم راوي چي څه واوریدل او پر هغه حقیقت ظاهر سو نو هغه یې ذکر کړل.

## په سر خریلو کي د راسته خوا څخه شروع کول سنت دي

﴿۲۵۳۲﴾: وَعَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتٰي مِنًى فَاَتَي الْجَمْرَةَ فَرَمَاهَا

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ منا ته تشریف راوړ بیا جمره عقبه ته راغلئ او هلته یې رمي وکړل

ثُمَّ اَتٰي مَنْزِلَهُ بِمِنًى وَنَحَرَ نُسُكَهُ ثُمَّ دَعَا بِالْحَلَّاقِ وَنَاوَلَ الْحَالِقَ شِقَّهُ الْاَيْمَنَ

بیا په منا کي خپل تم ځای ته راغلئ او د خپلي قرباني حیوان یې حلال کړ بیا یې یو سرخریونکی راوغوښتئ او د خپل سر مبارک راسته طرف یې د هغه مخته کړ

فَحَلَقَهُ ثُمَّ دَعَا اَبَا طَلْحَةَ الْاَنْصَارِيَّ فَاَعْطَاهُ اِيَّاهُ ثُمَّ نَاوَلَهُ الشِّقَّ الْاَيْسَرَ فَقَالَ

او سر مبارک یې وخرایه، بیا یې ابو طلحه انصاري راوغوښتۍ او خریلي وربښتان یې هغه ته ورکړل بیا د خپل سر مباکر چپه طرف یې د خریونکي خوا ته کړ او وه یې فرمایل:

احْلِقْ فَحَلَقَهُ فَأَعْطَاهُ أَبَا طَلْحَةَ فَقَالَ اقْسِمْهُ بَيْنَ النَّاسِ . متفق عليه

وخریه، نو هغه وخریی دا وربښتان هم رسول الله ﷺ ابو طلحه ته ورکړه او ورته وه یې فرمایل: دا په خلکو وویشه. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ١\٢٧٣، رقم: ١٧١، ومسلم ٢\٩٤٧، رقم: ٣٢٣- ١٣٠٥.

**تشريح**: د دغه حدیث څخه دا معلومه سوه چي په سر خریلو کي د راسته خوا څخه شروع کول سنت دي، او دا خبره معلومه سوه چي په راسته خوا سره د سرخریونکي اعتبار دی چي هغه خپل د راسته خوا څخه خریل شروع کړي، حال دا چي ځیني حضرات وایي چي خریونکی ته د راسته خوا اعتبار دی یعني خریونکی دي د خپل راسته خوا څخه سر خریل شروع کړي.

## د قربانۍ په ورځ د خوشبویي لګول

﴿۲۵۳۳﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ أُطَيِّبُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ أَنْ يُحْرِمَ وَيَوْمَ النَّحْرِ قَبْلَ أَنْ يَطُوفَ بِالْبَيْتِ بِطِيبٍ فِيهِ مِسْكٌ . متفق عليه

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي ما به رسول الله ﷺ ته د احرام تړلو څخه وړاندي او د قربانۍ په ورځ د بیت الله د طواف څخه وړاندي هم خوشبویي لګول چي په هغه کي به مشک هم وه. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري) ٣\٣٩٦، رقم: ١٥٣٩، ومسلم ٢\٨٤٩، رقم: ٤٦- ١١٩١.

**تشريح**: علماء کرام وایي چي پر کومو ځایو باندي بي بي عائشې رضي الله عنها د خشبوئي لګولو ذکر کړی دی یعني د احرام تړلو څخه مخکي او د نحر په ورځ د کعبې شریفي د طواف څخه مخکي که چیري په دغه وختو کي خوشبویي لګول کیږي نو د مشک او ګلابو خوشبویي لګول تر ټولو غوره دي ځکه چي په دغه دواړو کي یوازي خوشبویي ده رنګ نه سته.

## د قربانۍ په ورځ رسول الله ﷺ د ماپښین لمونځ چیري وکړی؟

﴿۲۵۳۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفَاضَ يَوْمَ

النَّحْرِ ثُمَّ رَجَعَ فَصَلَّى الظُّهْرَ بِمِنًى . رواه مسلم

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د قرباني په ورځ مکې مکرمې ته تشريف راوړ بيا منا ته ولاړى او هلته يې د ماپښين لمونځ وکړ . مسلم.

**تخريج:** مسلم في الصحيح ۱۲/ ۹۵۰، رقم: ۳۳۵- ۱۳۰۸.

**تشريح:** د دغه حديث څخه دا معلومه سوه چي رسول الله ﷺ په لسم د ذي الحجې د ماپښين لمونځ په منى کي وکړ حال دا چي د حجة الوداع په باب کي د جابر رضي الله عنه د روايت څخه دا ثابتيږي چي رسول الله ﷺ په هغه ورځ د ماپښين لمونځ په مکه کي وکړ ، د دواړو روايتو ظاهري تضاد د جابر رضي الله عنه د روايت په تشريح کي دفع کيږي چي د هغه خلاصه داده چي رسول الله ﷺ د ماپښين لمونځ په مکه کي ادا کړی وو البته رسول الله ﷺ په منى کي نفل لمونځ وکړ چي ابن عمر رضي الله عنه هغه د ماپښين د لمانځه ګمان پر وکړ .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د ښځو د سر خريلو څخه منع

﴿۲۵۳۵﴾: عَنْ عَلِيٍّ وَّعَائِشَةَ قَالاَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تَحْلِقَ الْمَرْأَةُ رَأْسَهَا . رواه الترمذي .

د حضرت علي او عائشې رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د ښځو د سر خريلو څخه منع فرمايلې ده . ترمذي.

**تخريج:** الترمذي في السنن ۳/ ۲۵۷، رقم: ۹۱۵.

**تشريح:** مطلب دادی چي کله ښځه د احرام څخه ووځي نو خپل سر دي نه خريي، فقهي مسئله هم داده، هسي خو د حديث څخه د ښځو مطلقا د سر خريلو منع هم مراد کيدای سي لکه څرنګه چي د سرې لپاره د ږيرې خريل حرام دي همدارنګه د ښځي لپاره د سر خريل حرام دي هو که د يو ضرورت او مجبورۍ په وجه يې وخريي نو پروا نه لري.

### ښځي ته يوازي وېښتان کوچني کول پکار دي

﴿۲۵۳۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ

عَلَى النِّسَاءِ حَلْقٌ إِنَّمَا عَلَى النِّسَاءِ التَّقْصِيرُ. رواه ابوداؤد والدارمي، و هذا الباب خال عن الفصل الثالث.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د ښځو لپاره سر خريل نسته بلکه د ښځو لپاره ورېښتان لنډول دي. (ترحج وروسته). ابوداؤد او دارمي. په دې باب کي دريم فصل نسته.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۵۰۲، رقم: ۱۹۸۴، والدارمي ۲\۸۹، رقم: ۱۹۰۶.

**تشريح**: د حديث شريف مطلب دادی چي کله ښځه د احرام څخه ووځي نو سرخريل پر هغوئ واجب نه دي بلکه د هغوئ لپاره حرام دي مګر د وېښتانو کوچني کول پر هغوئ واجب دي پر خلاف د خلکو چي پر هغوئ باندي په دغه دواړو شيانو کي يو واجب دی مګر سر خريل غوره دي.

## د سر خريلو او يا وېښتانو کوچني کولو اندازه

د حنفيانو په نزد فقهي مسئله داده چي د سرخريلو په اړه څلورمه برخه د سرخريل واجب دي او د ټول سر خريل غوره دي مګر د وېښتانو کوچني کولو په اړه د څلورمي برخي د سر وېښتان د يوې ګوتي د بند په اندازه کوچني کول واجب دي او د ټول سر وېښتان کوچني کول مستحب دي مګر علامه ابن همام رحمه الله هغه قول اختيار کړی دی کوم چي د امام مالک رحمه الله مذهب دی چي د ټول سر خريل يا د ټول سر کوچني کول واجب دي او هغه وايي چي دا صحيح دی.

وهذا الباب خال عن الفصل الثالث

په دغه باب کي دريم فصل نسته.

========

# بَابٌ فِي التَّحَلُّل وَنقَلهم بَعْض الاعْمَال عَلى بَعْض

## په حج كي د تقديم او تاخير بيان

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### په حج كي تقديم او تاخير

﴿۲۵۳۷﴾: عَنْ عَبْدِاللّٰهِ ابْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبدالله ابن عمرو بن العاص ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ

وَسَلَّمَ وَقَفَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ بِمِنًى لِلنَّاسِ يَسْأَلُونَهُ فَجَاءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ لَمْ

په حجة الوداع كي په منا كي تم سو چي خلک مسائل ځني و پوښتي نو يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سو او عرض يې وكړ چي

أَشْعُرْ فَحَلَقْتُ قَبْلَ أَنْ أَذْبَحَ فَقَالَ اذْبَحْ وَلَا حَرَجَ فَجَاءَ آخَرُ فَقَالَ لَمْ

د ناپوهی له كبله د حلالولو څخه وړاندي ما سر وخرايه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ذبح وكړه هيڅ پروا نسته، دويم سړی راغلئ هغه عرض وكړ

أَشْعُرْ فَنَحَرْتُ قَبْلَ أَنْ أَرْمِيَ فقَالَ ارْمِ وَلَا حَرَجَ فَمَا سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

د ناپوهی له كبله د جمرو د ويشتلو څخه وړاندي ما قرباني وكړه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: اوس د جمرو ويشتل وكړه هيڅ پروا نسته، لنډيز دا چي د تقديم او تاخير له كبله چي كوم مسائل د رسول الله ﷺ څخه و پوښتل سول

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ شَيْءٍ قُدِّمَ وَلَا أُخِّرَ إِلَّا قَالَ افْعَلْ وَلَا حَرَجَ. متفق عليه و

د ټولو جواب رسول الله ﷺ همدغه وفرمايل چي اوس يې وكړه هيڅ پروا نسته، بخاري او

فِي رواية لمسلم أَتَاهُ رَجُلٌ فَقَالَ حَلَقْتُ قَبْلَ أَنْ أَرْمِيَ قَالَ ارْمِ وَلَا حَرَجَ

مسلم، او د مسلم په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت كي

حاضر سو او عرض يې وکړ چي ما د جمرو ويشتلو څخه مخکي سر وخرايه ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : جمرې وولـه هيڅ ګناه نسته

وَأَتَاهُ آخَرُ فَقَالَ إِنِّي أَفَضْتُ إِلَى الْبَيْتِ قَبْلَ أَنْ أَرْمِيَ قَالَ ارْمِ وَلَا حَرَجَ .

او يو بل سړی راغلئ هغه عرض وکړ چي د جمرو ويشتلو څخه مخکي ما طواف کړی دئ ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل اوس جمرې وولـه هيڅ ګناه نسته .

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري) : ۱۱\ ۱۸۰ ، رقم : ۸۳ ، ومسلم ۱۲\ ۹۴۸ ، رقم : ۳۲۷ - ۱۳۰۶ .

**تشريح** : په دغه روايت کي د حج د افعالو د تقديم او تاخير په اړه فرمايل سوي دي او د پوښتنه کونکو جوابونه ورکړل سوي دي چي د قرباني په ورځ يعني د ذي الحجې پر لسم تاريخ کيږي ، په دغه ورځ څلور شيان وي چي د هغو ترتيب دادی : منی ته په رسيدو سره تر ټولو مخکي د جمره عقبه چي دا يو مينار دی په اوو ډبرو ويشتل بيا حيوان چي د هغه تفصيل مخکي بيان سوی دی ذبح کيږي ددې څخه وروسته سر خريل کيږي او يا وېښتان کوچني کيږي بيا مکې ته په تلو سره د کعبې شريفې طواف کيږي په دغه ترتيب سره ددغه افعالو ادا کول د اکثرو علماؤ په نزد د پورتني حديث په رڼا کي سنت دي امام شافعي او امام احمد هم په دوئ کي شامل دي ، ددغه حضراتو په نزد که ددغه افعالو په ادا کولو کي مخته والی او وروسته والی وسي نو د جزاء په توګه دم يعني د حيوان ذبح کول نه واجبيږي د علماؤ د يو ډلي وينا داده چي پورتنی ترتيب واجب د امام ابوحنيفة او امام مالک هم ددغه ډلي سره دی دا حضرات وايي چي په حديث کي هيڅ حرج نه سته مطلب يوازي دادی چي دغه تقديم او تاخير د ناخبرتيا او هيرې په وجه سوی دی ځکه په دې کي څه ګناه نه سته مګر د جزاء په توګه دم يعني د حيوان ذبح کول واجب دي ، ددغه حضراتو د مذهب مطابق په دغه څلورو شيانو کي که يو شی مخته يا شا ته سي نو د جزاء په توګه د يوه پسه يا ددې په مثل حيوان ذبح کول ضروري دي .

علامه طيبي رحمه الله فرمايي چي ابن عباس رضي الله عنهما هم داسي حديث روايت کړی دی او خپله هغه د پورتنيو افعالو د تقديم او تاخير په اړه دم واجب کړی دی که چيري هغه د حديث هغه معنی نه ګڼلای کوم چي امام ابوحنيفة او د هغوئ ملګرو ګڼلی دي نو هغه به خپله دم ولي واجبولای .

﴿۲۵۳۸﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسْأَلُ يَوْمَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي د قرباني په ورځ په منا کی خلکو د رسول الله ﷺ

ځخه مسائل پوښتل،

النَّحْرِ بِمِنًى فَيَقُولُ لَا حَرَجَ فَسَأَلَهُ رَجُلٌ فَقَالَ رَمَيْتُ بَعْدَ مَا أَمْسَيْتُ فَقَالَ لَا حَرَجَ. رواه البخاري.

او رسول الله ﷺ به د هري مسئلې په جواب کي دا فرمايل: هيڅ پروا نسته، يو سړي پوښتنه وکړه چي ما د ماښام کېدو ځخه وروسته جمرې وويشتلې، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هيڅ ګناه نسته. بخاري

**تخريج:** البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳\۵۵۹، رقم: ۱۷۲۳.

**تشريح:** د نورو امامانو مذهب دادی که يو سړی د قربانۍ په ورځ په رمي کي دومره ځنډ وکړي چي لمر ولوېږي نو پر هغه دم واجب دی د هغویٔ په نزد په حديث کي د ماښام ځخه وروسته ځخه مراد د مازديګر ځخه وروسته دی، د حنفيه په نزد په دې اړه تفصيل دادی چي په لسم د ذي الحجې د صبح صادق ختلو ځخه وروسته د لمر ختلو ځخه مخکي وخت د رمي لپاره د جواز وخت دی مګر په اساءة سره يعني که يو سړی د صبح صادق ځخه وروسته رمي وکړي نو دا جائز کيږي مګر ښه به نه وي د لمر ختلو ځخه وروسته تر زوال پوري وخت سنت دی، د لمر د زوال ځخه وروسته د لمر تر لوېدو پوري که چيري رمي وکړي نو دا جائز دی او په دې باره کي به دا هم نه وايو چي هغه ښه ونه کړل البته د سنت وخت سعادت به هغه ته تر لاسه نه وي او د لمر لوېدو ځخه وروسته يعني د شپې وخت د جواز وخت دی مګر په کراهت سره.

دا خبره دي په ذهن کي وي چي کراهت په هغه صورت کي دی کله چي يو سړی بېله عذره دومره ځنډ وکړي چي لمر هم ولوېږي او بيا هغه په شپه کي رمي وکړي، که چيري شپانه يا د هغویٔ په مثل هغه خلک چي د يو عذر په وجه د شپې رمي وکړي نو د هغویٔ په حق کي کراهت نسته.

په دغه حديث کي د رسول الله ﷺ دا فرمايل چي هيڅ حرج نه سته پر دې خبره دلالت کوي چي پوښتنه کونکی به شپانه وي چي هغه د ماښام ځخه وروسته يعني د شپې رمي وکړي ځکه رسول الله ﷺ د هغه په باره کي وفرمايل چي ته د ورځي د رمي ځخه معذور وې ځکه د شپې د رمي کولو په وجه به پر تا څه ګناه نه وي.

علامه ابن همام رحمه الله فرمايي که يو سړی بېله عذره په رمي کولو کي دومره ځنډ وکړي چي سهار سي نو هغه دي رمي وکړي مګر پر هغه باندي د جزاء په توګه دم يعني د حيوان ذبح

کول واجبيږي ، دا د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه قول دی او د صاحبينو ددې سره اختلاف دی.

د يوم نحر څخه وروسته په دوو ورځو يعني د ذي الحجې په يوولسم او دوولسم تاريخ کي د رمي سنت وخت ذ لمر د زوال څخه وروسته تر لمر لوېدو پوري دی او د لمر لوېدو څخه وروسته تر صبح صادق راختلو پوري مکروه وخت دی نو د صبح صادق په راختلو سره د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه په نزد دا وخت د صبح صادق راختلو څخه وروسته هم باقي وي يعني د رمي وخت د صبح صادق څخه وروسته په اتفاق سره باقي وي فرق يوازي دومره دی چي دا وخت رمي به د امام صاحب په نزد د قضاء په وخت کي وي او د صاحبينو حضرت امام ابويوسف او حضرت امام محمد رحمة الله عليهما په نزد په دغه وخت کي او په څلورمه ورځ يعني د ذي الحجې پر ديارلسم تاريخ د لمر لوېدو سره په اتفاق سره د ټولو په نزد د رمي د ادا کولو وخت هم فوت کيږي او د قضاء وخت هم فوت کيږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

﴿۲۵۳۹﴾: عَنْ عَلِيٍّ قَالَ أَتَاهُ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي أَفَضْتُ قَبْلَ أَنْ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم ته يو سړی راغلئ او عرض يې وکړ اې دالله رسوله ! ما د سر خريلو څخه وړاندي فرض طواف وکړ ،

أَحْلِقَ قَالَ احْلِقْ أَوْ قَصِّرْ وَلَا حَرَجَ وَجَاءَ آخَرُ فَقَالَ ذَبَحْتُ قَبْلَ أَنْ أَرْمِيَ قَالَ ارْمِ وَلَا حَرَجَ . رواه الترمذي .

رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل :سر وخريه يا غچي يې کړه هيڅ پروا نسته ، دويم سړی راغلئ هغه وويل :ما د جمرو ويشتلو څخه مخکي قرباني کړې ده ، رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل : جمرې ووله هيڅ ګناه نسته . ترمذي .

**تخريج** : الترمذي في السنن ۳\ ۲۳۲، رقم: ۸۸۵.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

﴿۲۵۴۰﴾: عَنْ أُسَامَةَ بْنِ شَرِيكٍ قَالَ خَرَجْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت اسامه بن شریک رضي الله عنه څخه روایت دئ چي زه د نبي کریم ﷺ سره د حج کولو لپاره ولاړم،

حَاجًّا فَكَانَ النَّاسُ يَأْتُونَهُ فَمَنْ قَائِلٌ يَا رَسُولَ اللهِ سَعَيْتُ قَبْلَ أَنْ أَطُوفَ

خلک به د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضریدل او مسائل به یې پوښتل، ځینو به دا ویل اې دالله رسوله! ما د طواف څخه وړاندي د صفا او مروه سعي کړې ده،

أَخَّرْتُ شَيْئًا او قدمت شيئا فَكَانَ يَقُولُ لَا حَرَجَ إِلَّا عَلَى رَجُلٍ اقْتَرَضَ

ځینو به ویل دا کار ما وروسته کړی دی او ځینو به ویل دا کار ما وړاندي کړی دئ، رسول الله ﷺ به د ټولو په جواب کي فرمایل: هیڅ ګناه نسته، البته ګناه د هغه سړي ده چي ظالم وي

عِرْضَ مُسْلِمٍ وَهُوَ ظَالِمٌ فَذَلِكَ الَّذِي حَرِجَ وَهَلَكَ. رواه ابوداؤد.

او د یو مسلمان بې عزتي وکړي دا سړی هلاک سو. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۲\ ۵۱۷، رقم: ۲۰۱۵.

**تشریح**: که چیري د احرام تړلو او طواف قدوم یا طواف نفل څخه مخکي سعي وکړل سي نو صحیح به نه وي یعني د طواف افاضه څخه مخکي په سعي کولو کي څه پروا نسته مګر دا ضروري ده چي سعي د احرام او طواف څخه وروسته وي که څه هم نفل طواف وي.

ځکه ما د کعبې د طواف څخه مخکي سعي کړې ده: په دې باره کي دا ویل کیږي چي پوښتنه کونکی که غیر مکي وي نو ددې مطلب به دا وي چي ما د حج د احرام او طواف قدوم څخه وروسته او د طواف افاضه څخه مخکي سعي کړې ده او که چیري پوښتنه کونکی مکي وي نو بیا مطلب دا دی چي ما د حج د احرام او طواف نفل څخه وروسته او د طواف افاضه څخه مخکي سعي کړې ده.

د حدیث د آخري الفاظو مطلب دا دی که چیري د منی په افعالو کي د ناخبرتیا په وجه تقدیم او تاخیر وسي نو د ګناه خبره نه ده بلکه په اصل کي ګناه کار هغه سړی دی چي د ظلم او ضرر رسولو له کبله په ناحقه د چا بې عزتي وکړي مثلاً د چا سپکاوی وکړي یا د چا غیبت وکړي یعني هغه سړی په دغه حکم کي داخل نه دی چي د دین له کبله د یو چا آبرو ریزي وکړي نو داسي خلک به ګناه کار نه وي.

=======

# بَابُ خُطْبَةِ يَوْمِ النّحْرِ وَ رَمْيِ اَيّامِ التّشْرِيْقِ وَالتّوْدِيْعِ

## د قربانۍ په ورځ خطبه ، رمي او د طواف رخصت بيان

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د قربانۍ په ورځ خطبه

﴿۲۵۴۱﴾: عَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ قَالَ خَطَبَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ النَّحْرِ

د حضرت ابو بكرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د قربانۍ په ورځ رسول الله ﷺ زموږ په وړاندي دا خطبه وفرمايل :

قَالَ ان الزمان قد استدار كهيئته يوم خلق الله السموات والارض السنة

زمانه د خپل هغه وضع سره سم چي په هغې كي وه راوګرځيده وضعي خپلي ته په هغه ورځ چي الله تعالى آسمانونه او مځكي پيدا كړل (يعني په كومه ورځ چي الله تعالى آسمانونه او مځكي پيدا كړي وه بيا په هغه ورځ راغلل او كال پوره سو ، كال

اثنا عشر شهرا منها اربعة حرم ثلث متواليات ذوالقعدة و ذوالحجة

دوولس مياشتي وي چي په هغو كي څلور مياشتي د عزت (حرمت) دي ، درې خو پرله پسې دي يعني ذوالقعده ، ذوالحجة ،

والمحرم ورجب مضر الذي بين جمادي و شعبان وقال أَيُّ شهر هَذَا قُلْنَا

محرم او څلورمه رجب مضر چي د جمادي او شعبان په منځ كي ده ، بيا رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه : دا كومه مياشت ده ؟ موږ عرض وكړ

اللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ أَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتّٰى ظَنَنَّا اَنَّهُ سَيُسَمِّيهِ بِغَيْرِ اسْمِهِ فقَالَ أَلَيْسَ

الله تعالى او د هغه رسول ښه پوهيږي ، رسول الله ﷺ پټه خوله سو ، زموږ خيال سو چي رسول الله ﷺ د دې مياشتي يو بل نوم ايږدي ، رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا ذوالحجة نه ده ؟

ذالحجة قُلْنَا بَلَى قَالَ أَيُّ بَلَدٍ هَذَا قُلْنَا اللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ أَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتّٰى ظَنَنَّا

موږ عرض وکړ هو ، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل دا کوم ښار دئ ؟ موږ عرض وکړ الله ﷻ او د هغه رسول ښه پوهیږي ، رسول الله ﷺ پټه خوله سو ، تر دي چي زموږ دا خیال سو چي

أَنَّهُ سَيُسَمِّيهِ بِغَيْرِ اسْمِهِ قَالَ أَلَيْسَتْ بِالْبَلْدَةِ قُلْنَا بَلَى قَالَ فَأَيُّ يَوْمٍ هَذَا

نبي ﷺ یو بل نوم پر ایږدي، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل : ایا دا بلده (مکه) نه ده ؟ موږ عرض وکړ هو ، بیا یې پوښتنه وکړه دا کومه ورځ ده ؟

قُلْنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ فَسَكَتَ حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ سَيُسَمِّيهِ بِغَيْرِ اسْمِهِ قَالَ

موږ وویل الله ﷻ او د هغه رسول ښه پوهیږي ، بیا رسول الله ﷺ پټه خوله سو او زموږ گمان سو چي رسول الله ﷺ به ددې بل نوم ایږدي، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل :

أَلَيْسَ يَوْمَ النَّحْرِ قُلْنَا بَلَى قَالَ فَإِنَّ دِمَاءَكُمْ وَأَمْوَالَكُمْ وَأَعْرَاضَكُمْ عَلَيْكُمْ

ایا دا د قربانۍ ورځ نه ده ؟ موږ عرض وکړ هو ، رسول الله ﷺ وفرمایل : (د نن ورځي څخه) ستاسو وینه، ستاسو مال او ستاسو عزت پر تاسو

حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هَذَا وَفِي بَلَدِكُمْ هَذَا فِي شَهْرِكُمْ هَذَا وَسَتَلْقَوْنَ

حرام دئ لکه څرنگه چي په دې ورځ ، په دې ښار او په دې میاشت کي حرام دي ، (اې خلکو !) ډیر ژر به تاسو د خپل پروردگار سره یو ځای کیږئ

رَبَّكُمْ فَيَسْأَلُكُمْ عَنْ أَعْمَالِكُمْ أَلَا فَلَا تَرْجِعُوا بَعْدِي ضُلَّالًا يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ

هغه به ستاسو څخه ستاسو د اعمالو په اړه پوښتنه کوي ، خبردار ! چي زما وروسته گمراه نه

رِقَابَ بَعْضٍ أَلَا هَلْ بَلَّغْتُ قَالُوا نَعَمْ قَالَ اللَّهُمَّ اشْهَدْ فَلْيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ فَرُبَّ مُبَلَّغٍ أَوْعَى مِنْ سَامِعٍ . متفق علیه

سئ چي د یو بل غاړي وهل پیل کړئ ،خبردار سئ ایا ما خپل فرض ادا کړل ؟ (یعني د الله احکام مي تاسو ته ورسول ؟) موږ عرض وکړ هو ، اې د الله رسوله، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل : اې الله ! ته هم شاهد اوسه ، صحابه کرامو ته یې وفرمایل : په تاسو کي چي کوم خلک دلته شتون

لري هغوئ دي هغه خلکو ته دا خبري ورسوي کوم چي دلته شتون نه لري، ځکه چي ځيني هغه خلک چي هغوئ ته پيغام ورسول سي تر پيغام اوريدونکو زيات ياد لرونکي وي . بخاري او مسلم .

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳\۵۷۳، رقم: ۱۷۱۴، ومسلم ۳\۱۳۰۵، رقم: ۲۹- ۱۶۷۹.

**تشريح** : د شافعيانو په نزد د ايام نحر په اوله ورځ يعني د ذي الحجې پر لسم تاريخ خطبه ويل مستحب دي او د حنفيه په نزد د نحر په دوهمه ورځ يعني د ذي الحجې پر دوولسم تاريخ مستحب ده ، د حنفي مذهب سره سم يوه خطبه د ذي الحجې پر اووم او يوه خطبه پر نهم او يوه خطبه پر يوولسم ويل کيږي او په دغه خطبو کي د حج احکام بيانيږي ، په کومو صحيح حديثو کي چي په دوهمه ورځ د رسول الله ﷺ د خطبې ذکر سوی دی هغه د حنفي مذهب مؤيد دي نو ددغه حديث په باره کي به ويل کيږي چي رسول الله ﷺ د تذکير او نصيحت په توګه خطبه ويلې ده او اصل خطبه يې په دوهمه ورځ فرمايلې ده .

د حديث شريف د اولو جملو مطلب دادی چي د شروع څخه الله تعالی د کال دوولس مياشتي ټاکلي دي ددې سره سم د دوولس مياشتو کال پوره سو ، په قرآن کريم کي د کال د دوولس مياشتو په اړه داي فرمايل سوي دي :

إِنَّ عِدَّةَ الشُّهُورِ عِندَ اللهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا فِي كِتَابِ اللهِ يَوْمَ خَلَقَ السَّمَاوَات وَالأَرْضَ،

ژباړه: په تحقيق سره د مياشتو شمېر په کتاب الهي کي د الله تعالی په نزد دوولس مياشتي دی په کومه ورځ چي الله تعالی آسمان او مځکه پيدا کړي وه .

د رسول الله ﷺ د قول خلاصه داده چي د جاهليت په زمانه کي عربو د کال په مياشتو کي تغير کړی وو د هغه صورت دا وو چي هغوئ به يو کال دوولس مياشتي ايښودی او يو کال به يې ديارلس مياشتي همدارنګه هغوئ به د حج په ادا کولو کي په هر دوه کاله کي يوه مياشت مؤخر کول مثلاً يو کال به هغوئ په يوه مياشت کي حج کوی بيا دوهم کال به د ديارلس مياشتو په ګرځولو سره په هغه مياشت کي به يې حج کوی کوم چي اول کال د حج د مياشتي څخه وروسته به راتلل ، په دغه صورت کي نه يوازي دا چي د حج مياشت بدلېدل بلکه کومي مياشتي چي به اشهر حرام وې هغه به يې اشهر حرام نه ګرځولې او کومي مياشتي چي به اشهر حرام نه وې هغه به يې اشهر حرام ګرځولې ، مثلاً په کومو مياشتو کي چي به جنګ حرام نه وو په هغه کي به يې جنګ څخه پرهيز کوی او د هغه مياشتو به يې ښه تعظيم کوی او په کومو مياشتو کي چي به جنګ حرام وو په هغه کي به يې په پوره توګه سره جنګ کوی يعني کومه مياشت چي

به په واقعت کي د محرم میاشت وه هغه به دوئ د خپل احمقانه حساب له مخي د محرم میاشت نه ګڼل چي په نتیجه کي به یې په هغه کي ښه جنګ کوی همدارنګه صفر یا یو بله میاشت به یې په خپل حساب سره حرامه ګرځول او په هغه کي به یې د جنګ څخه منعه کول نو الله تعالی د هغوئ د دغه احمقانه عمل په باره کي دا حکم وکړ : انما النسئ زیادة في الکفر : او د هغوئ له خوا په میاشتو کي دغه تبدیل د هغوئ په کفر کي زیاتوب دی .

همدارنګه الله تعالی د هغوئ حساب باطل وګرځوی او د کال هره میاشت یې د هغه پر اصل وګرځول ، رسول الله ﷺ چي په کوم کال حجة الوداع کړی دی په هغه کال د ذي الحجې میاشت پر خپل اصل وه ځکه رسول الله ﷺ : ان الزمان قد استدار کهیئة: یعني بېشکه د کال ګردش د خپل واضع موافق پوره سو ، په دې فرمایلو سره یې خلک خبردار کړل چي الله تعالی حکم کړی دی چي دغه میاشت د ذي الحجې وه او د حج دا میاشت ده نو دا میاشت په یاد لرئ او په دې کي حج کوئ او په راتلونکي کي یوه میاشت د بلي میاشتي سره مه بدلوئ .

مشهور مفسر بیضاوي رحمه الله فرمایي چي د جاهلیت په زمانه کي د عربو دا رواج وو چي کله به حرامه میاشت راغله او هغوئ ته به په هغه میاشت کي جنګ کول منظور وه نو هغه حرامه میاشت به یې حلاله ګرځول او د هغه څخه وروسته یوه بله میاشت به یې حرام ګرځول همدارنګه د میاشتو اصلي خصوصیت هغوئ ترک کړی وو یوازي د عدد اعتبار یې ساتلی وو .

د حدیث الفاظ (السنة اثنا عشر شهرا) دا جمله مستانفه ده یعني بېله جمله ده چي د ماقبل جملې بیان او د هغې وضاحت دی .

منها اربعة حرم : چي په هغو کي څلور میاشتي حرامي دي لکه څرنګه چي حدیث د دغه څلورو میاشتو وضاحت کړی دی چي هغه ذي قعده ، ذي الحجه ، محرم او د رجب میاشتي دي په دغه میاشتو کي قتل او قتال او جګړه کول منعه دي لکه څرنګه چي د الله تعالی ارشاد دی : فلا تظلموا فیهن انفسکم : نو په دغه میاشتو کي پر خپل ځانو باندي ظلم مه کوئ .

مګر اکثر علماء دا وایي چي په دغه میاشتو کي د قتل او قتال حرمت منسوخ دی د دوئ په نزد په پورتني آیت کي د ظلم څخه مراد د ګناه کول دي همدارنګه د پورتني آیت مطلب به دا وي چي په دغه میاشتو کي په ګناه کولو سره خپل ځان ته تاوان مه رسوئ لکه څرنګه چي په حرم کي او د احرام په حالت کي ګناه کول ډېر بد کار دی همدارنګه په دغه میاشتو کي ګناه کول ډېره بده خبره ده ، د دغه علماؤ د قول تائید د دې خبري څخه هم کیږي چي نبي کریم ﷺ د شوال او ذي قعده په میاشتو کي طائف محاصره کړی او د هوازن د قبیلې سره یې غزا کړې وه ، ځیني علماء

وايي چي په دغه مياشتو کي د قتال د حرمت حکم اوس هم پاته دی .
مضر د عربو د يو قبيلې نوم دی ، دغه قبيلې به د رجب د مياشتي ډېر عزت کوی په دې وجه د رجب د نسبت دغه قبيلې ته په کولو سره رسول الله ﷺ رجب مضر و فرمايل .
رسول الله ﷺ د خلکو څخه د مياشتي ، ورځي او د ښار نوم ځکه وپوښتی چي د خلکو په ذهن او زړه کي د دغه مياشتي ، ورځي او ښار حرمت په پوره توګه ځای ونيسي او په داسي سره هغوئ د دې خبري په اهميت پوه سي او پر هغه باندي د عمل کولو پوره يقين پيدا کړي چي د هغه وروسته بيانول مقصود وه همدارنګه د رسول الله ﷺ په پوښتنه د خلکو په جواب کي دا ويل چي الله او د هغه رسول ښه پوهيږي نه يوازي دا چي د ادب له مخي وو بلکه د دې څخه په دې پوهېدل هم مقصد وو چي د دغه پوښتني څخه د رسول الله ﷺ مقصد څه شي دی .
په ځينو حديثو کي د دغه جمله : فلا ترجعوا بعدي ضلالا : زما د وفات څخه وروسته تاسو ضلالت او ګمراهي ته مه ګرځئ، په دې کي لفظ د ضلالا پر ځای لفظ د کفارا ذکر سوی دی په دې صورت کي د دغه جملې معنی داده چي زما د وفات څخه وروسته تاسو په اعمالو کي د کافرانو مشابه مه کيږئ چي د هغه کافرانو په ډول تاسو هم د يو بل غاړه وهل شروع کړئ .

## په يوولسمه او دوولسمه د رمي وخت

﴿۲۵۴۲﴾: وَعَنْ وَبَرَةَ قَالَ سَأَلْتُ ابْنَ عُمَرَ مَتَى أَرْمِي الْجِمَارَ قَالَ إِذَا رَمَى

د حضرت وبرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د ابن عباس رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چي زه کله جمرې وولم ؟ هغه راته وويل کله چي ستا امام جمرې ولي

إِمَامُكَ فَارْمِهْ فَأَعَدْتُ عَلَيْهِ الْمَسْأَلَةَ فقَالَ كُنَّا نَتَحَيَّنُ فَإِذَا زَالَتْ الشَّمْسُ رَمَيْنَا . رواه البخاري

هغه وخت ته هم جمرې وولـه، ما بيا همداسي وويل : نو هغه وويل موږ به انتظار کوي کله چي به ورځ زوال سوه نو موږ به جمرې وويشتلې . بخاري .

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري) ۳\۵۷۹، رقم: ۱۷۴۶.

## درمي ترتيب

﴿۲۵۴۳﴾: وَعَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ كَانَ يَرْمِي الْجَمْرَةَ الدُّنْيَا بِسَبْعِ

حضرت سالم رحمه الله د ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت کوي چي ابن عمر رضي الله عنه به نژدې جمره (چي مسجد حنيف ته نژدې ده او د هغې نوم جمره اولی ده) ويشتل په اووه

حَصَيَاتٍ يُكَبِّرُ عَلَى إِثْرِ كُلِّ حَصَاةٍ ثُمَّ يَتَقَدَّمُ حَتَّى يُسْهِلَ فَيَقُومُ مُسْتَقْبِلَ

ډبرو او په هر وار ويشتلو به يې الله اکبر وايه، بيا به پر مخ تلئ او نرمې مځکي ته چي به ورسيدئ نو مخ پر قبله به ودريدئ

الْقِبْلَةِ طَوِيلًا وَيَدْعُو وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ ثُمَّ يَرْمِي الْوُسْطَى بسبع حصيات يكبره

او تر ډيره به ولاړ وو او دعاء به يې غوښتل او خپل دواړه لاسونه به يې پورته کړل بيا به يې جمره وسطی په اووه ډبرو ويشتل او د هر وار ويشتلو سره به يې الله اکبر وايه،

وكلما رمى بحصاة ثُمَّ يَأْخُذُ ذَاتَ الشِّمَالِ فَيَسْتَهِلُ وَيَقُومُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ

بيا به چپه طرف ته تلی او نرمې مځکي ته په رسيدو سره به مخ پر قبله ودريدئ او دعاء به يې

وَيَدْعُو وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ وَيَقُومُ طَوِيلًا ثُمَّ يَرْمِي جَمْرَةَ ذَاتِ الْعَقَبَةِ مِنْ بَطْنِ

کول او لاسونه به يې پورته کړل او تر ډيره وخته پوري به ولاړ وو، بيا په جمره ذات العقبه کي به

الْوَادِي بسبع حصيات يكبر عند كل حصياة وَلَا يَقِفُ عِنْدَهَا ثُمَّ يَنْصَرِفُ

په شېله کي دريدو سره به يې اووه واره ويشتل کول او په هر وار ويشتلو به يې الله اکبر وايه او د دې سره نژدې به تر ډيره وخته پوري نه دريدئ بيا به روان سو

فَيَقُولُ هَكَذَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُهُ. رواه البخاري

او ويل به يې همدا سي ما نبي کريم ﷺ په کولو ليدلی دئ. بخاري.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۳\۵۸۲، رقم: ۱۷۵۱،

**د لغاتو حل**: يُسهِل: اى يدخل المكان السهل.

**تشريح**: د پورتني ترتيب سره سم كه څه هم د حنفيه په نزد رمي سنت ده مګر د احتياط تقاضا داده چي دغه ترتيب نه پرېښودل سي ځکه چي دغه ترتيب د امام شافعي رحمة الله عليه وغيره په نزد واجب دی، پر موالات يعني ټولو جمراتو باندي پر له پسې رمي كول هم سنت دي او دا مام مالک رحمة الله عليه په مذهب كي واجب دي .

من بطن الوادي: د بطن وادي څخه دا خبره معلومه سوه چي د جمره عقبه رمي بطن وادي ته په درېدو سره وکړل سي په کښته برخه کي په درېدو سره رمي كول سنت دي مګر په هدايه كي راغلي دي كه چيري د لوړي خوا څخه جمره عقبه وويشتل سي نو په داسي كولو سره رمي خو کيږي مګر د سنت خلاف كار دی .

د جمره اولی او جمره وسطی سره درېدل او حمد، صلوة او دعاء كي بوخت كېدل خو ثابت دي مګر دريمه جمره يعني د جمره عقبی سره درېدل او دعاء غوښتل ثابت نه دي او ددې يو وجه او علت منقول نه دی كه څه هم ځينو علماؤ په دې اړه څه ناڅه ليكلي دي .

## په منى كي شپه كول واجب دي كه سنت؟

﴿۲۵۴۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ اسْتَأْذَنَ الْعَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ رَضِيَ اللّٰهُ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي عباس بن عبد المطلب د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه ددې

عَنْهُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَبِيتَ بِمَكَّةَ لَيَالِيَ مِنًى مِنْ أَجْلِ سِقَايَتِهِ فَأَذِنَ لَهُ . متفق عليه

غوښتنه وکړه چي د منا د قيام په شپو كي هغه ته په مکه كي د پاته كېدو اجازه وركړل سي چي خلكو ته د زمزم اوبه وركړي، رسول الله صلى الله عليه وسلم اجازه وركړه . بخاري او مسلم .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳\ ۴۹۰، رقم: ۱۶۳۴، ومسلم ۲\ ۹۵۳، رقم: ۳۴۶-۱۳۱۵.

**تشريح**: د طواف اضافه څخه وروسته د زمزم اوبه څښل مستحب دي په هغه زمانه كي به د زمزم څاه ته نژدې يو څو حوضونه د زمزم د اوبو څخه ډک وه كه يو څوک د رش په وجه د څاه څخه اوبه نه سي څښلای نو هغه به ددغه حوض څخه اوبه څښي ، د زمزم د نګرانی سعادت د رسول الله صلى الله عليه وسلم اكا حضرت عباس رضي الله عنه ته تر لاسه وو همدارنګه د زمزم د اوبو څښلو دغه عظيم سعادت خدمت به هغه د خپلو څو مرسته كونكو په ذريعه سرته رسوی ، په كومو شپو كي چي به

حاجيان په منی کي قيام کوئ په هغه شپو کي به حضرت عباس ﷺ د نبي کريم ﷺ څخه اجازه اخيستل چي زه به په دغه شپو کي په مکه کي اوسيږم چي د زمزم د اوبو مقدس خدمت ما ته حواله دی رسول الله ﷺ د هغه اجازه ورکړه.

اوس مسئلي ته راسئ کومي شپې چي په منی کي تېرول کيږي په هغو کي په منی کي قيام کول د اکثرو علماؤ په نزد واجب دی او د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه په نزد په دغه شپو کي په منی کي اوسېدل سنت دي د امام شافعي او امام احمد هم دا يو قول دی.

دلته دا خبره بايد په ذهن کي وي چي د شپې د قيام په اړه د شپې اکثره برخه يعني نيمي شپې څخه زيات قيام معتبر دی او دا حکم د هغه شپو هم دی په کوم کي چي د عبادت وغيره لپاره شب بيداري مستحب ده مثلا ليلة القدر او داسي نور چي په دغه شپو کي د اکثر برخي د شب بيداري اعتبار دی.

په هر حال د کومو علماؤ په نزد چي په منی کي د شپې قيام سنت دی لکه د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه نو د دوئ دليل پورتنی حديث دی که چيري په منی کي د شپې قيام واجب وای نو رسول الله ﷺ به حضرت عباس ﷺ ته په دغه شپو کي په مکه کي د اوسيدو اجازه څرنګه ورکولای.

ځيني حنفي علماء وايي چي د حضرت عباس ﷺ په ډول د کوم سړي پر ذمه چي د زمزم د اوبو څښلو خدمت وي يا د يو چا سخت عذر وي نو د هغه لپاره جائز دي چي کومي شپې په منی کي تېرولای سي نو په هغه کي په منی کي قيام ترک کړي، لکه چي په دې سره دې ته اشاره ده چي بېله عذره سنت ترک کول جائز نه دي او دا چي د يو عذر په وجه سنت پرېښودو کي اشاره هم نسته.

## رسول الله ﷺ پر زمزم باندي

﴿۲۵۸۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَ إِلَى السِّقَايَةِ

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د زمزم اوبو ته تشريف يوور

فَاسْتَسْقَى فَقَالَ الْعَبَّاسُ يَا فَضْلُ اذْهَبْ إِلَى أُمِّكَ فَأْتِ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

او اوبه يې وغوښتلې، ابن عباس ﷺ خپل ورور فضل ته وويل ته خپل مور ته ولاړ سه او د

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَرَابٍ مِنْ عِنْدِهَا فَقَالَ اسْقِنِي فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّهُمْ

هغې څخه د رسول الله ﷺ لپاره اوبه راوړه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ما ته د دغه اوبو څخه

راکړه، ابن عباس رضي الله عنه ورته وويل اې د الله رسوله! په دې اوبو کې

يَجْعَلُونَ أَيْدِيَهُمْ فِيهِ قَالَ اسْقِنِي فَشَرِبَ مِنْهُ ثُمَّ أَتَى زَمْزَمَ وَهُمْ يَسْقُونَ

خلک لاس وهي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل د همدې اوبو څخه يې راکړه، نو رسول الله ﷺ اوبه وڅښلې، د دې وروسته رسول الله ﷺ د زمزم څاه ته تشريف راوړ

وَيَعْمَلُونَ فِيهَا فَقَالَ اعْمَلُوا فَإِنَّكُمْ عَلَى عَمَلٍ صَالِحٍ ثُمَّ قَالَ لَوْلَا أَنْ تُغْلَبُوا

او د عبدالمطلب اولاد د اوبو په ورکولو کې په پوره هڅه سره کار کوئ، رسول الله ﷺ د هغوئ په ليدو سره وفرمايل: په کار کې بوخت اوسئ تاسو يو نيک کار کوئ، بيا يې وفرمايل: که زما سره دا بيره نه وای چې

لَنَزَلْتُ حَتَّى أَضَعَ الْحَبْلَ عَلَى هَذِهِ وَأَشَارَ إِلَى عَاتِقِهِ. رواه البخاري.

زما په لاس ورولو سره به خلک پر تاسو رامات سي (يعني بيا به خلک زما متابعت وکړي يعني هغوئ به هم دا کار وکړي ستاسو سره به په دغه کار کې شريک سي حال دا چې دا منصب يوازې د حضرت عباس وو) نو زه به د اوبو څخه تا سوی وای او رسۍ به مې پر دې اينبې وای او د خپلې اوږې په لوري يې اشاره وکړه (يعني د اوبو راکښلو لپاره به مې رسۍ پر اوږه ترلې وای) بخاري.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳\۴۹۱، رقم: ۱۶۳۵.

**تشريح**: دغه خلک دې خپل لاسونه وهي: ددې خبرې څخه د حضرت عباس رضي الله عنه مطلب دا وو چې دلته د اوبو راکښلو لپاره رش وي په دې کې هر ډول خلک وي او اکثر هغه خلک وي چې د هغوئ لاسونه پاک نه وي او هغوئ د اوبو څښلو لپاره په حوض کې خپل لاس غوټه کوي ځکه نو ما ستاسو لپاره د هغه اوبو څخه وغوښتل چې بالکل پاکې وي مګر رسول الله ﷺ هغه قبول نه کړل او وه يې فرمايل چې په دې کې څه پروا نه سته ته ما ته د دغه حوض څخه اوبه راکړه نو رسول الله ﷺ د هغه حوض اوبه وڅښلې، لکه چې دا خبره د هغه روايت په ډول ده چې په هغه کې منقول دي چې رسول الله ﷺ پاته سوي اوبه د تبرک له مخې څښل خوښ کړل او حضرت انس رضي الله عنه په مرفوع طريقه نقل کړي دي چې داسې کول په تواضع کې داخل دي چې انسان د خپل ورور پاته اوبه وڅښي مګر په خلکو کې چې دغه حديث مشهور دی چې (سور المؤمنين شفاء) يعني د مؤمنانو پسخورده شفاء ده، نو په دې باره کې علماء ليکي چې دغه حديث غير معروف

دي ددې په صحيح کېدو کي څه ثبوت نه سته.

د پورتني روايت څخه دا معلومېږي چي رسول الله ﷺ د زمزم د څاه څخه د اوبو راکښلو او څښلو لپاره د اوبښ څخه کښېنته نه سو او حال دا چي په يو بل روايت کي چي د حضرت عطاء رضي الله عنه څخه منقول دی دا بيان سوی دی چي رسول الله ﷺ د طواف افاضه څخه فارغ سو نو د زمزم د اوبو څخه يې په سلواغه کي اوبه راوکښلې او په راکښلو کي د رسول الله ﷺ سره هيڅوک نه وو بيا رسول الله ﷺ د هغه څخه اوبه وڅښلې او کومي اوبه چي پاته سوې هغه يې په څاه کي د برکت لپاره واچولې.

په دغه دواړو روايتو کي مطابقت دادی چي مخکي خو رسول الله ﷺ د رش په وجه د اوښ څخه راکښېنته نه سو بيا دوهم وار يې تشريف راوړ نو د رش کمېدو په وجه يې اوبه راوکښلې او وه يې څښلې نو د حضرت عباس رضي الله عنه د پورتني روايت تعلق د اول وار سره دی او د حضرت عطاء رضي الله عنه د روايت تعلق د دوهم وار سره دی.

## د رسول الله ﷺ طواف وداع

﴿۲۵۴۶﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ صَلَّى الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ وَالْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ ثُمَّ رَقَدَ رَقْدَةً بِالْمُحَصَّبِ ثُمَّ رَكِبَ إِلَى الْبَيْتِ فَطَافَ بِهِ. رواه البخاري.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د ماپښين، مازديگر، ماښام او ماخستن لمنځونه په محصب نامي ځای کي ادا کړل، بيا لږ ګړی بيده سو، بيا سپور سو د بيت الله شريفي طواف ته ولاړئ او طواف يې وکړ. بخاري.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۳\۳۸۳، رقم: ۱۷۵۶.

**تشريح**: محصب هغه مځکي ته وايي چي هلته ډيري ډبري وي مګر دا د يو خاص ځای نوم هم دی چي د مکې او مدينې په مينځ کي منی ته نژدې واقع دی دغه ځای ته د محصب څخه پرته ابطع، بطحاء او خيف بني کنانه هم وايي ځکه راوي دلته چي دا وويل چي رسول الله ﷺ په محصب کي لمونځ وکړ او په دوهم روايت کي دا ويل سوي دي چي په ابطع کي يې لمونځ وکړ.

**رسول الله ﷺ د ترويه او قرباني په ورځ د ماپښين او مازديګر لمونځ چيري وکړی؟**

﴿۲۵۴۷﴾: وَعَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ قَالَ سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ

د حضرت عبد العزيز بن رفيع رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د انس بن مالک رضي الله عنه څخه پوښتنه

عَنْهُ قُلْتُ أَخْبِرْنِي بِشَيْءٍ عَقَلْتَهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيْنَ صَلَّى

وکړه چي ما ته هغه خبره وښیه چي تا د رسول الله ﷺ څخه زده کړې ده یا درته څرګنده وي چي

الظُّهْرَ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ قَالَ بِمِنًى قال فَأَيْنَ صَلَّى الْعَصْرَ يَوْمَ النَّفْرِ قَالَ

رسول الله ﷺ د یوم ترویه د ماپښین لمونځ په کوم ځای کي وکړ؟ هغه وویل: په منا کي، ما بیا پوښتنه وکړه د یوم نفر د ستنېدو په ورځ (یعني دیارلسمه نېټه) رسول الله ﷺ د مازدیګر لمونځ په کوم ځای کي وکړ؟

بِالْأَبْطَحِ ثُمَّ قَالَ افْعَلْ كَمَا يَفْعَلُ أُمَرَاؤُكَ . متفق عليه

هغه وویل: په ابطح نامي ځای کي، بیا انس رضی الله عنه وویل: ته هم داسي کوه څرنګه چي ستا امیران کوي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ٣\٥٠٧، رقم: ١٦٥٣. ومسلم: ٢\٩٥٠، رقم: ٣٣٦-١٣٠٩.

**د لغاتو حل**: يوم التروية: هو اليوم الثامن من ذي الحجة.

**تشريح**: د حدیث د آخري جملې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ همداسي کړي وه مګر ته په دې اړه د خپل سردار او امیر پیروي کوه څرنګه چي هغه کوي هم هغسي يې ته کوه چي د هغه د مخالفت په وجه فتنه رامنځته نه سي او دا خبره څه ضروري خبره هم نه ده چي د ترویه په ورځ رسول الله ﷺ د ماپښین لمونځ چیري وکړ او د نفر په ورځ يې د مازدیګر لمونځ کړی دی نو هلته دي وکړل سي

د اول روایت څخه دا معلومه سوه چي رسول الله ﷺ د نفر په ورځ یعني د ذي الحجې په دیارلسم تاریخ د ماپښین لمونځ په محصب کي کړی وو حال دا چي دغه حدیث په دې اړه ساکت دی نو په دغه دواړو روایتو کي په دې معنی څه قضی نه سته چي رسول الله ﷺ د ماپښین لمونځ په محصب کي کړی وو لکه څرنګه چي د انس رضی الله عنه د روایت څخه معلومه سوه مګر په دې اړه عبدالعزیز رحمه الله د هغه ورځي د ماپښین د لمانځه په باره کي پوښتنه ونه کړه ځکه چي په دغه دوهم روایت کي انس رضی الله عنه هم د دې تذکره ونه کړه.

### په ابطح کي تم کېدل سنت دي که یا؟

﴿٢٥٤٨﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ نُزُولُ الْأَبْطَحِ لَيْسَ بِسُنَّةٍ إِنَّمَا نَزَلَهُ رَسُولُ اللّٰهِ

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَنَّهُ كَانَ أَسْمَحَ لِخُرُوجِهِ إِذَا خَرَجَ . متفق عليه

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي په ابطح نامي ځاى كي كښېنته كېدل سنت نه دي دلته رسول الله ﷺ يوازي ددې لپاره كښېنته سوى وو چي په ستنېدو كي اساني وه . بخاري او مسلم

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳\۵۹۱، رقم: ۱۷۶۵، ومسلم ۲\۹۵۱، رقم: ۳۳۹-۱۳۱۱

**تشريح**: د بي بي عائشې ﷞ وينا مقصد دادى چي كله رسول الله ﷺ په ديارلسم تاريخ د منى څخه ستون سو نو په ابطح يعني محصب كي يوازي ددې لپاره تم سوى وو چي هلته د خپل سامان وغيره په پرېښودو سره مكي ته ولاړ سي او هلته طواف وداع وكړي او كله چي د مكې څخه مدينې منورې ته ستنېږي نو هغه وخت به سامان نه موجود كېدو په وجه اساني وي .

په دې اړه چي د مسئلې تعلق دى نو په دې كي اختلاف دى ځيني حضرات وايي چي په محصب كي تم كېدل سنت دي او د حج افعال يوه تتمه ده دا د ابن عمر ﷛ قول دى د هغه په نزد د قيام محصب پر سنت كېدو دليل دادى چي رسول الله ﷺ په منى كي فرمايلي وه چي سبا ته به موږ انشاء الله په خيف بن كنانه يعني محصب كي تم كيږو او ددې سبب دا وو چي خيف بن كنانه هغه ځاى دى چيري چي مشركين د رسول الله ﷺ په مكي ژوند كي په خپلو كي دا عهد كړى وو او دا قسم يې كړى وو چي موږ به بن هاشم او ابن عبد المطلب او د دوئ سره د ناستي او ولاړي څخه تر هغه وخته پرهيز كوو تر څو چي دغه خلك موږ ته محمد ﷺ حواله نه كړي ، يعني پر دغه ځاى باندي هغوئ د كورنيو سره د پوره لاتعلقۍ په اعلان كولو سره د كفر د شعائرو اظهار كړى وو كله چي الله تعالى د اسلام قوت غالب كړ او د كفر او شرك شر ليري سو نو رسول الله ﷺ د حجة الوداع پر موقع د منى څخه مكې ته په ستنېدو سره دا غوښتل چي په خيف بن كنانه (محصب) كي په تم كېدو سره د اسلام شعائر ظاهر كړي چيري چي څو كاله مخكي كفارو خپل شعائر ظاهر كړي وه او همدارنګه هلته د الله تعالى د هغه نعمتونو شكر ادا كړي چي هغه اسلام ته غلبه او عظمت وركړى دى .

طبراني په اوسط كي د حضرت عمر فاروق ﷛ دا قول نقل كړى دى چي د يوم النفر په شپه په بطح كي تم كېدل سنت دي او دا چي حضرت عمر فاروق ﷛ به خلكو ته په دغه شپه كي په ابطح كي د تم كېدو حكم وركوى .

د فقه حنفي په مشهور كتاب هدايه كي ليكلي دي چي صحيح خبره داده چي رسول الله ﷺ په ابطح كي د دغه مقصد لپاره تم سوى وو چي مشركينو ته د الله تعالى قدرت وښيي چي پرون

په کوم ځای کي هغوئ د پوره لاتعلقي قول او اقرار کولو سره د خپل غوره والي اظهار کړی وو نن هغه ځای د الله تعالی په فضل سره د مسلمانانو تر واک لاندي دی ځکه نو په دغه ځای کي د شپې قیام سنت دی.

ددې پر خلاف ځیني حضرات وایي چي په محصب کي قیام سنت نه دی ځکه چي هلته د رسول الله ﷺ قیام په اتفاقي توګه سره سوی دی د هغه صورت دا وو چي د رسول الله ﷺ ازاد سوی غلام ابورافع چي د رسول الله ﷺ د سفر د سامان نګران وو په خپل رایه په اتفاقي توګه سره هلته تم سو او د رسول الله ﷺ خیمه یې ودرول، په دې باره کي د رسول الله ﷺ حکم نه وو، په محصب کي قیام ته د سنت ویونکو ځخه د ابن عباس رضي الله عنه ځخه پر ته بي بي عائشه رضي الله عنها هم ده لکه ځرنګه چي د پورتني حدیث ځخه معلومه سوه.

په هر حال په دې باره کي غوره خبره داده چي کله د رسول الله ﷺ په محصب کي تم کېدل منقول دي که هغه تم کېدل په اتفاقي توګه وي او که نه وي خو ښه خبره داده چي هلته قیام وکړل سي لکه ځرنګه چي نورو صحابه کرامو او خلفاء راشدینو په دې عمل کړی دی او که یو ځوک هلته تم نه سي نو په دې کي څه پروا نسته.

## د طواف وداع وروسته د رسول الله ﷺ د مکې ځخه روانېدل

﴿۲۵۴۹﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ أَحْرَمْتُ مِنَ التَّنْعِيمِ بِعُمْرَةٍ فَدَخَلْتُ فَقَضَيْتُ

د حضرت عائشې (رض) ځخه روایت دئ چي ما د تنعیم نامي ځای ځخه خپل عمره پوره کړه او

عُمْرَتِي وَانْتَظَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْأَبْطَحِ حَتَّى فَرَغْتُ فَأَمَرَ

رسول الله ﷺ په ابطح کي زما انتظار کاوه، کله چي زه د عمرې ځخه فارغه سوم

النَّاسَ بِالرَّحِيلِ فَخَرَجَ فَمَرَّ بِالْبَيْتِ فَطَافَ بِهِ قَبْلَ صَلٰوةِ الصُّبْحِ ثُمَّ خَرَجَ

نو رسول الله ﷺ خلکو ته د ستنېدو (کوچیدو) حکم وکړ او بیت الله ته په رسیدو سره یې د سهار د لمانځه وړاندي طواف وکړ،

إِلَى الْمَدِيْنَةِ. هذا الحديث ما وجدته برواية الشيخين بل برواية ابي داؤد مع اختلاف يسير في آخره.

بیا د مدینې په لور روان سو.(دا حدیث ما د شیخینو په روایاتو کې تر لاسه نه کړ بلکه په ابو داؤد کې مې تر لاسه کړ سره د لږ اختلاف)

**تخریج**: سنن ابي داود ۲\۵۱۲، رقم: ۲۰۰۵.

**تشریح**: د مشکوة د مؤلف د قول مطلب دادی چې زما د علم سره سم دغه روایت نه بخاري نقل کړی دی او نه مسلم بلکه دغه روایت ابوداؤد نقل کړی دی. او دا چې د ابوداؤد روایت او د صاحب مصابیح په نقل سوي روایت کې په اخري خبرو کې اختلاف هم دی، یعني د دغه جملې په ذریعه د مشکوة مؤلف د مصابیح پر مؤلف باندې یو اعتراض کړی دی چې هغه دغه روایت په اول فصل کې نقل کړی دی حال دا چې په اول فصل کې یوازې د بخاري او مسلم روایتونه نقل کیږي، دوهم اعتراض یې دا کړی دی چې د حدیث په نقل کولو کې د راوي یعني ابوداؤد مخالفت وکړ په دې توګه چې د حدیث اخري جزیې بعینه هغه نه دی نقل کړی کوم چې ابوداؤد روایت کړی دی.

## طواف وداع واجب دی

﴿۲۵۵۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ النَّاسُ يَنْصَرِفُونَ فِي كُلِّ وَجْهٍ فَقَالَ

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روایت دئ چې خلک (د حج د فارغه کېدو سره) هر لوري ته تلل (یعني خپلو کورو ته تلل او د طواف وداع چا پروا نه کول) رسول الله ﷺ وفرمایل:

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَنْفِرَنَّ أَحَدُكُمْ حَتّٰى يَكُونَ آخِرُ عَهْدِهِ بِالْبَيْتِ اِلَّا أَنَّهُ خُفِّفَ عَنِ الْحَائِضِ. متفق عليه.

په تاسو کې دې هیڅوک تر هغه وخته پورې نه ځي تر څو پورې چې د بیت الله شریفي سره خپل آخري عهد پوره نه کړي (یعني د بیت الله د رخصت طواف ونه کړي) مګر دا طواف د حائضې ښځې څخه موقف سوی دئ. بخاري او مسلم.

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري)؛ ۳\۳۸۳، رقم: ۱۷۵۵، ومسلم ۲\۹۶۳، رقم: ۳۷۹-۱۳۲۷.

**تشریح**: د حج د افعالو څخه د فارغه کېدو وروسته د مکې مکرمې څخه خپل هیواد ته د روانېدو څخه مخکې چې کوم طواف کیږي هغه ته طواف وداع وایي او ددې یو نوم صدر هم دی، دغه طواف پر آفاقي باندې واجب دی که څه هم په دې کې حرج نه سته چې د دغه طواف څخه

وروسته څومره ورځي چي غواړي په مکه کي مقیم پاته سي مگر غوره دادي چي د مکې څخه د روانیدو پر وخت دا طواف وکړل سي ، امام ابو حنیفة رحمه الله فرمایي که یو څوک د ورځي په یو برخه کي طواف وداع وکړي او بیا تر ماخستن پوري په مکه کي مقیم وي نو زما په نزد غوره خبره داده چي هغه د مکې څخه د روانېدو پر وخت دوهم طواف وکړي .

دغه طواف د مکې مکرمې پر اوسیدونکو واجب نه دی او نه پر هغه چا چي په میقات کي دننه اوسیږي او نه پر هغه چا واجب دی چي په مکه کي د اوسیدو لپاره پاته کیږي او بیا د هغه ځای څخه د تلو اراده نه لري ، همدارنگه دغه طواف پر هغه چا واجب نه دی چي د هغه حج فوت سوی وي او نه پر عمره کونکی واجب دی او په دغه طواف کي نه رمل کیږي او نه ددې څخه وروسته سعي کیږي .

## د عذر په وجه طواف وداع واجب نه دی

﴿۲۵۵۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ حَاضَتْ صَفِيَّةُ لَيْلَةَ النَّفْرِ فَقَالَتْ مَا أُرَانِي إِلَّا

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي په دیارلسمه نېټه یعني د حج څخه د تلو په ورځ د بي بي صفیې وینه راغلل ، هغې وویل زما خیال دئ چي

حَابِسَتَكُمْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَقْرَى حَلْقَى أَطَافَتْ يَوْمَ النَّحْرِ قِيلَ نَعَمْ قَالَ فَانْفِرِي . متفق علیه

زه به تاسو تم کړم ، (ځکه چي ما طواف وداع نه دئ کړئ) رسول الله ﷺ وفرمایل : الله دي هغه خوراه میراثه کړي (دا الفاظ د مینې دي ښیرا نه ده ) ایا هغې د قربانۍ په ورځ طواف نه دئ کړئ . وویل سول چي هو ، نو رسول الله ﷺ وفرمایل نو ځئ . بخاري او مسلم .

**تخریج** : البخاري في الصحیح (فتح الباري)؛ ۳\۵۹۵، رقم، ۱۷۷۱، ومسلم ۲\۹۶۵، رقم: ۳۸۷ - ۱۲۱۱.

**د لغاتو حل** : عقري حلقي: ای عقرها الله عقرا وحلقها الله حلقا ، وهذا دعاء لایراد وقوعه، بل عادة العرب التکلم بمثله علی سبیل التلطف. (مرقات)

**تشریح** : د یوم نفر د شپې څخه مراد هغه شپه ده چي په هغه کي رسول الله ﷺ په محصب کي قیام کړی وو یعني د دیارلسم ذي الحجې شپه، مگر دا خبره په ذهن کي کښېنول پکار دي چي د حج په بیان کي د شپې نسبت تیري ورځي ته کیږي نه راتلونکي ورځي ته نو د یوم نفر د شپې څخه هغه شپه مراد ده چي د دیارلسمي ورځي څخه وروسته راځي .

په هر حال بي بي صفيې رضي الله عنها دا ګمان وکړ چي څرنګه طواف زيارت د عذر په وجه ترک کيداى نه سي همدارنګه د عذر په سبب د طواف وداع ترک کول هم جائز نه دي ځکه هغې وويل چي تر څو پوري زه پاکه نه سم او طواف ونه کړم نو تر هغه وخته به تولو ته تم کېدل وي او رسول الله ﷺ دا وګڼل چي هغه طواف زيارت نه دی کړی چي د هغه په وجه به تم کېدل وي ځکه رسول الله ﷺ دا جمله وفرمايل چي الله تعالى دي هغه هلاک او زخمي کړي مګر کله چي رسول الله ﷺ ته د تحقيق څخه وروسته معلومه سوه چي صفيې دا خبره د طواف زيارت لپاره نه ده کړې بلکه د طواف وداع لپاره يې کړې ده نو بيا رسول الله ﷺ وفرمايل چي د طواف وداع څخه پرته مدينې ته روان سئ ځکه چي د عذر په وجه د طواف وجوب ساقط کيږي هو که چيري طواف زيارت هم نه وي سوی نو بيا د هغه په وجه تم کېدل وي.

الله تعالى دي هغه هلاک او زخمي کړي دا جمله که څه هم ښېرا ده مګر د ښېرا په اراده نه ده استعمال سوې بلکه د عربو عادت دی چي هغوئ داسي جملې د ميني له کبله استعمالولې.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د قرباني په ورځ د رسول الله ﷺ نصيحت

﴿۲۵۵۲﴾: عَنْ عَمْرِو بْنِ الْاَحْوَصِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمرو بن الاحوص رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه په حجة الوداع کي

يَقُولُ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ أَيُّ يَوْمٍ هٰذَا قَالُوا يَوْمُ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ قَالَ فَإِنَّ دِمَاءَكُمْ

واوريدل چي فرمايل يې: دا کومه ورځ ده؟ حاضرينو وويل دا د حج اکبر ورځ ده، رسول الله ﷺ وفرمايل: ستاسو وينه،

وَأَمْوَالَكُمْ وَأَعْرَاضَكُمْ بَيْنَكُمْ حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هٰذَا فِي بَلَدِكُمْ هٰذَا

ستاسو مالونه او ستاسو عزت ستاسو په منځ کي پر تاسو داسي حرام دئ لکه څرنګه چي په دې ورځ او ښار کي پر تاسو حرام دئ،

أَلَا لَا يَجْنِي جَانٍ إِلَّا عَلَى نَفْسِهِ أَلَا لَا يَجْنِي جَانٍ عَلَى وَلَدِهِ وَلَا مَوْلُودٌ عَلَى

خبردار! کوم ظالم چي ظلم کوي هغه پر خپل ځان ظلم کوي، خبردار! هيڅ پلار دي پر خپل اولاد

او هيڅ زوی دې پر خپل پلار ظلم نه کوي ،

وَالِدِهِ أَلَا إِنَّ الشَّيْطَانَ قَدْ أَيِسَ أَنْ يُعْبَدَ فِي بَلَدِكُمْ هٰذَا أَبَدًا وَلٰكِنْ سَيَكُونُ

خبردار! شيطان د هميشه لپاره نااميده سو د دې خبرې څخه چې ستاسو په دې ښار کې به د هغه عبادت کيږي مګر تاسو به

لَهُ طَاعَةٌ فِيمَا تَحْتَقِرُونَ مِنْ أَعْمَالِكُمْ فَسَيَرْضَى بِهِ . رواه ابن ماجة والترمذي وصححه .

په هغه اعمالو کې د شيطان فرمانبردارياست کوم چې تاسو حقير ګڼئ (يعني کوچني ګناهونه) هغه په هغه ګناهو خوشحاله کيږي کوم چې تاسو حقير ګڼئ . ابن ماجة ، ترمذي .

**تخريج** : ابن ماجه في السنن ۲\۱۰۱۵، رقم: ۳۰۵۵، والترمذي ۴\۴۰۱، رقم: ۲۱۵۹.

**تشريح** : حج اکبر مطلق حج ته وايي لکه څرنګه چې د الله تعالی ارشاد دی :

وَأَذَانٌ مِّنَ اللهِ وَرَسُولِهِ إِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ الأَكْبَرِ أَنَّ اللهَ بَرِيءٌ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ وَرَسُولُهُ،

ژباړه: او د الله تعالی او د هغه د رسول له خوا د حج په ورځ د عامو خلکو په مخکې اعلان کيږي چې الله تعالی او د هغه رسول مشرکانو څخه بېزاره دی .

او د حج صفت په اکبر سره ځکه موصوف کيږي چې عمرې ته اصغر وايي په دې مناسبت سره حج په حج اکبر مسمی سو ، مشهور مفسر بيضاوي رحمة الله عليه وايي يوم بقر يعني د لسم ذي الحجې ورځې ته يوم حج اکبر ويل کيږي ځکه چې يوازې دا چې په دغه ورځ مکمل کيږي بلکه د حج ټول لوی افعال په دغه ورځ ادا کيږي ، په يوه روايت کې د دې صراحت هم دی چې نبي کريم ﷺ په حجة الوداع کې د قربانۍ په ورځ جمرات ته نژدې ودريدی او وه يې فرمايل چې دا د حج اکبر ورځ ده .

په تېرو صفحو کې د دغه مضمون چې کوم حديث تېر سوی دی په هغه کې دا ذکر وه چې رسول الله ﷺ د صحابه کرامو څخه پوښتنه وکړه چې دا کومه ورځ ده نو هغوئ وويل چې الله تعالی او د هغه رسول پوهيږي ، او دلته دا ذکر سوی دی چې هغوئ جواب ورکړ چې دا د حج اکبر ورځ ده په ظاهره خو په دغه دواړو کې تضاد معلوميږي حالانکه په دې کې هيڅ تضاد نه سته ځکه کېدای سي چې ځينو صحابه کرامو د هغه جواب ورکړی وي او ځيني دا جواب

ورکړي وي کوم راوي چي کوم جواب واوريدی نو هغه يې ذکر کړ.

فان دماءکم ... الخ: او ستاسو وينه ....، : مطلب دادی چي څرنګه چي تاسو په دغه مبارکه ورځ او په دغه مقدس ښار کي د يو بل وينه بيول د يو بل مال هضم کول او د يو بل بې عزتي کول حرام او بد ګڼئ همدارنګه دغه شيانو په هرځای او هر وخت کي حرام او بد دي.

هيڅ ظالم پر خپل زوی ظلم نه کوي: صحيح خبره داده چي دا جمله نفي ظاهروي يعني که د چا زوی پر چا ظلم کوي يا د چا پلار پر يو چا ظلم کوي نو هغه دي د يو بل د ظلم په وجه نه ماخوذ کيږي داسي نه کيږي چي پر يو چا دي زوی ظلم وکړي او د هغه په وجه دي پلار ونيول سي يا پر يو چا باندي پلار ظلم وکړي او د هغه په وجه زوی ونيول سي بلکه څوک چي ظلم کوي هغه به نيول کيږي، د الله تعالی ارشاد دی:

وَلاَ تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى

هيڅ بار پورته کونکی به د بل چا بار نه پورته کوي.

دا خبره يوازي پر پلار او زوی باندي منحصره نه ده بلکه په عمومي توګه هيڅ سړی د بل د ظلم او جرم په وجه نه ماخوذ کيږي.

دلته پلار او زوی ددې مقصد لپاره ذکر سوي دي چي دغه دواړه تر ټولو نژدې قريبان وي کله چي د دوئ څخه يو څوک يو د بل د فعل په وجه ماخوذ نه وي نو په داسي به دا جمله د ماقبل عبارت: لايجني جان ..الخ، ظلم کونکی يوازي پر خپل ځان ظلم کوي د تاکيد په توګه وي.

ځيني شارحين په دغه جمله: لايجني الا علی نفسه: کي لفظ د الا نقل کړی نه دی او ليکلي يې دي چي دا جمله نفي په معنی د نهي ده يعني ددغه جملې په ذريعه منع کيږي چي ظالم دي پر خپل ځان ظلم نه کوي ددې څخه مراد دادی چي هيڅوک دي پر چا ظلم نه کوي هغه په حقيقت کي پر خپل ځان ظلم کوي په دې توګه چي هغه پر يو چا باندي په ظلم کولو خپل ځان د سزا او عذاب مستحق جوړوي.

وان الشيطان قد ايس ...الخ: ددې مطلب دادی چي شيطان د همېشه لپاره ددې څخه نااميده سوی دی چي په دغه ښار (مکه) کي د غير الله د عبادت په ذريعه د هغه فرمانبرداروي نو دلته هيڅکله هم څوک د شيطان په چم کي په راتلو سره د غير الله په عبادت کي نه کوي، ددې څخه دې ته اشاره ده چي دغه مقدس ښار د همېشه لپاره د کفر او شرک د غلاظت څخه پاک سوی دی او اوس هيڅکله هم په دغه پاکه مځکه کي د غير مسلم د قدم ايښودو اجازه به نه وي

مګر دا بيله خبره ده چي يو غير مسلم په پټه دغه بنار ته راسي او هغه په پټه سره د غير الله عبادت شروع کړي.

مګر ستاسو په هغه اعمالو کي د شيطان فرمانبرداري وي، دلته د اعمال څخه مراد د ګناه اعمال دي لکه ناحقه قتل کول د چا مال غلاکول او دا ډول نور بد اعمال او صغيره ګناوو ته اهميت نه ورکول دد جملې مطلب دادی چي په دغه بدو عملو کي اخته کيدونکی چي کله هغه سپک ګڼي او د هغه په نتيجه کي د هغه اعمالو څخه پرهېز نه کوي نو ګويا د شيطان اطاعت کوي ځکه چي شيطان په دغه خبرو سره خوشحاله کيږي او بيا هغه اعمال د لوی فتنې او فساد باعث کيږي.

﴿۲۵۵۳﴾: وَعَنْ رَافِعِ بْنِ عَمْرٍو الْمُزَنِيِّ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ النَّاسَ بِمِنًى حِينَ ارْتَفَعَ الضُّحٰى عَلَى بَغْلَةٍ شَهْبَاءَ وَعَلِيٌّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يُعَبِّرُ عَنْهُ وَالنَّاسُ بَيْنَ قَائِمٍ وَّ قَاعِدٍ. رواه ابوداؤد.

د حضرت رافع بن عمرو مزني رضی الله عنه څخه روايت دئ چي ما په منا کي په څاښت وخت کي د رسول الله ﷺ څخه خطبه واوريدل: رسول الله ﷺ پر شهباء غاتري سپور وو او حضرت علي رضی الله عنه به د رسول الله ﷺ بيان دويم وار وايه (چي ليري خلک يې واوري) او ځيني خلک ناست وه او ځيني ولاړ وه. ابوداؤد.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۴۸۹، رقم: ۱۹۵۶.

**د لغاتو حل**: يُعبر: اى يبلغ حديثه من هو بعيد.

## د طواف زيارت وخت

﴿۲۵۵۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ وَابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَّرَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ يَوْمَ النَّحْرِ إِلَى اللَّيْلِ. رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة.

د حضرت عائشي او ابن عباس (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د قرباني په ورځ په طواف زيارت کي تر درو شپو پوري زنډ وکړ. ترمذي، ابوداؤد او ابن ماجه.

**تخریج**: الترمذي في السنن ۳\ ۲۶۲، رقم: ۹۲۰، وابوداود في السنن ۲\ ۵۰۹، رقم: ۲۰۰۰، وابن ماجه ۲\ ۱۰۱۷، رقم: ۳۰۶۰.

**تشریح**: مطلب دادی چي رسول الله ﷺ د ښځو لپاره یا دا چي د ټولو لپاره په طواف زیارت کي د قرباني په ورځ د شپې تاخیر جائز وګرځوی ، دحدیث مطلب دا نه دی چي رسول الله ﷺ په خپل طواف زیارت کي تر شپې پوري تاخیر وکړ ځکه د رسول الله ﷺ په باره کي دا په صراحت سره ثابته سوې ده چي رسول الله ﷺ د قرباني پر وخت طواف زیارت وکړ او د هغه ځخه وروسته په مکې یا په منی کي د ماپښین لمونځ وکړ .

علامه طیبي رحمة الله علیه فرمایي چي د طواف زیارت وخت د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد د قرباني د ورځي د نیمي شپې ځخه شروع کیږي او د نورو امامانو مذهب دادی چي ددغه وخت د بقر عید په ورځ د صبح ختلو ځخه وروسته شروع کیږي او د آخري وخت تعین نه سته هر کله چي وکړل سي جائز کیږي مګر د امام ابو حنیفة رحمة الله علیه په نزد د طواف زیارت ادا کول په ایام نحر کي واجب ده که یو سړی دومره تاخیر وکړي چي ایام نحر تېر سي او بیا هغه وروسته طواف زیارت وکړي نو پر هغه دم یعني د جزاء په توګه د حیوان ذبح کول واجبیږي .

## په طواف زیارت کي رمل نه سته

﴿۲۵۵۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَرْمُلْ فِي السَّبْعِ الَّذِي أَفَاضَ فِيهِ. رواه ابوداؤد وابن ماجة ،

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه ځخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ په طواف زیارت کي رمل (په ځغاسته اوږي ښورول ) ونه کړ . ابوداؤد او ابن ماجه .

**تخریج**: ابوداود في السنن ۲\ ۵۰۹، رقم: ۲۰۰۱، وابن ماجه في السنن ۲\ ۱۰۱۷، رقم: ۳۰۶۰.

**د لغاتو حل**: لم یَرمُل: الرمل: الهرولة (په ځغاسته اوږي ښورول).

**تشریح**: لکه ځرنګه چي مخکي ښودل سوي دي چي د اوږې په ښورولو او د سینې په را ایستلو سره تلو ته رمل وایي ، رسول الله ﷺ په طواف زیارت کي چي فرض دی رمل ادا کړ ځکه چي په طواف قدوم کي رسول الله ﷺ دا کړی وو .

په دې باره کي مسئله داده چي کوم ځوک په طواف قدوم کي رمل او سعي وکړي نو هغه دي په طواف زیارت کي نه رمل کوي او نه دي د طواف ځخه وروسته رمل کوي او کوم ځوک

چي دغه دواړه شيان ونه كړي نو بيا په طواف زيارت كي دي رمل هم وكړي او د هغه وروسته دي سعي هم وكړي.

## د محرم لپاره منع شيان كله جائز كيږي

﴿۲۵۵۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا رَمٰى أَحَدُكُمْ

د حضرت عائشي ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر كله چي په تاسو كي يو

جَمْرَةَ الْعَقَبَةَ فَقَدْ حَلَّ لَهُ كُلُّ شَيْءٍ إِلاَّ النِّسَاءَ. رواه في شرح السنة وقال: إسناده ضعيف، وفي رواية احمد والنسائي عن ابن عباس قال اذا رمى الجمرة فقد هل له كل شئ الا النساء.

څوک د جمره عقبه رمي كوي نو د هغه لپاره هر شى حلال سي پرته د هغه د ښځي څخه. شرح السنة.

**تخريج**: شرح السنة ۱۷ ۲۱۰، رقم: ۱۹۶۲.

## د رسول الله ﷺ رمي

﴿۲۵۵۷﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ أَفَاضَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ آخِرِ يَوْمِهِ

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د قرباني په ورځ په آخري وخت كي

حِينَ صَلَّى الظُّهْرَ ثُمَّ رَجَعَ إِلَى مِنًى فَمَكَثَ بِهَا لَيَالِيَ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ يَرْمِي

د ماپښين د لمانځه وروسته طواف وكړ، ددې وروسته منا ته راغلى او په منا كي يې د تشريق ورځي تيري كړې، په دې ورځو كي به رسول الله ﷺ جمرې ويشتلې

الْجَمْرَةَ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ كُلَّ جَمْرَةٍ بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ يُكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ

چي زوال به سو هره جمره به يې په اوو ډبرو ويشتل او په هر وار ويشتلو به يې الله اكبر وايه، او

وَيَقِفُ عِنْدَ الأُولَى وَالثَّانِيَةِ فَيُطِيلُ الْقِيَامَ وَيَتَضَرَّعُ وَيَرْمِي الثَّالِثَةَ فَلاَ يَقِفُ عِنْدَهَا. رواه ابوداؤد

په لومړنۍ او دويمي جمرې باندې تر ډيره وخته پورې ودريدی او په عجز سره يې دعاء غوښتل او د دريمې جمرې په ويشتلو سره به راتلئ او د هغې سره به نه دريدی . ابوداؤد .

**تخريج:** ابوداود في السنن ۲\۴۹۷، رقم: ۱۹۷۳.

**تشريح:** دغه حديث ددې خبرې څرګند دليل دی چې رسول الله ﷺ د لسم ذي الحجې د ماپښين لمونځ په مکه کې وکړ په منی کې يې ونه کړ .

فلا يقف عندها : ددې مطلب دا نه دې چې رسول الله ﷺ د جمره عقبه سره يا د هغه څخه وروسته ذکر او دعاء نه کول بلکه مطلب دادی چې رسول الله ﷺ به څرنګه دعاء او ذکار د جمره اولی او جمره وسطی سره تر ډير وخته پورې کول همدارنګه به د دعاء او اذکارو لپاره د جمره عقبه سره نه دريدی بلکه هلته به يې په تلو سره دعاء وغيره کول .

## په جمرات کې د تقديم او تاخير مسئله

﴿۲۵۵۸﴾: وَعَنْ أَبِي الْبَدَّاحِ بْنِ عَاصِمِ بْنِ عَدِيٍّ عَنْ أَبِيهِ قَالَ رَخَّصَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِرِعَاءِ الْإِبِلِ فِي الْبَيْتُوتَةِ أَنْ يَرْمُوا يَوْمَ النَّحْرِ ثُمَّ يَجْمَعُوا رَمْيَ يَوْمَيْنِ بَعْدَ يَوْمِ النَّحْرِ فَيَرْمُوهُ فِي أَحَدِهِمَا. رواه مالك والترمذي والنسائي وقال الترمذي هذا حديث صحيح.

حضرت ابو البداح بن عاصم بن عدي د خپل پلار څخه روايت کوي چې رسول الله ﷺ د اوښانو څرونکو ته رخصت ورکړې وو چې هغوئ د شپې په منا کې تم نه سي چې د قربانۍ په ورځ جمره عقبه په ډبرو وولي . بيا د دوو ورځو رمي په يوه ورځ کې يو ځای کړي ، وروسته تر ورځي د قربانۍ څخه نو ودولي په يوه ورځ کې مالک، ترمذي، نسائي .

**تخريج:** الامام مالک في الموطا ۱\۴۰۸، رقم: ۲۱۸، والترمذي في السنن ۳\۲۸۹، رقم: ۹۵۵، والنسائي ۵\۲۷۳، رقم: ۳۰۶۹.

**د لغاتو حل:** لرعاء الابل في البيتوتة: ای في ترکها.

**تشريح:** علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي چې د حديث مراد دادی چې رسول الله ﷺ شپنو ته اجازه ورکړې وه چې هغوئ د ايام تشريق په شپو کې په منی کې نه پاته کيږي ځکه چې هغوئ د خپلو حيوانانو په ساتنه وغيره کې بوخت وي او هغوئ ته يې ددې اجازه هم ورکړه چې هغوئ يوازې د

بقر عيد په ورځ د جمره عقبه رمي وكړي د دې څخه وروسته په دوهمه ورځ يعني په يوولسم د ذي الحجې د جمرات رمي ونه كړي بلكه په دريمه ورځ يعني په دوولسم د دواړو ورځو رمي يو ځاى وكړي همدارنګه د يوولسم رمي خو به د قضا په توګه وي او د دولسم به ادا وي.

په دې باره كي مسئله داده چي د امامانو په نزد د اختر په دوهمه ورځ د رمي تقديم جائز نه دي يعني كه يو څوک د اختر په دوهمه ورځ رمي وكړي نو دا به صحيح نه وي مګر تاخير صحيح دى چي د دوهمي ورځي هم په دريمه ورځ سره كيداى سي لكه څرنګه چي پورته ذكر سول.

============

# بَابُ مَا يَجْتَنِبُهُ الْمُحْرِمُ

## هغه شيان چي د محرم (احرام تړونكي) ځان ساتل ځيني پكار دي

لكه څرنګه چي مخكي ښوول سوي دي چي د احرام تړلو څخه وروسته يو څو شيان داسي دي چي پر محرم باندي حرام كيږي او د هغه شيانو څخه د محرم لپاره پرهيز ضروري دى بيا په هغو كي ځيني شيان داسي دي چي د هغو په كولو سره دم يعني د څاروي ذبح كول نه واجبيږي نو په دغه باب كي د هغه شيانو ذكر دى چي د هغو څخه د محرم ځان ساتل پكار دي او ضمنا هغه شيان هم ذكر كيږي كوم چي د محرم لپاره مباح دي.

دلته په دې خبره پوهېدل پكار دي چي د كومو شيانو په كولو سره صدقه واجبيږي په هغو كي ځيني شيان داسي دي چي د هغه په وجه د صدقې په توګه نصف صاع د غنم يا يو صاع د اوربشو وركول واجبيږي او ځيني شيان داسي دي چي په هغه كي د صدقې مقدار تر دې هم كم دى او ځيني شيان داسي دي چي په هغو كي د يو غير معين شي لږ صدقه وركول واجبيږي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### هغه شيان چي محرم ته يې اغوستل منع دي

﴿۲۵۵۹﴾: عَنْ عَبْدِاللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ مَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ

د حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي يو سړي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وكړه چي محرم (احرام تړونكى) كوم ډول جامې اغوستلاى سي؟

مِنَ الثِّيَابِ فَقَالَ لَا تَلْبَسُوا الْقُمُصَ وَلَا الْعَمَائِمَ وَلَا السَّرَاوِيلَاتِ وَلَا

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: محرم دي نه قمیص اغوندي، نه دي لنګوټه تړي، نه دي پرتوګ اغوندي، نه دي

الْبَرَانِسَ وَلَا الْخِفَافَ إِلَّا أَحَدٌ لَا يَجِدُ نَعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسْ خُفَّيْنِ وَلْيَقْطَعْهُمَا

خولۍ پر سر کوي، نه دي باراني کالي اغوندي او نه دي موزې په پښو کوي مګر د کوم چا سره چي څپلۍ نه وي هغه دي موزې په پښو کړي مګر

أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ وَلَا تَلْبَسُوا مِنَ الثِّيَابِ شَيْئًا مَسَّهُ الزَّعْفَرَانُ وَلَا وَرْسٌ

تر بجلکو پوري دي یې پریکړي او نه دي یو داسي جامه اغوندي چي په هغه کي زعفران او ورس (یو ډول خوشبودار واښه) لګېدلي وي.

. متفق عليه وَزَادَ الْبُخَارِيُّ فِيْ رِوَايَةٍ وَّلَا تَنْتَقِبُ الْمَرْأَةُ الْمُحْرِمَةُ وَلَا تَلْبَسُ الْقُفَّازَيْنِ

بخاري او مسلم. او د بخاري په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي محرمه ښځه دي نقاب نه اچوي او نه دي دست کلې په لاس کوي.

**تخریج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳\۴۰۱، رقم: ۱۵۴۲، ومسلم ۲\ ۸۳۴، رقم: ۱- ۱۱۷۷.

**د لغاتو حل**: البرانس: قلنسوة طويلة (اوږده خولۍ). وَرس: نبت اصفر يكون باليمن تتخذ منه الغمرة للوجه. (یو ډول خوشبویي).

**تشریح**: د قمیص، کرتۍ او پرتوګ اغوستلو څخه مراد داسي اغوستل دي لکه څرنګه چي په عامه توګه سره دغه شیان اغوستل کیږي لکه قیمص او کرتۍ په غاړه کي اچولو سره اغوندي یا پرتوګ په پښو کي اچولو سره اغوستل کیږي د احرام په حالت کي دغه شیان په داسي ډول اغوستل منع دي مګر که یو محرم دغه شیان په رواجي طریقه د اغوستلو پر ځای پر بدن باندي د څادر په ډول واچوي نو دا منع نه دي ځکه په دغه صورت کي دا نه سي ویل کیدای چي هغه قمیص او کرتۍ اغوستي دي یا پرتوګ یې اغوستي دي، برنس هغه اوږدې خولۍ ته هم وایي چي عربو به پر سر کولې او برنس هغه جامې ته هم وایي چي د هغه یو څه برخه د خولۍ کار

ورکوي لکه کوټ او داسي نور، نو د برنس نه اغوستلو څخه مراد دادی چي داسي هيڅ شی مه اغوندی کوم چي سر پټ کړي که هغه خولۍ وي او که کوټ يا بل شی وي، مگر کوم شيان چي داسي وي چي هغه په عام رواج کي د اغوستلو اطلاق نه کيږي مثلا پر سر باندي کونډري وغيره ايښودل يا پر سر باندي پنډوکي پورته کول نو په دغه صورت کي څه پروا نه سته.

هغه موزې چي د دواړو تليو لاندي څخه پرې وي دلته د تلي څخه مراد امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په نزد هغه هډوکی دی چي د پښي د شا په مينځ کي وي او د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد هغه متعارف تلی دی چي د هغه په اوداسه کي پرېولل فرض دي.

په دې باره کي د علماؤ اختلافي اقوال دي چي د کوم چا سره څپلۍ نه وي او هغه موزې په پښو کړي نو ايا پر هغه باندي فديه واجبيږي که يا، امام مالک او امام شافعي وايي چي پر هغه هيڅ شی نه واجبيږي مگر د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په نزد پر هغه فديه واجبيږي لکه څرنگه چي دغه مسئله ده که چيري د احرام په حالت کي يو چا ته د سر خريلو ضرورت پيش سي نو هغه دي سر وخريي او فديه دي ادا کړي.

ورس، د يو ډول وښو نوم دی چي د ژړ رنګ او زعفرانو مشابه دي، ددغه واښو څخه به د رنګ کولو کار اخيستل کيدی زعفران او د هغه په رنګ سره رنګ سوي جامو اغوستلو څخه ځکه منع فرمايل سوې ده چي په دې کي خوشبويي وي.

محرمه ښځه دي نقاب نه اچوي: ددې مطلب دادی چي هغه دي خپل مخ په برقه او نقاب سره نه پټوي مگر که چيري هغه د پردې په وجه په يو داسي شي سره خپل مخ پټ کړي چي د مخ څخه بېل وي نو جائز دي همدارنګه د حنيفه په نزد سړي ته هم د ښځي په ډول د احرام په حالت کي مخ پټول حرام دي، د امام مالک او امام احمد مذهب هم د يوه روايت مطابق دادی او د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب ددې خلاف دی.

په کجاوه کي ناسته منعه ده په شرط ددې چي سر په کجاوه کي وي که سر په کجاوه کي نه وي نو بيا په هغه کي ناسته منع نه ده همدارنګه که د کعبې پرده يا خيمه په سر کي لګيږي نو بيا په هغه کي ناسته منع ده او که په سر کي نه لګيږي نو منعه نه دي.

﴿۲۵۶۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم يَخْطُبُ وَهُوَ يَقُوْلُ إِذَا لَمْ يَجِدِ الْمُحْرِمُ نَعْلَيْنِ لَبِسَ خُفَّيْنِ وَإِذَا لَمْ يَجِدْ إِزَارًا لَبِسَ سَرَاوِيلَ. متفق عليه

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه په خطبه کي دا اوریدلي دي که چیري محرم څپلۍ تر لاسه نه کړي نو موزې دي په پښو کړي او که لونګ تر لاسه نه کړي نو پرتوګ دي واغوندي . بخاري او مسلم .

**تخریج** : البخاري في الصحیح (فتح الباري) : ۴\۵۷، رقم : ۱۸۴۱، ومسلم ۲\۸۳۵، رقم : ۴ – ۱۱۷۸.

**تشریح** : د موزو د استعمال په باره کي خو په تېر حدیث کي ښودل سوي دي که چیري څپلۍ نه وي نو موزې په پښو کولای سي مګر داسي چي هغه د لاندي څخه پرې سوي وي او همدارنګه که چیري لونګ نه وي نو محرم پرتوګ اغوستلای سي په دغه صورت کي د امام شافعي رحمه الله په نزد پر هغه هیڅ نه واجبېږي مګر د امام ابوحنیفة رحمه الله مذهب دادی چي لونګ نه وي نو د پرتوګ په څیرلو سره دي هغه د لونګ په صورت کي وتړل سي او که یو څوک هغه په څیرلو سره استعمال نه کړي بلکه پرتوګ واغوندي نو پر هغه دم یعني د څاروي ذبح کول واجبېږي .

﴿۲۵۶۱﴾ : وَعَنْ يَّعْلِيْ ابْنِ اُمَيَّةَ قَالَ كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت یعلي بن امیة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو،

بِالْجِعِرَّانَةِ اِذْ جَاءَ رَجُلٌ اَعْرَابِيٌّ عَلَيْهِ جُبَّةٌ وَهُوَ مُتَضَمِّخٌ بِالْخَلُوْقِ فَقَالَ

په جعرانه نامي ځای کي یو صحرایي سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو چي قمیص یې اغوستی وو او په خلوق (یو ډول خوشبویي) یې لړلی وو، هغه وویل :

يَارَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ اَحْرَمْتُ بِالْعُمْرَةِ وَهٰذِهٖ عَلَيَّ فَقَالَ اَمَّا الطِّيْبُ الَّذِيْ بِكَ

اې د الله رسوله ! ما د عمرې احرام په داسي حال کي تړلی دئ چي دا قمیص زما پر بدن وو، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ستا پر بدن چي کومه خوشبویي لګېدلې ده

فَاغْسِلْهُ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ وَاَمَّا الْجُبَّةُ فَانْزِعْهَا ثُمَّ اصْنَعْ فِيْ عُمْرَتِكَ كَمَا تَصْنَعُ فِيْ حَجِّكَ . متفق علیه

هغه درې واره پریوله او قمیص د بدن څخه وکاږه بیا د عمرې په احرام کي هم داسي وکړه لکه څرنګه چي د حج په احرام کي کوې . بخاري او مسلم .

**تخریج** : البخاري في الصحیح (فتح الباري) : ۳\۳۹۳، رقم : ۱۵۳۶، ومسلم في الصحیح ۲\۸۳۶، رقم : ٦ – ۱۱۸۰.

**د لغاتو حل**: الخَلوق: نوع من الطيب (يو ډول خوشبويي).

**تشريح**: د زعفرانو استعمال د نارينوو لپاره حرام دي او خلوق به د زعفران څخه جوړېدل ځكه رسول الله ﷺ هغه سړي ته دا حكم وكړ چي هغه پريولي او درې واره د پريوللو حكم يې ځكه وركړ چي هغه په ښه ډول ليري سي كنه نو اصل مقصد خو دا وو چي خلوق بالكل پاک کړه كه هغه په هر څومره واره كي پاک سي.

د حديث د آخري جملې مقصد دادی چي كوم شيان د حج د احرام په حالت كي منع دي هغه د عمرې په حالت كي هم منع دي ځكه نو ته د عمرې د احرام په حالت كي د هغه ټولو شيانو څخه پرهېز كوه د كومو شيانو څخه چي د حج د احرام په حالت كي پرهېز كيږي.

مسئله: د احرام په حالت كي بېله خوشبويي رانجه لګول جائز دي په شرط د دې چي په هغه سره زيب او ښكلا مقصد نه وي كه يو څوک د ښكلا او زينت څخه پرته خوشبويي استعمال كړي نو مكروه به وي.

دلته په دې خبره پوهېدل پكار دي چي كوم شيان د احرام په حالت كي حراميږي د هغو كول كه چيري په قصد سره وي په اتفاق سره د ټولو علماؤ د هغه په وجه په پر كونكی باندي فديه لازميږي مګر كه چيري په هېره سره وي نو فديه نه واجبيږي لكه څرنګه چي د امام شافعي، ثوري، احمد او اسحاق مذهب دی البته د امام ابو حنيفة او امام مالک په نزد په دغه صورت كي فديه واجبيږي.

## د احرام په حالت كي د نكاح كولو مسئله

﴿۲۵۶۲﴾: وَعَنْ عُثْمَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَنْكِحُ الْمُحْرِمُ وَلَا يُنْكَحُ وَلَا يَخْطُبُ. رواه مسلم.

د حضرت عثمان رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: محرم دي نه نكاح كوي او نه دي په نكاح وركول كيږي او نه د نكاح پيغام وليږل سي. مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲/ ۱۰۳۰، رقم: ۴۱- ۱۴۰۹.

**تشريح**: د امام شافعي رحمه الله او اكثرو علماؤ په نزد خپله نكاح كول يا د بل چا نكاح كول د مكروه تحريمي په توګه دي او د كوزدې كولو منع د مكروه تنزيهي په توګه دي د دغه حضراتو په نزد د احرام په حالت كي منع يوازي د مكروه تنزيهي په توګه وي د هغوئ دليل دادی چي

رسول الله ﷺ د احرام په حالت کي د بي بي ميموني سره نکاح کړې ده.

﴿۲۵۶۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزَوَّجَ مَيْمُوْنَةَ وَهُوَ مُحْرِمٌ. متفق عليه

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د احرام په حالت کي د بي بي ميموني سره نکاح وکړل. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۵۱، رقم: ۱۸۳۷، ومسلم ۲\۱۰۳۱، رقم: ۴۶- ۱۴۱۰.

﴿۲۵۶۴﴾: وَعَنْ يَزِيْدَ ابْنِ الْاَصَمِّ ابْنِ اُخْتِ مَيْمُوْنَةَ عَنْ مَيْمُوْنَةَ أَنَّ رَسُوْلَ

حضرت يزيد بن اصم رضي الله عنه يعني د بي بي ميموني خوريی د بي بي ميموني څخه روايت کوي چي هغې وويل: رسول الله ﷺ

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزَوَّجَهَا وَهُوَ حَلَالٌ. رواه مسلم، قال الشيخ

د هغې سره په داسي حال کي نکاح وکړل چي رسول الله ﷺ حلال وو (يعني د احرام په حالت کي نه وو.) مسلم.

الامام محي السنة رحمه الله والاكثرون على انه تزوجها حلالا و ظهر امر تزويجها وهو محرم ثم بنى بها وهو حلال بسرف في طريق مكة.

امام محي السنة وايي رسول الله ﷺ د بي بي ميموني سره په داسي حال کي نکاح وکړه چي په احرام کي نه وو مګر د نکاح خبر هغه وخت څرګند سو چي رسول الله ﷺ په احرام کي وو، بيا رسول الله ﷺ د هغې سره په داسي حال کي صحبت وکړ چي محرم نه وو، د صحبت ځای سرف دئ چي د مکې مکرمې په لاره کي واقع دئ.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۱۰۳۲، رقم: ۴۸- ۱۴۱۱.

**تشريح**: مظاهر حق په يو ځای کي ويلي دي چي سرف د يوم ځای نوم دی او هغه د مکې مکرمې څخه تقريبا شپږ ميله ليري دی او د مقام تنعيم څخه شمال ته درې يا څلور ميله فاصله

باندي واقع دی ، دلته يې يو تاريخي اتفاق ذكر كړی دی هغه دا چي د رسول الله ﷺ د ميمونې سره په سرف كي نكاح وسوه دا هغه وخت وو چي د عمرة القضاء لپاره مكې تللي وه او په دغه وخت د احرام په حالت كي وه او د هغې د واده شپه په هغه وخت كي وسوه چي كله د عمرې څخه فارغه سوه او مدينې ته ستنېدل او بيا د دې انتقال هم په هغه ځای كي وسو .

په هر حال دغه حديث چي د بي بي ميمونې خوريی (د خور زوی) يزيد روايت كړی دی د ابن عباس رضي الله عنه روايت د دې بالكل خلاف دی كوم چي مخكي نقل سوی دی د ابن عباس رضي الله عنه روايت خو دا خبره ثابتوي چي رسول الله ﷺ د بي بي ميمونې سره د احرام په حالت كي نكاح كړې وه او د يزيد روايت پر دې دلالت كوي چي د بي بي ميمونې سره د رسول الله ﷺ نكاح هغه وخت سوې وه كله چي رسول الله ﷺ د احرام په حالت كي نه وو همدا رنګه په دغه دواړو روايتو كي تعارض پيدا سوی دی ، احناف د ابن عباس رضي الله عنه روايت ته ترجيح وركوي اول خو په دې وجه چي ابن عباس رضي الله عنه د خپل علم او فضل ، حافظې او فقهي په اعتبار پر يزيد ډېر زيات لوړ دی دوهم دا چي د ابن عباس رضي الله عنه روايت بخاري او مسلم دواړو نقل كړی دی او د يزيد روايت يوازي مسلم نقل كړی دی .

اوس پاته سوه دا خبره چي د حضرت عثمان رضي الله عنه په روايت كي د احرام په حالت كي د نكاح كولو منع منقول ده په دې باره كي حنفي علماء ليكي چي د دغه منع څخه مراد دا نه دی چي نكاح كول قطعا ناجائز يا حرام ده بلكه د دې مقصد ظاهرول دي چي محرم په يو عبادت كَي بوخت وي ځكه د هغه د شان او حال مناسب نه دي چي هغه خپله نكاح وكړي يا د بل چا نكاح وكړي د دغه حديث په تشريح كي دا وضاحت سوی وو چي دلته د دغه منع مطلب مكروه تنزيهي دی .

د امام محي السنة دغه الفاظ : وظهر امر تزويجها وهو محرم، د بي بي ميمونې سره د رسول الله ﷺ د نكاح عام اظهار هغه وخت وسو كله چي رسول الله ﷺ د احرام په حالت كي وو ، دا په اصل كي د شوافع له خوا د ابن عباس رضي الله عنه د روايت چي رسول الله ﷺ د بي بي ميمونې سره په داسي حالت كي نكاح وكړه چي رسول الله ﷺ احرام تړلی وو د دې تاويل دا دی چي رسول الله ﷺ هغه وخت نكاح تړلې وه كله چي د احرام په حالت كي نه وو مګر د دغه نكاح علم خلكو ته هغه وخت وسو كوم چي رسول الله ﷺ احرام تړلی وو يعني امام محي السنه دا ظاهرول غواړي چي ابن عباس رضي الله عنه ته د دې علم هغه وخت وسو كله چي رسول الله ﷺ د احرام په حالت كي وو ځكه هغه دا وګڼل چي رسول الله ﷺ د احرام په حالت كي نكاح كړې ده حالانكه د شوافع له خوا د ابن عباس رضي الله عنه د روايت د تاويل د تكلف څخه زيات هيڅ حيثيت نه لري .

## په احرام کي سر پريولل

﴿۲۵۶۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ اَيُّوْبَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَغْسِلُ رَاْسَهُ وَهُوَ مُحْرِمٌ . متفق عليه .

د حضرت ابو ايوب انصاري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به په احرام کي خپل سر مبارک پريولئ . بخاري او مسلم .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۵۵، رقم: ۱۸۴۰، ومسلم ۲\۸۶۴، رقم: ۹۱- ۱۲۰۵.

**تشريح**: بېله اختلافه د محرم لپاره دا جائز دي چي هغه خپل سر پريولي مگر داسي چي د سر وېښتان مات نه سي مگر که چيري په گل حطمي سره يې پريولي نو د امام ابوحنيفة او امام مالک په نزد پر هغه دم يعني د ځاروي ذبح کول واجبيږي نه يوازي دا چي خطمي د خوشبويي څخه دی بلکه دديې په لگولو سره شپږي وي البته داسي صابون چي خوشبويي نه لري يا د بيري په بلگو او داسي نورو شيانو سره د سر پريوللو په صورت کي په اتفاق سره د ټولو علماؤ پر هغه څه نه واجبيږي .

## په احرام کي وينه کښل

﴿۲۵۶۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اِحْتَجَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ . متفق عليه

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به داحرام په حالت کي ښکر وهئ (يعني وينه به يې کښل) . بخاري او مسلم .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۵۰، رقم: ۱۸۳۵، ومسلم ۲\۸۶۲، رقم: ۸۷- ۱۲۰۲.

**تشريح**: د اکثرو علماؤ په نزد د احرام په حالت کي وينه کښل جائز دي په شرط ددې چي وېښته مات نه سي .

## په سترگو کي دوا اچول

﴿۲۵۶۷﴾: وَعَنْ عُثْمَانَ حَدَّثَ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الرَّجُلِ إِذَا اشْتَكَى عَيْنَيْهِ وَهُوَ مُحْرِمٌ ضَمَّدَهُمَا بِالصَّبِرِ . رواه مسلم

د حضرت عثمان رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د یو سړي په اړه وفرمایل : که د احرام په حالت کي د هغه سترګي خوږېسي نو مصبر دي په وو هي . مسلم .

**تخریج** : مسلم في الصحیح ۲\۸٦۳، رقم: ۸۹- ۱۲۰۴.

**د لغاتو حل** : الصَبِر: وهو دواء معروف (یو ډول درمل).

**تشریح** : په تاج المصادر کي د تضمید معنی پوري کول لیکلي دي مګر ځیني علماء ددې معنی په سترګو کي دننه لګول لیکي یعني څرنګه چي رانجه لګول کیږي همداسي هغه دي په خپلو سترګو کي مصبر ولګوي .

اوعلامه طیبي رحمه الله لیکلي دي چي تضمید پر زخم باندي پټۍ لګولو ته وایي همدارنګه پر زخم باندي دواء لګولو ته هم تضمید وایي .

دا خبره مخکي ښودل سوې ده چي محرم ته بېله خوشبویي رانجه لګول جائز دي او ددې په وجه د جزاء په توګه یو شی نه واجبیږي په شرط ددې چي زینت او ښکلا مقصد نه وي ځکه چي زینت او ښکلا لپاره رانجه لګول مکروه دي ، دلته د خوشبویي لرونکو رانجو په باره کي په دې تفصیل پوه سئ که چیري په رانجه کي کمه خوشبویي وي نو د هغه په لګولو سره یوازي صدقه کول واجبیږي او که چیري خوشبوئي یې زیاته وي نو په داسي رانجو لګولو باندي دم یعني د حیوان حلالول واجبیږي، همدارنګه دا مسئله ده که یو محرم د خپل سر او مخ څخه پرته بل یو اندام باندي پټۍ وتړي نو پر هغه که څه هم د جزا په توګه څه نه واجبیږي مګر دا مکروه دي او که یو محرم د خپل سر او مخ پر څلورمه برخه باندي یا تر دې یاته برخه باندي یو جامه وغیره سره پټ کړي نو پر هغه دم لازمیږي او که د څلورمي برخي څخه کمه پټه کړي نو یوازي صدقه واجبیږي .

## د احرام په حالت کي پر سر د سایه کولو مسئله

﴿۲۵٦۸﴾: وَعَنْ أُمِّ الْحُصَيْنِ قَالَتْ رَأَيْتُ أُسَامَةَ وَبِلَالًا وَأَحَدُهُمَا آخِذٌ

د حضرت ام حصین رضي الله عنها څخه روایت دئ چي ما اسامه رضي الله عنه او بلال رضي الله عنه ولیدل چي په هغوئ کي

بِخِطَامِ نَاقَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْآخَرُ رَافِعٌ ثَوْبَهُ يَسْتُرُهُ مِنَ الْحَرِّ حَتَّى رَمَى جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ . رواه مسلم

يوه د رسول الله ﷺ د اوښي مهار نيولی وو (يعني بلال) او دويم (اسامه) د رسول الله ﷺ پر سر مبارک په جامې سره سايه کړې وه کله چي رسول الله ﷺ جمره عقبه په ډبرو ويشتل. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\ ۹۴۴، رقم: ۳۱۲- ۱۲۹۸.

**تشريح**: حضرت اسامه ﷺ د رسول الله ﷺ پر سر مبارک داسي سايه کړې وه چي هغه جامه د پورته والي په وجه د رسول الله ﷺ د سر مبارک سره نه لګېدل او په يوه روايت کي دادی چي هغه د سايه کولو لپاره د رسول الله ﷺ پر سر مبارک د سايوان په ډول يو شی پورته کړی وو.

ددغه حديث څخه معلومه سوه چي د محرم لپاره دا جائز دي چي هغه پر خپل سر باندي د يو شي سايه وکړي په شرط ددې چي سايه کونکی شی د هغه پر سر ونه لګيږي د اکثرو علماء دا قول دی مګر امام مالک او امام احمد دې ته مکروه ويلي دي.

## د سر خريلو جزا

﴿۲۵۶۹﴾: وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِهِ وَهُوَ

د حضرت کعب بن عجرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د هغه سره تير سو کوم وخت چي

بِالْحُدَيْبِيَةِ قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ مَكَّةَ وَهُوَ مُحْرِمٌ وَهُوَ يُوقِدُ تَحْتَ قِدْرٍ وَالْقَمْلُ

هغه په حديبيه کي وو او مکې ته نه وو داخل سوی او کعب هغه وخت د احرام په حالت کي وو او د کټوي لاندي يې اور بلوئ او سپږي به

يَتَهَافَتُ عَلَى وَجْهِهِ فَقَالَ أَيُؤْذِيكَ هَوَامُّكَ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَاحْلِقْ رَأْسَكَ

پر مخ رالوېدلې، نبي کريم ﷺ پوښتنه وکړه ايا سپږي تکليف درکوي؟ هغه وويل: هو، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: خپل سر وخريه

وَأَطْعِمْ فَرَقًا بَيْنَ سِتَّةِ مَسَاكِينَ وَالْفَرَقُ ثَلَاثَةُ آصُعٍ أَوْ صُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ أَوْ انْسُكْ نَسِيكَةً. متفق عليه

او يو فرق خوراک په شپږو مسکينانو وخوره (فرق درې صاع وي) او يا درې ورځي روژه ونيسه يا يو حيوان د حلالولو وړ حلال کړه. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\ ۱۲، رقم: ۱۸۱۴، ومسلم ۲\ ۸۶۱، رقم: ۸۳- ۱۲۰۱.

**تشریح**: کعب ابن عجره ﷺ یو جلیل القدر صحابي دی د صلح حدیبیه پر موقع دی هم موجود وو دده د اسلام قبلولو واقعه ډېره په زړه پوري هم ده او ډېر عبرتناکه هم، ویل کیږي چي دده سره یو بت وو چي د هغه عبادت یې کوی عباده ابن صامت ﷺ دده ملگری وو یوه ورځ عباده کعب ته راغلی نو هغه یې ولیدی چي کعب د بُت عبادت کولو څخه وروسته د کور څخه وتلی دی نو په عباده په کور کي داخل سو او هغه بت یې مات کړی کله چي کعب کور ته راغلی نو وه یې لیدل چي بت مات پروت دی هغه ته معلومه سوه چي دا حرکت د عباده دی ډېر په غضب سو وه یې غوښتل چي عباده ته بد او رد ووایي مگر په زړه کي یې خیال پیدا سو که چیري دغه بت ته څه قدرت حاصل وای نو ځان به یې ژغورلای وای نو دا خیال یې په زړه کي وو چي د کفر او شرک تیاره ځیني لیري سوه او د ایمان او صداقت نور د هغه د زړه او دماغ یوه یوه ذره منور کړل او همدارنگه په اسلام مشرف سو، ربنتا وایي الله تعالی چي څوک هدایت یافته جوړوي نو هغه ته د هدایت توفیق ورکړي.

په هر حال ددغه حدیث څخه دا مسئله معلومه سوه که یو محرم د یو عذر مثلاً شپږي، زخم، سردرد وغیره په وجه خپل سر وخریي نو هغه ته اختیار دی چي د جزا په توگه په شپږو مسکینانو خوراک وخوري په دې توگه چي هر مسکین ته نیم نیم صاع غنم ورکړي او که درې ورځي روژې نیسي او که څاروی ذبح کوي، دا حدیث ددغه آیت کریمه تفسیر دی:

فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضاً أَوْ بِهِ أَذًى مِّن رَّأْسِهِ فَفِدْيَةٌ مِّن صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ،

ژباړه: که په تاسو کي څوک ناروغ وي یا د هغه په سر کي تکلیف وي او هغه خپل سر وخریي نو هغه دی د فدیې په توگه یا خو روژې ونیسي یا دي صدقه وکړي یا دي قرباني وکړي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### په احرام کي د ښځو لپاره منع شیان

﴿۲۵۷۰﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى النِّسَاءَ

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روایت دئ چي هغه د رسول الله ﷺ څخه واوریدل چي ښځي یې د

فِي إِحْرَامِهِنَّ عَنِ الْقُفَّازَيْنِ وَالنِّقَابِ وَمَا مَسَّ الْوَرْسُ وَالزَّعْفَرَانُ مِنَ

احرام په حالت کي ددې څخه منع کولې چي هغوئ داسي دست کلې، نقاب او جامې نه

واغوندي چي ورس يا زعفران پر لګېدلی وي

الثِّيَابِ وَلْتَلْبَسْ بَعْدَ ذٰلِكَ مَا أَحَبَّتْ مِنْ أَلْوَانِ الثِّيَابِ مُعَصْفَرٍ أَوْ خَزٍّ أَوْ حُلِيٍّ أَوْ سَرَاوِيلَ أَوْ قَمِيصٍ أَوْ خُفٍّ. رواه ابوداؤد.

او د احرام څخه د حلالېدو وروسته چي هغوئ څه غواړي اغوستلای سي، يعني رنګينه جامو کي که رنګ سوې وي يا ريښم وي، زيور وي، پرتوګ وي، قميص وي يا موزه وي. ابوداؤد

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۴۱۲، رقم: ۱۸۲۷.

**تشريح**: بعد ذالک (ددې څخه وروسته) : ددې مطلب شيخ عبدالحق دهلوي رحمه الله د احرام څخه د وتلو وروسته ليکلی دی مګر ملا علي قاري رحمه الله دا معنی ليکلې ده چي ددغه پورتنيو شيانو څخه وروسته يعني په حديث کي چي د کومو شيانو د استعمال څخه منع سوې ده د هغو څخه پرته بل ډول جامه هم که وغواړي اغوستلای سي.

او ملا علي قاري رحمه الله دا هم ليکلي دي چي د بعد ذالک دا معنی اخيستلو په صورت کي د حديث څخه په ظاهره دا معلوميږي چي د احرام په حالت کي د زعفران رنګ سوې جامه اغوستل منع دي مګر د کسم رنګ سوې جامه اغوستل منع نه دي حال دا چي د حنفيه په مذهب کي د احرام په حالت کي څرنګه چي زعفراني جامه اغوستل منع دي همدارنګه د کسم رنګ سوې جامه اغوستل هم منع دي، په خزانة الاکمل او ولوالجي او د فقهي په نورو کتابو کي دا ليکلي دي که محرم د زعفران يا کسم رنګ سوې جامه يوه ورځ واغوستل نو پر هغه باندي د جزاء په توګه دم واجبيږي او که د يوې ورځي څخه يې کمه واغوستل نو صدقه لازميږي، نو غوره دادي چي د بعد ذالک هغه معنی مراد واخيستل سي کوم چي شيخ عبدالحق رحمه الله ليکلې ده يا دا تاويل وکړل سي چي په حديث کي د کسم هغه رنګ سوې جامه مراد ده کوم چي پريولل سوې وي او په هغه کي خوشبويي پاته نه وي، علامه طيبي رحمه الله فرمايي چي د حديث په آخر کي د جامو سره د زيوراتو ذکر مجازا سوی دی.

## په احرام کي د ښځو لپاره پرده

﴿۲۵۷۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ الرُّكْبَانُ يَمُرُّونَ بِنَا وَنَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ سره د احرام په حالت کي وو او

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحْرِمَاتٌ فَإِذَا حَاذَوْا بِنَا سَدَلَتْ إِحْدَانَا جِلْبَابَهَا مِنْ

زموږ په خوا کي قافلې تيريدلې کله چي به يوه قافله تيرېدل نو په موږ کي به چا خپل څادر پر سر اچوئ او موږ تولو به مخونه پټ کړل

رَأْسِهَا عَلَى وَجْهِهَا فَإِذَا جَاوَزُونَا كَشَفْنَاهُ. رواه ابوداؤد و لابن ماجة معناه.

بيا چي به قافله تيره سوه نو موږ به مخونه لوڅ کړل. ابوداؤد او ابن ماجه.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۴۱۶، رقم: ۱۸۳۳، وابن ماجه بمعناه ۲\۹۷۹، رقم: ۲۹۳۵.

## په احرام کي د خوشبويي لرونکي تيلو استعمال منع دی

﴿۲۵۷۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَدَّهِنُ بِالزَّيْتِ وَهُوَ مُحْرِمٌ غَيْرِ الْمُقَتَّتِ يَعْنِي غَيْرَ الْمُطَيَّبِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به د احرام په حالت کي د زيتون هغه تيل استعمالول په کوم کي چي به خوشبويي نه وه. ترمذي.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۲۹۴، رقم: ۹۶۲.

**تشريح**: مقتت هغه تېلو ته وايي چي په هغه کي د خوشبوداره ګلونو په اچولو سره پاخه کړل سي چي هغه تېل خوشبوداره سي يا په هغه تېلو کي يو خوشبوداره تيل وغيره ګډ کړل سي.

د احرام په حالت کي د خوشبوداره تيلو استعمال مکروه دی ددې تفصيل دادی چي که د يو اندام پر پوره برخه باندي يا پر ټول اندام باندي د ګلاب تېل، د بنفشه تېل يا دا ډول نور خوشبوداره تيل ولګوي نو د حنفيه په نزد په اتفاق سره پر هغه دم يعني د څاروي ذبح کول واجبيږي او که د زيتون يا داسي نور تيل چي په هغه کي خوشبويي نه وي په زياته اندازه ولګول سي نو د امام ابوحنيفة رحمه الله په نزد په دغه صورت کي هم دم واجبيږي او د صاحبينو يعني امام ابويوسف او امام محمد په نزد صدقه واجبيږي مګر دغه اختلاف په هغه صورت کي دی کله چي دواړه تيل د خوشبويي څخه بالکل خالي او د يو خوشبودار ګلونو څخه پاخه سوي نه وي ځکه که چيري د زيتون په تيلو کي خوشبويي ګډه سوې وي يا په هغه کي خوشبوداره ګل اچولو سره پاخه سوي وي نو بيا د ټولو په نزد د هغه د استعمال په وجه دم واجبيږي همدارنګه دغه

اختلاف په هغه صورت کي هم دی کله چي دغه تيل په زياته اندازه کي ولګول سي او که کم ولګول سي نو په اتفاق سره د ټولو په نزد د هغه په استعمال سره يوازي صدقه واجبيږي.

په دې خبره هم پوه سئ چي د دغه تيلو د استعمال په وجه دم يا صدقه هغه وخت واجبيږي کله چي هغه محض د خوشبويي په خاطر استعمال کړل سي او که چيري هغه د دواء په توګه استعمال کړل سي نو بيا په اتفاق سره هيڅ هم نه واجبيږي، د مشک او نورو خوشبويي لرونکو شيانو د استعمال مسئله د دې څخه مختلف ده چي د هغه په استعمال سره په هر صورت دم واجبيږي که د خوشبويي لپاره استعمال کړل سي او که د دواء لپاره.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د ګنډل سوو جامو اغوستل

﴿۲۵۷۳﴾: عَنْ نَّافِعٍ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ وَجَدَ الْقُرَّ فَقَالَ اَلْقِ عَلَيَّ ثَوْبًا يَا نَافِعُ

د حضرت نافع رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د ابن عمر رضي الله عنه يخ وسو نو ما ته يې وويل اې نافع پر ما

فَأَلْقَيْتُ عَلَيْهِ بُرْنُسًا فَقَالَ تُلْقِي عَلَيَّ هٰذَا وَقَدْ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَلْبَسَهُ الْمُحْرِمُ. رواه ابوداؤد.

جامه واچوه، ما باراني جامه پر واچول هغه وويل: ايا تا پر ما باندي باراني تلتک واچوئ حال دا چي رسول الله ﷺ د دې د استعمال څخه منع فرمايلې ده. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\۴۱۳، رقم: ۱۸۲۸.

**د لغاتو حل**: القر: اى البرد (يخ).

**تشريح**: د حنفيه مذهب دادی چي د ګنډل سوو جامو داسي استعمالول لکه څرنګه چي په عامه توګه استعماليږي د محرم لپاره منع دي او بل ډول ممنوع نه دي مثلاً کوټ په عامه توګه اغوستل کيږي که يو محرم يې نه واغوندي بلکه داسي يې پر بدن واچوي نو په هغه کي څه حرج نه سته لکه څرنګه چي په دې باره کي مخکي ذکر سوی دی، ابن عمر رضي الله عنه د کوټ څخه ځکه منع وفرمايل چي هغه په خپل خيال سره د ګنډل سوو جامو څخه مطلقا پرهيز کوی يا دا چي نافع د هغه سر هم پټ کړی وو په دې وجه يې هغه منع کړ.

## د رسول الله ﷺ وينه كښل

﴿۲۵۸۴﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَالِكِ بْنِ بُحَيْنَةَ قَالَ احْتَجَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ بِلَحْيِ جَمَلٍ من طريق مكة فِي وَسَطِ رَأْسِهِ . متفق عليه

د حضرت عبدالله بن مالک بن بحينه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د احرام په حالت کي پر سر مبارک په لحي جمل نامي ځای کي چي د مکې په لاره کي واقع دئ ښکر ولګوئ . بخاري او مسلم .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۰\۱۵۲، رقم: ۵۶۹۸، ومسلم ۲\۸۶۲، رقم: ۸۸- ۱۲۰۳.

**تشريح**: مالک د عبدالله د پلار نوم دی او بحينه د هغه د مور نوم دی يعني ابن بحينه د حضرت عبدالله دوهم صفت دی ځکه عبدالله بن مالک په ابن بحينه کي د مالک په تنوين سره وايي او په ابن بحينه کي الف ليکل کيږي .

رسول الله ﷺ د سر مبارک په مينځ کي وينه وکښل نو د سر مبارک وېښتان به يې څه ناڅه خامخا مات سوي وي ځکه نو دغه حديث پر ضرورت باندي محمول دی چي رسول الله ﷺ د يو عذر په وجه د سر مبارک څخه وينه کښلې وه که محرم په داسي ځای کي وينه ولګوي چي هلته وېښتان نه وي نو پر هغه فديه نه واجبيږي .

مسئله: که مُحرم د سر وېښتان د څلورمي برخي څخه کم وخريي يا د وينه کښلو په وجه د هغه د سر د څلورمي برخي څخه کم وېښتان مات سي نو پر هغه صدقه واجبيږي يعني د جزاء په توګه دي به په اوږي باندي په ماړه نس خوراک خوري يا هغه ته دي نيم صاع غنم ورکړي او که يو محرم بېله عذره د څلورمي برخي سر څخه زيات وېښتان مات سي نو پر هغه دم واجبيږي يعني هغه به د جزا په توګه يو پسه يا د هغه په مثل څاروی ذبح کوي او که د يو عذر په وجه د څلورمي برخي څخه زيات وخريي يا د يو عذر په وجه وينه وکاږي او د هغه په وجه د څلورمي برخي سر څخه زيات وېښتان مات سي نو هغه به ددغه درو شيانو څخه يو شی اختياروي ۱: يو پسه ذبح کړي، ۲: نيم صاع غنم دي د هر مسکين په حساب سره شپږو مسکينانو ته درې صاع غنم ورکړي ۳: يا درې ورځي روژې دي ونيسي پر له پسې يا جلا جلا .

که محرم د وينه کښلو په وجه د محاجم يعني وينه کښلو د ځای څخه وېښتان وخريي نو په دغه صورت کي د امام ابو حنيفة رحمه الله په نزد پر هغه دم واجبيږي او د صاحبينو په نزد صدقه د

ويني كنبلو د ځای څخه د غاړي دواړي خواوي او څټ مراد دی ځکه يو څوک ټول څټ وخريي نو بيا په اتفاق سره د ټولو په نزد پر هغه دم واجبيږي او که کم يې وخريي نو صدقه واجبيږي .

﴿۲۵۷۵﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ احْتَجَمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ عَلَى ظَهْرِ الْقَدَمِ مِنْ وَجَعٍ كَانَ بِهِ. رواه ابوداؤد والنسائي .

د حضرت انس ؓ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د احرام په حالت کي د پښنو پر شا د درد له کبله پر هغو ښکر ووهئ . ابوداؤد او نسائي .

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\ ۴۱۸، رقم: ۱۸۳۷، والنسائي ۵\ ۱۹۴، رقم: ۲۸۴۹.

**تشريح**: د پښې پر شا باندي وېښتان نه وي او د هغه ځای څخه په وينه كنبلو سره د وېښتانو د ماتېدو سوال هم نه پيدا كيږي ځكه په دغه حديث كي څه اشكال نه سته او بيا دا چي رسول الله ﷺ د يو عذر په وجه وينه كنبلې وه .

## د حضرت ميمونې ؓ سره د رسول الله ﷺ نكاح

﴿۲۵۷۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ رَافِعٍ قَالَ تَزَوَّجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَيْمُوْنَةَ

د حضرت ابو رافع ؓ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د بي بي ميمونې سره په داسي حالت

وَهُوَ حَلَالٌ و بنى بها وهو حلال وَكُنْتُ اَنَا الرَّسُوْلُ بَيْنَهُمَا . رواه احمد والترمذي و قال هذا حديث حسن .

كي نكاح وكړه چي رسول الله ﷺ په احرام كي نه وو ، او په هغه حالت كي يې خلوت ورسره وكړه، او زه (ابورافع) د رسول الله ﷺ او بي بي ميمونې په منځ كي پيغام رسونكى وم . احمد، او ترمذي ويلي دي دا حديث حسن دئ .

**تخريج**: الامام احمد في المسند ٦\ ۳۹۲، والترمذي ۳\ ۲۰۰، رقم: ۸۴۱.

**تشريح**: دا حديث هم د ابن عباس ؓ د هغه روايت خلاف دی چي په هغه كي نقل سوي وه چي رسول الله ﷺ د بي بي ميمونې رضي الله عنها سره هغه وخت نكاح كړې وه كله چي د احرام په حالت كي وو ، په دې باره كي مخكي د يو حديث په تشريح كي بحث سوی دی ، دلته په دې خبره هم پوهېدل پكار دي چي د ابن عباس ؓ روايت بخاري او مسلم نقل كړی دی حال دا چي دغه

روایت په دغه دواړو کي هیڅا نقل کړی نه دی ځکه نو دغه روایت د ابن عباس ﷺ د روایت مرتبې ته نه سي رسیدلای ځکه نو ترجیح به د ابن عباس ﷺ حدیث ته وي.

==========

# بَابُ الْمُحْرِمِ يَجْتَنِبُ الصَّيْدَ

## د احرام په حالت کي د ښکار کولو منعه

د ټولو علماؤ په اتفاق سره ښکار کول یا په ښکار کولو کي د یو چا مرسته کول د محرم لپاره حرام دي، د ښکار حیوان وژل یا د هغه په وژلو کي مرسته کولو سره هم پر محرم باندي جزاء لازمیږي.

## د ښکار کفاره

د ښکار په وجه چي پر محرم باندي کومه جزاء یا کفاره لازمیږي د هغه څخه مراد هغه قیمت دی کوم چي دوه عادل او تجربه کاره کسان د هغه ښکار لپاره تجویز کړي او د غه قیمت یا خو د هغه ځای په اعتبار دی چیري چي هغه ښکار وژل سوی وي یا که چیري په هغه ځای کي یو قیمت نه وي نو د هغه ځای اعتبار به وي کوم چي د ښکار ځای ته نژدې وي ځکه د یو شي قیمت د مختلفو ځایو په اعتبار بدلیږي همدارنګه دغه قیمت به د هغه زمانې په اعتبار وي په کوم کي چي ښکار وژل سوی وي ځکه د یو شي قیمت په مختلفو وختو او زمانو کي بدلیږي، بیا په دې باره کي به محرم ته اعتبار وي که هغه د تجویز سوي قیمت سره د قربانۍ یو څاروی رانیسي او په حرم کي یې ذبح کړي او که په هغه قیمت سره د غلې په رانیولو سره هر فقیر ته ورکړل سي نو یو یو صاع دي وویشي هیڅ فقیر ته دي د دغه شمېر څخه کم نه ورکوي او که د هر فقیر په شمېر د صدقې په عوض کي یوه یوه روژه ونیسي او په دغه صورت کي دا خبره په ذهن کي ساتل پکار دي چي د ښکار جزاء په هر صورت کي واجبیږي که په قصد سره ښکار وکړل سي او که په سهوه سره. که چیري محرم ښکار زخمي کړي او د هغه زخم څخه مړ سي یا د ښکار وینه راوکاږي یا د هغه یو اندام مات کړي نو د هغه ښکاره د روغتیا د حالت په قیمت کي چي په دې وجه څومره کمي راغلې ده هغه محرم ته ورکول پکار دي.

که یو محرم د یو ښکار لاس او پښې پرې کړي یا د هغه وزر وکاږي چي د هغه په وجه هغه د ساتني څخه معذور سي نو د هغه ښکار پوره قیمت به ورکوي که د هغه ښدې ولویشي نو

د هغه ښېډو قيمت پر هغه واجبيږي همدارنګه که د هغه هګۍ ماته کړي نو د هغه قيمت به ورکوي. محرم ښکار وخوري که يې ونه خوري په دې باره کي تفصيل دادی چي د ټولو علماؤ په اتفاق سره مذهب دادی که يو محرم خپله ښکار وکړي يا بل څوک ښکار وکړي نو هغه ښکار د محرم لپاره خوړل حرام دي مګر که چيري دا صورت وي چي يو غير محرم د ځان لپاره ښکار وکړي ياد محرم لپاره د هغه په اجازې سره يا د هغه د اجازې څخه پرته ښکار وکړي نو د هغه په خوراک کي د علماء مختلف قولونه او مذهبونه دي ځيني صحابه او تابعين چي په هغوئ کي حضرت علي ﷛ هم دی وايي چي د محرم لپاره د ښکار خوړل حرام دي د هغوئ دليل د صعب ابن جثامه ﷛ روايت دی کوم چي ددغه باب په اول حديث کي ذکر دی، د امام شافعي او امام احمد رحمة الله عليهما مذهب دادی چي محرم خپله ښکار وکړي يا بل څوک د هغه لپاره يا د هغه په اجازه سره يا د هغه د اجازې څخه پرته ښکار وکړي نو د هغه لپاره د هغه ښکار خوړل حرام دي مګر که چيري يو غير محرم د ځان لپاره ښکار وکړي او په هغه کي يو څه برخه محرم ته په تحفه کي واستوي نو د هغه خوړل د هغه لپاره حلال دي.

د امام ابو حنيفة ﷫ او د هغه د پيروانو مذهب دادی چي د محرم لپاره د ښکار غوښه خوړل حلال دي که څه هم هغه ښکار د هغه لپاره سوی وي په شرط ددې چي هغه ښکار يې خپله نه وي کړی او نه يې چا ته د هغه ښکار کولو حکم ورکړی وي او نه يې چا ته د ښکار لاره ښوولې وي او نه يې هغه ښکار ته يو څوک متوجه کړی وي او نه هغه ښکار خپله محرم يا بل چا د محرم په مرسته کړی وي، د ابو حنيفة ﷫ دليل د حضرت ابو قتاده ﷛ روايت دی.

## د ښکار څخه کوم حيوانان مراد دي؟

د احرام په حالت کي چي د کوم ښکار څخه منع سوې ده د هغه څخه مراد د ځنګلي حيوانانو ښکار دی، ځنګلي هغه حيوانانو ته وايي چي د هغوئ زېږيدنه او روزنه په وچه يا ځنګل کي وي که څه هم د هغوئ هستوګنه په اوبو کي ـ ي لکه هيلۍ او داسي نور، همدارنګه ښکار هغه حيوان ته وايي چي په اصلي خلقت کي وحشي وي که څه هم هغه په يو وجه سره بلد سوی وي لکه هوسۍ چي د پالونکي سره بلده کيږي مګر په اصل کي وحشي حيوان دی ځکه نو ښکار ورته ويل کيږي که څه هم هغه په ځنګل کي اوسيږي يا پالل سوې وي، په هر صورت دهغه ښکار په کولو سره جزاء واجبيږي. کوم حيوانان چي په اصل کي وحشي نه وي د هغو وژل د احرام په حالت کي هم جائز دي لکه پسه، مېږه، بزه، غوا، اوښ او داسي نور د محرم لپاره جائز

دي ، کوترې ته فقهاء وحشي الاصل وايي ځکه نو د هغه پر ښکار باندې جزاء واجبیږي ، د اوبو د حیوان ښکار د آیت کریمه : (احل لکم صید البحر وطعامه) سره سم د غیر محرم او محرم دواړو لپاره حلال دی که هغه خوړونکی وي او که نه وي.

کوم ځنګلي حیوان چې خوړل کیږي د هغه ښکار په اتفاق سره حرام دی مګر کوم حیوان چې نه خوړل کیږي د هغه په هدایه کې دوه قسمونه دي یو قسم هغه حیوانان دی چې طبعا تکلیف رسوي او اکثر په تاوان رسولو کې خپله شروع کوي لکه زمری، شرموښ، ددغه حیوان وژل د محرم لپاره جائز دي او د هغه په وژلو سره جزاء نه واجبیږي، دوهم قسم هغه حیوانان دي چې په تکلیف رسولو سره شروع نه کوي لکه چرغ (کوږ) او داسي نور نو ددغه حیوانانو په باره کې دا مسئله ده که دغه حیوانان پر محرم باندې حمله وکړي نو هغه یې وژلای سي او ددې په وجه پر هغه جزاء نه واجبیږي او که حمله ونه کړي نو بیا د محرم لپاره دامباح نه دي چې د هغه په وژلو کې شروع وکړي او که یې ووژني نو پر هغه جزاء واجبیږي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### داحرام په حالت کې د ښکار څخه پرهیز

﴿۲۵۷۷﴾: عَنْ الصَّعْبِ بْنِ جَثَّامَةَ أَنَّهُ أَهْدَى لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت صعب بن جثامه رضی الله عنه څخه روایت دئ چې هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کې په ابواء یا

حِمَارًا وَحْشِيًّا وَهُوَ بِالْأَبْوَاءِ أَوْ بِوَدَّانَ فَرَدَّهُ عَلَيْهِ فَلَمَّا رَأَى مَا فِي وَجْهِهِ قَالَ إِنَّا لَمْ نَرُدَّهُ عَلَيْكَ إِلَّا أَنَّا حُرُمٌ . متفق عليه

ودان نامي ځای کې یو ښکار سوی ځنګلی خر د تحفې په توګه وړاندې کړ ، رسول الله ﷺ هغه رد کړ او کله چې د تحفه ورکونکي په مخ کې د ناخوښي نښې څرګندې سوې نو رسول الله ﷺ وفرمایل: موږ ځکه رد کړ چې موږ احرام تړلی دئ. بخاري او مسلم.

**تخریج** : البخاري في الصحیح ۳۱/۴، رقم: ۱۸۲۵، رقم: ۲۵۷۳، ومسلم ۸۵۰/۲، رقم: ۵۰- ۱۱۹۳.

**تشریح** : دا حدیث په ظاهره د هغه حضراتو دلیل دیکوم چې مطلقا د ښکار غوښه خوړل د محرم لپاره حرام ګرځوي او د ابو حنیفة رحمه الله مذهب کوم چې د باب په شروع کې ذکر سو دی د حضرت عمر، ابو هریره، طلحه ابن عبیدالله او د بي بي عائشې رضي الله عنهم د قول مطابق دی

ځکه د امام ابو حنیفة رحمه الله په نزد ددغه حدیث مراد دادی چي ژوندی د غره خر د ښکار په توګه د رسول الله ﷺ په خدمت کي لیږل سوی وو او ژوندی ښکار وژل د محرم لپاره صحیح نه دی ځکه رسول الله ﷺ هغه واپس کړی مګر بیا یو بل اشکال پیدا کیږي هغه دا چي په یوه روایت کي په وضاحت سره منقول دي چي د غره د خره غوښه استول سوې وه او په یوه روایت کي دا ښوول سوې دي چي د ځنګلي خره ورون لیږل سوی وو همدارنګه په یوه روایت کي دا ښودل سوي دي چي د هغه یوه ټوټه استول سوې وه.

نو ددغه دواړو روایتو مطابق دا معلومیږي چي ژوندی ځنګلي خر نه وو استول سوی بلکه دلته په حدیث کي د ځنګلي خره څخه د هغه غوښه مراد ده، ددې جواب دادی چي مخکي د رسول الله ﷺ په خدمت کي ژوندی ځنګلی خر استول سوی وو مګر دلته په حدیث کي هم د ځنګلي خره څخه د هغه غوښه مراد ده، ددې جواب دادی چي مخکي، خو به د رسول الله ﷺ په خدمت کي ژوندی ځنګلی خر استول سوی وي چي رسول الله ﷺ هغه قبول نه کړ بیا وروسته د دوهم ځنګلي خره ورون واستول سو چي دا په غوښو سره تعبیر کړل سو او چا ورته د هغه ټوټه وویل.

په دې باره کي د امام ابو حنیفة رحمه الله لوی دلیل دغه روایت دی چي در سول الله ﷺ په خدمت کي ځنګلي خر وړاندي کړل سو کله چي رسول الله ﷺ په عرج نامي ځای کي تشریف فرما وو او احرام یې تړلی وو، رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته حکم ورکړ چي هغه په ملګرو کي وویشي، د پورتني حدیث په اړه شافعیه وایي چي رسول الله ﷺ هغه ځنګلي خر د ګمان په وجه رد کړ چي دا په خاصه توګه زما لپاره ښکار سوی دی.

## د حنفیه مستدل حدیث

﴿۲۵۷۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ اَنَّهُ خَرَجَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَخَلَّفَ

د حضرت ابو قتادة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي هغه د حدیبیه په کال د رسول الله ﷺ سره ولاړئ او د خپلو ملګرو څخه شاته پاته سو،

مَعَ بَعْضِ أَصْحَابِهِ وَهُمْ مُحْرِمُوْنَ وَهُوَ غَيْرُ مُحْرِمٍ فَرَأَوْا حِمَارًا وَحْشِيًّا

د هغه ملګرو احرام تړلی وو او هغه په احرام کي نه وو، د هغه ملګرو یو ځنګلی خر ولیدئ او

قَبْلَ أَنْ يَرَاهُ فَلَمَّا رَأَوْهُ تَرَكُوْهُ حَتّٰى رَآهُ أَبُوْ قَتَادَةَ فَرَكِبَ فَرَسًا لَهُ فَسَأَلَهُمْ

ابو قتاده نه وليدئ هغوئ هغه پرېښودئ تر څو چي ابو قتادة وليدئ هغه پر خپل آس سپور سو او د خپلو ملګرو څخه يې دوره و غوښتل

أَنْ يُنَاوِلُوهُ سَوْطَهُ فَأَبَوْا فَتَنَاوَلَهُ فَحَمَلَ فَعَقَرَهُ ثُمَّ أَكَلَ فَأَكَلُوا فَنَدِمُوا فَلَمَّا

هغوئ انکار ورته وکړ، ابو قتادة ﷺ د آس څخه راکښته سو خپله يې دوره پورته کړل او بيا يې پر ځنګلي خره حمله وکړه هغه يې ښکار کړ او د ښکار غوښه ابو قتاده او د هغه ملګرو وخوړل، بيا هغوئ ته دا حس سول چي د محرم لپاره خو د ښکار غوښه صحيح نه ده، پښيمانه سول،

أَدْرَكُوا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَأَلُوهُ قَالَ هَلْ مَعَكُمْ مِنْهُ شَيْءٌ قَالَ

ددې وروسته چي ټول خلک رسول الله ﷺ ته راورسيدل نو دا مسئله يې و پوښتل، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه ايا په هغه غوښه کي ستاسو سره څه پاته ده؟ موږ عرض ورکړ

مَعَنَا رِجْلُهُ فَأَخَذَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَكَلَهَا. متفق عليه و في

زموږ سره د هغه پښه سته، رسول الله ﷺ هغه پښه واخيستل او وه يې خوړل، بخاري او مسلم،

رواية لهما فَلَمَّا أَتَوْا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَمِنْكُمْ أَحَدٌ أَمَرَهُ

او د بخاري او مسلم په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي کله دا خلک د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سول نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ايا په تاسو کي چا

أَنْ يَحْمِلَ عَلَيْهَا أَوْ أَشَارَ إِلَيْهِ قَالُوا لَا قَالَ فَكُلُوا مَا بَقِيَ مِنْ لَحْمِهَا.

ابو قتاده ته ويلي وه يا اشاره يې ورته کړې وه چي هغه پر ځنګلي خره حمله وکړل، هغوئ وويل: يا، نو رسول الله ﷺ وفرمايل: کومه غوښه چي پاته ده هغه وخورئ.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ٦\٥٨، رقم: ٢٨٥٤، ومسلم ٢\٨٥٢، رقم: ٥٧- ١١٩٦.

**تشريح**: د دغه حديث په اړه يو اشکال پيدا کيږي چي دلته خو ښودل سوي دي چي رسول الله ﷺ د هغه ځنګلي خره پاته سوې پښه په تيارولو سره وخوړل حال دا چي په يو بل حديث کي دي چي رسول الله ﷺ هغه ونه خوړل نو د دغه اشکال ليري کولو لپاره علماء په دغه دواړو روايتو کي دا مطابقت پيدا کوي چي رسول الله ﷺ خپله د احرام په حالت کي وو ځکه په شروع کي به رسول الله ﷺ دا ګمان کړی وي چي د دغه ځنګلي خره په ښکار کي به د يو محرم د حکم يا د هغه

د مرستي دخل وي ځکه رسول الله ﷺ به د هغه د خوړلو څخه انکار کړی وي مگر کله چي صحيح صورت حال مخته راغلی او رسول الله ﷺ ته معلومه سوه چي د هغه په ښکار کي د محرم د حکم يا د هغه د مرستي دخل نه وو نو رسول الله ﷺ هغه وخوړل.

لکه څرنګه چي د محرم لپاره دا منع دي چي هغه يو چا ته د ښکار کولو حکم وکړي همدارنګه دلالت او اشاره کول هم منع دي، په دلالت او اشاره کي فرق دادی چي د دلالت تعلق د ژبي سره وي مثلا محرم يو چا ته په ژبه سره وښيي چي هغه دي ښکار، او د اشارې تعلق په لاس سره وي مثلا محرم يو چا ته د لاس په اشارې کولو سره ښکار ته متوجه کړي، ځيني حضرات وايي چي د دلالت تعلق د هغه ښکار سره وي کوم چي نه معلوميږي او د اشارې تعلق د هغه ښکار سره وي کوم چي معلوميږي.

دلته په دې خبره پوهېدل پکار دي چي د محرم لپاره د لالت د احرام په حالت کي د حرم په حدودو کي هم حرام دی او د حرم د حدودو څخه د باندي هم، مګر د غير محرم لپاره د حرم په حدودو کي حرام دی مګر د حرم د حدودو څخه د باندي حرام نه دی.

دا حديث پر دې خبره دلالت کوي چي محرم ته د ښکار غوښه خوړل حلال دي په شرط د دې چي هغه ښکار په خپله نه وي کړی او نه په هغه ښکار کي د دلالت او اشارې دخل وي، دا حديث د امام ابو حنيفة رحمه الله د مذهب دليل دی او هغه حضراتو د مذهب ترديد دی کوم چي محرم د مطلق ښکار د خوړلو څخه منع کوي.

## د کومو حيوانانو وژل جائز دي

﴿۲۵۷۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَمْسٌ لاَ جُنَاحَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: پنځه حيوانان دي چي په

عَلٰى مَنْ قَتَلَهُنَّ فِي الْحَرَمِ وَالْاِحْرَامِ اَلْفَأْرَةُ وَالْغُرَابُ وَالْحِدَأَةُ وَالْعَقْرَبُ وَالْكَلْبُ الْعَقُوْرُ . متفق عليه .

حرم او احرام کي يې وژل گناه نه ده: مږه (موږک)، کارګه، تپوس، لړم، داړونکی سپی. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۶\۳۵۵، رقم: ۳۳۱۵، ومسلم ۲\۸۵۷، رقم: ۷۲ - ۱۱۹۹

**د لغاتو حل**: حِدَاة: طائر يصيد الجرذان (يو دول مرغه).

**تشریح**: د غراب (ټپوس) څخه مراد الغراب الابقع (ابلک ټپوس) یعني هغه تور او سپین ټپوس دی چي اکثر مرداري او نجاست خوري ، په مخکي روایت کي ددې وضاحت هم سته ځکه نو د هغه ټپوس وژل ناجائز دي کوم چي غله خوري او د هغه ټول بدن تور او مېنوکه او د پښنو رنګ یې سور وي ، د لیوني سپي په حکم کي هغه ټول درندګان شامل دي کوم چي حمله کوي داسي ټول حیوانان په حرم کي او د احرام په حالت کي وژل جائز دي .

﴿۲۵۸۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَمْسٌ فَوَاسِقُ

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : پنځه ضررناک

يُقْتَلْنَ فِي الْحِلِّ وَالْحَرَمِ الْحَيَّةُ وَالْغُرَابُ الْأَبْقَعُ وَالْفَأْرَةُ وَالْكَلْبُ الْعَقُورُ وَالْحُدَيَّا . متفق علیه .

حیوانان داسي دي چي هغه دي حل او حرم کي هم ووژل سي : مار، برګ کارګه، مږه (موږک)، داړونکی سپی او ټپوس ، بخاري او مسلم.

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۶\۳۵۵، رقم: ۳۳۱۴، ومسلم ۲\۸۵۶، رقم: ۶۷ – ۱۱۹۸.

**تشریح**: د هغه سپي وژل حرام دي چي د هغه څخه فائده تر لاسه کیږي همدارنګه هغه سپی وژل هم حرام دی چي د هغه څخه فائده نه تر لاسه کیږي مګر د هغه څخه یو ضرر او تاوان هم رسیږي، په پورتنیو دواړو حدیثو کي چي د کومو حیواناتو ذکر سوی دی د هغو د وژلو اجازه یوازي پر دې منحصر نه ده بلکه دا حکم د هغه ټولو حیواناتو هم دی چي د هغوئ څخه تکلیف رسیږي لکه میږي، شرموښکی، او داسي نور ، مګر که چیري سپږه ووژل سي نو بیا د توان او توفیق سره سم صدقه ورکول واجب دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د امام مالک او امام شافعي (رح) مستدل حدیث

﴿۲۵۸۱﴾: عَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ قَالَ لَحْمُ الصَّيْدِ لَكُمْ فِي الْإِحْرَامِ حَلَالٌ مَّا لَمْ تَصِيْدُوْهُ أَوْ يُصَادَ لَكُمْ . رواه أبو داود والترمذي والنسائي

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د ښکار غوښه د احرام په حالت کي پر تاسو حلاله ده تر څو پوري چي تاسو خپله ښکار ونه کړي يا ستا لپاره ښکار ونه کړل سي. ابوداؤد، ترمذي او نسائي.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\ ۴۲۷، رقم: ۱۸۵۱، والترمذي في السنن ۳\ ۲۰۳، رقم: ۸۴۶، والنسائي ۵\ ۱۸۷، رقم: ۲۸۲۷.

**تشريح**: د حديث خلاصه دا ده چي د احرام په حالت کي تاسو خپله ښکار وکړی يا بل څوک ستاسو لپاره ښکار وکړي که چيري هغه ښکاري د احرام په حالت کي نه وي نو د هغه ښکار غوښه به ستاسو لپاره صحيح نه وي، امام مالک او امام شافعي دغه حديث د خپل دغه مذهب دليل ګرځوي چي د محرم لپاره د هغه ښکار غوښه خوړل حرام دي کوم چي يو غير محرم د هغه لپاره ښکار کړی وي.

مګر امام ابوحنيفة رحمه الله د دغه حديث څخه دا معنی مراد اخلي که د احرام په حالت کي ژوندی ښکار تاسو ته د تحفې په توګه راواستول سي نو د هغه غوښه خوړل ستاسو لپاره حرام دي مګر که چيري د هغه ښکار غوښه د تحفې په توګه تاسو ته راواستول سي نو د هغه خوړل حرام نه دي، يعني په دغه صورت کي د حديث خلاصه دا سوه که ستاسو د حکم په وجه يو ښکار وکړل سي نو د هغه خوړل ستاسو لپاره صحيح نه دي او د هغه ښکار غوښه د محرم لپاره حرامه نه ده کوم چي يو غير محرم يې د هغه لپاره ذبح کړي په شرط د دې چي په هغه ښکار کي د محرم حکم يا د هغه د مرستي او اشارې او دلالت هيڅ دخل نه وي.

## د ملخ د ښکار مسئله

﴿۲۵۸۲﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلْجَرَادُ مِنَ صَيْدِ الْبَحْرِ. رواه أبو داود والترمذي.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ملخ د درياب د ښکار په ډول دئ. ابوداؤد او ترمذي.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\ ۴۲۹، رقم: ۱۸۵۳، والترمذي في السنن ۳\ ۲۰۷، رقم: ۸۵۰.

**تشريح**: حنفي علماء وايي چي رسول الله ﷺ ملخ ته د درياب د ښکار په ډول يوازي په دې اعتبار فرمايلي دي چي ملخ د دريابي ښکار يعني ماهي مشابه دی لکه څرنګه چي ماهی بېله

ذبح کولو خوړل کيږي همدارنګه ملخ هم بېله ذبح کولو خوړل صحيح دي ، د محرم لپاره د ملخ وژل صحيح نه دي که يو محرم ملخ ووژني نو پر هغه صدقه لازميږي ، په هدايه کي هم دا دليل دی چي ملخ د ځنګل د ښکار په حکم کي دی او د ابن همام رحمة الله عليه د قول سره سم د اکثرو علماؤ دا مذهب دی .

ځيني علماء فرمايي چي ددغه حديث څخه دا معلوميږي چي د محرم لپاره د ملخ ښکار يعني ملخ نيول جائز دي ځکه چي دا د دريابي ښکار په ډول دی او ددغه آيت کريمه سره سم د درياب ښکار جائز دی : (واحل لکم صيد البحر مادمتم حرما) او د احرام په حالت کي ستاسو لپاره دريابي ښکار حلال سوی دی .

## د ملخ د ښکار مسئله

﴿۲۵۸۳﴾: عَنْ ابي سعيد الخدري عن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يقتل المحرم السبع العادي . رواه الترمذي وابوداود وابن ماجه

د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: محرم دي وژني حمله کوونکي درندګان . (ترمذي، ابوداود او ابن ماجه)

**تخريج** : ابوداود في السنن ۲\۴۲۹، رقم: ۱۸۵۳، والترمذي في السنن ۳\۲۰۷، رقم: ۸۵۰.

**تشريح** : د حمله کونکي مطلب دادی چي هغه د وژلو يا زخمي کولو لپاره حمله وکړي لکه زمری، شرموښ او داسي نور چي دغه درندګان د انسان په ليدو سره پر هغه حمله کوي .

## د کوږ د ښکار مسئله

﴿۲۵۸۴﴾: وَعَنْ عَبْدِالرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ عَمَّارٍ قَالَ سَأَلْتُ جَابِرَبن عبدالله عَنِ

د حضرت عبدالرحمن بن ابو عمار رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د جابر بن عبد الله رضي الله عنه څخه د

الضَّبُعِ أَصَيْدٌ هِيَ فقَالَ نَعَمْ فَقُلْتُ اَيُؤكَلُ فَقَالَ نَعَمْ فَقُلْتُ سَمِعْتَهُ مِنْ

کوږ په اړه پوښتنه وکړه چي ايا دا ښکار دئ ؟ هغه راته وويل : هو، ما بيا پوښتنه وکړه ايا دهغه غوښه خوړل کيږي که يا ؟ هغه وويل :هو، ما ورته ويل ايا تا د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه

رَّسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَعَمْ . رواه الترمذي و النسائي

والشافعي وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح .

اوريدلي دي ؟ هغه وويل : هو ، . ترمذي، نسائي او شافعي، امام ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دئ .

**تخريج** : الترمذي في السنن ۳\۲۰۷، رقم: ۸۵۱، والنسائي ۵\۱۹۱، رقم: ۲۸۳۶، والشافعي في الام ۲\۱۹۳

**تشريح** : د پوښتنه کونکي مطلب دا وو چي ايا کوړ ښکار دی چي د محرم لپاره د هغه خوړل حرام دي او که ښکار نه دی، په هر حال دلته د محرم څخه قطع نظر د کوړ په باره کي بنيادي اختلاف دادی چي د کوړ غوښه حلاله ده که يا. امام شافعي رحمه الله خو ددغه حديث سره سم فرمايي چي کوړ حلال حيوان دی او د هغه غوښه خوړل صحيح دي د امام مالک او امام ابوحنيفة رحمة الله عليهما په نزد کوړ حلال حيوان نه دی ځکه نو دهغه غوښه هيڅا ته خوړل صحيح نه دي د دوئ دليل د خزيمه ابن جزي رضي الله عنه روايت دی چي مخته به راسي .

﴿۲۵۸۵﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ عَنِ الضَّبُعِ قَالَ هُوَ صَيْدٌ وَيُجْعَلُ فِيهِ كَبْشٌ إِذَا صَادَهُ الْمُحْرِمُ . رواه ابوداؤد وابن ماجة والدارمي .

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه د کوړ په اړه پوښتنه وکړه نو رسول الله ﷺ وفرمايل : دا ښکار دئ که محرم ددې ښکار وکړي نو د هغه په بدله کي به پسه ورکوي . ابوداؤد ، ابن ماجه او دارمي

**تخريج** : ابوداود في السنن ۴\ ۱۵۸، رقم: ۳۸۰۱، وابن ماجه ۲\ ۱۰۳۰، رقم: ۳۰۸۵، والدارمي ۲\ ۱۰۲، رقم: ۳۲۳۶.

**تشريح** : مطلب دادی که يو سړی د احرام په حالت کي د کوړ ښکار وکړي يا يې رانيسي نو پر هغه باندي د جزاء په توګه پسه واجبيږي .

**د کوړ غوښه حلاله نه ده**

﴿۲۵۸۶﴾: وَعَنْ خُزَيْمَةَ بْنِ جَزِيٍّ قَالَ سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت خزيمة بن جزي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه د کوړ د غوښو په اړه

عَنْ أَكْلِ الضَّبُعِ قَالَ أَوَ يَأْكُلُ الضَّبُعَ أَحَدٌ وَسَأَلْتُهُ عَنْ أَكْلِ الذِّئْبِ قَالَ

پو ښتنه وکړه چي دا خوړل پکار دي که يا ، رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا څوک ددې غوښه خوري، بيا ما د شرمښ د غوښو خوړلو په اړه پوښتنه وکړه ، نو رسول الله ﷺ راته وفرمايل:

أَوَيَأْكُلُ الذِّئْبَ أَحَدٌ فِيهِ خَيْرٌ . رواه الترمذي و قال ليس اسناده بالقوي .

ايا يو سړی چي په هغه کي نيکي وي د شرمښ غوښه خوري ؟ ، ترمذي ويلي دي ددې حديث اسناد قوي نه دي .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\ ۲۲۲، رقم: ۱۷۹۲.

**تشريح**: لکه څرنګه چي امام ترمذي ويلي دي چي دغه روايت که څه هم د سند په اعتبار ضعيف دی مګر بذات خود صحيح دی چي د هغه دليل د ابن ماجه روايت دی چي الفاظ يې دادی : ومن ياكل الضبع، او ددې تائيد ددغه حديث هم کيږي چي رسول الله ﷺ د ذي ناب د خوړلو څخه منع فرمايلې ده ، ذي ناب هغه درنده ته وايي چي په غاښو سره ښکار کوي او کوږ ذي ناب دی، په هر حال د کوږ په مباح او حرام کېدو کي اختلاف دی ځکه د امام ابو حنيفة رحمه الله په نزد کوږ مکروه تحريمي دی چي د هغه غوښه نه خوړل کيږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### محرم ته د ښکار غوښه خوړل جائز دي

﴿۲۵۸۷﴾: عَنْ عَبْدِالرَّحْمٰنِ بْنِ عُثْمَانَ التَّيْمِيِّ قَالَ كُنَّا مَعَ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ

د حضرت عبد الرحمن بن عثمان بن التيمي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د طلحة بن عبيد الله

اللّٰهِ وَنَحْنُ حُرُمٌ فَأُهْدِيَ لَهُ طَيْرٌ وَطَلْحَةُ رَاقِدٌ فَمِنَّا مَنْ أَكَلَ وَمِنَّا مَنْ تَوَرَّعَ

سره وو او احرام مو تړلی وو هغه ته د مرغه غوښه د تحفې په توګه راوړل سول ، طلحه هغه وخت بيده وو په موږ کي ځينو وخوړل او ځينو نه وخوړل

فَلَمَّا اسْتَيْقَظَ طَلْحَةُ وَفَّقَ مَنْ أَكَلَهُ وَقَالَ أَكَلْنَاهُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . رواه مسلم .

کله چي ابو طلحه راويښ سو نو هغه هغو خلکو سره موافقت وکړ چا چي غوښه خوړلې وه او وه

يې ويل مونږ هم د رسول الله ﷺ سره د احرام په حالت کې داسې غوښه خوړلې وه . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\ ۸۵۵، رقم: ۶۵ - ۱۱۹۷.

**تشريح**: د غوښه خوړونکو سره د حضرت طلحه ﷛ د موافقت تعلق په قول سره هم کېدای سي او په فعل سره هم يعني طلحه ﷛ به يا هغوئ ته دا په ژبه سره ويلي وي چي تاسو غوښه وخوړل نو ښه مو وکړل او په دې کي هيڅ حرج نه سته دا قولي موافقت دی يا دا چي خپله هغه خپله پاته سوې غوښه خوړلې وي دا فعلي موافقت دی .

په هر حال دا حديث هم د امام ابو حنيفة ﷫ د دغه مذهب تائيد کوي که محرم خپله ښکار ونه کړي او نه په هغه ښکارُ کي د هغه د حکم وغيره دخل وي نو د هغه غوښه خوړل کيږي ، د يو مرغه څخه مراد يا خو جنس دی چي د څو مرغانو غوښه راغلې وه يا هغه يو مرغه وو چي دومره غټ وو چي د هغه غوښه د ټولو خلکو لپاره کافي سوه .

==========

# بَابُ الْاِحْصَارِ وَفَوْتِ الْحَجِّ

## د حج د بنديدو او فوت کيدو بيان

**د احصار معنی** : د احصار معنی د لغت په اعتبار منع کېدل دي او د فقه په اصطلاح کي [illegible] احرام تړلو څخه وروسته د حج يا عمرې څخه منع کېدلو ته وايي .

کوم چا ته چي دا واقعه پېښه سي يعني کوم څوک چي احرام وتړي او بيا د کوم کار لپاره (يعني حج او عمرې) لپاره چي يې احرام تړلی وي د هغه څخه منع کړل سي نو هغه ته محصر وايي .

**د احصار صورتونه** : د حنفي مذهب سره سم د احصار څو صورتونه دي چي د هغه شي د ادا کولو څخه چي د هغه احرام يې تړلی وي حقيقتا يا شرعا مانع کيږي د دغه صورتونو تفصيل په لاندي توګه دی :

۱. که د يو دښمن بېره وي ، د دښمن څخه مراد عام دی که سړی وي او که حيوان وغيره وي مثلا دا معلومه سي چي په لاره کي دښمن ناست دی او حاجيانو ته تاوان رسوي يا غلا ځيني کوي يا وژني يې او مخته تلو ته يې نه پرېږدي يا همدرانګه په يو ځای کي د زمري وغيره د موجودتيا علم وي .

۲. ناروغي: د احرام تړلو څخه وروسته داسي ناروغ سي چي د هغه په وجه تلای نه سي يا تلای خو سي مګر د ناروغی زياتېدو بېره وي .

۳. د ښځي مُحرِم پاته نه سي: د احرام تړلو څخه وروسته د ښځي محرم یا د هغې خاوند مړ سي یا یو ځای ولاړ سي یا د تلو څخه انکار وکړي.
۴. خرچ یې کم سي: مثلا د احرام تړلو څخه وروسته مال او اسباب غلا سي یا مصرف یې د ځان سره کم اخیستی وي او د مختهٔ تلو لپاره ورسره مصرف نه وي.
۵. د ښځي لپاره عده: د احرام تړلو څخه وروسته د ښځي خاوند مړ سي یا طلاق ورکړي چي د هغه په وجه د عدت پابنده سي نو دا به احصار سي مګر که چیري هغه ښځه هغه وخت مقیمه وي او د هغې د قیام د ځای څخه مکه مکرمه د سفر د مسافت په اندازه نه وي نو احصار نه ګڼل کیږي.
٦. لار ځیني ورکه سي او یو څوک لار ښوونکی تر لاسه نه کړي.
۷. ښځه د هغه خاوند منع کړي په شرط د دې چي هغې د حج احرام د خپل خاوند د اجازې څخه پرته تړلی وي، د فرض حج څخه د منع کولو او په نفل حج کي د اجازې ورکولو څخه وروسته د منع کولو اختیار خاوند ته نه ستهٔ.
۸. مینځه یا غلام خپل مالک منع کړي.

د احصار دغه ټول صورتونه د حنیفه د مذهب سره سم دی د پاته درو امامانو په نزد د احصار یو صورت یعني د دښمن بیره دی د دغه حضراتو په نزد په نورو صورتو کي احصار نه صحیح کیږي بلکه د احرام حالت به پر خپل ځای پاته وي.

**د احصار حکم**: که محرم ته د احصار د پورتنیو صورتو څخه یو صورت پیښ سي نو هغه ته پکار دي که چیري هغه مفرد وي نو د هدي یو حیوان او که قارن وي نو د هدي دوه حیوانان (مثلا دوه پسونه) د یو سړي په ذریعه حرم ته واستوي چي د هغه له طرفه یې هلته ذبح کړي یا د هغه قیمت دي واستوي چي هلته د هدي د څاروي په رانیولو سره یې ذبح کړي او د هغه سره دي د ذبح ورځ او وخت هم وټاکل سي یعني د کوم سړي په ذریعه چي څاوري حرم ته استوي هغه ته دي دا تاکید وکړي چي دغه څاروی هلته په فلانۍ ورځ او فلاني وخت ذبح کړل سي بیا د هغه ټاکلي سوي ورځي او وخت څخه وروسته دي احرام خلاص کړي د سرخریلو او وېښتانو کوچني کولو ضرورت نه ستهٔ او بیا په راتلونکي کال کي دي د هغه قضا راوړي په دې توګه چي هغه د احصار په وجه د حج احرام خلاص کړی وي نو د هغه په بدله کي دي یو حج او یوه عمره وکړي او که د قران احرام یې خلاص کړی وی نو د هغه په بدله کي دي یو حج او دوې عمرې وکړي او د

عمرې د احرام خلاصولو په صورت کي يو ازې يوه عمره کيږي.

که د هدي ځاروی استولو څخه وروسته احصار پاته نه سي او دا ممکن وي چي محصر ولاړ سي نو د قرباني ذبح کولو څخه مخکي به ورسيږي او حج به هم تر لاسه کړي نو پر هغه واجبيږي چي هغه سمدستي روان سي او که دا ممکن نه وي نو بيا پرهغه باندي سمدستي تلل نه واجبيږي بيا هم که هغه حج ته روان سي او هلته داسي وخت ورسيږي چي د هدی ځاروی ذبح سوی وي او د حج وخت هم تېر سوی وي نو په دغه صورت کي هغه د عمرې د افعالو په ادا کولو سره احرام دي خلاص کړي.

## د حج فوت کېدو مطلب او حکم

د حج فوت کېدو مطلب دادی چي يو سړی د حج لپاره ولاړ سي هغه احرام هم تړلی وو مګر داسي خبره پېښه سي چي هغه د عرفات په ورځ د لمر د زوال څخه وروسته د لوی اختر سهار پوري د يوه دقيقې لپاره هم په عرفات کي وقوف ونه کړای سي نو په دغه صورت کي حج فوت کيږي او د کوم چا حج چي فوت سي نو هغه ته فائت الحج وايي.

د کوم چا حج چي فوت سي نو هغه ته پکار دي چي په عمره کولو سره يعني د کعبې شريفې د طواف او صفا او مروه په مينځ کي د سعي کولو څخه وروسته احرام خلاص کړي که چيري مفرد وي نو يوه عمره دي وکړي او که قارن وي نو دوې عمرې دي وکړي او د هغه څخه وروسته دي سر وخريي يا وېښتان دي کوچني کړي او په راتلونکی کال دي د هغه حج قضا وکړي.

## د حج فوت کېدو يوه مسئله

د چا چي حج فوت سي د هغه په باره کي يوه مسئله داده که يو سړی هلته د لوی اختر د شپې په آخري برخه کي په داسي حال کي ورسيږي چي هغه تر اوسه پوري د ماخستن لمونځ نه وي کړي او هغه ته ددې بيره وي که عرفات ته ځم نو د ماخستن لمونځ را څخه قضا کيږي او که د ماخستن په لمانځه کي بوخت کېږم نو د وقوف عرفات مي د لاس څخه وځي نو په دغه صورت کي هغه څه وکړي؟ په دې باره کي ځيني علماء وايي چي هغه ته د ماخستن په لمانځه کي بوخت کېدل پکار دي که څه هم د عرفات وقوف فوت سي او ځيني حضرات وايي چي د ماخستن لمونځ دي پرېږدي او عرفات ته دي ولاړ سي، د فقه حنفي په کتاب درمختار کي ليکلي دي که چيري د ماخستن وخت تنګ وي او د عرفات وقوف هم دلاس څخه وځي نو په داسي صورت کي د لمانځه په پرېښودو سره عرفات ته تلل پکار دي.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

## د رسول الله ﷺ د احصار بیان

﴿۲۵۸۸﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَدْ أُحْصِرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د مکې څخه منع کړل سو (یعني

فَحَلَقَ رَأْسَهُ وَجَامَعَ نِسَاءَهُ وَنَحَرَ هَدْيَهُ حَتَّى اعْتَمَرَ عَامًا قَابِلًا . رواه البخاري

مشرکانو مکې ته نه پرېښودئ) نو رسول الله ﷺ سر مبارک وخرایه او د خپلو بیبیانو سره یې خلوت وکړ د خپل قرباني حیوان یې حلال کړ او راتلونکی کال یې عمره وکړه . بخاري .

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۴\۱۴، رقم: ۱۸۰۹.

**تشریح**: منع کړل سو : ددې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ د عمرې د احرام تړلو سره مکې ته روان سو مګر د حدیبیه په ځای کي د مکې مشرکینو رسول الله ﷺ او د هغه ملګري دداخلېدو څخه منع کړل چي د هغه په وجه رسول الله ﷺ عمره ونه کړل نو هلته یې احرام خلاص کړی.

وجامع نسائه: دلته د واو حرف د جمع د اظهار لپاره استعمال سوی دی یعني سرخریل وغیره دلته په ترتیب سره نه دي ذکر سوي بلکه د اصل ترتیب سره سم رسول الله ﷺ د خپلو بیبیانو سره هم بستر سو ، د بخاري او مسلم د یو بل روایت الفاظ دادي چي نبي کریم ﷺ او ملګرو یې په حدیبیه کي احرام خلاص کړی کله چي مشرکینو هغوئ د تلو څخه منع کړل، رسول الله ﷺ د عمرې احرام تړلی وو رسول الله ﷺ نحر وکړ یعني هدی څاروی یې قرباني کړه سر یې وخروی بیا یې خپلو ملګرو ته وفرمایل چي ولاړ سئ نحر وکړئ او سر وخریاست ، په هدایه کي ددې وروسته دا نقل سوي دي چي بیا هغوئ احرام خلاص کړی .

ابن همام رحمة الله عليه فرمایي چي د هدایې ددغه الفاظو څخه دا خبره واضحه سوه چي محصر دي د هدي د څاروی ذبح کولو څخه مخکي احرام نه خلاصوي ځکه مسئله داده که یو محصر د هدي څاروي حرم ته واستوي او هغه څاروی بیونکي ته یې دا هدایت کړی وي چي دغه څاروی په فلانۍ ورځ او فلاني وخت کي ذبح کړه او بیا د هغه ټاکل سوې ورځي په پوهېدو سره چي اوس به څاروی ذبح سوی وي ځان دي د احرام څخه وباسي او یو داسي فعل یې وکړ چي د احرام په حالت کي منعه وي مګر وروسته معلومه سوه چي د هدي هغه څاروی په هغه ټاکل سوي

وخت کي ذبح سوی نه دی یا ذبح سوی دی مګر په حرم کي د ذبح کولو پر ځای د حرم څخه د باندي ذبح سوی دی نو په دغه صورت کي هغه د احرام خلاف چي څومره افعال کړي دي د هر فعل په عوض کي په جزاء ورکول وي.

## د احصار د هدي په کوم ځای کي ذبح کول پکار دي

د احصار د هدي څخه پرته د نورو هدیو په باره کي د حنفیه او شافعیه اتفاق دی چي هغه دي د احرام څخه پرته بل ځای نه ذبح کوي مګر د حج یا د عمرې د احصار هدي دي چیري ذبح کړل سي په دې باره کي د دواړو اختلافي اقوال دي ، امام شافعي رحمه الله فرمایي چي د احصار هدي دي په هغه ځای کي ذبح کړل سي چیري چي د احصار صورت منځته راغلی وي او د امام ابو حنیفة رحمه الله مذهب دادی چي د احصار هدي دي حرم ته واستول سي او هلته دي ذبح کړل سي د حرم څخه پرته په بل ځای کي دي ذبح نه کوي ځکه چي په خاصو ورځو کي او پر خاص موقع باندي د هدي ذبح کول عبادت دی او کله چي دا خبره ده چي په یو خاص وخت او خاص ځا ی کي د هدي ذبح کول عبادت دي نو که چیري ددې خلاف وکړل سي یعني د هدي د ذبح کولو خاص ځای چي حرم دی هلته هدي ذبح نه کړل سي نو عبادت چیري پاته سو او کله چي عبادت پاته نه سو نو ددې په وجه حلال کېدل یعني د احرام څخه وتل څرنګه صحیح کیدای سي.

د امام شافعي رحمه الله دلیل پورتنی حدیث دی چي رسول الله ﷺ او صحابه کرامو خپل هدی په حدیبیه کي ذبح کړل چي د حرم څخه د باندي دی ، ددې جواب د امام ابو حنیفة رحمه الله له خوا دا ورکړل سوی دی چي چیري په دغه ځای کي د هدي د څاروي حرم ته استول ممکن نه وي نو ددغه مجبوری په وجه رسول الله ﷺ او صحابه کرامو خپل هدی هلته ذبح کړل او ځیني علماء دا هم وایي چي د حدیبیه یو څه برخه په حل کي ده او یو څه برخه په حرم کي ده ځکه نو کیدای سي چي رسول الله ﷺ او صحابه کرامو د هدي څاروی د حدیبیه په هغه برخه کي ذبح کړي وي کوم چي په حرم کي شامل ده.

## پر محصر باندي قضاء واجب ده

لکه څرنګه چي د مخکني حدیث څخه معلومه سوه چي رسول الله ﷺ د احصار په وجه عمره ادا نه کړل نو راتلونکی کال یعني په اووم هجري کال کي یې هغه عمره پوره کړه ، دغه عمرې عمرة القضاء ویل سوي دي ددې څخه دا خبره معلومه سوه که یو څوک محصر سي یعني هغه د حج او عمرې څخه منع کړل سي نو د هغه قضاء دي وکړي ځکه د ابو حنیفة رحمه الله په مذهب

كي د هغه قضاء واجب ده او د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد پر محصر باندي د هغه قضاء واجب نه ده ، رسول الله ﷺ چي په اووم هجري كال كي كومه عمره وكړل نو د هغه نوم عمرة القضاء كيدل د ابو حنيفة رحمة الله عليه د مذهب تائيد دى .

## د محصر لپاره د حلق يا تقصير مسئله

﴿۲۵۸۹﴾ : وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د عمري لپاره د رسول الله ﷺ سره ولاړو

فَحَالَ كُفَّارُ قُرَيْشٍ دُونَ الْبَيْتِ فَنَحَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَدَايَاهُ فَحَلَقَ وَقَصَّرَ أَصْحَابُهُ . رواه البخاري .

، د قريشو كفارو كعبې ته د رسيدو څخه مخكي منع كړه نو رسول الله ﷺ د خپلي قرباني حيوان حلال كړاو سر مبارك يې وخرايه او صحابه كرامو هم وريښتان غچي كړل . بخاري .

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۱۴، رقم: ۱۸۰۷،

﴿۲۵۹۰﴾ : وَعَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحَرَ قَبْلَ أَنْ يَحْلِقَ وَأَمَرَ أَصْحَابَهُ بِذٰلِكَ . رواه البخاري .

د حضرت مسور بن مخرمة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د سر خريلو څخه وړاندي قرباني وكړه او صحابه كرامو ته يې حكم وركړ چي هغوئ هم د سر خريلو څخه وړاندي قرباني وكړي . بخاري .

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۰\۱۴، رقم: ۱۸۱۱.

**تشريح** : د فقه حنفي په كتاب كي هدايه كي ليكلي دي چي امام ابو حنيفة او امام احمد رحمة الله عليهما وايي چي د محصر لپاره سرخريل يا وېښتان كوچني كول ضروري نه دي ځكه چي سرخريل يا وېښتان كوچني كول په هغه صورت كي عبادت شمېرل كيږي كله چي د حج افعال په ترتيب سره وي نو كله چي د حج افعال ادا نه سي نو هغه عبادت نه سي شمېرل كېداى، او كوم چي د رسول الله ﷺ تعلق دى نو رسول الله ﷺ او صحابه كرامو حلق يا تقصير ځكه كړى وو چي

خلکو ته معلومه سي چي اوس د ستنېدو پخه اراده سوې ده او د عمرې د ادا کولو صورت نه دی پاته سوی د امام یوسف رحمه الله په نزد که څه هم محصر ته سرخریل یا کوچني کول پکار دی مگر که سر و نه خریي یا وېښتان کوچني نه کړي نو په دغه صورت کي به هم د احرام څخه ووځي او د جزاء په توگه به پر هغه هیڅ واجب نه وي.

## د احصار او حج فوت کېدو مسئله

﴿۲۵۹۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ قَالَ أَلَيْسَ حَسْبُكُمْ سُنَّةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي هغه وویل: ایا ستاسو لپاره د رسول الله ﷺ وینا

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ حُبِسَ أَحَدُكُمْ عَنِ الْحَجِّ طَافَ بِالْبَيْتِ وَبِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ ثُمَّ

بس نه ده که په تاسو کي څوک د حج څخه منع کړل سي نو هغه دي د بيت الله طواف، د صفا او مروه سعي کولو سره د هر شي څخه

حَلَّ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ حَتَّى يَحُجَّ عَامًا قَابِلًا فَيُهْدِي أَوْ يَصُومُ إِنْ لَمْ يَجِدْ هَدْيًا.

رواه البخاري.

حلال سي او راتلونکی کال دي حج وکړي او حیوان دي قرباني کړي او که د قرباني حیوان تر لاسه نه کړي نو روژه دي ونیسي. بخاري.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۸/۴، رقم: ۱۸۱۰.

**تشريح**: په دغه حدیث کي د احصار حکم بیان سوی دی، ځینو خلکو به په دې باره کي د سنت خلاف عمل اختیار کړی وي ځکه ابن عمر رضي الله عنهما هغوئ خبر کړل چي په دې باره کي د رسول الله ﷺ سنت دادی که چا ته په حج کي د حصر او حبس صورت وړاندي سي نو هغه دي د عمرې افعالو په ادا کولو سره احرام خلاص کړي او راتلونکی کال دي د هغه قضا وکړي.

په دې باره کي دا خبره په ذهن کي کېښنول پکار دي چي د فائت الحج او محصر په حکم کي لږ فرق دی، د فائت الحج لپاره دا حکم دی که چیري هغه مفرد وي یعني هغه یوازي د حج احرام تړلی وي نو په طواف او سعي کولو سره دي احرام خلاص کړي او پر هغه باندي په راتلونکي کال کي د هغه حج قضاء واجب ده عمره او هدي د هغه لپاره واجب نه دي.

د محصر لپاره حکم دادی که چیري هغه مفرد وي او هغه ته جرم د رسیدو څخه مخکي په

لاره کي د احصار يو صورت پيښ سي نو مخکي دي د هدي څاوري حرم ته واستوي کله چي هغه څاروی حرم ته په رسيدو سره ذبح کړل سي نو هغه دي احرام خلاص کړي او راتلونکی کال دي د هغه حج قضاء وکړي او د هغه سره دي يوه عمره هم وکړي.

مگر امام شافعي رحمه الله فرمايي چي پر هغه باندي په راتلونکي کال کي يوازي حج کول واجب دي عمره کول ضروري نه ده ځکه چي يوازي د حج څخه محصر سوی دی او د هدی د څاروي په استولو سره هغه احرام خلاص کړی وو نو بس ددې په بدله کي د هغه پر ذمه يوازي حج دی او عمره نه ده.

او که محصر قارن وي يعني د حج او عمرې دواړو احرام يې تړلی وي نو هغه دي د هدي څاروی هم حرم ته واستوي او هلته دي د هغه څاروی د ذبح کېدو وروسته احرام خلاص کړي مگر په راتلونکي کال کي پر هغه باندي د هغه حج قضاء او دهغه سره دوې عمرې واجبيږي يوه حج او دوو عمرو واجب کېدو وجه داده چي يو حج او عمره خو د اصلي حج او عمرې بدل سو او دوهمه عمره ددې لپاره ده چي د هغه څخه حج او عمره فوت سول ځکه د هغه جزاء په توگه يوه عمره ادا کول پکار دي.

او که د احصار صورت حرم ته در سيدو څخه مخکي په لاره کي وړاندي نه سي بلکه حرم ته په رسيدو سره وړاندي سي او هغه د يو عذر په وجه د عرفات د وقوف څخه عاجز سي مگر طواف او سعي کولای سي نو هغه دي د طواف او سعي کولو څخه وروسته يعني د عمرې د افعالو په ادا کولو سره دي احرام خلاص کړي او بيا په راتلونکي کال کي د هغه قضاء راوړي او د هدي څاروی دي ذبح کړي او که د هدي څاروی نه سي ذبح کولای نو روژه دي ونيسي، په پورتني حديث کي دا صورت بيان سويدی.

فائت الحج که چيري قارن وي نو مخکي دي هغه د عمرې لپاره طواف او سعي وکړي بيا دي د حج فوت کېدو په بدله کي طواف او سعي وکړي ددې څخه وروسته دي سر وخريي يا وېښتان دي کوچني کړي او احرام دي خلاص کړي نو د هغه د ذمي څخه به د قران قرباني ساقط سي او که هغه تمتع وي نو د هغه تمتع به باطل سي او د هغه د ذمي څخه به د تمتع قرباني ساقط سي او که هغه د قرباني څاروی د ځان سره راوستلی وي نو هغه چي څه غواړي وه دي يې کړي. لکه څرنگه چي د مفرد د حج فوت کېدو په صورت کي پر هغه په راتلونکي کال کي د حج قضاء واجبيږي همدارنگه د قران او تمتع په صورت کي هم پر هغه په راتلونکي کال کي د حج قضاء واجبيږي.

عمره نه فوت کیږي : دلته په دې خبره پوهېدل پکار دي چي عمره نه فوت کیږي ځکه چي هغه په کال کي هر وخت کېدای سي پرته د یوم عرفات، یوم عیدالاضحی او ایام تشریق څخه، او حال دا چي د حج ادا کول په هغه خاص زمانه او خاص وخت پوري مخصوص دي کوم چي شریعت ټاکلي دي.

﴿۲۵۹۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د زبیر لور بي بي ضباعه په لور

ضُبَاعَةَ بِنْتِ الزُّبَيْرِ فَقَالَ لَهَا لَعَلَّكِ أَرَدْتِ الْحَجَّ قَالَتْ وَاللَّهِ مَا أَجِدُنِي إِلَّا

تشریف یووړ او د هغې څخه یې پوښتنه وکړه کیدای سي ته د حج اراده لرې هغې وویل هو، مګر په الله مي دي قسم وي

وَجِعَةً فَقَالَ لَهَا حُجِّي وَاشْتَرِطِي وَقُولِي اللَّهُمَّ مَحِلِّي حَيْثُ حَبَسْتَنِي.

متفق علیه

زه ځان ناروغ وینم رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ته د حج احرام وتړه او شرط وکړه او دا ووایه چي اې زما الله ! زما د احرام څخه د حلال کېدو ځای هغه دئ چي هلته زه د ناروغۍ له کبله منع کړل سوې یم. بخاري او مسلم.

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۹\۱۳۲، رقم: ۵۰۸۹، ومسلم ۲\۸۶۷، رقم: ۱۰۴-۱۲۰۷.

**تشریح**: زما د احرام څخه د وتلو ځای هغه دی چیري چي زه منع کړل سم، ددې مطلب دادی چي په کوم ځای کي پر ما مرض غالب سي او د هغه ځای څخه زه کعبې ته مخکي نه سم تللای نو په هغه ځای کي زه احرام خلاص کړم.

د کومو امامانو مذهب چي دادی چي د احصار صرف یوازي یو صورت یعني ددښمن څخه بېره ده او په ناروغۍ سره احصار نه کیږي د هغوي دلیل دغه حدیث دی که چیري د مرض په وجه احرام خلاصول مباح وای نو رسول الله ﷺ به بي بي ضباعه ته د پورتني شرط حکم نه ورکولای ځکه که د ناروغۍ په وجه احصار کیدای نو بیا د شرط څخه څه ګټه تر لاسه سوه.

د امام ابو حنیفة رحمه الله مذهب دادی چي احصار د ناروغۍ په وجه هم کیږي ځکه هغه د حجاج ابن عمر انصاري رضي الله عنه حدیث خپل دلیل ګرځوي چي مخته راځي او د هغه دلیل دا هم دی

چي ابن عمر رضي الله عنه د شرط منكر وو كوم خلک چي د شرط قائل وه هغوئ ته ابن عمر رضي الله عنه دا وفرمايل چي ايا ستاسو لپاره د رسول الله ﷺ سنت كافي نه دي يعني كله چي په دې باره كي د رسول الله ﷺ حكم موجود دى نو بيا د شرط اختيارولو څه معنى ده ؟ اوس پاته سوه دا خبره چي كله د ناروغى په وجه احرام خلاصول مباح دي نو بي بي ضباعه ته د شرط حكم وركول د څه مقصد لپاره وه او ددې څخه څه ګټه ده ، امام ابوحنيفة رحمه الله وايي چي د بي بي ضباعه په حق كي د شرط ګټه دا وه چي هغه د احرام د پابنديو څخه ژر خلاصه سي ځكه كه چيري هغې دا شرط نه كولاى نو د احرام څخه په وتلو كي به ورته ځنډ كيدى په دې توګه چي د هغې د هدي څاروي حرم ته په رسيدو سره ذبح كيدى بيا به هغه احرام خلاصوي ، د امام ابوحنيفة رحمه الله مذهب دادى چي د محرم لپاره احرام خلاصول تر هغه وخته پوري صحيح نه دى تر څو چي د هغه هدي په حرم كي ذبح نه سي مګر كه چيري هغه د احرام تړلو په وخت كي دا شرط وكړي چي چيري ما ته د احصار صورت رامنځته سي نو زه به هلته احرام خلاصوم نو هغه محض د احصار رامنځته كېدو باندي د هدى د څاروي ذبح كولو څخه پرته د احرام څخه وتلاى سي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د محصر د هدى حيوان په حرم كي حلالول پكار دي

﴿۲۵۹۳﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ اَمَرَ أَصْحَابَهُ أَنْ يُبَدِّلُوا الْهَدْيَ الَّذِي نَحَرُوا عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فِي عُمْرَةِ الْقَضَاءِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ خپل اصحابو ته حكم وركړ د هغه حيوانانو په اړه چي د حديبيه په كال (د منع كېدو له كبله) تاسو حلال كړي وه چي د قضاء په عمرې كي نور حيوانان حلال كړئ . ابو داؤد .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\ ۴۳۴، رقم: ۱۸۶۴.

**تشريح**: ددغه حكم مطلب دا وو چي صحابه كرام د حديبيه پر موقع د عمرې څخه د احصار پېښېدو په وجه د هدي كوم څاروي چي ذبح كړي وه په راتلونكي كال كي د عمرة القضاء پر موقع د هغه څارويو په بدله كي نور څاروي حرم ته په رسيدو سره ذبح كړي چي د هدى په حرم كي ذبح كېدل واقع سي ځكه د احصار په وجه د هدى څاروي په حرم كي ذبح كيږي لكه څرنګه

چي د امام ابو حنيفة رحمه الله مذهب دی مګر د پورتني حکم دا مطلب په هغه صورت کي دی کله چي دا خبره ثابته وي چي د حديبيه د واقعې پر موقع باندي د هدی څاروی د حرم څخه د باندي ذبح سوی وو او که دا وويل سي چي د هدی هغه څاروی په حرم کي ذبح سوی وو څکه چي د حديبيه اکثره برخه د حرم په حدودو کي واقع ده نو بيا حديبيې د واقع پېښېدو پر موقع باندي د ذبح سوي څاروي په عوض کي د نورو څارويو د ذبح کولو د حکم تعلق به يوازي د احتياط او د فضيلت په وجه وي او دا به وويل سي چي دغه حکم محض د استحباب په توګه دی.

د مشکوة په اصل نسخه کي د لفظ رواه څخه وروسته خالي ځای دی د هغه مطلب دا دی چي د مشکوة مؤلف ته د دغه حديث اصل ماخذ تحقيق نه وو سوی مګر په يو بله نسخه کي د رواه څخه وروسته ابو داؤد لاحق سوی دی يعني دغه روايت ابو داؤد نقل کړی دی او په يوه بله نسخه کي د رواه ابو داؤد څخه وروسته دا الفاظ هم اضافه سوي دي چي: وفيه قصه وفي سنده محمد بن اسحاق.

## د ناروغی څخه احصار واقع کيږي

﴿۲۵۹۴﴾: وَعَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ عَمْرٍو الْأَنْصَارِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت حجاج بن عمرو انصاري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كُسِرَ أَوْ عَرِجَ فَقَدْ حَلَّ وَعَلَيْهِ الْحَجُّ مِنْ قَابِلٍ. رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي وابن ماجة والدارمي و زاد ابوداؤد في رواية اخرى او مرض و قال الترمذي هذا حديث حسن و في المصابيح ضعيف.

د کوم سړي چي پښه ماته سي يا ګوډ سي نو هغه د احرام څخه حلال سو او پر هغه راتلونکی کال حج واجب دئ. ترمذي، ابوداؤد، نسائي، ابن ماجه، دارمي او د ابوداؤد په يو بل روايت کي دا الفاظ دي که ناروغ سي، ترمذي ويلي دي دا حديث حسن دئ په مصابيح کي ضعيف دئ.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\ ۲۷۷، رقم: ۹۴۰، وابوداود في السنن ۲\ ۴۳۳، رقم: ۱۸۶۲، والنسائي ۵\ ۱۹۸، رقم: ۲۸۶۰، وابن ماجه في السنن ۲\ ۱۰۲۸، رقم: ۳۰۷۷، والدارمي في السنن: ۲\ ۸۵، رقم: ۱۸۹۴.

**تشريح**: د حديث مطلب دا دی چي کوم چا ته د احرام تړلو څخه وروسته د دښمن څخه پرته د بل يو شي مانع پېښ سي نو د هغه لپاره جائز دي چي هغه احرام خلاص کړي، دغه حديث د دې

خبري دليل دى چي دد ښمن د بيري څخه پرته د احصار نور صورتونه هم دي مثلا ناروغي وغيره لکه څرنګه چي د امام ابو حنيفة رحمه الله مذهب دى .

وفي المصابيح ضعيف : ددې مطلب دادى چي دغه حديث چي بغوي په کوم سند سره ذکر کړى دى هغه سند ضعيف دى نو د بغوي د سند د ضعيف کېدو سره دا نه لازميږي چي د ترمذي وغيره سند دي هم ضعيف وي او که په دې باره کي تکر تسليم کړل سي نو د ترمذي قول هذا حديث حسن چي د بغوي دغه وينا ته چي دغه حديث ضعيف دى ترجيح نه حاصليږي بيا دا چي په يوه نسخه کي د ترمذي په قول کي لفظ د حسن څخه وروسته لفظ د صحيح هم دى او تورپشتي ويلي دي چي دغه حديث ته ضعيف ويل بالکل غلط دي .

## د حج رکن عظيم

﴿۲۵۹۵﴾: وَعَنْ عَبْدِالرَّحْمٰنِ بْنِ يَعْمُرَ الدِّيْلِيِّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى

د حضرت عبدالرحمن بن يعمر ديلي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الْحَجُّ عَرَفَةُ مَنْ اَدْرَكَ عَرَفَةَ لَيْلَةَ جَمْعٍ قَبْلَ طُلُوعِ

اوريدلي دي چي فرمايل يې: حج عرفه ده يعني د حج تر ټولو لوى رکن په نهمه نېټه پر عرفات قيام کول دي چا چي عرفات تر لاسه کړ (يعني د عرفات ميدان ته ورسيدئ) نو د مزدلفې په

الْفَجْرِ فَقَدْ أَدْرَكَ الْحَجَّ أَيَّامُ مِنًى ثَلَاثَةٌ فَمَنْ تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ

شپه د سهار ځلانده کېدو څخه وړاندي هغه حج تر لاسه کړ او په منا کي درې ورځي دي (يعني يوولسم، دوولسم، او ديارلسم) .

وَمَنْ تَأَخَّرَ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ . رواه الترمذي وابوداؤد والنسائي وابن ماجة والدارمي وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح .

څوک چي تلوار وکړي او دوې ورځي وروسته ولاړ سي پر هغه څه ګناه نسته او څوک چي تر درو ورځو زيات قيام وکړي پر هغه هم څه ګناه نسته . ترمذي، ابوداؤد، نسائي، ابن ماجه، دارمي، ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دئ .

**تخریج**: الترمذي في السنن ۳\۲۳۷، رقم: ۸۸۹، وابوداود في السنن ۲\۴۸۵، رقم: ۱۹۴۹، والنسائي ۵\۲۶۴، رقم: ۳۰۴۴، وابن ماجه في السنن ۲\۱۰۰۳، رقم: ۳۰۱۵. والدارمي في السنن ۲\۸۲، رقم: ۱۸۸۷.

**تشریح**: هغه حج ادا کړی، ددې مطلب دادی چي د هغه حج فوت نه سو او هغه په حج کي د خرابۍ او فساد څخه په امن کي سو په شرط ددې چي هغه د احرام د وخت د پوره کېدو څخه مخکي د ښځي سره کوروالي یا یو داسي فعل نه وي کړی کوم چي د احرام په حالت کي منعه وي او دا خبره خو مخکي ښودل سوې ده چي د کوم چا حج فوت سي یعني هغه د ذي الحجې په لسمه شپه د طلوع فجر پوري د یوه دقیقې لپاره هم د عرفات وقوف ونه کړای سي نو پر هغه دا واجبېږي چي د عمرې افعال یعني طواف او سعي څخه وروسته احرام خلاص کړي او تر راتلونکي کال پوري د احرام ترل د هغه لپاره حرام دي.

کوم څوک چي تلوار وکړي : ددې مطلب دادی که یو څوک د دوولسم تاریخ د ماپښین څخه وروسته د درو جمرو د رمي سره مکې ته راسي نو پر هغه څه ګناه نه سته او په دیارلسمه شپه کي د قیام منی او په دریارلسم تاریخ رمي د هغه د ذمې څخه ساقط کیږئ همدارنګه کوم څوک چي ځنډ وکړي ددې مطلب دادی که یو څوک په دوولسم تاریخ د جمراتو د رمي څخه وروسته په منی کي تم سي تر دې چي په دیارلسمه شپه هم د جمراتو رمي وکړي نو پر هغه هم څه ګناه نه سته یعني د جواز په اعتبار سره خو دواړه صورتونه برابر دي البته د ډېر عبادت له مخي تاخیر افضل دی ، نقل سوي دي چي د جاهلیت په زمانې کي دوې ډلي وې یوې ډلي به تلوار ګناه ګڼل او دوهمي ډلي به ځنډ نو دا حکم نازل سو چي ځنډ او تلوار دواړه برابر دي په دې کي په هیڅ یوه کي څه ګناه نسته.

==========

# بَابُ حَرَمِ مَكَّةَ حَرَّسَهَا اللّٰه تعالى

## د مکې د حرم حرمت، الله ﷻ دي يې وساتي

حرم د مځکي هغه ټوټې ته وايي کوم چي د کعبې او مکې شاوخوا دی، الله تعالی د کعبې شريفي د عظمت په وجه دا مځکه هم معظمه او مکرمه کړې ده دغه مځکي ته حرم ځکه وايي چي الله تعالی د دغه مځکي د بزرګۍ په وجه په هغه کي داسي ډېر شيان حرام کړي دي کوم چي په نورو ځايو کي حرام نه دي مثلا د احرام په حدودو کي ښکار کول، درختي پرېکول او څارويو

ته تکلیف رسول او داسي نور شیان صحیح نه دي، ځیني علماء وایي چي د مځکي د غه برخي ته حرم ځکه ویل سوي دي چي کله حضرت آدم علیه السلام مځکي ته راکښته کړل سو نو د شیطانانو څخه بیریدی چي ما هلاک نه کړي نو الله تعالی د هغه د ساتني او حفاظت لپاره ملائکي راواستولې هغه ملائکو مکه د څلورو خواوو څخه راګیر کړه نو د مکې شاوخوا ملائکو په دریدو سره حدبندي وکړه هغه د حرم حد و ټاکل سو او همدرانګه کعبه شریفه او د هغه ملائکو د دریدو د ځای په منځ کي چي کومه مځکه راغلل نو هغه حرم سو ، ځیني حضرات فرمایي چي حضرت آدم علیه السلام د کعبې جوړلو پر وخت حجر اسود ایښودی نو د هغه په وجه د څلورو خواوو څخه مځکه روښانه سوه هغه رڼا چي د مځکي څلورو خواوو ته تر کوم کوم ځای پوري ورسیدل هغه د حرم حد و ټاکل سو ، د حرم د مځکي حدود دادي : مدینې منورې ته درې میله (تر تنعیم پوري)، د یمن، طائف، جعرانه او جدې خوا ته اووه میله ، په ځینو کتابو کي لیکلي دي چي جدې ته لس میله او جعرانه ته نهه میله دي، د حرم څلورو خواوو ته چي د حرم مځکه ختمیږي هلته د حدود د علامې په توګه برجونه جوړ سوي دي مګر د جدې او جعرانې خوا ته برجونه نسته .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د حرم مکه فضیلت

﴿۲۵۹۶﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم د مکې د فتح په ورځ وفرمایل :

فَتْحِ مَكَّةَ لَا هِجْرَةَ وَلَكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ وَإِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوا وَقَالَ يَوْمَ

اوس هجرت نسته مګر جهاد او نیت فرض دئ او هر کله چي تاسو د جهاد لپاره و بلل سئ نو د جهاد لپاره راووځئ ، د مکې د فتح په ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم دا هم وفرمایل :

فَتْحِ مَكَّةَ إِنَّ هَذَا الْبَلَدَ حَرَّمَهُ اللّٰهُ يَوْمَ خَلَقَ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضَ فَهُوَ حَرَامٌ

دا ښار (مکه) حرام کړی دی الله جل جلاله په هغه ورځ په کومه ورځ چي آسمانونه او مځکه پیدا کړل

بِحُرْمَةِ اللّٰهِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَإِنَّهُ لَمْ يَحِلَّ الْقِتَالُ فِيهِ لِأَحَدٍ قَبْلِي وَلَمْ

دا الله جل جلاله د حرمت په سبب تر قیامته پوري حرامه ګرځولې ده او زما څخه وړاندي قتال د هیچا

لپاره حلال سوی نه دئ

يَحِلَّ لِي إِلَّا سَاعَةً مِنْ نَهَارٍ فَهُوَ حَرَامٌ بِحُرْمَةِ اللهِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا يُعْضَدُ

او نه زما لپاره حلال سوی دئ مگر د ورځي يوازي د يو ساعت لپاره اوس هغه د الله ﷻ د حرمت په سبب تر قيامته پوري حرامه سوې ده ددې ازغني درختي دي نه وهل کيږي

شَوْكُهُ وَلَا يُنَفَّرُ صَيْدُهُ وَلَا يَلْتَقِطُ لُقَطَتَهُ إِلَّا مَنْ عَرَّفَهَا وَلَا يُخْتَلَى خَلَاهُ

او په حرم کي دي ښکار نه کيږي او هيڅ يو لويدلی شی دي نه پورته کيږي مگر که څوک چي يې پورته کړي د هغه خاوند ته دي يې د هغه حقيقت او شناخت بيان کړي او ددې (ښار) واښه دي نه ريبل کيږي ،

فَقَالَ الْعَبَّاسُ يَا رَسُولَ اللهِ إِلَّا الْإِذْخِرَ فَإِنَّهُ لِقَيْنِهِمْ وَلِبُيُوتِهِمْ فَقَالَ إِلَّا الْإِذْخِرَ . متفق عليه و في رواية ابي هريرة لا يعضد شجرها ولا يلتقط ساقطتها الا منشد .

حضرت ابن عباس ﷜ وويل اې دالله رسوله ! مگر اذخر (يو ډول واښه) خو يو داسي شی دئ چي د ښن د ويلي کولو په کار راځي او په کورو کي ددې ضرورت دئ ، رسول الله ﷺ وفرمايل مگر اذخر دي و ريبل سي . بخاري او مسلم . او د ابوهريرة په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي ددې درختي دي نه وهل کيږي او نه دي يو پروت شی پورته کړل سي مگر لټونکی يې پورته کولای سي .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴۶\۱۴ - ۴۷، رقم: ۱۸۳۴، ومسلم في الصحيح ۹۸۶\۲، رقم: ۴۴۵ - ۱۳۵۳.

**تشريح**: کله چي رسول الله ﷺ د مکې مکرمې څخه مدينې منورې ته هجرت وکړ نو هغه وخت هجرت پر هر چا باندي فرض وو چا چي ددې توان درلودی ، بيا کله چي مکه فتحه سوه نو د هغه هجرت لړۍ منقطع سوه کوم چي فرض وه ځکه چي د هغه څخه وروسته مکه مکرمه دار الحرب پاته نه سو ، نو ددغه ارشاد مطلب : او هجرت نسته ... : دادی که اوس يو څوک هجرت وکړي نو هغه ته هغه درجه نه تر لاسه کيږي کوم چي مهاجرينو ته تر لاسه سوې ده البته په جهاد او اعمالو کي د حسن نيت اجر اوس هم پاته دی او همېشه به پاته وي همدارنگه هغه هجرت هم

باقي دی چي د خپل دین او اسلام د احکامو او شعائرو د ساتني لپاره وي او د هغه اجر هم تر لاسه کیږي.

نه دي يو خارداره درخته پرېکوي: ددې څخه معلومه سوه چي د خار نه لرونكي درختي پرېکول په درجه اولی جائز نه دي ، په هدایه کي لیکلي دي که يو څوک د حرم د مځکي څخه داسي وابنه يا درخته پریکړي چي د يو چا په ملکیت کي نه وي او خپله شنه کیږي نو پر هغه باندي د هغه وابنو يا درختي د قیمت په اندازه جزاء واجبیږي البته د اوچو وابنو ریبلو په صورت کي قیمت نه واجبیږي مګر د هغه ریبل هم صحیح نه دي د حرم د مځکي د وابنو غلا کول هم جائز نه دي بلکه اذخر ریبل جائز دي همدارنګه کماة (يو ډول وابنه) هم مستثنی دی، د امام شافعي رحمه الله په مذهب کي د حرم په مځکه کي د څارویو پیول جائز دي.

لقطة، هغه شي ته وايي چي په لاره کي پیدا سي او د هغه خاوند معلوم نه وي د حرم په مځکي کي د لقطې حکم دادی چي د هغه پورته کونکی دي په عامو خلکو کي دا اعلان وکړي چي ما د يو چا شی پیدا کړی دی د هر چا چي وي حاصل دي يې کړي ، که ددغه اعلان څخه وروسته هم د هغه شي خاوند پیدا نه سي نو که چیري هغه سړی خپله غریب او مستحق وي نو خپله دي يې استعمال کړي او که غریب نه وي نو بیا يو بل غریب ته دي يې د صدقې په توګه ورکړي ، که چیري د هغه خاوند پیدا سي نو د هغه قیمت دي ورکړي مګر د حرم په مځکه کي د لقطې په اړه څرنګه چي د پورتني حدیث څخه معلومه سوه دا خبره نه ده بلکه يوازي اعلان دی تر څو پوري چي د هغه خاوند پیدا نه سي يعني تر څو چي د هغه د خاوند معلومات ونه سي تر هغه وخته پوري د هغه اعلان دي کوي او د خاوند انتظار دي کوي هغه شی دي تر پایه پوري نه خپله استعمالوي او نه دي يې چا ته په صدقه کي ورکوي او نه دي يې خپل ملکیت ګرځوي ، د امام شافعي رحمه الله مذهب دادی مګر د اکثرو علماؤ په نزد د حرم او غیر حرم د لقطې په مینځ کي هیڅ فرق نسته ، د امام ابو حنیفة رحمه الله مذهب هم دادی د هغوئ دلیل هغه حدیثونه چي په هغو کي په مطلق توګه باندي د لقطې حکم بیان سوی دی چي انشاء الله د لقطه په باب کي به راسي.

د حدیث الفاظ : (الا من عرفها) مطلب دادی چي ددغه علماؤ په نزد د حرم د مځکې د لقطې پورته کونکی تر يو کال پوري که په مکه کي وي نو د هغه اعلان دي کوي لکه څرنګه چي په نورو ځایو کي دي ، اعلان کول دي يوازي د حج تر ورځو پوري نه مخصوص کوي ، يعني د حدیث ددغه جملې مطلب دا سو چي د حرم د مځکي د لقطې په باره کي چا ته دا غلط فهمي او ګمان کول نه دي پکار چي هلته دغه اعلان يوازي د حج په ورځو کي کافي دی.

## په مکه کي بېله ضرورت وسله پورته کول صحيح نه دي

﴿۲۵۹۷﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا يَحِلُّ لِأَحَدِكُمْ أَنْ يَحْمِلَ بِمَكَّةَ السِّلَاحَ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د نبي کريم ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي په تاسو کي هيچا ته په مکه کي (د جګړې لپاره) وسله پورته کول جائز نه دي. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۹۸۹، رقم: ۴۴۹-۱۳۵۶.

**تشريح**: د اکثرو علماؤ په نزد ددې مطلب دادی چي په مکه کي بېله ضرورته وسله پورته کول صحيح نه دي مګر امام حسن رحمه الله فرمايي چي په مکه کي نه يوازي بېله ضرورته بلکه د ضرورت په وخت کي هم وسله پورته کول صحيح نه دي.

## په مکه کي د قصاص او حد جاري کېدو مسئله

﴿۲۵۹۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ دَخَلَ مَكَّةَ يَوْمَ الْفَتْحِ وَعَلَى رَأْسِهِ الْمِغْفَرُ فَلَمَّا نَزَعَهُ جَاءَ رَجُلٌ وَقَالَ إِنَّ ابْنَ خَطَلٍ مُتَعَلِّقٌ بِأَسْتَارِ الْكَعْبَةِ فَقَالَ اقْتُلْهُ. متفق عليه.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د مکې د فتح په ورځ په داسي حال کي مکې ته داخل سو چي د رسول الله ﷺ پر سر مبارک خول (جنګي ټوپۍ) وه کله چي رسول الله ﷺ هغه د سر څخه کښته کړه نو يو سړی حاضر سو او عرض يې وکړ، ابن خطل د کعبې پرده نيولې ده، رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه ووژنئ، (ابن خطل مرتد سوی وو هغه يو مسلمان شهيد کړی وو، ددې څخه ثرګنديږي چي په حرم کي حد جاري کول جائز دي). بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۵۹، رقم: ۱۸۴۶، ومسلم ۲\۹۸۹، رقم: ۴۵۰-۱۳۵۷.

**تشريح**: علامه طيبي رحمه الله ليکلي دي چي رسول الله ﷺ د خول (جنګي خولۍ) پر سر کولو سره په مکه کي داخليدی، د امام شافعي رحمه الله ددغه مذهب دليل دادی چي کوم سړی د حج يا عمرې اراده نه لري نو هغه د احرام څخه پرته په مکه کي داخليدای سي مګر د امام ابوحنيفة

رحمة الله عليه مذهب دادی چي کوم څوک په شرط ددې چي آفاقي وي لکه په مکه کي داخلېدل وکړي که هغه د حج او عمرې اراده لري او که د بل مقصد لپاره مکې ته ځي نو هغه دي د میقات څخه د احرام تړلو څخه پرته په مکه کي نه داخلېږي ځکه شمني رحمة الله عليه وايي چي د امام ابو حنیفة رحمة الله عليه دلیل در سول الله ﷺ دغه ارشاد دی چي هیڅ سړی دي د احرام تړلو څخه پرته د میقات څخه مخته نه ځي او دا چي احرام خو محض د هغه مقدس ځای یعني د کعبې شریفي د تعظیم لپاره تړل کیږي ځکه نو که څوک د حج یا عمرې لپاره مکې ته ولاړ سي او که د بل مقصد لپاره ځي نو د کعبې شریفي د تعظیم له کبله د احرام څخه پرته باید مکې ته داخل نه سي.

اوس پاته سوه دا خبره چي رسول الله ﷺ د احرام څخه پرته په مکه مکرمه کي څرنګه داخل سو، ددې جواب دادی چي د مکې مکرمې د فتح په ورځ په هغه خاص ساعت کي بېله احرامه په مکه کي داخلېدل د رسول الله ﷺ لپاره حلال سوي وه ددې تائید ددغه باب د اول حدیث ددغه الفاظو څخه هم کیږي: ولم یحل لي الا ساعة من نهار: او نه زما لپاره حلال سوي دي پرته د ورځي د یوه ساعت څخه.

د ابن خطل په باره کي علامه طیبي رحمة الله عليه فرمایي چي هغه مسلمان وو مګر بیا مرتد سوی وو او هغه یو مسلمان قتل کړی وو چي د هغه خادم وو او هغه یوه غزل ویونکې انجلۍ ساتلې وه چي د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو، د اسلام د احکامو او شعائرو هجو (بد ویل) به یې کول. ځکه رسول الله ﷺ د هغه د وژلو حکم وکړ.

ددغه خبري څخه امام مالک او امام شافعي رحمة الله علیهما دا استدلال کوي چي په حرم کي د قصاص او حد جاري کول جائز دي، د امام ابو حنیفة رحمة الله عليه په نزد دا جائز نه دي، امام ابو حنیفة رحمة الله عليه فرمایي چي رسول الله ﷺ د ابن خطل د قتل حکم ځکه ورکړی وو چي مرتد سوی وو بیا هم که چیري دا ومنل سي چي رسول الله ﷺ هغه د قصاص په توګه قتل کړ نو بیا به دا وویل سي چي د هغه قتل په هغه خاص ساعت کي سوی وو چي په هغه کي رسول الله ﷺ لپاره د حرم مځکه مباح کړل سوې وه.

**بېله احرامه مکې ته ننوتل!**

﴿۲۵۹۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ وَعَلَيْهِ عِمَامَةٌ سَوْدَاءُ بِغَيْرِ إِحْرَامٍ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د مکې د فتح په ورځ په داسي حال کي مکې ته داخل سو چي د رسول الله ﷺ پر سر مبارک توره لنکوټه تړلې وه او احرام يې نه وو تړلی. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۹۹۰، رقم: ۴۵۱- ۱۳۵۸.

**تشريح**: په ظاهره خو دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ پر سر مبارک باندي د خول په اېښودو سره د هغه سربېره توره لنکوټه تړلې وه، بېله احرامه په مکې د داخلېدو په باره کي د دريم نمبر حديث په تشريح کي بحث سوی دی دا حديث ددې دليل دی چي تور رنګ جامې استعمالول مستحب دي لکه څرنګه چي د امام ابو حنيفة رحمه الله مذهب دی.

## د کعبې شريفې د تخريب پيشګويي

﴿۲۶۰۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْزُو

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: (په آخره زمانه کي) به

جَيْشُ الْكَعْبَةَ فَإِذَا كَانُوا بِبَيْدَاءَ مِنَ الْأَرْضِ يُخْسَفُ بِأَوَّلِهِمْ وَآخِرِهِمْ قُلْتُ

يو لښکر پر کعبې د حملې کولو او د هغې د خرابولو اراده وکړي هغه به يو مېداني ځمکي ته ورسيږي نو د اول څخه تر پايه پوري به په ځمکه کي ښخ کړل سي، ما عرض وکړ

يَا رَسُولَ اللّٰهِ كَيْفَ يُخْسَفُ بِأَوَّلِهِمْ وَآخِرِهِمْ وَفِيهِمْ أَسْوَاقُهُمْ وَمَنْ لَيْسَ

اې د الله رسوله! هغوئ به د اول څخه تر پايه پوري ولې په ځمکه کي ښخ کړل سي؟ په هغوئ کي خو به بازاريان (يعني سودا خرڅونکي وغيره) هم وي، او هغه خلک هم چي د هغوئ څخه

مِنْهُمْ قَالَ يُخْسَفُ بِأَوَّلِهِمْ وَآخِرِهِمْ ثُمَّ يُبْعَثُونَ عَلَى نِيَّاتِهِمْ. متفق عليه.

نه دي، رسول الله ﷺ وفرمايل: هو، هغه ټول به په ځمکه کي ښخ کړل سي بيا به د خپلو نيتو سره سم راپورته کړل سي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري)، ۴\۳۳۸، رقم: ۲۱۱۸، ومسلم في الصحيح ۴\۲۲۱۰، رقم: ۸- ۲۸۸۴.

**تشريح**: دا د رسول الله ﷺ د هغه زمانې په باره کي پېشګويي ده کله چي دنيا په آخر دور کي وي چي په هغه آخري زمانه کي به د حضرت مهدي عليه السلام د ظهور څخه وروسته د مصر د

حکمران سفياني يو لښکر کعبې شريفې ته د تاوان رسولو ناپاکه اراده سره مکې ته روان سي مګر هغه به په خپل ناپاکه اراده کي د کامياب کېدو څخه مخکي په مځکه کي غرق کړل سي.

د حديث د آخري جملې مطلب دادی چي که څه هم داسي خلک به د لښکر د ناپاکې ارادې همنوا نه وي او کعبې شريفې ته به د تاوان رسول يا د هغه سپکاوی کول به د هغوئ مقصد نه وي مګر په هغه لښکر کي د ګډون کولو سره نه يوازي دا چي د هغوئ په لښکر کي به اضافه کوي بلکه يو ډول د هغوئ په ناپاکه اراده کي به د مرستي سبب هم جوړېږي ځکه د ټول لښکر سره به هغوئ په مځکه کي غرق کړل سي، مګر په قيامت کي به ټول د هغوئ د نيتونو مطابق پورته کړل سي چي کوم سړي د يو مجبوري او زور په وجه په لښکر کي شامل سوی وي او دهغه نيت پاک او د هغه زړه د ايمان او اسلام د رڼا څخه منور وي نو هغه به په جنت کي داخلېږي او کوم خلک چي واقعي په ناپاکه ارادو سره او د کفر په نيت په لښکر کي شامل سوي وي نو هغوئ به د دوږخ اور ته حواله کړل سي.

﴿۲۶۰۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخَرِّبُ الْكَعْبَةَ ذُو السُّوَيْقَتَيْنِ مِنْ الْحَبَشَةِ. متفق عليه.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کعبه به په حبشيانو کي يو سړی خرابه کړي چي د هغه پنډۍ به کوچنۍ او نرۍ نرۍ وي. بخاري او مسلم.

تخريج: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۳\ ۴۶۰، رقم: ۱۵۹۶، ومسلم في الصحيح ۴\ ۲۲۳۲، رقم: ۵۵-۲۹۰۹.

**تشريح**: دا مقدر سوي دي چي د کعبې شريفې بربادي به د يو حبشي په لاس وي، دا د عبرت خبره ده چي کعبې شريفه به د خپل قدر او عظمت سربېره د يو حقير او سپک سړي په لاس تباه کېږي او کله چي کعبه شريفي تباه او برباد سي نو قيامت به راسي چي د هغه په نتيجه کي به دغه ټوله دنيا تباه او برباد سي ځکه چي ددغه عالم ابادي د کعبې شريفې د وجود سره متعلق ده.

﴿۲۶۰۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَأَنِّي بِهِ أَسْوَدَ أَفْحَجَ يَقْلَعُهَا حَجَرًا حَجَرًا. رواه البخاري.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: لکه زه چي وينم چي کعبه

خرابونکی به یو سړی وي چي رنګ به يې تور وي او پنجی به يې په خپلو کي جنګيدلي وي او پوندي او پنډۍ به يې ليري ليري وي هغه به د کعبې يوه يوه ډبره د بيخه وکاږي . بخاري.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري)؛ ۳\۴۶۰۱، رقم: ۱۵۹۵.

**د لغاتو حل**: افحج: الذي يتداني صدور قدميه ويتباعد عقباه يتفحج ساقاه ومعناه يتفرج.

**تشريح**: افحج هغه سړي ته وايي چي د هغه پنجې په خپلو کي يو ځای سوی وي او پنډۍ يې ليري ليري وي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### په حرم کي غله ساتل

﴿۲۶۰۳﴾: عَنْ يَّعْلِيْ بْنِ اُمَيَّةَ قَالَ اِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِحْتِكَارُ الطَّعَامِ فِي الْحَرَمِ اِلْحَادٌ فِيهِ . رواه ابوداؤد .

د حضرت يعلي بن اميه ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺوفرمايل : په حرم کي غله (خوراکي توکي) بند ساتل الحاد (يعني حق پريښودل پر غلطه لاره تګ) دئ . ابوداؤد .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۵۲۲، رقم: ۲۰۲۰.

**تشريح**: د احتکار مطلب دادی چي مثلا يو سړی د ګرانۍ په دور کي غله په دې نيت رانيسي چي کله ګراني زياته سي نو خرڅه به يې کړم ، دا نه يوازي دا چي يو تولنيز ظلم دی بلکه په شرعي توګه هم ګناه ده . د اسلام په رڼا کي دغه د نفرت وړ کار په هر ځای او هر ښار کي حرام دی مګر په حرم کي داسي کول اشد حرام دی چي پر هغه د کجروۍ (يعني حق پرېږدي د باطل و لور ته مائله سي) اطلاق سوي دی او په حرم کي د کجروۍ په اړه الله تعالی داسي فرمايلي دي : ومن يرد فيه بالحاد بظلم نذقه من عذاب اليم: او کوم څوک چي په حرم کي په ظلم سره د کجروۍ اراده وکړي نو موږ به پر هغه دردناک عذاب وڅکو .

مسئله : د ګرانۍ په نيت سره د انسان او د څارويو شيان منع کول په هغه ښا رکي مکروه دي چي په هغه سره د هغه ځای اوسيدونکو ته تکليف رسيږي .

### د مکې مکرمې فضيلت

﴿۲۶۰۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمَكَّةَ

د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : مکې ته ،

مَا أَطْيَبَكِ مِنْ بَلَدٍ وَأَحَبَّكِ إِلَيَّ وَلَوْلَا أَنَّ قَوْمِي أَخْرَجُونِي مِنْكِ مَا سَكَنْتُ غَيْرَكِ . رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن صحيح غريب اسنادا .

کوم وخت چي د مکې د فتح څخه وروسته رسول الله ﷺ د هغه ځای څخه ستون سو نو وه یې فرمایل : څه ښه ښار دئ او څومره پر ما ګران دئ که زما قوم زه دې ښار څخه نه وای ایستلی نو زه به د مکې څخه پرته بل یو ځای نه اوسیدم . ترمذي، دا حدیث حسن صحیح دئ د اسناد په اعتبار غریب دئ .

**تخریج** : الترمذي في السنن ۵\ ۶۷۹، رقم: ۳۹۲۶.

**تشریح** : دا حدیث ددې خبري دلیل دی چي مکه مکرمه د مدینې منورې څخه افضله ده د اکثرو علماؤ دا قول دی مګر د امام مالک رحمہ اللہ په نزد د مدینې فضیلت تر مکې زیات دی .

﴿۲۶۰۵﴾ : وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَدِيِّ بْنِ حَمْرَاءَ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاقِفًا عَلَى الْحَزْوَرَةِ فَقَالَ وَاللّٰهِ إِنَّكِ لَخَيْرُ أَرْضِ اللّٰهِ وَأَحَبُّ أَرْضِ اللّٰهِ إِلَى اللّٰهِ وَلَوْلَا أَنِّي أُخْرِجْتُ مِنْكِ مَا خَرَجْتُ . رواه الترمذي و ابن ماجة .

د حضرت عبد الله بن عدي بن حمراء رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه چي په حزوة نامي ځای کي ولاړوو واوریدل : په الله دي مي قسم وي (اې د مکې مځکي) ته د الله جل جلاله په مځکو کي غوره مځکه یې او د الله په مځکو کي ته د الله جل جلاله په نزد تر ټولو زیاته محبوبه یې که زه ستا څخه نه وای ایستل سوی نو هیڅکله به نه وای وتلی . ترمذي او ابن ماجه .

**تخریج** : ابن ماجه في السنن ۲\ ۱۰۳۷، رقم: ۳۱۰۸، والترمذي ۵\ ۶۷۹، رقم: ۳۹۲۵.

**د لغاتو حل** : الحزورة: موضع بمكة. (په مکه معظمه کي یوه سیمه).

**تشریح** : حزوره په مکه مکرمه کي د یو ځای نوم دی ، رسول الله ﷺ په هغه ځای کي په درېدو سره مکې ته په مخاطب کولو سره پورتنۍ جملې وفرمایلې .

په دغه حدیث کي دې ته اشاره ده چي د مؤمن د شان تقاضا داده چي هغه په دغه مقدس ښار کي خپل قیام یو عظیم سعادت وګڼي او د مکې هستوګنه تر هغه وخته پوري ترک نه کړي

چي هغه پر دې باندې حقيقتا يا حكما مجبور نه كړل سي ځكه ويل سوي دي چي په مكه مكرمه كي داخليدل سعادت او د هغه څخه وتل شقاوت دی.

په درمختار كي ليكلي دي چي د مكې او مدينې مجاورت (يعني په دغو ښارو كي هستوګنه) د هغه چا لپاره مكروه نه دي چي هغه ته پر خپل نفس باندي واک تر لاسه وي، يعني كوم چا ته چي دا يقين وي چي زما څخه ګناه نه كيږي نو هغه دي په دغه ښارو كي هستوګنه كوي او كه چا ته دا يقين نه وي نو هغه دي دلته هستوګنه نه كوي.

## اَلْفَصْلُ الثالث (دريم فصل)

﴿۲۶۰۶﴾: عَنْ اَبِيْ شُرَيْحٍ الْعَدَوِيِّ اَنَّهُ قَالَ لِعَمْرِو بْنِ سَعِيدٍ وَهُوَ يَبْعَثُ

د حضرت ابو شريح العدوي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي كله عمرو بن سعيد رضي الله عنه د مكې په لور

الْبُعُوثَ إِلَى مَكَّةَ ائْذَنْ لِي أَيُّهَا الْأَمِيرُ أُحَدِّثْكَ قَوْلًا قَامَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

لښكر وليږئ نو ما هغه ته وويل: اي اميره! ما ته اجازه راكړه چي زه ستا په وړاندي هغه خبره بيان كړم كومه چي رسول الله صلى الله عليه وسلم

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْغَدَ مِنْ يَوْمِ الْفَتْحِ سَمِعَتْهُ أُذُنَايَ وَوَعَاهُ قَلْبِي وَأَبْصَرَتْهُ

د مكې د فتح څخه وروسته په دويمه خطبه كي فرمايلې وه، هغه خبره زما غوږو واوريدل، او زما زړه ياد كړه او ما رسول الله صلى الله عليه وسلم په خپلو ستركو سره ليدلى وو

عَيْنَايَ حِينَ تَكَلَّمَ بِهِ حَمِدَ اللّٰهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ إِنَّ مَكَّةَ حَرَّمَهَا اللّٰهُ وَلَمْ

كله چي هغه دا خبره فرمايلې وه، تر ټولو وړاندي رسول الله صلى الله عليه وسلم د الله جل جلاله حمد او ثناء بيان كړه بيا يې وفرمايل: مكې ته الله تعالى عظمت بخښلى دئ

يُحَرِّمْهَا النَّاسُ فَلَا يَحِلُّ لِامْرِئٍ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يَسْفِكَ بِهَا

او خلكو بزرګي نه ده وركړې د هغه چا لپاره چي پر الله جل جلاله او د آخرت پر ورځ ايمان لري جائز نه ده چي په دې كي جګړه وكړي

دَمًا وَلَا يَعْضِدَ بِهَا شَجَرَةً فَإِنْ أَحَدٌ تَرَخَّصَ بِقِتَالِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

او نه دا جائز ده چې ددې ځخه درختي ووهي بيا که څوک دا ووايي چې رسول الله ﷺ په دې کې

وَسَلَّمَ فِيهَا فَقُولُوا إِنَّ اللَّهَ قَدْ أَذِنَ لِرَسُولِهِ وَلَمْ يَأْذَنْ لَكُمْ وَإِنَّمَا أَذِنَ لِي فِيهَا

جګړه کړې ده نو ددې په جواب کې دې دا وويل سي چې الله تعالى خپل رسول ﷺ ته ددې اجازه ورکړې وه او تاسو ته يې اجازه نه ده درکړې، رسول الله ﷺ فرمايلي دي ما ته په مکه کې د جګړې لپاره يوازي يو ساعت اجازه راکړل سوه

سَاعَةً مِنْ نَهَارٍ ثُمَّ عَادَتْ حُرْمَتُهَا الْيَوْمَ كَحُرْمَتِهَا بِالْأَمْسِ وَلْيُبَلِّغْ

او اوس د هغې عظمت او حرمت د معمول سره سم پر خپل ځای دئ يعني نن ددې هغه عظمت او حرمت دئ کوم چې پرون وو او پکار دي چې

الشَّاهِدُ الْغَائِبَ فَقِيلَ لِأَبِي شُرَيْحٍ مَا قَالَ لك عَمْرٌو قال قَالَ أَنَا أَعْلَمُ

کوم خلک دلته شتون لري هغه خلکو ته (دا خبره) ورسوي کوم چې دلته شتون نه لري، د ابو شريح ځخه پوښتنه وسول چې ددې په جواب کې عمرو تا ته څه وويل؟ ابو شريح بيان وکړ چې عمرو رضي الله عنه ما ته وويل: اې ابو شريح دا حديث ستا ځخه زيات ما ته ځرګند دئ

بذالك مِنْكَ يَا أَبَا شُرَيْحٍ لَا يُعِيذُ عَاصِيًا وَلَا فَارًّا بِدَمٍ وَلَا فَارًّا بِخَرْبَةٍ .

متفق عليه . وفي البخاري الخربة الجناية .

چې د حرم ځکه نافرمان ته پناه نه ورکوي او نه خوني تېښته کونکي ته پناه ورکوي او نه هغه چا ته د يو جرم له کبله تېښتېدلی وي . بخاري او مسلم ، په بخاري کې د خرمه معنا د جنايت ده .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۸\۲۰، رقم: ۴۲۹۵، ومسلم ۲\۹۸۷، رقم: ۴۴۶- ۱۳۵۴.

**د لغاتو حل**: لايعيذ: اى لا يجير. (ځای نه ورکوي).

**تشريح**: عمروبن سعيد د خليفه عبدالملک ابن مروان له خوا د مدينې منورې حاکم وو، کله چې هغه د حضرت عبدالله ابن زبير رضي الله عنه د وژلو لپاره د مدينې ځخه مکې ته لښکر وليږی نو حضرت ابوشريح صحابي د هغه ددغه فيصلې ځخه دبيزارۍ اظهارولو سره د رسول الله ﷺ پورتنی حديث بيان کړی، ددې ځخه د هغه دا مطلب وو چې په حرم کې د قتل وړ سړي د وژلو اجازه هم نه سته بيا څه چې د يو جليل القدر صحابي د وينې بيولو لپاره هلته لښکر وليږل سي،

ددې په جواب کي عمرو ابن سعيد وويل چي د حرم مځکه هغه چا ته پناه نه ورکوي کوم چي د خليفه څخه په بغاوت کولو سره نافرماني کوي ، يعني د عمرو ابن سعيد په گمان کي عبدالملک ابن مروان پر حق وو او حضرت عبدالله ابن زبير رضي الله عنه باغي وو ، حالانکه عبدالملک ابن مروان خليفه پر حق نه وو چي د هغه د خلافت انکار کونکی په شرعي توگه سره باغي وگرځول سي ، همدارنگه عمرو ابن سعيد دا هم وويل که يو سړی د يو چا په وژلو سره حرم ته ولاړ سي نو حرم هغه ته هم پناه نه ورکوي همدارنگه که يو څوک په تقصير کولو سره يعني په دين کي د فساد کولو سره يا په دين کي د يو جرم کولو سره يا د يو بل قصور کولو سره مثلا د چا مال تلف کړي يا د يو چا حق غصب کړي او وتښتي او په حرم کي پناه واخلي نو ددې مطلب دا نه دی چي هغه دي معاف کړل سي يعني د عمرو ابن سعيد د جواب مطلب دا وو چي عبدالله ابن زبير رضي الله عنه يو گناه کار او نافرمان سړی دی چي هغه د خليفه د پيروی څخه سرکښي کړې ده که هغه د حرم د مځکي څخه راووځي نو هلته به هغه ته سزا ورکړل سي او که په حرم کي اوسيږي نو هغه ته به په حرم کي سزا ورکړم نو همدارنگه وسوه يعني د حرم په مځکه کي هغه شهيد کړل سو . رضي الله عنه .

﴿۲۶۰۷﴾ : وَعَنْ عَيَّاشِ بْنِ اَبِيْ رَبِيْعَةَ الْمَخْزُوْمِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عياش بن ابي ربيعة مخزومي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : دا.

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَزَالُ هٰذِهِ الْاُمَّةُ بِخَيْرٍ مَا عَظَّمُوا هٰذِهِ الْحُرْمَةَ حَقَّ تَعْظِيْمِهَا فَإِذَا ضَيَّعُوا ذٰلِكَ هَلَكُوا . رواه ابن ماجة .

امت به هميشه په خير کي وي تر څو پوري چي د مکې عظمت کوي او ددې حرمت په پوره توگه سره کوي او هر کله چي ددې حرمت ضائع کوي نو هلاک به سي . ابن ماجه .

**تخريج** : سنن ابن ماجه ۲\۱۰۳۸، رقم: ۳۱۱۰.

============

# بَابُ حَرَمِ الْمَدِيْنَةِ حَرَسَهَا الله تعالى

## د مدينې حرم ، الله ﷻ دې يې ساتونکی سي

د مدينې منورې او د هغه د شاوخوا د حرمت په باره کې هم حديثونه نقل سوي دي مګر په دې اړه د علماؤ مختلف قولونه دي ، د حنفي علماؤ په نزد د مدينې او د هغه د شاوخوا د حرمت مطلب دا دی چي د دغه مقدس ښار او شاوخوا سيمو تعظيم او تکريم دي وکړل سي نه دا چي د د هغې هم دا حکم دی کوم چي د مکې او د هغې د شاخوا ځکې دی نو د حنفي مذهب مطابق په مدينه او شاوخوا ځکه کې د درختو پرېکول، ښکار کول او داسي نور شيان حرام نه دي مګر د ائمه ثلاثه په نزد د مکې حرم او مدينې حرم يو حکم دی ځکه د هغه په مذهب کې مدينه او د هغه شاوخوا کې هغه ټول شيان حرام دي کوم چي په مکه او د هغه په شاوخوا کې حرام دي بيا هم د دغه امامانو په نزد د مدينې په حرم کې د دغه شيانو په کولو سره جزاء نه واجبېږي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د مدينې منورې د حرم حدود

﴿۲۶۰۱﴾: عَنْ عَلِيٍّ قَالَ مَا كَتَبْنَا عَنْ رسولِ الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا

د حضرت علي رضی الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ څخه هيڅ شی نه دئ ليکلی مګر

الْقُرْآنَ وَمَا فِي هَذِهِ الصَّحِيفَةِ قَالَ قَالَ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

قرآن او هغه شی چي په دې صحيفه کي دي ، رسول الله ﷺ وفرمايل :

الْمَدِينَةُ حَرَامٌ مَا بَيْنَ عَيْرٍ إِلَى ثَوْرٍ فَمَنْ أَحْدَثَ فِيهَا حَدَثًا أَوْ آوَى مُحْدِثًا

مدينه حرم دئ د عير څخه تر ثور پوري (دا دوو غرونو نومونه دي) څوک چي په مدينه کي يوه نوې خبره پيدا کړي يا نوې خبره پيدا کونکي ته پناه ورکړي

فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَلَا عَدْلٌ

پر هغه دي د الله ﷻ، د الله ﷻ د ملائکو او د ټولو خلکو لعنت وي د هغه فرض او نفل نه

وَذِمَّةُ الْمُسْلِمِينَ وَاحِدَةٌ يَسْعَى بِهَا أَدْنَاهُمْ فَمَنْ أَخْفَرَ مُسْلِمًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ

قبليږي، د ټولو مسلمانانو عهد يو دئ هغه ادنا سړی هم کولای سي نو د هغه پوره کول پر ټولو مسلمانانو فرض دي، نو څوک چي د يو مسلمان عهد مات کړي پر هغه د الله ﷻ،

اللهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَلَا عَدْلٌ وَمَنْ وَالَى

د الله ﷻ د ملائکو او د ټولو مسلمانانو لعنت دئ نه به څيني څه فرض قبول سي او نه يو بل

قَوْمًا بِغَيْرِ إِذْنِ مَوَالِيهِ فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ لَا يُقْبَلُ

بدل، او چا چي موالات (دوستي) وکړه له يو قوم سره بې له اجازې د بادارانو خپلو نو پر ده لعنت د خدای دی او د ملائکو او د خلکو ټولو قبول به نسي

مِنْهُ صَرْفٌ وَلَا عَدْلٌ. متفق عليه وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا مَنِ ادَّعَى إِلَى غَيْرِ أَبِيهِ أَوْ

له ده څخه فرض او نه نفل. بخاري او مسلم. د بخاري او مسلم په يو بل روايت کي دا الفاظ چي څوک خپل پلار څخه پرته د بل چا په لور ځان منسوب کړي يا

تَوَلَّى غَيْرَ مَوَالِيهِ فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ

صَرْفٌ وَلَا عَدْلٌ.

د خپل مالک څخه پرته نورو مالکانو ته ځان منسوب کړي نو پر هغه دي د الله ﷻ، د الله ﷻ د ملائکو او د ټولو خلکو لعنت وي د هغه فرض او نفل نه قبليږي.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۴\ ۸۱، رقم: ۱۸۷۰، ومسلم في الصحيح ۱۲\ ۹۹۴، رقم: ۴۶۷-۱۳۷۰.

**تشريح**: څيني خلکو به ويل چي رسول الله ﷺ حضرت علي رضی الله عنه ته د قرآن کريم څخه پرته يو بل کتاب په خاصه توګه ورکړی دی چي د هغه علم بل چا ته نه سته، کله چي دا خبره حضرت علي رضی الله عنه واورېدل نو ددې ترديد يې وکړ او وه يې فرمايل چي ما خو د رسول الله ﷺ له طرف څخه قرآن کريم ليکلی دی او بيا مي پر څو احکامو باندي مشتمل هغه حديثونه ليکلي دي کوم چي په دغه صحيفه کي دي ددې څخه پرته نه ما بل يو کتاب ليکلی دی او نه رسول الله ﷺ د قرآن

کریم څخه پرته ما ته بل کتاب را کړی دی نو د صحیفې څخه مراد هغه لیکل سوي ورقي وې چي په هغو کي رسول الله ﷺ د آیاتو احکامو او څو نور احکام تحریر کړی وه چي د حضرت علي رضی الله عنه د توري په تیکي (پوښ) کي به وه.

په دغه صحیفه کي د آیاتو د احکامو څخه پرته نور کوم احکام چي لیکل سوي وه په هغه کي د مدینې منورې په اړه دا حکم هم وو کوم چي حضرت علي رضی الله عنه په پورتني حدیث کي بیان کړ نو مدینه د عیر او ثور په مینځ کي احرام ده ددې مطلب دادی چي مدینه منوره او د هغه شاوخوا هغه ځکه چي د عیر او ثور په مینځ کي ده د قدر او عظمت والا ده په دغه ځکه کي د داسي شیانو کول منع دي کوم چي ددغه مقدس ښار او ددغه باعظمته ځکه د توهین او حقارت سبب وي مگر د امام شافعي رحمه الله په نزد د حرام څخه مراد حرم دی یعني مدینه منوره د مکې مکرمې د حرم په ډول ده چي کوم شیان مثلا ښکار وغیره د مکې په حرم کي حرام دي هغه په مدینه کي هم حرام دي همدارنگه د هغوئ په نزد د مدینې د حرم حدود د عیر او ثور په نامه غرونه دي کوم چي د مدینې منورې دواړو خواوو ته واقع دي.

لایقبل منه صرف ولاعدل: دلته لفظ د صرف د فرض په معنی هم اخیستل کیږي او د نفل په معنی هم او توبه او شفاعت هم ددغه لفظ معنی کیدای سي همدارنگه د عدل معنی نفل هم کیدای سي او فرض هم، او ځیني حضرات وایي چي شفاعت او توبه هم ددغه لفظ معنی کیدای سي.

حضرت علي رضی الله عنه د هغه صحیفې څخه د رسول الله ﷺ لیکل سوی دوهم حکم دا بیان کړ چي د مسلمانانو آمان د یو واحد شي په مثل دی چي د هغه تعلق د امت د هر فرد سره کیدای سي که هغه لوړ وي او که کښته، مثلا څرنگه چي یو اعلی حیثیت والا مسلمان ته دا اختیار حاصل دی چي هغه یو چا ته امان ورکړي همدارنگه یو ادنی مسلمان ته هم د امان ورکولو اختیار حاصل دی او د هغه د عهد او امان لحاظ ساتل د هر مسلمان لپاره ضروري دي، یعني ددغه حکم خلاصه دا سوه که په مسلمانانو کي یو څوک که هغه هر څومره حقیر او کمتر وي (لکه غلام وغیره) یو غیر مسلمان ته امان ورکړي او د هغه سره د هغه د سر او مال د ساتني عهد وکړي او هغه په خپل پناه کي واخلي نو د هغه عهد ماتول د بل مسلمان لپاره جائز نه دي، که یو مسلمان د بل مسلمان عهد او امان تر پښو لاندي کړي په دې توگه چي د هغه په امان کي غیر مسلم ته تاوان ورسوي نو هغه به د الله جل جلاله، د ملائکو او د ټولو مسلمانانو د لعنت مستحق وي.

حضرت علي رضی الله عنه د هغه صحیفې څخه یو حکم دا هم بیان کړ چي کوم څوک د خپلو ملگرو د

اجازې څخه پرته د نورو خلکو سره د دوستۍ تعلق قائم کړي نو هغه هم د لعنت مستحق دی ، په دې باره کي تفصیل دادی چي د ولاء دوه ډولونه دي : اول ډول خو ولاء موالات دی چي د هغه صورت دادی چي مثلا د عربو دا معمول وو چي ځیني خلکو به په خپلو کي د دوستۍ قائمولو سره دا عهد کوی او قسم به یې کوی چي موږ به د یو بل په ښه او بد کي ګډون کوو د ژوند په هر پړاو کي به د یو بل مرسته کونکي یو په خپلو کي به د یو بل دوست سره دوستي کوو او د دښمن سره به دښمني کوو ، دې ته ولاء موالات وایي ، د جاهلیت په زمانه کي په خپلو کي د عهد تعلق صحیح او غلط ، حق او ناحق د هري معاملې سره کیدی یو سړی که پر حق وو او که پر ناحقه د هغه دوهم ملګری به د هغه مرسته په هر حال کي کول مګر کله چي د اسلام رڼا د جاهلیت تیاره ختمه کړه نو په مسلمانانو کي دومره تصحیح وسوه چي د هغوئ د یو بل سره مرسته به یوازي تر صحیح او حق معاملې پوري محدود وه مګر ددې سربیره دا معمول وو تر دې چي اکثر عجم به عرب ته راتلل او د صحابه کرامو سره به یې دغه سلسله قائمول .

دوهم ډول ولاء عتاقت دی ، ددې صورت دادی چي یو سړی خپل غلام ازادوي نو پر هغه غلام باندي دا حق ولاء ثابتیږي چي د هغه عصبه (زوی ، ملسی وغیره) نه کېدو په صورت کي هغه ازادونکی به د هغه وارث وي نو د ذوي الفروض (پلار ، نیکه او داسي نورو) څخه چي څه پاته سي هغه به د هغه خاوند وي .

اوس په دې پوه سئ چي په پورتني حدیث کي د موالات څخه د ولاء اول قسم هم مراد کیدای سي په دې صورت کي ددې حکم معنی به دا وي چي یو موالي یعني د پورتني عهد سره سم دوست او ملګری وي نو هغه ته پکار دي چي هغه د خپلو دغه دوستانو د اجازې څخه پرته بله ډله خپل موالي جوړ نه کړي ځکه چي ددې په وجه یو ډول عهد ماتول هم کیږي او مسلمانانو ته قلبي اذیت او روحاني کیفیت کي اخته کېدل هم کیږي چي د یو مسلمان لپاره قطعا مناسب نه دي او دا احتمال هم دی چي د موالات څخه د ولاء دوهم ډول مراد وي نو په دغه صورت کي به معنی دا وي چي کوم څوک د خپل ازادۍ نسبت د ازادونکي پر ځای بل چا ته وکړي نو هغه د لعنت مستحق کیږي ځکه د خپل پلار پر ځای بل چا ته خپل نسبت کونکی سړی د لعنت مستحق کیږي ، په دغه صورت کي به د بېله اجازې موالیه قید د اکثریت په اعتبار وي چي اکثر داسي کیږي که ازادی سوی غلام د خپل مالک څخه ددې اجازه وغواړي چي هغه د ازادۍ نسبت د هغه پر ځای بل چا ته وکړي نو هغه به ددې اجازه نه ورکوي مګر دا مطلب نه دی که مالک اجازه ورکړي نو بیا بل چا ته نسبت کول صحیح کیږي ځکه چي بیا به د دروا غو صورت جوړ سي چي

په هيڅ صورت کي جائز نه دی.

## د شيعه ګانو د قول ترديد

شيعه ګان وايي چي رسول الله ﷺ حضرت علي ؓ ته يوه وصيت نامه ورکړې وه چي په هغه کي يو خو دا چي خاص خاص خبري وې او بل د حضرت علي ؓ د اول خليفه ټاکلو هدايت هم وو، د دغه وصيت نامې علم په اهل بيتو کي څو خاصو کسانو مثلا حضرت علي ؓ، بي بي فاطمه ؓ او داسي نورو څخه پرته بل چا ته نه وو، ظاهره ده چي د شيعه حضراتو دغه قول د اختراع څخه زيات بل څه اهميت نه لري ځکه پورتنی حديث د دغه قول په ترديد کي ټينګ دليل دی. حضرت علي ؓ خپله په وضاحت سره فرمايي چي ما د رسول الله ﷺ له طرف څخه د قرآن کريم او پورتنۍ صحيفې څخه پرته نور هيڅ نه دي ليکلي.

په پای کي په دې خبره هم پوه سئ چي دغه حديث د دې خبري دليل دی چي د علم خبري ليکل او ترتيب کول مستحب دي چي يو عظيم الشان خدمت هم دی او د اجر باعث هم دی.

### په مدينه کي اوسيدل د دنيا او اخرت نيکي ده

﴿۲۶۰۹﴾: وَعَنْ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي أُحَرِّمُ مَا

د حضرت سعد ؓ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زه د مدينې د دوو غرونو منځ

بَيْنَ لَابَتَيِ الْمَدِينَةِ أَنْ يُقْطَعَ عِضَاهُهَا أَوْ يُقْتَلَ صَيْدُهَا وَقَالَ الْمَدِينَةُ خَيْرٌ

حرام ګرځوم د دې ازغني درختي دي نه وهل کيږي يا چي قتلول سي ښکار د دې، بيا يې وفرمايل: مدينه د هغه خلکو لپاره غوره ده

لَهُمْ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ لَا يَدَعُهَا أَحَدٌ رَغْبَةً عَنْهَا إِلَّا أَبْدَلَ اللّٰهُ فِيهَا مَنْ هُوَ

کوم چي په دې کي اوسيږي که هغوئ په دې پوهيږي هيڅوک به دا په بې خوښي سره نه پريږدي که څوک داسي وکړي نو الله ﷻ به د هغه څخه غوره سړی د لته راولي.

خَيْرٌ مِنْهُ وَلَا يَثْبُتُ أَحَدٌ عَلَى لَأْوَائِهَا وَجَهْدِهَا إِلَّا كُنْتُ لَهُ شَفِيعًا أَوْ شَهِيدًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه مسلم.

او څوک چي په مدينه کي په سختۍ او لوږه او ستونزو باندي ثابت قدم پاته سي نو زه به د

قيامت په ورځ د هغه شفاعت كوم يا د هغه د اطاعت شاهدي به كوم . مسلم .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۹۹۲، رقم: ۴۵۹ - ۱۳۶۳.

**د لغاتو حل**: عضاهما: وهي كل شجر عظيم، له شوک. (هره لويه ازغي لرونكې ونه). لاوائها: اى شدة جوعها (سخته لوږه).

**تشريح**: په دغه حديث شريف كي د مديني منورې د اوسيدونكو لپاره د خير د خاتمې او د عظيم سعادت زيرى دى او دا تنبيه هم ده چي د مؤمن لپاره دا ضروري ده چي هغه د حرمين شريفين (يعني مكه مكرمه او مدينه منوره) پر هستوګني د الله تعالى شكر هم ادا كړي او د هغه ځاى پر هره سختي او مصيبت باندي صابر هم وي او دا چي هغه د دغه مقدس ښارونو د خير څخه په صرف نظر كولو سره د نورو ځايونو ظاهري راحت او نعمت باندي نظر ونه كړي ځكه چي اصلي نعمت او راحت خو د آخرت نعمت او راحت دى لكه څرنګه چي دا حديث: اللهم لا عيش الا عيش الاخرة: اې الله د آخرت د راحت او آرام څخه پرته بل راحت او آرام نه سته.

## په مدينه كي د تكليف او مصيبت پر وخت د صبر كولو اجر

﴿۲۶۱۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَصْبِرُ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زما په امت كي چي څوک

عَلَى لَأْوَاءِ الْمَدِينَةِ وَشِدَّتِهَا أَحَدٌ مِنْ أُمَّتِي إِلَّا كُنْتُ لَهُ شَفِيعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَوْ شَهِيدًا . رواه مسلم .

د مديني پر سختۍ او لوږه باندي صبر وكړي نو زه به د قيامت په ورځ د هغه شفاعت كوم. مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۱۰۰۴، رقم: ۴۸۴ - ۱۳۷۸.

## د مديني لپاره د رسول الله ﷺ دعاء

﴿۲۶۱۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَانَ النَّاسُ إِذَا رَأَوْا أَوَّلَ الثَّمَرِ جَاءُوا بِهِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د خلكو دا عادت وو چي هغوئ به نوې ميوه وليدل نو د رسول الله ﷺ په خدمت كي به يې وړاندي كول،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا أَخَذَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللَّهُمَّ بَارِكْ لَنَا

رسول الله ﷺ به هغه په خپل مبارک لاس كي واخيستل او فرمايل به يې اې الله ! بركت واچوې

فِي ثَمَرِنَا وَبَارِكْ لَنَا فِي مَدِينَتِنَا وَبَارِكْ لَنَا فِي صَاعِنَا وَبَارِكْ لَنَا فِي مُدِّنَا اللَّهُمَّ

زموږ په ميوو كي زموږ لپاره ، زموږ په كورو كي زموږ ، زموږ په پيمانه كي او زموږ په مد (پيمانه) كي ، اې الله !

إِنَّ إِبْرَاهِيمَ عَبْدُكَ وَخَلِيلُكَ وَنَبِيُّكَ وَإِنِّي عَبْدُكَ وَنَبِيُّكَ وَإِنَّهُ دَعَاكَ لِمَكَّةَ

ابراهيم عليه السلام ستا بنده ، ستا خاص دوست او ستا نبي وو او زه هم دا ستا بنده او ستا نبي يم ، ابراهيم عليه السلام د مكې لپاره دعاء كړې وه

وَإِنِّي أَدْعُوكَ لِلْمَدِينَةِ بِمِثْلِ مَا دَعَاكَ لِمَكَّةَ وَمِثْلِهِ مَعَهُ ثُمَّ قَالَ يَدْعُو أَصْغَرَ وَلِيدٍ لَهُ فَيُعْطِيهِ ذَلِكَ الثَّمَرَ . رواه مسلم .

او زه ستا څخه هماغه دعاء لكه ابراهيم عليه السلام چي كړې وه د مديني لپاره كوم ، او د هغه په ډول يو بله دعاء كوم ، ابوهريرة وايي ددې وروسته به نبي كريم ﷺ د خپل كورني كوچنيان را وغوښتل او هغه ميوه به يې هغوئ ته وركړل . مسلم .

**تخريج** : مسلم في الصحيح ۲\ ۱۰۰۰، رقم: ۴۷۳- ۱۳۷۳.

**تشريح** : د بركت معنى زياتېدل دي ، په ميوه كي د بركت دعاء غوښتلو مطلب خو ظاهر دى البته په ښار كي د بركت مطلب دادى چي په ښار كي وسعت (پراخي) وي په هغه كي دېر خلك هستوګنه كوي او د هغه تهذيبي او تمدني حيثيت مثالي درجه ولري نو د رسول الله ﷺ دعاء داسي قبوله سوه چي د ښار رقبه او ابادي زياته سوه د مسجد نبوي توسيع وسوه او د ليري ليري څخه مسلمانان په زيات شمېر آباد سول او ددې څخه پرته دغه ښار د خپل تهذيبي او تمدني حيثيت سره مثالي درجې ته ورسيدى ، په صاع او مد كي د بركت څخه مراد دادى چي په رزق كي پراخي وي .

حضرت ابراهيم عليه السلام د الله تعالى خليل دى او رسول الله ﷺ د الله تعالى حبيب دى ، ددې سربېره چي د خليل څخه د حبيب مرتبه زياته ده رسول الله ﷺ د حضرت ابراهيم عليه السلام د دغه صفت ذكر وكړ مګر د تواضع او انكسارۍ په سبب يې خپل صفت ذكر نه كړ ځان ته يې يوازي د الله بنده او د هغه نبي پر ويلو باندي اكتفاء وكړه .

## د مدينې منورې د حرمت ذکر

﴿۲۶۱۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ

د حضرت ابو سعيد ﷜ څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: حضرت ابراهيم ﵇

حَرَّمَ مَكَّةَ فَجَعَلَهَا حَرَمًا وَإِنِّي حَرَّمْتُ الْمَدِينَةَ حَرَامًا مَا بَيْنَ مَأْزِمَيْهَا أَنْ لَا

په عظمت ورکولو سره مکه حرم جوړ کړ او زه مدينې ته عظمت ورکوم او دا حرم جوړوم ددې دواړو خواوو ته دې نه

يُهْرَاقَ فِيهَا دَمٌ وَلَا يُحْمَلَ فِيهَا سِلَاحٌ لِقِتَالٍ وَلَا تُخْبَطَ فِيهَا شَجَرَةٌ إِلَّا لِعَلْفٍ. رواه مسلم.

جګړه کيږي او نه دې د جګړې لپاره وسله پورته کيږي او نه دې ددې د درختو پاڼې څنډل کيږي مګر نه د حيوانانو د خوراک لپاره. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۱۰۰۱، رقم: ۴۷۵- ۱۳۷۴.

**د لغاتو حل**: مازِمَيها: الموضع الضيق بين الجبال حيث يلتقى بعضها بعضا. (دره)

**تشريح**: علامه توريشتي ﷫ وايي چې په حديث کې د (واني حرمت المدينة) د تحريم څخه مراد تعظيم دی، ددې څخه هغه مراد نه کوم چې د حرم سره متعلق دی، نو ددې خبرې دليل خپله د رسول الله ﷺ د غه ارشاد دی: او نه دې د درختو پاڼې څنډل کيږي البته د څارويو لپاره يې څنډلای سئ، (ددې څخه معلوميږي چې د مکې د حرم کوم حکم دی هغه د مدينې د حرم هم دی) ځکه چې د مکې د حرم د درختو پاڼې څنډل په هيڅ حالت کې صحيح نه دي او کوم چې د ښار تعلق دی نو که څه هم ځيني صحابه کرامو په مدينه کې ښکار کولو ته حرام ويلي دي مګر اکثر صحابه کرامو د مدينې د مرغانو د ښکار څخه انکار نه دی کړی او نه په دې باره کې د رسول الله ﷺ هيڅ منع په داسي طريقه سره موږ ته رسېدلې ده چې پر هغه اعتماد وکړل سي، دا د علامه توريشي اقتباس دی او په دې باره کې ملا علي قاري ﷫ په ډېر تفصيل سره بحث کړی دی اهل علم د هغه تشريح ته مراجعه کولای سي.

## د سعد بن وقاص ﷺ یوه واقعه

﴿۲۶۱۳﴾: وَعَنْ عَامِرِبْنِ سَعْدٍ أَنَّ سَعْدًا رَكِبَ إِلَى قَصْرِهِ بِالْعَقِيقِ فَوَجَدَ

د حضرت عامر بن سعد ﷺ څخه روایت دئ چي سعد ﷺ د خپلي ماڼۍ عقیق په لور سپور سو

عَبْدًا يَقْطَعُ شَجَرًا أَوْ يَخْبِطُهُ فَسَلَبَهُ فَلَمَّا رَجَعَ سَعْدٌ جَاءَهُ أَهْلُ الْعَبْدِ

(په لاره کي) یو غلام یې ولیدئ چي درخته یې وهل یا پاڼي یې څنډلې، هغه جامې ځیني
واخیستې بیا چي کله راوګرځیدی سعد نو د غلام مالک حاضر سو

فَكَلَّمُوهُ أَنْ يَرُدَّ عَلَى غُلَامِهِمْ أَوْ عَلَيْهِمْ مَا أَخَذَ مِنْ غُلَامِهِمْ فَقَالَ مَعَاذَ اللَّهِ

او وه یې ویل کوم شی چي د غلام څخه اخیستل سوی د ی هغه دي غلام ته بیرته ورکړل سي.
سعد وویل: پناه په الله ده

أَنْ أَرُدَّ شَيْئًا نَفَّلَنِيهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَى أَنْ يَرُدَّ عَلَيْهِمْ.

رواه مسلم.

چي زه به هغه شی بیرته ورکوم کوم چي رسول الله ﷺ راکړی دئ او د جامو بیرته ورکولو څخه یې انکار وکړ. مسلم

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۲\۹۹۳، رقم: ۴۶۱-۱۳۶۴.

**تشریح**: ان یرد علی غلامهم او علیهم: دلته حرف د او د راوي شک ظاهروي چي د هغه مالکانو یا خو دا ویلي وه چي د غلام جامې غلام ته بیرته ورکړي یا یې دا ویلي دي چي کومي جامې زموږ د غلام څخه اخستل سوي دي هغه دي موږ ته راکړي، د حدیث د غه جمله: چي ما ته رسول الله ﷺ راکړی دی ددې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ ددې اجازه ورکړې وه چي کوم څوک په مدینه کي په ښکار کولو یا درختو پرېکولو باندي ووینئ نو د هغه جامې دي ضبط کړل سي، نو داسي به ویل کیږي چي یا خو دغه حدیث منسوخ دی یا دا چي د رسول الله ﷺ له خوا د غه اجازه د زجر او توبیخ په توګه ورکړل سوې ده.

علامه طیبي رحمه الله فرمایي چي د امام مالک او امام شافعي مذهب دادی چي په مدینه منوره کي د ښکار کولو یا درختو پریکولو په وجه کفاره نه واجبیږي بلکه په مدینه کي دغه

شيان ښېله بدلې حرام دي، ځيني علماء دا وايي چي ځرنګه په مکه کي د دغه شيانو په کولو سره بدله واجبيږي همدا رنګه په مدينه کي ددې په وجه بدله واجبيږي مګر د امام ابوحنيفة رحمه الله په نزد په مدينه کي د دغه شيان حرام نه دي البته مکروه دي.

**د مديني منورې د آوبو او هواء لپاره د رسول الله ﷺ دعاء**

﴿۲۶۱۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي کله رسول الله ﷺ مديني منورې ته تشريف راوړ

وُعِكَ أَبُو بَكْرٍ وَبِلَالٌ فَجِئْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ

نو ابوبکر او بلال (رض) ته تبه راغلل، زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضره سوم او د هغوئ د ناروغۍ خبر مي ورکړ، رسول الله ﷺ وفرمايل:

اللّٰهُمَّ حَبِّبْ إِلَيْنَا الْمَدِينَةَ كَحُبِّنَا مَكَّةَ أَوْ أَشَدَّ وَ صَحِّحْهَا وَبَارِكْ لَنَا فِي

اې الله! ته مدينه زموږ دوسته جوړه کړې لکه ځرنګه چي مکه دي زموږ دوسته جوړه کړې وه، بلکه تر هغه يې زياته راخوښه کړې او ته د مدينې آب وهواء سمه کړې او زموږ لپاره د مدينې په

صَاعِنَا وَمُدِّهَا وَانْقُلْ حُمَّاهَا فَاجْعَلْهَا بِالْجُحْفَةِ. متفق عليه

صاع او مد (د پيمانو نومان دي) کي برکت واچوې او ددوئ تبه ليري کړې او دا ناروغي جحفې ته وليږې (په جحفه کي يهوديان اوسيدل). بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۹۹، رقم: ۱۸۸۹، ومسلم ۲\۱۰۰۳، رقم: ۴۸۰-۱۳۷۶.

**د لغاتو حل**: وُعک: اى حمى (تبه).

**تشريح**: نقل سوي دي چي حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په سخته تبه کي اخته وو او بي بي عائشې رضي الله عنها د هغه پوښتنه وکړه نو هغه وخت هغه د مکې د آب او هواء د هغه د غرونو او ځايونو، د صحت څخه ډکي فضا وغيره په لوړ آواز سره ذکر کول شروع کړل، بي بي عائشې رضي الله عنها رسول الله ﷺ ته دا حال ووايه نو رسول الله ﷺ پورتنۍ دعاء وغوښتل.

جحفه د يو ځاى نوم دى چي د مکې او مدينې په مينځ کي واقع دى په دغه ځاى کي يهوديان اوسيدل، دا حديث ددې خبري دليل دى چي د مسلمانانو له خوا د کفارو لپاره د هلاکونکو ناروغيو او د هغوئ د ښارونو د خرابيو ښېرا کول جائز دي، د دغه حديث څخه پرته

په يو بل حديث كي هم دا منقول دي چي په مدينه كي د رسول الله ﷺ د هجرت څخه مخكي د ناروغيو او وباوو زياتوب وو ، رسول الله ﷺ هغه وباوي (د الله تعالى په ذريعه) د كفارو سيمو ته وليږلې.

## د رسول الله ﷺ يو خوب او د هغه تعبير

﴿۲۶۱۵﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عُمَرَ فِيْ رُؤْيَا النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَدِيْنَةِ

حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د خوب ليدو روايت كوي چي رسول الله ﷺ د مديني په اړه ليدلى وو ،

رَأَيْتُ امْرَأَةً سَوْدَاءَ ثَائِرَةَ الرَّأْسِ خَرَجَتْ مِنَ الْمَدِيْنَةِ حَتّٰى نَزَلَتْ بِمَهْيَعَةَ

رسول الله ﷺ وفرمايل : ما يوه توره ښځه وليدل چي د هغې ورېښتان پريشانه (بېر) وه هغه د مديني څخه ووتل او حجفې ته ولاړل

فَتَأَوَّلْتُهَا أَنَّ وَبَاءَ الْمَدِيْنَةِ نُقِلَ إِلٰى مَهْيَعَةَ وَهِيَ الْجُحْفَةُ . رواه البخاري.

بيا يې وفرمايل : ما ددې دا تعبير وكړ چي د مدينې و با به جحفې ته نقل سي . بخاري .

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۲\۴۲۶، رقم: ۷۰۳۹.

**د لغاتو حل** : مهيعة: الارض المبسوطة (غوړېدلې ځمكه).

## د مديني منورې د ځينو خلكو په اړه د رسول الله ﷺ يو پيشګويي

﴿۲۶۱۶﴾: وَعَنْ سُفْيَانَ بْنِ اَبِيْ زُهَيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سفيان بن ابي زهير رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي

يَقُوْلُ تُفْتَحُ الْيَمَنُ فَيَأْتِيْ قَوْمٌ يُبِسُّوْنَ فَيَتَحَمَّلُوْنَ بِأَهْلِهِمْ وَمَنْ أَطَاعَهُمْ

فرمايل يې: يمن به فتح سي او د مدينې څخه به يو ډله روانه سي چي د خپل كورنۍ او پيروانو سره به كوچ وكړي او كه هغوئ پوهيداى

وَالْمَدِيْنَةُ خَيْرٌ لَهُمْ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ وَتُفْتَحُ الشَّأْمُ فَيَأْتِيْ قَوْمٌ يُبِسُّوْنَ

نو مدينه ورته غوره وه كه هغوئ پوهيداى او شام به فتح سي يوه ډله به د خپل كورنۍ او

فَيَتَحَمَّلُونَ بِأَهْلِيهِمْ وَمَنْ أَطَاعَهُمْ وَالْمَدِينَةُ خَيْرٌ لَهُمْ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ

پیروانو سره روان سي او که هغوئ پوهیدای نو مدینه به ورته غوره وای که هغوی پوهېدای

وَتُفْتَحُ الْعِرَاقُ فَيَأْتِي قَوْمٌ يُبِسُّونَ فَيَتَحَمَّلُونَ بِأَهْلِيهِمْ وَمَنْ أَطَاعَهُمْ وَالْمَدِينَةُ خَيْرٌ لَهُمْ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ . متفق عليه .

او عراق به فتح سي نو یو ډله به د خپل کورنۍ او پیروانو سره کوچ وکړي حال دا چي مدینه به ورته غوره وي که هغوئ پوهیدای . بخاري او مسلم .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۹۰، رقم: ۱۸۷۵، ومسلم ۲\۱۰۰۹، رقم: ۴۹۷ – ۱۳۸۸.

**د لغاتو حل**: يُبِسون: ای یسیرون سیرا شدیدا (سخت تګ).

**تشريح**: رسول الله ﷺ د مدینې منورې د خلکو په باره کي دا پیشگویي فرمایلې ده ، کله چي پورتني هیوادونه د مسلمانانو په لاس فتح سي نو هغه خلک به د مدینې د سخت ژوند څخه په ستومانه کېدو سره د معاش د طلب او دنیا د فاني ګټي په خاطر دغه مقدس او بابرکته ښار په پرېښودو سره هغه هیوادو ته ولاړ سي حالانکه په هر اعتبار سره به مدینه د هغوئ لپاره تر ټولو غوره ځای وي که هغوئ په دغه حقیقت پوه سي او د دنیا او آخرت سعادت یې مقصد وي نو مدینه به نه پرېږدي .

## مدينه منوره بد خلک باسي

﴿۲۶۱۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُمِرْتُ

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : ما ته د یو داسي آبادۍ په

بِقَرْيَةٍ تَأْكُلُ الْقُرَى يَقُولُونَ يَثْرِبُ وَهِيَ الْمَدِينَةُ تَنْفِي النَّاسَ كَمَا يَنْفِي الْكِيرُ خَبَثَ الْحَدِيدِ . متفق عليه .

لور د هجرت حکم راکړل سوی دئ چي پر ټولو ښارو غالبه ده (یعني دد ې ښار او سیدونکي به پر ټولو ښارو غالب وي) خلک دې آبادۍ ته یثرب وایي او دا مدینه ده چي خراب خلک داسي لیري کوي لکه څرنګه چي بټۍ د اوسپني څخه خیري لیري کوي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۸۷، رقم: ۱۸۷۱، ومسلم ۲\۱۰۰۶، رقم: ۴۸۸ - ۱۳۸۲.

**تشريح**: چي پر ټولو کليو باندي به غالبه وي، ددې مطلب دادی چي کوم خلک په مدينه کي اوسيږي هغوئ به پر نورو ټولو خلکو باندي غالب وي او نور ښارونه به فتح کوي، په تاريخي توګه سره ددغه عظيم الشان زيري خصوصيت ثابت دی چي مدينې ته راتلو سره خلک پر نورو اوسيدونکو باندي غالب او د اکثرو ښارونو فاتح راغلي دي ، مخکي عمالقه قوم په دغه ښار کي آباد سو هغوئ غلبه تر لاسه کړه او ځومره ښارونه او سيمي يې فتح کړې بيا يهود راغلل نو هغوئ پر عمالقه باندي غالب سول بيا نصاری را ورسيدل نو هغوئ پر يهوديانو باندي خپل اقتدار قائم کړ تر دې چي رسول الله ﷺ او مهاجرينو دغه ښار خپل د هستوګني ځای جوړ کړی هغوئ ته چي کومه غلبه تر لاسه سوه او څرنګه چي هغوئ د مشرق څخه تر مغرب پوري ټول عالم خپل تر اثر لاندي کړی .

ددغه ښار نوم مخکي يثرب او اثرب وو رسول الله ﷺ چي دلته په هجرت تشريف راوړ نو رسول الله ﷺ ددغه ښار د مدنيت او کثرت په وجه ددغه نوم مدينه کښېښودی او حکم يې وکړ چي بيا دي دغه ښار ته يثرب نه ويل کيږي ځکه دا د اسلام څخه مخکي نوم دی چي د هغه څخه د جاهليت د زمانې بوی راتلی دوهم دا چي په معنوي توګه هم دغه نوم بالکل نامناسب وو ځکه چي د يثرب معنی ده هلاک او فساد او دا هم ويل کيږي چي يثرب د يوه بت يا د يو ډېر ظالم سړی نوم وو . بخاري په خپل تاريخ کي يو روايت نقل کړی دی چي د هغه مفهوم دادی چي کوم ځوک يو وار يثرب ووايي نو هغه ته پکار دي چي هغه لس واره مدينه ووايي چي ددغه مقدس ښار د منع نوم اخيستلو تدارک او تلافي وسي او يو روايت دا هم دی چي کوم ځوک يثرب ووايي نو هغه دي استغفار وکړي .

د خرابو خلکو څخه مراد کفار او مشرکين دي چي د اسلام د غلبې په وجه د هغه ښار څخه وايستل سول نو پر کفارو او مشرکينو باندي ددغه ښار دروازې د همېشه لپاره بندي سوې .

**د الله ﷻ له طرفه د مدينې نوم**

﴿۲۶۱۸﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جابر بن سمرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي

يَقُولُ إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى سَمَّى الْمَدِينَةَ طَابَةَ . رواه مسلم .

الله تعالی د مدینې نوم طابه (پاکه) ایښی دئ. مسلم.

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۲\۱۰۰۷، رقم: ۴۹۱، ۱۳۸۵.

**تشریح**: الله تعالی د مدینې نوم طابه ایښی دی: ددې مطلب دادی چې الله تعالی د خپل حبیب ﷺ په ژبه سره د مدینې نوم طابه ظاهر کړی دی او په یوه روایت کې طیبه دی چې د هغه معنی ده پاک او خوشحاله یعنې دغه ښار د کفر او شرک د نجاست څخه پاک دی او د هغه اوبه او هواء د طبائع موافق ده او د هغه اوسیدونکي خوشحاله دي.

## د مدینې منورې خصوصیت

﴿۲۶۱۹﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِاللهِ أَنَّ أَعْرَابِيًّا بَايَعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت جابر بن عبد الله رضی الله عنه څخه روایت دئ چې یو صحرائي د رسول الله ﷺ په خدمت کې د

وَسَلَّمَ فَأَصَابَ الْأَعْرَابِيَّ وَعْكٌ بِالْمَدِينَةِ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

اوسیدو له کبله د رسول الله ﷺ سره بیعت وکړ هغه ته سخته تبه راغلل، نو هغه نبي کریم ﷺ ته

فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ أَقِلْنِي بَيْعَتِي فَأَبَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ جَاءَهُ

عرض وکړ اې محمد! ﷺ زما بیعت بیرته راکړئ، رسول الله ﷺ انکار وکړ هغه بیا راغلئ او

فَقَالَ أَقِلْنِي بَيْعَتِي فَأَبَى ثُمَّ جَاءَهُ فَقَالَ أَقِلْنِي بَيْعَتِي فَأَبَى فَخَرَجَ الْأَعْرَابِيُّ

عرض یې وکړ زما بیعت بیرته راکړئ، رسول الله ﷺ بیا هم انکار وکړ، هغه بیا حاضر سو او وه
یې ویل زما بیعت بیرته راکړئ، رسول الله ﷺ انکار وکړ، بیا هغه صحرائي پرته د اجازې د

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا الْمَدِينَةُ كَالْكِيرِ تَنْفِي خَبَثَهَا
وَيَنْصَعُ طِيبُهَا. متفق علیه.

مدینې څخه ولاړئ نو رسول الله ﷺ وفرمایل: مدینه د بټۍ په دول ده خپل خیري لیري کوي او خپله
خوشبویي ښه خالص کوي (یعنې پاک خلک پریږدي). بخاري او مسلم.

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري)؛ ۹۶\۱۴، رقم: ۱۸۸۳، ومسلم ۲\۱۰۰۶، رقم: ۴۸۹- ۱۳۸۳؟

**تشریح**: رسول الله ﷺ د هغه د بیعت فسخ کولو څخه ځکه انکار وکړ لکه څرنګه چې د اسلام بیعت فسخ کول جائز نه وه همدارنګه رسول الله ﷺ ته د اوسیدو د بیعت فسخ کولو اجازه هم نه

وه. علماء وايي چي د مدينې منورې دغه خصوصيت يعني د خرابو خلكو ايستل او د ښه خلكو د خالص كولو تعلق يا خو د رسول الله ﷺ د زمانې سره خاص وو يا په آخره زمانه كي يعني قيامت ته نژدې به ددغه ښار دغه خاصيت ظاهر سي چي كله دجال ظاهر سي نو مدينه به درې واره ولړزول سي هغه وخت چي په مدينه كي څومره خراب خلک وي (كه كافران وي او كه مشركان) هغه به ددغه ښار څخه ووځي او دجال ته به ورسي او دا احتمال هم دى چي ددغه خاصيت تعلق د هري زمانې سره وي.

﴿۲۶۲۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتّٰى تَنْفِيَ الْمَدِيْنَةُ شِرَارَهَا كَمَا يَنْفِي الْكِيرُ خَبَثَ الْحَدِيدِ. رواه مسلم

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: قيامت به تر هغه وخته پوري نه قائميږي تر څو پوري چي مدينه خپل شرير خلک داسي ونه كاږي لكه څرنګه چي بټۍ د اوسپني څخه خيري (او زنګ) ليري كوي. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۱۰۰۵، رقم: ۴۸۷- ۱۲۸۱.

## په مدينه كي طاعون او دجال نه سي داخليداى

﴿۲۶۲۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى اَنْقَابِ الْمَدِيْنَةِ مَلَائِكَةٌ لَا يَدْخُلُهَا الطَّاعُونُ وَلَا الدَّجَّالُ. متفق عليه.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د مدينې پر لارو يا دروازو ملائكي ټاكل سوي دي په دې كي نه طاعون داخليدلاى سي نه دجال. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۹۵، رقم: ۱۸۸۰، ومسلم ۲\۱۰۰۵، رقم: ۴۸۵- ۱۳۷۹.

**تشريح**: طاعون يو خاص ناروغۍ ته هم وايي، دلته په حديث كي د هغه خاص ناروغۍ په باره كي فرمايل سوي دي، د رسول الله ﷺ د دعاء په بركت دغه ناروغي په مدينه كي نه داخليږي يعني دا د رسول الله ﷺ يو څرګنده معجزه ده.

شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله په خپل كتاب كي د طاعون ترجمه په وباء كړې ده او فرمايي چي په مدينه كي د وباء نه داخلېدل يا خو د دجال د ظاهرېدو په وخت كي به وي يا دا چي ددې تعلق د هري زمانې سره دى.

﴿۲۶۲۲﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ مِنْ بَلَدٍ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هيڅ يو ښار داسي نسته چي

إِلَّا سَيَطَؤُهُ الدَّجَّالُ إِلَّا مَكَّةَ وَالْمَدِينَةَ وَلَيْسَ نَقْبٌ مِنْ أَنْقَابِهَا إِلَّا عَلَيْهِ

هغه به دجال برباد نه کړي مگر مدينه او مکه، ددې په لارو يا دروازو به صف تړلي ملائکي وي

الْمَلَائِكَةُ صَافِّينَ يَحْرُسُونَهَا فَيَنْزِلُ بِالسِّبْخَةِ فَتَرْجُفُ الْمَدِينَةُ بِأَهْلِهَا

چي د ساتونکو فرض به سرته رسوي ، دجال به د مدينې پر يوه بنيرنه ځکه کښته سي او مدينه به سره د خپلو اوسيدونکو

ثَلَاثَ رَجَفَاتٍ فَيَخْرُجُ إِلَيْهِ كُلُّ كَافِرٍ وَمُنَافِقٍ . متفق عليه .

درې واره و ښوري او هر هغه څوک به د مدينې څخه ووځي کوم چي کافر او منافق وي او د جال ته به ولاړ سي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۹۵، رقم: ۱۸۸۱، ومسلم في الصحيح ۴\۲۶۶۵.

**د لغاتو حل**: السبخة: موضع قريب من المدينة.

## د اهل مدينه سره د مکر او چم کوونکو سزا

﴿۲۶۲۳﴾: وَعَنْ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَكِيدُ أَهْلَ الْمَدِينَةِ أَحَدٌ إِلَّا انْمَاعَ كَمَا يَنْمَاعُ الْمِلْحُ فِي الْمَاءِ . متفق عليه .

د حضرت سعد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د مدينې د اوسيدونکو سره چم او مکر کوي هغه به داسي ويلي سي لکه څرنگه چي مالگه په اوبو کي ويلي کيږي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۹۴، رقم: ۱۸۷۷، ومسلم ۲\۱۰۰۸، رقم: ۴۹۴-۱۳۷۸.

**د لغاتو حل**: انماع: اى ذاب وهلك.

**تشريح**: د اسلام په تاريخ کي د بدترين کس يزيد دا حال سو چي هغه د حره د واقعې څخه وروسته د دق او سل په ناروغۍ کي په ويلي کېدو سره مړ سو .

## د مديني سره د رسول الله ﷺ محبت

﴿۲۶۲۴﴾: وَعَنْ اَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ إِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ فَنَظَرَ إِلَى جُدُرَاتِ الْمَدِينَةِ أَوْضَعَ رَاحِلَتَهُ وَإِنْ كَانَ عَلَى دَابَّةٍ حَرَّكَهَا مِنْ حُبِّهَا. رواه البخاري.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي كله به رسول الله ﷺ د سفر څخه ستون سو او د مديني پر ديوالو به يې نظر و لګېدئ نو خپل اوښ به يې ځغلوئ او كه پر آس، غاتره يا بل شي به سپور وو نو هغه ته به يې په تلوار سره حركت وركوي او دا له دې كبله چي د رسول الله ﷺ د مديني سره مينه وه. بخاري.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۹۸، رقم: ۱۸۸۶،

## دأحد د غره فضيلت

﴿۲۶۲۵﴾: وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ طَلَعَ لَهُ أُحُدٌ فَقَالَ هَذَا جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَنُحِبُّهُ اللَّهُمَّ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ حَرَّمَ مَكَّةَ وَإِنِّي أُحَرِّمُ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا. متفق عليه.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي كله د أحد غر د رسول الله ﷺ مخته راغلئ نو رسول الله ﷺ وفرمايل: دا غر زموږ سره مينه لري او موږ هم دده سره مينه لرو، اي الله! ابراهيم عليه السلام مكه حرم جوړه كړه او زه د مديني دواړه طرفه حرم جوړوم. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۶\۸۳، رقم: ۲۸۸۹، ومسلم ۲\۹۹۳، رقم: ۴۶۲-۱۳۶۵.

**تشريح**: دغه غر زموږ سره مينه لري، دغه جمله بېله شكه پر خپل ظاهري معنى محمول ده ځكه الله تعالى په جماداتو كي هم د هغوئ د حال، علم، فهم، ميني او عداوت سره سم په خاصه توګه د انبياء او په خاصه توګه د رسول الله ﷺ مينه پيدا كړې ده.

او بل دا چي الله تعالى د چا دوست سي نو ټول شيان د هغه دوستان سي ځكه هر شى د الله تعالى مخلوق او د هغه تابعدار دى، د رسول الله ﷺ د بېلوالي په وجه د خرما د درختي د ژړا واقعه د دغه دعوې څرګند دليل دى.

واني احرم ما بين لابتيها: ددې مطلب دادى كوم چي په ترجمه كي ظاهر سوى دى چي زه دغه د مځكي ټوټه په كوم كي چي مدينه ده د قدر وړ او د تعظيم وړ ګرځوم، ددغه جملې څخه دا مراد نه دى چي د مكې مكرمې په ډول مدينه هم په دغه معنى حرم دى چي د هغه درختي

پرېکول او په هغه کي ښکار کول او داسي نور شيان حرام دي.

﴿۲۶۲۶﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُحُدٌ جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَنُحِبُّهُ. رواه البخاري.

د حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د اُحد غر زموږ سره محبت لري او موږ ده سره محبت لرو. بخاري.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۲\ ۳۴۴، رقم: ۱۴۸۲.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د مديني د حرم مسئله

﴿۲۶۲۷﴾: عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ أَبِي عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ رَأَيْتُ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ أَخَذَ

د حضرت سليمان بن ابو عبدالله رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه وليدئ چي

رَجُلًا يَصِيدُ فِي حَرَمِ الْمَدِينَةِ الَّذِي حَرَّمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

هغه يو سړي په مدينه کي په ښکار کولو نيولى وو،

فَسَلَبَهُ ثِيَابَهُ فَجَاءَ مَوَالِيهِ فَكَلَّمُوهُ فِيهِ فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

او د هغه جامې يې راکښته کړي وې بيا د هغه سړي مالک سعد رضي الله عنه ته راغلئ او د هغه سړي يا د هغه د جامو په اړه يې د سعد سره خبري وکړې، سعد ورته وويل: رسول الله ﷺ

وَسَلَّمَ حَرَّمَ هٰذَا الْحَرَمَ وَقَالَ مَنْ أَخَذَ أَحَدًا يَصِيدُ فِيهِ فَلْيَسْلُبْهُ فَلَا أَرُدُّ

دا ځاى حرم ګرځولى دئ او فرمايلي يې دي څوک چي په دې حرم کي په ښکار کولو ونيول سي هغه دي د هغه ښکاري څخه جامې واخلي نو کوم شي چي رسول الله ﷺ ما ته راکړى دئ

عَلَيْكُمْ طُعْمَةً أَطْعَمَنِيهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلٰكِنْ إِنْ شِئْتُمْ دَفَعْتُ إِلَيْكُمْ ثَمَنَهُ. رواه ابوداؤد

زه يې هيڅكله بيرته نه وركوم مگر كه ته غواړې نو زه به دد ې بيه دركړم . ابوداؤد .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۵۲۳، رقم: ۲۰۳۷.

﴿۲۶۲۸﴾: وَعَنْ صَالِحٍ مَوْلًى لِسَعْدٍ أَنَّ سَعْدًا وَجَدَ عَبِيدًا مِنْ عَبِيدِ الْمَدِينَةِ

د حضرت صالح رضي الله عنه چې د حضرت سعد رضي الله عنه آزاد سوی غلام دئ څخه روايت دئ چې سعد د

يَقْطَعُونَ مِنْ شَجَرِ الْمَدِينَةِ فَأَخَذَ مَتَاعَهُمْ وَقَالَ يَعْنِي لِمَوَالِيهِمْ سَمِعْتُ

مدينې په غلامانو كې يو غلام د مدينې پر درخته پرې كولو باندې وليدئ نو د هغه سامان يې واخيستئ او بيا د غلام مالكانو ته يې وويل : ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چې

رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَى أَنْ يُقْطَعَ مِنْ شَجَرِ الْمَدِينَةِ شَيْءٌ

وَقَالَ مَنْ قَطَعَ مِنْهُ شَيْئًا فَلِمَنْ أَخَذَهُ سَلَبُهُ . رواه ابوداؤد .

د مدينې درختې دې نه پرې كيږي او بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چې د مدينې د درختو څخه يو شی پرې كړي نو د هغه سامان د هغه چا دئ څوک چې هغه ونيسي . ابوداؤد

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۵۳۳، رقم: ۲۰۳۸.

**تشريح**: عن صالح مولى لسعد : د سعد رضي الله عنه ازاد سوی غلام صالح وايي ، ددغه جملې پر ځای صحيح جمله داده چې : عن صالح عن مولى لسعد ، صالح د حضرت سعد رضي الله عنه د ازاد سوي غلام څخه روايت كوي يعني د مولى لسعد څخه مخكې لفظ عن يا خو د كاتب په غلطۍ سره نه دی ليكل سوی يا په دې باره كې خپله مصنف څخه سهوه سوې ده ځكه صالح د حضرت سعد رضي الله عنه ازاد سوی غلام نه دی بلكه د توامه ازاد سوی غلام دی او صالح دغه روايت د حضرت سعد رضي الله عنه د ازاد سوی غلام څخه نقل كړی دی .

## په وج كې د ښكار څخه منع

﴿۲۶۲۹﴾: وَعَنِ الزُّبَيْرِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ صَيْدَ وَجٍّ

د حضرت زبير رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : د وج نامي ځای ښكار

وَعِضَاهَهُ حِرْمٌ مُحَرَّمٌ لِلَّهِ. رواه ابوداؤد و قال محي السنة وج ذكروا انها

من ناحية الطائف و قال الخطابي انه بدل انها .

او د هغه ازغني درختي په حرم كي د الله په حكم سره حرامي كړل سوي دي ، ابوداؤد ، د امام محي السنة بيان دئ چي وج د يو ځای نوم دئ چي د طائف په لور واقع دئ ، خطابي د انها پر ځای انه ويلي دي .

**تخريج** : ابوداود في السنن ۲\۵۲۸، رقم: ۲۰۳۲.

**د لغاتو حل** : عضاهه: ای اشجار شوكة.

**تشريح** : علماء كرام وايي چي د وج په ځای كي د ښكار وغيره حرمت د حمی په توګه وو (حمی هغه څر ځای ته وايي چي په هغه كي د نورو څارويو د څرولو څخه منع وي) ، د وج په ځای كي به د غازيانو د آسونو لپاره وابنه وغيره منع كيدل ځكه په دغه ځای كي ښكار كول يا د هغه ځای څخه درختي پريكول منع وه ، د حديث مطلب دا نه دی چي د وج حرمت د حرم په توګه وو او كه چيري دغه حرمت د حرم په توګه وي نو بيا به دا وويل سي چي د دغه حرمت تعلق د يوې خاصي زمانې سره وو چي وروسته منسوخ سوی دی .

امام شافعي رحمة الله عليه د دې قائل دی چي په وج كي دي ښكار نه كيږي او نه دي د هغه ځای څخه درختي وغيره پرې كيږي مګر بيا هم هغه د دغه شيانو د كولو په وجه كفاره نه ده ذكر كړې .

## په مدينه منوره كي د مړ كيدو سعادت

﴿۲۶۳۰﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اسْتَطَاعَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د دې توان لري

أَنْ يَمُوتَ بِالْمَدِينَةِ فَلْيَمُتْ بِهَا فَإِنِّي أَشْفَعُ لِمَنْ يَمُوتُ بِهَا. رواه احمد والترمذي و قال هذا حديث حسن صحيح غريب .

چي په مدينه كي مړ سي نو هغه ته پكار دي چي همدلته مړ سي ځكه زه به د هغه چا شفاعت كوم چي په مدينه كي مړ سي . احمد او ترمذي ، امام ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح غريب دئ .

**تخريج** : احمد في المسند ۲\۷۴، والترمذي ۵\۶۷۶، رقم: ۲۹۱۷.

**تشريح** : د حديث د اولي برخي مطلب دا دی چي كوم څوک توان ولري چي په مدينه كي تر اخره وخته پوري پاته سي نو هغه ته پكار دي چي هغه په مدينه كي پاته سي تر دې چي هغه ته مرګ په

دغه مقدس ښار کي واقع سي او زه د هغه شفاعت وکړم په دې توګه که هغه ګناه کار وي نو زه به د هغه لپاره بخښنه وغواړم او که هغه نیک وي نو د هغه درجې به لوړي سي.

دلته د شفاعت څخه مراد هغه خاص شفاعت دی کوم چي یوازي په مدینه کي د اوسیدونکو لپاره تر لاسه دی او بل چا ته تر لاسه نه دی البته د رسول الله ﷺ شفاعت به د هر مسلمان لپاره عام وي نو غوره داده چي د چا عمر زیات سي یا د کشف وغیره په ذریعه ورته معلومه سي چي د هغه د مرګ وخت نژدې دی نو هغه دي مدینې منورې ته ولاړ سي چي هلته د مړکېدو په وجه د رسول الله ﷺ د شفاعت د سعادت حقدار سي، د حضرت عمر رضي الله عنه څو مره ښه دعاء ده:

اللهم ارزقني شهادة في سبيلک واجعل موتي ببلد رسولک.

اې الله! زما په خپل لار کي شهادت په برخه کړې او د خپل رسول ﷺ په ښار کي ما ته مرګ راکړې. الله تعالی دي زموږ او ستاسو ټولو دغه خوشبختي په برخه کړي. آمین.

## مدینه به تر ټولو ښارو وروسته خرابه سي

﴿۲۶۳۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ آخِرُ قَرْيَةٍ مِنْ قُرَى الْإِسْلَامِ خَرَابًا الْمَدِينَةُ. رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن غريب.

حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د اسلام په کلیو کي چي کوم کلي خرابیږي په هغو کي به تر ټولو آخر د مدینې ښار وي. ترمذي، دا حدیث حسن غریب دئ.

**تخریج**: الترمذي ۵\۶۷۶، رقم: ۳۹۱۹.

**تشریح**: مطلب دادی چي کله قیامت نژدې سي نو ټول ښارونه به وران سي او په هغه کي مدینه منوره به د ټولو په پای کي ورانه سي یعني مدینې منورې ته دغه برکت د رسول الله ﷺ په وجه حاصل سوی دی.

## د رسول الله ﷺ د هجرت لپاره د مدینې تعین

﴿۲۶۳۲﴾: وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ

د حضرت جریر بن عبد الله رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی ما ته

اللّٰهَ أَوْحَى إِلَيَّ أَيَّ هٰؤُلَاءِ الثَّلَاثَةِ نَزَلْتَ فَهِيَ دَارُ هِجْرَتِكَ الْمَدِينَةَ أَوِ الْبَحْرَيْنِ

أَوْ قِنَّسْرِينَ . رواه الترمذي .

وحي راليږلې ده چي په دې درو ښارو کي چي ته کوم ښار ته هجرت کوې هغه به ستا د هجرت کور وي يعني مدينه، بحرين او قنسرين . ترمذي.

**تخريج**: الترمذي ۵\٦٧٨، رقم: ۳۹۲۳.

**تشريح**: بحرين د اوسني جغفرافيايي نقشې سره سم د هغه جزيرو د مجموعې نوم دی کوم چي د خليج غربي د جنوب مغربي په کونج کي واقع دي ، په دغه جزيرو کي تر ټولو لويه جزيره د منامه جزيره ده چي د هغه دوهم نوم بحرين هم دی، ددغه جزيرې په نامه هيواد ته بحرين وايي مګر په حديث شريف او د تاريخ په کتابو کي د بحرين لفظ د هغه سيمي په اړه راغلی دي کوم چي جزيرة العرب پر مشرقي ساحل باندي د خليج بصرې څخه تر قطر او عمان پوري خپور سوی دی او د اوسني بحرين په مغرب کي واقع دی، دغه سيمي ته اوس احساء ويل کيږي نو دلته په حديث کي د بحرين څخه مراد هغه سيمه ده چي د هغه نوم اوس احساء دی .

قنسرين د شام د هيود د يو ښار نوم دی، په هر حال د رسول الله ﷺ د ارشاد خلاصه داده چي الله تعالی ما ته اختيار راکړی دی چي په دغه درو ښارو کي د يو ښار په باره کي ستا خواهش وي چي د مکې څخه د هجرت کولو وروسته هلته ولاړ سې او هغه ښار خپل هستوګن ځای وګرځوې مګر په تاريخ مدينه کي کي دا ليکلي دي که څه هم په شروع کي رسول الله ﷺ ته په درو ښارو کي د يو ښار د اوسيدو اختيار ورکړل سوی وو مګر په آخر کي مدينه و ټاکل سوه نو رسول الله ﷺ د مکې څخه په هجرت کولو سره مدينې منورې ته تشريف راوړ .

## اَلْفَصْلُ الثالث (دريم فصل)

### د دجال څخه د مدينې منورې حفاظت

﴿۲٦۳۳﴾: عَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ لَا يَدْخُلُ الْمَدِيْنَةَ رُعْبُ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ لَهَا يَوْمَئِذٍ سَبْعَةُ أَبْوَابٍ عَلَى كُلِّ بَابٍ مَلَكَانِ . رواه البخاري.

د حضرت ابوبکرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د دجال بيره به مدينې ته نه ننوزي او په هغه ورځ (چي دجال راځي) د مدينې به اووه دروازې وي پر هره دروازه به دوې ملائکي د ساتني لپاره ټاکل سوي وي . بخاري.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\ ۹۵، رقم: ۱۸۷۹.

## د مديني منورې د بركت لپاره د رسول الله ﷺ دعاء

﴿۲۶۳۴﴾: وَعَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللّٰهُمَّ اجْعَلْ بِالْمَدِينَةِ ضِعْفَيْ مَا جَعَلْتَ بِمَكَّةَ مِنَ الْبَرَكَةِ. متفق عليه.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د مدينې لپاره دا دعاء وفرمايل: اې الله! مدينې ته د هغه بركت دوه برابر بركت وركړې كوم چي تا مكې ته وركړى دئ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\ ۹۷، رقم: ۱۸۸۵.

**تشريح**: د دعاء مطلب دادى چي اې الله! د مكې مكرمې د شان او شوكت په نسبت مدينې منورې ته دوه برابر شان او شوكت وركړې، دغه دعاء پر مدينه باندي د مكې د فضيلت خلاف په دې اعتبار نه ده چي په مكه كي د نيكيو زياتوب د هغه د افضل كېدو تر ټولو لويه وجه ترجيح ده.

## په حرمينو كي د اوسيدو سعادت

﴿۲۶۳۵﴾: وَعَنْ رَّجُلٍ مِّنْ آلِ الْخَطَّابِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د خطاب د كورنۍ څخه يو سړى روايت كوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَنْ زَارَنِيْ مُتَعَمِّدًا كَانَ فِيْ جِوَارِيْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَنْ سَكَنَ الْمَدِيْنَةَ وَصَبَرَ

څوك چي اراده وكړي چي زما زيارت وكړي نو د قيامت په ورځ به هغه زما همسايه وي او زما په پناه كي به وي او څوك چي په مدينه كي استوګن سو

عَلٰى بَلَائِهَا كُنْتُ لَهُ شَهِيْدًا وَّشَفِيْعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَنْ مَاتَ فِيْ أَحَدِ الْحَرَمَيْنِ بَعَثَهُ اللّٰهُ مِنَ الْآمِنِيْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

او د هغې پر ستونزو يې صبر وكړ نو د قيامت په ورځ به زه د هغه شاهد او شفاعت كونكى يم، او څوك چي د دواړو حرمو څخه (يعني مكه او مدينه) كي په يوه كي مړ سي الله تعالى به يې د قيامت په ورځ د امن تر لاسه كونكو څخه را پورته كړي. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۳\ ۴۸۸، رقم: ۴۱۵۲.

**تشریح**: څوک چي په قصد سره زما زیارت وکړي: ددې مطلب دادی چي کوم څوک د تجارت یا ځان ښوونې یا داسې بل دنیوي مقصد لپاره نه بلکه د ثواب تر لاسه کولو سره زما زیارت ته راسي نو هغه ته ذکر سوی سعادت تر لاسه کیږي.

## د روضې اطهر د زیارت فضیلت

﴿۲۶۳۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ مَرْفُوْعًا مَنْ حَجَّ فَزَارَ قَبْرِيْ بَعْدَ مَوْتِيْ كَانَ كَمَنْ زَارَنِيْ فِيْ حَيَاتِيْ. رواهما البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه مرفوعا روایت دئ چي (رسول الله ﷺ وفرمایل) چا چي حج وکړ او بیا زما د مرګ وروسته زما د قبر زیارت یې وکړ نو هغه به د هغه چا په ډول وي چي په ژوند کي یې زما زیارت وکړ. دواړه حدیثونه بیهقي په شعب الایمان کي روایت کړي دي.

**تخریج**: البیهقي في شعب الایمان ۳\۴۸۹، رقم: ۴۱۵۴.

**تشریح**: د رسول الله ﷺ د روضې زیارت کونکي د رسول الله ﷺ د زیارت کونکي په ډول ځکه دی چي رسول الله ﷺ حیات النبي دی، دا حدیث پر دې خبره دلالت کوي چي د روضې زیارت دې د حج د افعالو څخه د فارغه کېدو وروسته وکړل سي.

په یو بل روایت کي نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل کوم څوک چي زما د قبر زیارت وکړي نو د هغه لپاره زما شفاعت واجب او لازم دی، او په یوه روایت کي دي چي کوم څوک حج وکړي او زما زیارت ونه کړي نو هغه پر ما ظلم وکړ، همدارنګه په یوه روایت کي نقل سوي دي چي کوم څوک د مکې (یعني حج) قصد وکړي او زما زیارت او زما د مسجد د شرف د حاضرۍ قصد وکړي نو د هغه لپاره دوه قبول سوي حجونه لیکل کیږي.

## د مدینې منورې سره د رسول الله ﷺ تعلق

﴿۲۶۳۷﴾: وَعَنْ يَحْيَ بْنِ سَعِيْدٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ جَالِسًا

د حضرت یحیی بن سعید رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ تشریف فرما وو او په مدینه

وَقَبْرٌ يُحْفَرُ بِالْمَدِيْنَةِ فَاطَّلَعَ رَجُلٌ فِي الْقَبْرِ فَقَالَ بِئْسَ مَضْجَعُ الْمُؤْمِنِ

کي یو قبر کنېنل کېدئ، یو سړي په قبر کي وکتل او وه یې ویل: قبر د مؤمن ډېر خراب د خوب ځای دئ،

فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِئْسَ مَا قُلْتَ فَقَالَ الرَّجُلُ إِنِّي لَمْ أُرِدْ

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ډيره بده خبره دې وکړه، هغه سړي وويل زما مطلب دا نه وه

هَذَا إِنَّمَا أَرَدْتُ الْقَتْلَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا

بلکه زما مطلب دا وو چې د الله جل جلاله په لار کې د شهيد کېدو څخه غوره شی نسته (يعني په کور کې مرګ د مؤمن لپاره خراب دئ) رسول الله ﷺ وفرمايل: د

مِثْلَ الْقَتْلِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ مَا عَلَى الْأَرْضِ بُقْعَةٌ أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ يَكُونَ قَبْرِي بِهَا مِنْهَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ. رواه مالك مرسلا.

الله جل جلاله په لار کې د شهيد کېدو سره سم هيڅ شی نسته، بيا يې وفرمايل: د مځکې هيڅ ټوټه ما ته دومره خوښه نه ده چې هلته زما قبر وي څومره چې مدينه ده، رسول الله ﷺ درې واره دا الفاظ وفرمايل: . مالک مرسلا

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۲\۴۶۲، رقم: ۳۳.

**تشريح**: خراب خو هغه څه دي کوم چې تا وويل: ددې مطلب دادی چې ستا دغه خبره خرابه او غلطه ده چې قبر د مؤمن لپاره بد ځای دی ځکه چې تا د مؤمن قبر ته خراب ويلي دي حالانکه د مؤمن قبر د جنت د باغو څخه يو باغ دی نو هغه سړي د خپل خبرې وضاحت وکړ چې زما مقصد قبر څخه مطلق د مؤمن خراب ويل نه وه بلکه زما مطلب دا وو چې د الله تعالی په لاره کې شهيد کېدل د کور تر مرګ غوره دي، رسول الله ﷺ د هغه دغه مقصد خوښ کړ او تصديق يې وکړ چې واقعي د الله تعالی په لار کې د شهيد کېدو برابر هيڅ شی نه سته، بيا رسول الله ﷺ د خپل قبر لپاره د مدينې منورې د مځکې په خوښولو سره د هغه سړي فضيلت ظاهر کړ کوم چې په مدينه کې مړ سي او په مدينه کې دفن کړل سي که هغه شهيد وي او که غير شهيد.

## په وادي عتيق کې د لمانځه فضيلت

﴿۲۶۳۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چې عمر بن خطاب رضي الله عنه وويل: ما د نبي کريم ﷺ څخه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ بِوَادِ الْعَقِيقِ يَقُولُ أَتَانِي اللَّيْلَةَ آتٍ مِنْ رَبِّي فَقَالَ صَلِّ فِي

په عتيق نامي شېله کي دا واوريدل چي نن شپه يو راتلونکي (ملائکه) زما د پروردګار له

هٰذَا الْوَادِ الْمُبَارَكِ وَقُلْ عُمْرَةً فِي حَجَّةٍ. وَفِي رِوَايَةٍ وَّقُلْ عُمْرَةٌ وَّحَجَّةٌ .رواه البخاري

لوري راغلل او ويل يې په دې مبارک شېله کي لمونځ وکړه او ووايه عمره په حج کي ده، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي ووايه عمره او حج (يعني ددې ځای د لمانځه ثواب د هغه عمرې سره سم دئ چي د حج سره وکړل سي يا عمره او حج دواړه) برابر دي. بخاري.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳\۳۹۲، رقم: ۱۵۳۴.

**تشريح**: مخکي په دې پوه سئ چي د عربي قواعدو سره سم لفظ د قول د فعل لپاره هم استعماليږي نو ددغه حديث د آخري جملې: قل عمرة في حجة: معنی داده چي دغه لمونځ هغه عمره و شمېره کوم چي د حج سره کيږي، يعني ددغه جملې په ذريعه په وادي عقيق کي د لمانځه فضيلت بيانول مقصد دي چي په وادي عقيق کي کوم لمونځ وکړل سي د هغه ثواب د هغه عمرې برابر دی کوم چي د حج سره کيږي، همدارنګه د دوهم روايت د الفاظو (وقل عمرة وحجة) مطلب دادی چي په وادي عقيق کي لمونځ کول د عمرې او حج برابر دی.

## د مدينې منورې يو څو نور فضائل

علماء کرامو ليکلي دي چي حکيم مطلق الله جل جلاله ددغه پاک ښار په پاکه خاوره کي او د هغه په ميوو کي د شفاء تاثير ايښی دی، په اکثرو حديثو کي منقول دي چي د مدينې منورې په غبار کي د هر ډول ناروغۍ شفاء ده، په ځينو نورو طريقو منقول حديثو کي دي چي د مدينې منورې په غبار کي د جذام او برص د ناروغيو څخه شفاء ده، رسول الله ﷺ خپل ځينو صحابه کرامو ته حکم کړی وو چي هغوئ د تبي علاج په دغه پاکه خاوره سره کوي نو نه يوازي په مدينه کي پر دغه حکم عمل کيږي بلکه ددغه پاکي خاورې د دواء په توګه د ورلو په اړه ډېر آثار منقول دي او ځيني علماؤ خو ددغه علاج تجربه هم کړې ده، د شيخ مجدد الدين فيروز ابادي رحمة الله عليه بيان دی چي ما خپله ددې تجربه کړې ده چي زما يو خدمتګار د يوه کال څخه په تبه کي اخته وو ما د مدينې منورې لږ پاکه خاوره په اوبو کي په اچولو سره په هغه خدمتګار و څښنل او هغه په هغه ورځ روغ سو.

شيخ عبد الحق رحمة الله عليه فرمايي چي د مدينې منورې په پاکه خاوره سره د علاج کولو ما ته هم تجربه سوې ده هغه داسي چي په کومو ورځو کي زه په مدينه منوره کي مقيم وم زما په پښو کي يو سخته ناروغي پيدا سوه چي د هغه په باره کي د ټولو طبيبانو دا فيصله وه چي ددې آخري

درجه مرګ دی او روغتیا مشکل ده ما په دغه پاکه خاوره سره علاج وکړ په لږ ورځو کې په ډیرې اسانۍ سره مي روغتیا تر لاسه کړه ، دا ډول خاصیتونه د دغه ځای په خرما کي هم منقول دي ، په صحیح حدیث کي راغلي دي چي کوم څوک اووه عجوه (د مدینې منورې د خرما یو ډول دی) په نهاره وخوري نو هیڅ زهر او جادو به پر هغه اثر نه کوي .

د مدینې منورې د فضائلو په لړۍ کي دا خبره هم د فهم وړ ده چي ددغه مقدس ښار د عظمت او بزرګۍ په وجه نبي کریم ﷺ خلکو ته ددغه ښار د اوسیدونکو د تعظیم او تکریم وصیت کړی دی چي زما د امت خلکو ته پکار دي چي هغوئ زما د همسایګانو احترام همېشه وساتي د هغوئ د حقوقو په ادا کولو کي کوتاهي ونه کړي که د هغوئ څخه یو لغزش وسي نو مؤاخذه دي ځیني نه کوي او تر هغه وخته دي د هغوئ خطاوي معافوي تر څو چي هغوئ د کبائرو څخه پرهیز وکړي (یعني که چیري هغوئ په کبائرو ګناهو کي اخته سي نو بیا د کبائرو د معافۍ سوال نه پیدا کیږي بلکه د الله تعالی او د بندګانو د حقوق په اړه د شریعت چي کوم حکم وي هغه به جاري کیږي ) ، په یاد لرئ کوم څوک چي د هغوئ د احترام او حرمت همېشه خیال ساتي زه به په قیامت کي د هغه شاهدي او شفاعت کونکی یم، ځکه چي د خلکو یعني د مدینې منورې د انصارو د رسول الله ﷺ او د مهاجرینو او د اسلام خدمت او هر ډول مرسته کړې ده چي اسلام په ټوله نړۍ کي خپور سو نو د دوئ ډېر عزت او احترام پکار دی ، الله پاک دي موږ ټولو ته توفیق راکړي چي د مدینې منورې د خلکو هر ډول خدمت او احترام وکړو ، آمین، او کوم څوک چي د مدینې منورې د اوسیدونکو احترام او عزت نه کوي په هغوئ به د طینة الخبال سیال وڅښښل سي او واضحه دي وي چي طینة الخبال د دوږخ د یو حوض نوم دی چي په هغه کي د دوږخیانو نو وونه جمع کیږي .

په یوه روایت کي منقول دي چي یوه ورځ رسول الله ﷺ د دعاء لپاره لاس پورته کړی او داسي یې وویل اې الله ! کوم څوک چي زما د ښار او زما د ښار د اوسیدونکو سره د بدۍ اراده وکړي نو هغه ژر هلاک کړې او د رسول الله ﷺ ارشاد دی چي کوم څوک د مدینې اوسیدونکي بیروي نو هغه زه و بیرولم ، د نسائي په روایت کي دي چي کوم څوک مدینه د خپل ظلم په بیره کي اخته کړي هغه دي الله تعالی په خوف کي اخته کړي او پر هغه دي د الله تعالی، ملائکو او ټولو خلکو لعنت وي ، او په یوه روایت کي دا الفاظ هم دي چي د داسي سړي هیڅ عمل به د الله تعالی په دربار کي مقبول نه وي که فرض وي او که نفل .

## د حج يو څو مسائل او د حج د ادا کولو طريقه

که څه هم د حديثو په تشريح کي د حج اکثر مسائل بيان سوي دي مګر اوس د کتاب الحج په پای کي مناسب دي چي يو څو نور مسائل په يو ځای کولو سره بيان کړل سي او د حج د ادا کولو طريقه هم بيان کړل سي.

په حج کي څلور شيان فرض دي : ۱: احرام، ۲: د عرفات په ورځ وقوف عرفات، ۳: طواف زيارت، ۴: په دغه فرضو کي د ترتيب لحاظ ساتل يعني احرام پر وقوف باندي او وقوف پر طواف زيارت باندي مقدم کول.

د حج واجبات دادي : ۱: وقوف مزدلفه، ۲: د صفا او مروه په مينځ کي سعي، ۳: رمي جمار، ۴: د آفاقي لپاره طواف قدوم، ۵: حلق يا تقصير، ۶: احرام د ميقات څخه تړل، ۷: تر لمر لوېدو پوري د عرفات وقوف، ۸: طواف د حجر اسود څخه شروع کول، ځينو علماؤ دې ته سنت ويلي دي، ۹: د طواف شروع د راسته خوا څخه کول، ۱۰: طواف پر پښو باندي کول په شرط ددې چي يو عذر نه وي، ۱۱: طواف په پاکۍ سره کول، ۱۲: په طواف کي د ستر پټول، ۱۳: د سعي شروع د صفا څخه کول په شرط ددې چي يو عذر لاحق نه وي، ۱۴: قارن او متمتع ته پسه يا د هغه په مثل څاروی ذبح کول، ۱۵: د هر اوو شوطو يعني يوه طواف څخه وروسته دوه رکعته لمونځ کول، ۱۶: په رمي، حلق او قربانۍ کي د ترتيب لحاظ ساتل په دې توګه چي مخکي رمي وکړل سي بيا قرباني او بيا حلق او بيا طواف زيارت وکړل سي ، ۱۷: طواف زيارت په ايام نحر کي کول، ۱۸: طواف داسي کول چي حطيم په طواف کي دننه راسي، ۱۹: سعي د طواف څخه وروسته کول، ۲۰: حلق په احرام او ايام نحر کي کول، ۲۱: د عرفات دوقوف څخه وروسته د احرام ممنوعات مثلا جماع وغيره څخه پرهيز او هغه شيان هم چي په واجبات حج کي شامل دي چي د هغه په ترک کولو سره دم لازميږي ، ددغه شيانو څخه پرته نور ټول د حج مستحبات او ادبونه دي.

د غني حج د فقير تر حج غوره دی، د مور او پلار د فرمانبرداری څخه فرض حج خو اولی دی مګر نفل حج اولی نه دی بلکه د مور او پلار فرمانبرداري د نفل حج څخه افضل ده البته د صدقې په باره کي اختلافي قولونه دي چي ځيني خو صدقې ته افضل وايي او ځيني نفل حج ته افضل وايي ، مګر په بزازيه کي دي چي د نفل حج فضيلت ته ترجيح ورکړل سوې ده ځکه چي په حج کي مال هم خرڅ کيږي او بدني مشقت هم دی او په صدقه کي يوازي مال خرڅ کيږي ، په کوم حج کي چي د عرفات وقوف د جمعې په ورځ وي هغه حج پر اوويا حجونو باندي فضيلت لري او

په هغه حج کي د هر سړي ښله واسطې مغفرت کيږي، په دې اړه مختلف قولونه دي چي ايا د حج په وجه کبيره ګناهونه ساقطيږي که څنګه؟ ، ځيني علماء وايي چي ساقط کيږي لکه څرنګه چي يو حربي کافر اسلام قبول کړي نو د هغه ټول ګناهونه ساقط کيږي مګر د ځينو حضراتو قول دادی چي د حج په وجه حقوق الله معاف کيږي مګر د حقوق العباد معافي نه کيږي لکه څرنګه چي يو ذمي کافر اسلام قبول کړي نو د هغه د ذمې څخه حقوق الله ساقط کيږي مګر حقوق العباد نه ساقط کيږي .

قاضي عياض رحمة الله عليه فرمايي چي د ټولو علماؤ پر دې اتفاق دی چي ګناه کبيره يوازي په توبې سره ساقط کيږي (محض د حج په وجه نه ساقط کيږي) او هيڅ يو عالم هم د حج په وجه د پور ساقط کېدو قائل نه دی که د هغه تعلق د الله تعالی سره وي لکه لمونځ، زکوة او داسي نور مګر د پور ادا کول يا دلمانځه په ادا کولو کي د تاخير ګناه ضرور ساقط کيږي ، کوم علماء چي د ګناه کبيره د ساقط کېدو قائل دي د هغوئ مراد هم دادی .

کعبې شريفي ته دننه داخلېدل مستحب دي په شرط ددې چي خپله هغه ته يا بل چا ته د هغه څخه تکليف ونه رسيږي د کعبې شريفې غلاف (پرده) د بني شيبه څخه رانيول جائز نه دي مګر امام يا د هغه د نائب څخه رانيول جائز دي ، د کعبې شريفې غلاف په جامو کي استعمالول جائز دي که څه هم جنب يا حائضه وي، که يو څوک په قتل کولو سره په حرم کي پناه واخلي نو هغه د قصاص په توګه قتل کول تر هغه وخته جائز نه دي تر څو چي هغه په حرم کي وي مګر که چيري قاتل يې په حرم کي قتل کړی وي نو د هغه هم په حرم کي قتل کول جائز دي مګر په کعبې شريفي کي دننه قاتل په دغه صورت کي هم قتلول جائز نه دي کله چي هغه په کعبه شريفه کي دننه قتل کړی وي .

د زمزم په اوبو سره استنجاء کول مکروه دي مګر غسل کول مکروه نه دي . لکه څرنګه چي مکه مکرمه د مدينې منورې څخه افضله ده مګر د مدينې منورې د مځکي هغه ټوټه چي په هغه کي رسول الله ﷺ تشريف فرما دی مطلقا افضل ده تر دې چي د کعبې، عرش او کرسي څخه هم افضله ده . د رسول الله ﷺ د روضې زيارت کول مستحب دي بلکه ځيني علماء وايي چي د هغه چا لپاره واجب دی چي هغه ته فراغت مسير وي ، د فرض حج د ادا کولو په صورت کي حج د روضې د زيارت څخه مخکي کول پکار دي مګر د نفل حج په صورت کي اختيار دی که د حج څخه مخکي يې وکړي او که زيارت مخکي وکړي په شرط ددې چي مدينه منوره په لاره کي نه وي که د مکې په لاره کي مدينه منوره وي نو بيا مخکي د روضې زيارت کول ضروري دي، د

روضې د زيارت سره د مسجد نبوي د زيارت نيت کول هم پکار دي ځکه د رسول اللهﷺ ارشاد دی چي په مسجد نبوي کي د يوه لمونځ کول د مسجد حرام څخه پرته په نورو ټولو مسجدو کي د زرو لمونځو څخه غوره دی .

## د حج د ادا کولو طريقه

د حج د ادا کولو طريقه داده چي کوم خوشبخته ته الله تعالی په خپل فضل او کرم سره د حج د سعادت توفيق ورکړي او هغه د حج اراده وکړي نو هغه ته پکار دي چي خپل نيت صحيح کړي چي د هغه سره سم محض د الله تعالی رضا مندي او د فرض ادا کول مراد وي يو دنيوي غرض يا د ځان ښوونې تصور پکښې نه وي کنه نو ټول محنت به يې ضائع سي، بيا د خپل مور او پلار څخه د اجازې په اخيستلو سره د خپلو ټولو قريبانو او دوستانو څخه رخصت اخيستل او د هغوئ څخه د معافي په اخيستلو سره د خپل هيواد څخه په داسي وخت روان سي چي مکې مکرمې ته د اووم ذي الحجې څخه مخکي ورسيږي، او د اووم تاريخ خطبه واوريدل سي ، کله چي ميقات ته ورسيږي (د پاکستان او هندوستان ميقات يلملم دی) نو احرام دي وتړي ، که چيري مفرد وي نو يوازي د حج او که قارن وي نو د حج او عمرې دواړو او که متمتع وي نو يوازي د عمرې احرام دي وتړي ، مستحب دادي چي د احرام تړلو څخه مخکي د لاسو او پښو نوکان پرې کړي ، د نامه لاندي او د بغلو وېښتان پاک کړي که د سر خريلو عادي وي نو سر دي وخريي کنه نو وېښتان دي سم کړي او هغه دي ږمونځ کړي ، که ښځه ورسره ملګرې وي نو کوروالي دي وکړي بيا دي اودس وکړي يا غسل دي وکړي مګر غسل کول افضل دي ، ددې څخه وروسته د احرام جامه دي واغوندي يعني يو لونګ دي وتړي او يو څادر دي داسي واچوي چي سر يې خلاص وي دغه دواړي جامې که نوي وي نو افضل دي کنه پاکي جامې دي واغوندي ، که د چا سره دوې جامې نه وي نو يوه داسي جامه دي اغوستل هم جائز دي چي په هغه سره ستر پټ کړل سي او بيا دي خوشبويي ولګوي ددې څخه وروسته دي نيت وکړي که د قران اراده يې وي نو داسي دي ووايي : اللهم اني اريد الحج والعمرة فيسر هما لي وتقبلهما مني، که د تمتع اراده يې وي نو داسي دي ووايي : اللهم اني اريد العمرة فيسر ها لي وتقبلها مني، که د افراد اراده يې وي نو داسي دي ووايي : اللهم اني اريد الحج فيسره وتقبله مني، که د نيت پورتني الفاظ په ژبه سره ادا نه کړي بلکه په زړه کي نيت وکړي نو هم جائز دي ، د نيت څخه وروسته دي لبيک ووايي د حج يا عمرې په نيت سره به په لبيک ويلو سره محرم سي ، د

لبیک الفاظ دادي : لبیک اللهم لبیک لبیک لا شریک لک لبیک ان الحمد والنعمة لک والملک لا شریک لک ، په دغه الفاظ، کي دي کمي نه کوي مگر زیاتوب جائز دي، دا الفاظ هم منقول دي چي د هغه په ویلو کي څه حرج نه سته : لبیک وسعدیک والخیر بیدیک لبیک والرغباء الیک والعمل لبیک لبیک اله الخلق لبیک، ددې څخه وروسته په اکثرو وختو کي دي په لوړ آواز سره لبیک وایي په خاصه توګه د لمانځه څخه وروسته که فرض وي لمونځ وي او که نفل ، د سهار په وخت کي په خپلو کي د ملاقات پر وخت ، پر لوړ ځای باندي د ختلو پر وخت، یا پر کښته ځای باندي کښته کېدو پر وخت غرض دا چي د حج سفر د لمانځه په حکم کي دی لکه څرنګه چي په لمانځه کي د هر حالت په تبدیلۍ باندي تکبیر ویل کیږي همدارنګه په دغه سفر کي هم د هر حالت په تبدیلۍ سره لبیک ویل پکار دي ، د احرام تړلو څخه وروسته هغه د هغه ټولو شیانو څخه پرهیز کول ضروري دي کوم چي د احرام په حالت کي منع دي مثلا ګنډلي جامې اغوستل لکه قمیص، کوټ جبه، دست کلې، خولۍ او داسي نور دي نه اغوندي، کومي جامې چي رنګ داره او خوشبوداره وي لکه زعفران وغیره کي رنګ سوي وي هغه دي هم نه استعمالوي، مګر د پریوللو څخه وروسته چي د هغه څخه خوشبویي نه راځي استعمال یې جائز دی ، سر او مخ دي په هیڅ شي سره نه پټوي ، شېږي دي نه وژني د ښځي سره دي نه کوروالي کوي او نه دي هغه شیان کوي کوم چي د جماع باعث جوړیږي مثلا مچه اخیستل، په شهوت سره ښځي ته لاس وروړل یا د هغې په مخکي فحش خبري یا د جماع ذکر کول او داسي نور، د فسق، فجور او د چا سره د جنګ او جګړې څخه دي پرهیز وکړل سي د صحرائي او وحشي حیوانانو ښکار دي نه کوي تر دې چي محرم دي یو ښکار ته اشاره هم کوي او نه دي د ښکار کونکي مرسته کوي، مګر د دریابي حیوانانو مثلا د ماهي ښکار صحیح دي، خوشبویي دي نه استعمالوي ، نوکان دي نه پرېکوي، د سر، ږیري بلکه د ټول بدن وېښتان دي نه کوچني کوي نه دي یې خریي، او نه دي یې کاږي د سر او ږیري وېښتان دي د خطمې څخه پریولي البته محرم غسل کولای سي په حمام کي داخلیدای سي د کور او کجاوې په سایه کي کښېنستلای سي ، همیانۍ (د روپو کڅوړه) تر ملا تړلای سي او د خپل دښمن سره دفاعي جنګ کولای سي د احرام په حالت کي چي د کومو حیوانانو وژل جائز دي او د هغه د وژلو په وجه د جزاء توګه نه دم لازمیږي او نه صدقه هغه دادي : کارګه، تپوس، مار، لړم، مږه، شرموښکۍ، شرموښ، ګیدړه، مچ، میږی، کربوړی، مچ موچۍ، غوماشه، حمله کونکی درنده او تکلیف رسونکی ځناور.

کله چي مکې مکرمې ته نژدې سي نو غسل دي وکړي دا مستحب دی ، بیا په ورځ کي یو

وخت دي د باب المعلی څخه مکې مکرمې ته داخل سي او په خپل هستوګن ځای کي د خپل سامان په اېښودو سره تر ټولو مخکي دي د مسجد حرام زيارت وکړي ، مستحب دادي چي په مسجد حرام کي په لبيک ويلو سره او د باب السلام څخه داخل سي او هغه وخت دي ډېر د خشوع او خضوع حالت پر ځان خپور کړي او ددغه مقدم او باعظمته مقام د عظمت او جلال تصور دي په زړه کي راولي او د کعبې شريفې په نظر لګېدو سره څه چي وغواړي د خپل پروردګار څخه دي يې وغواړي بيا دي په تکبير او تهليل کولو سره حمد او صلوة ويلو سره د حجر اسود مخته راسي او هغه دي مچ کړي او د مچولو پر وخت دي خپل دواړه لاسونه داسي پورته کړي لکه څرنګه چي د تکبير تحريمه پر وخت پورته کيږي ، که د رش په وجه حجر اسود مچولای نه سي نو حجر اسود ته په لاس وروړلو سره دي مچ کړل سي که ده هم ممکن نه وي نو په يو لرګي سره دي حجر اسود مسحه کړي او هغه دي مچ کړي او که دا هم ممکن نه وي نو بيا د دواړو لاسو په ورغوو سره دي حجر اسود ته اشاره کوي او هغه دي مچ کړي، د حجر اسود د استلام څخه وروسته دي د حجر اسود د خوا څخه د خپل راسته خوا څخه طواف قدوم شروع کړي ، په طواف کي اووه چکره (شوطه) کيږي او هر شوط دي پر حجر اسود باندي ختم کړي او د هر شوط ختمولو څخه وروسته دي په پورتنۍ طريقې سره د حجر اسود استلام او تکبير او تهليل وکړي ، په طواف کي دي مقيم هم شامل کړي په طواف کي دي اضطباع وکړي او په اولو درو چکرونو کي دي رمل وکړي او په هر چکر کي دي د رکن يماني استلام هم وکړي په دغه استلام کي د هغه مچول نه دي پکار ، د طواف کولو څخه وروسته دوه رکعته د طواف لمونځ دي مقام ابراهيم ته نژدې وکړي .

دا لمونځ د امام ابو حنيفة رحمه الله په نزد واجب دی، که چيري د رش په وجه دغه لمونځ مقام ابراهيم ته نژدې ممکن نه وي نو بيا په مسجد حرام کي هر چيري چي وغواړي هلته دي لمونځ وکړي ددغه لمانځه په اول رکعت کي د سورة فاتحې څخه وروسته قل يا ايها الکافرون او په دوهم رکعت کي قل هو الله احد ووايي ، او په دعاء کي چي څه غواړي د الله تعالی څخه دي يې وغواړي ددې څخه وروسته دي د زمزم څاه ته راسي او د زمزم اوبه دي په ماړه نس وڅښي ، بيا دي مقام ملتزم ته راسي او د حجر اسود استلام دي وکړي او حمد او ثناء دي ووايي او تکبير او تهليل دي ووايي او ددې څخه وروسته دي د صفا او مروه په مينځ کي سعي وکړي، د مفرد لپاره غوره داده چي هغه د طواف زيارت څخه وروسته سعي وکړي مګر که د طواف قدوم څخه وروسته يې وکړي نو څه پروا نسته .

**د سعي طريقه:** د سعي طريقه داده چي د مسجد حرام څخه په وتلو سره صفاء ته راسي او کله چي صفا ته وخيژي نو بيت الله شريفي ته دي مخامخ ودريږي او تکبير او تهليل دي وکړي درود شريف دي ووايي او د لاسو په پورته کولو سره دي روان سي کله چي وادي بطن ته ورسيږي نو د ميلين اخضرين په مينځ کي دي تيز تيز ولاړ سي او کله چي مروه ته وخيژي نو هلته دي تکبير او تهليل وکړي کوم چي په صفا کي يې کړي دي همدارنګه د صفا او مروه په مينځ کي دي اووه چکره پوره کړي د هر چکر شروع دي د صفا څخه کوي او ختم دي پر مروه باندي کوي او په هر چکر کي دي د ميلين اخضرين په مينځ کي تېز تيز ځي دا خبره دي په ذهن کي وي چي د سعي څخه مخکي طواف کول ضروري دي که يو څوک د طواف څخه مخکي سعي وکړي نو د هغه لپاره ضروري دي چي د طواف څخه وروسته بيا دوهم وار سعي وکړي ، دادي هم معلومه وي چي د سعي، وقوف عرفات، وقوف مزدلفه او رمي جمار لپاره پاکي شرط نه ده مګر افضل ده او حال دا چي د طواف لپاره طهارت شرط دی او د طواف او سعي پر وخت خبري کول مکروه دي ، کله چي د سعي څخه فارغ سي نو مسجد حرام ته په تلو سره دوه رکعته لمونځ دي وکړي چي کول يې غوره دي مګر واجب نه دي، ددې څخه وروسته دي په مکه کي تم سي او په دغه دوران کي چي څومره نفلي طوافونه کولای سي هغه دي وکړي مګر د نفل طواف په مينځ کي رمل او د هغه څخه وروسته سعي دي نه کوي ، بيا په اووم د ذي الحجې دي په مسجد حرام کي خطبه واوري په دغه خطبه کي چي د ماپښين د لمانځه څخه وروسته کيږي امام د حج احکام او مسائل بيانوي ، بيا که چيري احرام يې خلاص کړی وي نو پر اتم د ذي الحجې دي د حج د احرام په تړلو سره د لمر ختلو څخه وروسته منی ته روان سي .

که د ماپښين د لمانځه په کولو سره منی ته ورسيږي نو څه پروا نه سته شپه دي په منی کي تېره کړي او د عرفات په ورځ يعني پر نهم تاريخ دي د سهار لمونځ په اول وخت کي وکړي او د لمر ختلو څخه وروسته دي عرفات ته ولاړ سي که څوک پر اتم تاريخ منی ته ولاړ نه سي بلکه پر نهم تاريخ عرفات ته ورسيږي نو دا هم جائز دي مګر د سنت خلاف کار دی ، په عرفات کي د بطن عرنه څخه پرته کوم ځای چي غواړي تم دي سي مګر جبل عرفات ته نژدې تم کېدل افضل دي بيا په هغه ورځ د لمر د زوال څخه وروسته دي غسل وکړي (چي سنت دی) او په عرفات کي دي وقوف وکړي (چي فرض دی او د هغه څخه پرته حج نه صحيح کيږي) ، امام چي کومه خطبه وايي هغه دي واوري او د امام سره د احرام د شرط پرته د ماپښين او مازديګر لمونځونه دي په

یوه وخت کي وکړي او د جبل رحمت سره په دربېدو په ډېر خشوع او خضوع سره تکبیر، تهلیل او تسبیح وکړي د الله تعالی ثناء دي ووایي پر رسول الله ﷺ دي درود شریف ووایي او د خپل ځان او ټولو خپلوانو او دوستانو لپاره دي استغفار وکړي او د ټولو دیني او دنیوي مقاصدو لپاره دي دعاء وغواړي، بیا د لمر لوېدو څخه وروسته دي د امام سره مزدلفې ته روان سي او په استغفار، لبیک، حمد، صلوة او اذکارو کي دي بوخت اوسي، مزدلفې ته په رسیدو سره دي د امام سره د ماښام او ماخستن لمونځ یو ځای وکړي او د شپې دي هلته پاته سي ځکه چي د شپې هلته پاته کېدل واجب دي او ټوله شپه په لمانځه، تلاوت، ذکر او دعاء کي بوخت کېدل مستحب دي، کله چي سهار سي نو پر لسم د ذي الحجې دي د سهار د لمونځ په اول وخت کي وکړي او هلته دي وقوف وکړي په مزدلفه کي د بطن محسر څخه پرته چیري چي وغواړي وقوف کولای سي د دغه وقوف په حالت کي په ډېري عاجزۍ او زارۍ سره خپل دیني او دنیوي مقاصدو لپاره د الله تعالی څخه دعاء غوښتل پکار دي،

د لمر ختلو څخه لږ مخکي دي وقوف ختم کړي بیا چي کله ښه رڼا سي نو د لمر ختلو څخه مخکي منی ته په رسیدو سره دي جمرة العقبه په اووه ډبرو وولي او د اولي ډبري ویشتلو پر وخت دي تلبیه موقوف کړي، ددې څخه وروسته دي قرباني وکړي بیا دي سر وخریي یا وېښتان دي کوچني کړي ددې څخه وروسته هغه ټول شیان چي د احرام په حالت کي منع وه پرته د رفث څخه جائز کیږي بیا د اختر لمونځ په منی کي په کولو سره په هغه ورځ دي مکې ته راسي او طواف زیارت دي وکړي د دغه طواف څخه وروسته رفث هم جائز کیږي، د طواف زیارت څخه وروسته دي بېرته منی ته راسي او په شپه کي دي هلته قیام وکړي پر یوولسم تاریخ دي د درو سره جمراتو رمي وکړي په دې توګه چي اول هغه جمره په اوو ډبرو وولي کوم چي مسجد خیف ته نژدې ده او هغه ته جمره اولی وایي ددې څخه وروسته دي هغه جمره چي هغه ته نژدې ده او هغه ته جمره وسطی وایي په اوو ډبرو وولي بیا دي په سپرېدو سره یا پر پښو باندي جمره عقبه په اوو ډبرو وولي او د هري ډبري ویشتلو پر وخت دي تکبیر (الله اکبر) وایي، همدارنګه په دوولسم تاریخ دي درې سره جمرات په ډبرو وولي او په دیارلسم تاریخ که په منی کي قیام وي نو په هغه ورځ دي بیا ددرو سره جمراتو رمي پر هغه واجبیږي او که پر دوولسم تاریخ د منی څخه رخصت سو نو بیا پر هغه باندي په دیارلسم تاریخ رمي نه واجبیږي، په یوولسم، دوولسم او دیارلسم تاریخو کي د رمي وخت د لمر دزوال څخه وروسته دی مګر په دیارلسم تاریخ د صبح صادق راختلو څخه وروسته او د لمر د زوال څخه مخکي هم که رمي وکړل سي نو جائز ده

مگر سنت د لمر دزوال څخه وروسته دی په یوولسم او دوولسم تاریخو کي د لمر دزوال څخه مخکي رمي جائز نه ده، په اخري ورځ د رمي څخه د فارغه کېدو وروسته دي مکې ته روان سي او په لاره کي دي د لږ وخت لپاره په محصب کي تم سي بیا چي د مکې مکرمې څخه خپل هیواد ته روان سي نو طواف وداع دي وکړي په دغه طواف کي هم رمل او د هغه څخه وروسته سعي نه سته ، د طواف څخه وروسته د دوه رکعته لمونځ کولو سره دي د زمزم پاکي اوبه وڅښي او هر وار دي کعبې شریفي ته په کتلو سره په حسرت سره آه وکړي او دغه مبارکي اوبه دي پر مخ ، سر او بدن ومو ږي.

بیا دي د کعبې شریفي خوا ته راسي که ممکن وي په بیت الله شریف کي دي داخل سي او که ممکن نه وي نو د هغه مقدس پرده دي مچ کړي او خپله سینه او مخ دي پر ملتزم باندي کښېږدي او د کعبې شریفي د پردې په نیولو سره دي دعاء وکړي او وه دي ژاړي او دغه وخت هم تکبیر، تهلیل، حمد ، ثناء ، دعاء او استغفار کي بوخت کېدل پکار دي او د الله تعالی څخه د خپل مقاصدو د تکمیل لپاره دي دعاوي وکړي ددې څخه وروسته دي کعبې شریفي ته په شا تلو سره د مسجد حرام څخه دباندي ووځي (یعني کعبې شریفي ته په مخ کولو ووځي) . د حج ټول افعال ختم سوه .

**عمرې احکام :** عمره واجب نه ده بلکه په عمر کي یو وار سنت مؤکد ده، د عمرې لپاره د یو خاص زمانې شرط نه سته لکه څرنګه چي د حج لپاره دی بلکه کوم وخت چي وغواړي عمره کولای سي، همدارنګه په کال کي څو واره هم عمره کېدای سي البته غیر قارن ته د حج په ورځو کي عمره کول مکروه دي، د ایام حج اطلاق د عرفات پر ورځ، پر یوم نحر او ایام تشریق باندي کیږي د عمرې رکن طواف دی او په عمرې کي دوه شیان واجب دي یو خو د صفا او مروه په مینځ کي سعي او دوهم سرخریل یا وېښتان کوچني کول کوم شرطونه، سنتونه او ادبونه چي د حج دي هغه د عمرې هم دي .

**د جنایاتو احکام :** د حج په بیان کي جنایات هغه حرام کار ته وایي چي د هغه حرمت د احرام یا حرم په وجه وي او د هغه په کولو سره یو شی مثلا قرباني یا صدقه د جزاء په توګه واجبیږي ، ددې تفصیل داسي دی که چیري محرم پر خپل پوره اندام باندي خوشبویي ولګوي یا د یو خوشبویي لرونکي شي په خوړلو سره خوله خوشبوداره کړي په شرط ددې چي هغه خوشبویي خالص وي او په هغه کي د یو بل شي ګډون نه وي یا نکریزي استعمال کړي که په سر کي یې

ولگوي او که په ږيره، لاس، پښې وغيره کي، يا د زيتون تېل ولگوي يا يوه پوره ورځ گنډل سوي جامې استعمال کړي يا د يوه بغل پوره وېښتان يا د نامه لاندي وېښتان يا د غاړي وېښتان ليري کړي يا د دواړو لاسونو يا دواړو پښو يا د يوه لاس او يوې پښې نوکان پرې کړي يا طواف قدوم يا طواف صدر د جنابت په حالت کي وکړي يا طواف زيارت بې اودسه وکړي يا د عرفات څخه د امام تر مخه راسي يا سعي پرېږدي يا وقوف مزدلفه پرېږدي يا د ټولو ورځو رمي يا د يوې ورځي يا د اولي ورځي رمي ونه کړي يا د حلق او تقصير څخه پرته د حرم څخه د باندي راووځي يا د احرام په حالت کي د خپل ښځي څخه مچه واخلي يا هغه په شهوت سره مس کړي يا حلق، تقصير، طواف زيارت د ايام نحر د تېرېدو څخه وروسته وکړي يا د حج د واجب افعالو ترتيب بدل کړي مثلاً د قربانۍ کولو څخه مخکي سر وخريي نو په دغه ټولو صورتو کي د جزاء په توگه يوه قرباني واجبيږي.

او که محرم تلبيه وکړي يعني د خپل سر وېښتان په کونډرو وغيره لگولو سره ومونښلي يا د قارن کېدو په صورت کي د قربانۍ څخه مخکي حلق يا تقصير وکړي نو پر هغه دوې قربانۍ واجبيږي او که محرم د يوه اندام څخه کم خوشبويي استعمال کړي يا د يوې ورځي څخه کم خپل سر پټ کړي يا گنډلي جامې واغوندي يا د سر او ږيري د څلورمي برخي څخه کم وخريي يا ښځه نوکان کم پرې کړي يا پنځه نوکان په مختلفو مجلسو کي پرې کړي يا طواف صدر يا طواف قدوم بې اودسه وکړي يا د يوم نحر څخه وروسته د درو جمراتو څخه د يوه جمره رمي ترک کړي نو په دغه ټولو صورتو کي پر هغه صدقه واجبيږي چي د هغه مقدار نيم صاع غنم دي، که محرم د يو عذر يا ناروغۍ په وجه خوشبويي استعمال کړي يا سر وخريي يا گنډلي جامې واغوندي نو په دغه صورتو کي هغه ته اختيار دی که يو پسه ذبح کړي او که شپږو مسکينانو ته د صدقه فطر په اندازه صدقه ورکړي او که پرله پسې يا بې ترتيبه روژې ونيسي. د خوشبويي يا خوشبويي لرونکي گل يا ميوې په بويولو سره پر محرم باندي هيڅ نه واجبيږي مگر مکروه کار دی، که يو محرم شپږه مړه کړي نو د صدقې په توگه لږ د خوراک شی مثلاً يو موټ اوړه دي ورکړي په شرط ددې چي هغه شپږه د خپل بدن يا سر جامې وغيره څخه راوباسي او مړه يې کړي او که پر مځکه يې ونيسي مړه يې کړي نو پر هغه باندي هيڅ نه واجبيږي او که چيري هغه خپل جامې په لمر کي په دې نيت وچوي چي په هغه کي شپږي مړې سي او بيا ډيري شپږي مړې سي نو پر هغه باندي نيم صاع غنم صدقه کول واجبيږي مگر که چيري د جامو وچولو په نيت يې لمر ته کښېږدي او شپږي وژل د هغه مقصد نه وي نو په دغه صورت کي پر هغه باندي هيڅ نه

واجبيږي ، كه چيري محرم ښكار وكړي يا يو چا ته د ښكار لاره وښيي يا ښكار ته يو څوك متوجه كړي نو پر هغه باندي د جزاء په توګه د هغه ښكار قيمت واجبيږي چي دوه عادل كسان يې قيمت وټاكي او دا قيمت په هغه اعتبار دى كوم ځاى چي يې ښكار كړى دى يا د هغه نژدې ځاى په اعتبار دى ، په دې اړه به محرم ته اختيار وي كه په هغه قيمت د قرباني يو څاروى رانيسي او ذبح يې كړي او كه په هغه قيمت سره غنم وغيره رانيسي او مسكينانو ته يې د صدقه فطر په اندازه وويشي او كه وغواړي نو د هر فقير د صدقې د مقدار په عوض كي دي يوه يوه روژه ونيسي .

په پاى كي دا خبره ښوول هم ضروري ده چي ددغه ټولو جناياتو په كولو كي قصد ، اضطرار ، علم ، لا علمي ، رغبت او جبر ټول برابر دي يعني كه چيري محرم د احرام د منع شيانو څخه يو فعل وكړي نو پر هغه باندي په هر صورت كي جزاء واجبيږي كه د هغه څخه دغه فعل په قصد سره سوى وي او كه بېله قصده د هغه په علم سره سوى دى او كه د هغه د لاعلمي په وجه او هغه فعل په رغبت سره سوى وي يا د بل چا په زور سره .

## د روضې مطهرې د زيارت احكام او ادبونه

څوك چي حج ته ولاړ سي نو هغه ته پكار دي كه چيري فرض حج وي نو مخكي دي د خپل حج څخه فارغ سي بيا د روضې مطهرې د زيارت لپاره مدينې منورې ته ولاړ سي او كه حج نفل ي نو هغه ته اختيار دى چي مخكي زيارت وكړي د هغه وروسته حج وكړي او مخكي حج وكړي بيا د هغه وروسته زيارت وكړي په شرط ددې چي د حج لپاره مكې ته تلونكې لار د مدينې منورې څخه نه وي ، كله چي زيارت ته ولاړ سي نو دا نيت دي وكړي چي زه د رسول الله ﷺ د قبر مبارك او د رسول الله ﷺ د مسجد شريف (مسجد نبوي) د زيارت لپاره سفر كوم ، په لاره كي چي څومره مسجدونه راسي په ټولو كي دي لمونځ وكړي ، په لاره كي دي درود شريف وايي كله چي مدينې منورې ته نژدې ورسيږي نو ددغه مقدس ښار عظمت او بزرګي دي په خپل زړه كي ځاى كړي .

كله چي مدينه منوره بالكل مخامخ سي نو د ادب په خيال او د شوق په مقتضا سره دي د خپل سپرلۍ څخه كښته سي او كه ممكن وي نو د هغه ځاى څخه دي تر مسجد شريف پوري په پښو ولاړ سي ، د ښار په حدودو كي د داخلېدو څخه مخكي كه چيري ممكن غسل دي وكړي او كنه نو په اودس كولو سره دي سپيني جامې واغوندي خوشبويي دي ولګوي ، ښار ته دننه په رسېدو سره تر ټولو مخكي دي مسجد نبوي ته ولاړ سي په مسجد نبوي كي د داخلېدو څخه

مخکي که غسل وکړي نو غوره ده کنه اودس دي وکړي او خوشبويي دي ولګوي، مسجد نبوي ته په رسيدو سره دي تحية المسجد او د شکر لمونځ وکړي، ددې څخه وروسته دي په تصور او يقين سره د قبر مبارک زيارت ته متوجه سي چي زه د هغه باعظمت په دربار کي حاضرېږم چي د هغه په وړاندي د ټولي دنيا د پاچاهانو هم څه وقعت نسته.

بيا قبر مبارک ته په راتلو سره دي په ډېره خشوع او خضوع سره د لمانځه په ډول راسته لاس پر چپه لاس اېښودو سره ودرېږي چي حضرت سيد البشر ﷺ ته مخامخ وي او قبلې ته شا او ددې خبري يقين دي وکړي چي رسول الله ﷺ زما د حاضرېدو څخه خبر دی زما د سلام جواب راکوي او زما پر دعاء آمين وايي او بيا دي په ډېر ذوق او شوق سره په معتدل آواز سره سلام او صلوٰة وړاندي کړي او عرض او معروض دي وکړي کله چي د خپل عرض او نياز څخه فارغه سي نو د خپل ټولو قريبانو او دوستانو چا چي د سلام خواست کړی وي د هغوئ سلام دي د رسول الله ﷺ په خدمت کي د هغه له طرف څخه ادا کړي چي اې د الله رسوله! فلاني زوی د فلاني تاسو ته سلام کړی دی تاسو د هغه لپاره الله تعالی ته شفاعت وکړئ، ددې څخه وروسته دي د حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ او بيا د حضرت عمر فاروق رضی اللہ عنہ د سر مبارک په مخکي کي ودرېږي او د هغوئ په خدمت کي دي سلام عرض کړي، ددې څخه وروسته دي بيا د رسول الله ﷺ د سر مبارک په مخکي په ادب سره ودرېږي او په ډېر زوق او شوق سره دي د رسول الله ﷺ په خدمت کي سلام عرض کړي او کوم خواهش چي لري هغه دي د رسول الله ﷺ په طفيل د الله تعالی څخه وغواړي، د هغه څخه وروسته د حضرت ابولبابه رضی اللہ عنہ د ستنې سره چي څومره ممکن وي نفلونه وکړي او توبه او استغفار دي وکړي، ددې څخه وروسته دي د نبوي آثارو زيارت وکړي کوم چي معلمين يې ور ښيي او جنت البقيع ته دي ولاړ سي هلته دي د صحابه کرامو او اهل بيتو د قبرو مبارکانو زيارت وکړي،

بيا دي د شهداء اُحد په خاصه توګه د سيد الشهداء حضرت امير حمزه رضی اللہ عنہ د قبر زيارت وکړي او پر ټولو شهيدانو او مزارو دي فاتحه ووايي او شنبې په ورځ يا کومه ورځ چي ممکن وي د مسجد قباء زيارت دي وکړي او دوه رکعته لمونځ دي د تحية المسجد په نيت وکړي،

د مدينې منورې او روضې مبارکي ادبونه دادي چي څومره ورځي په مدينه منوره کي قيام کېدای سي هغه دي غنيمت وګڼي حتی الامکان خپل اکثر وخت دي په مسجد نبوي کي د اعتکاف په نيت تېر کړي هر ډول عبادت يعني لمونځ، روژه، تلاوت، درود، صدقه او خيرات سره دي خپل وختونه اباد کړي، تر څو چي په مسجد نبوي کي وي حجرې شريفي ته دي په ډېر

شوق سره ګوري او که د مسجد نبوي څخه د باندي وي نو د احترام او تعظيم په نظر او په خشوع او خضوع سره دي قبه شريفي ته ګوري ځکه د رسول الله ﷺ پر روضه مبارکه باندي نظر اچول استحبابا د کعبې شريفي د نظر کولو په حکم کي دی ، او د بنار څخه د باندي پر قبه شريفه باندي په نظر کولو سره اهل شوق ته چي کوم نورانيت او خوشحالي تر لاسه کيږي د هغه ادراک پر هغه حالت باندي موقوف دی کوم چي د الفاظو په ذريعه څرګند کيدای نه سي . شعر :

زوق اين مي نشناسي بخدا تا نه چشي

په مسجد نبوي کي چي څومره د شب بيداري سعادت تر لاسه سي که څه هم د يوې شپې بېاره وي د هغه څخه دي فائده تر لاسه کړي ځکه چي دا د شب قدر په اعتبار د شب قدر څخه کمه نه ده بلکه د هغه څخه هم زياته ده ځکه دغه يوه شپه د خپل ټول عمر ماحصل او خلاصه ګڼلو سره په عبادت کي تېره کړي ، غوره داده چي په دغه شپه کي بل يو عبادت نه کوي بلکه يوازي درود شريف وايي او که خوب ورسي نو د رسول الله ﷺ د جمال يا کمال سرور په تصور کولو سره دي خوب دفع کړي کله چي د رسول الله ﷺ د جمال يا کمال تصور د هغه زړه او دماغ ته د حضوری د کيف سرور و بخښي نو بيا نه خوب پاته کيږي نه غفلت ، شعر :

قرار چيست صبوري کدام وخواب کجا .

تر څو چي په مسجد نبوي کي وي نو بايد خپل زړه ، ژبه او ټول اندامونه د خرابو کلمو او خيالو څخه وساتي او د رسول الله ﷺ د حضوری د تصور څخه بل هيڅ طرف ته متوجه نه سي که څوک د هغه په بوختيا کي مُخل سي نو د هغه څخه دي کناره کشي اختيار کړي مګر که د يو چا سره ضروري خبره کول وي نو په مختصره توګه خبرو کولو سره دي هغه مقدس ځای ته متوجه سي ، د مسجد شريف د ادابو بايد په خاصه توګه خيال وساتل سي د توکلو وغيره څخه دي ځان وساتل سي مسجد ته د راتلو څخه مخکي دي د روضې مبارکي او منبر په مينځ کي خپل مصلی د مخکي څخه نه غوړوي بلکه په هغه مقدس ځای کي د لمانځه د ادا کولو د فضيلت د حصول چي کوم شوق وي نو تر ټولو مخکي دي مسجد ته د رسېدو هڅه کوي او هلته دي کېښيني ، په دغه مقدس مسجد کي د قرآن کريم د نزول او د جبرائيل ﷺ ځای دی د قرآن کريم په ختمولو کي دي کوتاهي نه کوي کم از کم يو قرآن کريم دي په دغه مسجد کي خامخا ختم کړل سي او که ممکن وي نو داسي کتابونه دي وايي چي په هغه کي د رسول الله ﷺ مبارک حالت ، خصائل او فضائل وي تر څو د رسول الله ﷺ د ملاقات او عبادت شوق يې زيات سي .

د قبر شریف مخته چي کله حاضریږي نو د ټولو ادبونو خیال دي ساتي او د رسول الله ﷺ په خدمت کي دي سلام او صلوة وړاندي کړي ، په مدینه منوره او مسجد نبوي کي د اوسیدونکو او خدمتګارو د محبت او تعظیم دي خیال ساتي که څه هم په هغوئ کي یو خبره د شریعت او سنت خلاف وي ځکه د رسول الله ﷺ د همسایتوب شرف د هغوئ تر ټولو لوی فضیلت دی چي د یو ګناه او بدعت په وجه ختمیدلای نه سي او هغوئ د حسن خاتمې او مغفرت د سعادت څخه نه محروم کوي.

## وطن ته ستنېدل، د حج د دعاوو تفصيلي بيان او د کتاب خاتمه

کله چي په مدینه منوره کي د قیام وخت ختم سي او د دغه مقدس ځای څخه په بېلېدو سره خپل هېواد ته د روانېدو اراده وکړي نو د نبي کریم ﷺ پر مصلی یا هغه ته نژدې دي په لمانځه کولو سره او دعاء کولو سره د مسجد نبوي څخه رخصت سي ددې څخه وروسته دي د رسول الله ﷺ، د حضرت ابوبکر صدیق رضی اللہ عنہ او حضرت عمر فاروق رضی اللہ عنہ زیارت وکړي او د الله تعالی څخه دي نه یوازي دځان لپاره بلکه د خپل قریبانو، دوستانو، خپل هېواد او د ټولي اسلامي نړۍ لپاره د کونین د سعادت ، د امن او سلامتۍ دعاوي وغواړي او د خپلو ټولو عبادتو د قبولیت او خپل کورنۍ ته په امن او سلامتۍ سره د رسیدو خواست دي وکړي او دغه دعاء دي ووایي :
اللهم انا نسالک في سفرنا هذا البر والتقوی ومن العمل ما تحب وترضی اللهم لا تجعل هذا آخر العهد بنبیک ومسجده و حرمه ویسرلي العود الیه والعکوف لدیه وارزقني العفو والعافیة في الدنیا والاخرة ورددنا الی اهلنا سالمین غانمین آمنین.

دا خبره دي په ذهن کي وي چي د دعاء د مقبولیت او د مقصد د تر لاسه کېدو نښه داده چي هغه وخت بې اختیاره د سترګو څخه اوښکي جاري سي او زړه د دغه مقدس ځای په بېلوالي باندي د افسوس او غم څخه معموره وي بلکه په حقیقت کي ټول وختونه په دعاء کي ژړا او زارۍ د ذوق د تر لاسه کېدو باعث او د رحمت د امیدوارۍ نښه ده. شعر:

این دلم باغست وچشمم ابروش ابر گرید باغ خند وشاد و خوش

هغه وخت که خدای مه کړه پر یو چا باندي د ژړا حالت خپور نه سي نو هغه دي په تکلف سره پر ځای باندي دغه حالت جاري کړي او د هغه خبرو تصور دي وکړي چي د ذوق او ژړا حالت پیدا کړي ځکه چي دغه وخت د ژړا حالت په هر صورت د قبولیت علامه ده او بیا د هغه ځای د بیلتون څخه به سترګي لندې او په ژړا او افسوس سره رخصت کېدو پر وخت به پر شا نه ستنیږي ځکه

چي دا يوازي د کعبې شريفي سره خاص دی او د رخصت کېدو په وخت کي چي څومره کېدای سي صدقه او خيرات دي وکړي او د هغه ټولو ادبونو خيال دي وساتي کوم چي د سفر څخه د ستېندو پر وخت منقول دي او بيا چي کله خپل ښار ته نژدې راورسيږي نو دغه دعاء دي وکړي :

اللهم اني اسئلک خيرها و خير اهلها و خير ما فيها و اعوذ بک من شرها و شر اهلها و شر ما فيها اللهم اجعل لنا بها قرارا و رزقا حسنا .

او کله چي ښار ته ورسيږي نو دغه دعاء دي وکړي :

لا اله الا الله وحده لا شريک له له الملک وله الحمد وهو علی کل شئ قدير آئبون تائبون عابدون ساجدون لربنا حامدون لا الا الا الله وحده صدق وعده ونصر عبده وهزم الاحزاب وحده واعز جنده فلا شئ بعده .

پکار دي چي خپل ښار او سرای ته د رسيدو څخه مخکي خپلو خپلوان او دوستان خبر کړي چي زه پر فلاني وخت را رسيدونکی يم بېله خبره ورکولو دي کور ته نه ځي او خپل ښار ته د رسېدو غوره وخت د څاښت وخت دی د ماښام په وخت کي دي نه رسيږي بيا چي کله خپل ځای ته ورسيږي نو په سرای کي د ننه کېدو څخه مخکي که مکروه وخت نه وي نو خپل مسجد ته دي ولاړ سي هلته دي دوه رکعته نفل وکړي دعاء دي وغواړي او په خير او عافيت باندي خپل هيواد ته پر رسيدو باندي دي د الله تعالی شکر ادا کړي او دغه دعاء دي وکړي :

الحمد لله الذي بنعمته وجلاله تتم الصالحات.

صلی الله تعالی علی خير خلقه محمد وعلی آله واصحابه اجمعين

برحمتک يا ارحم الراحمين

۞۞۞۞۞۞